# الورد الشذي

پښتو شرح د

# جامع الترمذي


افادات
شيخ الاسلام وفقيه العصر
محمد حسن جان المدني شهيد رحمه الله


حديث ۱ تا ۳۰۵

**خصوصيات**

- معرب متن
- په متن باندې اعراب
- د باب نمبر
- د حديث نمبر
- ترجمه او تشريح
- حل لغات
- د راوي حالات
- د حديث تخريج
- تحقيق د مذاهب اربعه
- متن مع السند بالاستيعاب


جمع وترتيب
ابو هلال عبد الخالق



مكتبه رحمانيه
0302-6209815
0316-9490041

وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ

# الــــورد الشـــذي

پښتو شرح د

# جـــامع الـــترمذي

## جلد ثاني

## ازحديث _٣٠٢_ تا _ ٨٠٨_

جمع وترتيب: خادم العلماء المفتقر الي الله ابوهلال: **عبدالخالق بن خان محمد**
خريج الجامعة امداد العلوم الاسلامية پشاور/ وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات)

**ازافادات**

شيخ الاسلام فقيه العصر محمد حسن جان (المدني) شهيد (رحمه الله)

**ناشــر:** مكتبه رحمانيه پشاور

**اسم الكتاب:** الورد الشذي بشرح الجامع للترمذي

**جلد** ثاني

ازحديث _۳۰۲_ تا _ ۸۰۸_

**تاليف:** ابوهلال "عبدالخالق" خَرِيْجُ الْجَامِعَةِ إِمْدَادُ الْعُلُوْمِ الْإِسْلَامِيَّةِ بِشَاوَر_
وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات) رابطه: ۰۳۳۳۹۱۲۱۱۹۲

سال اشاعت: ۲۰۲۱

**تعداد:** ۱۰۰۰

**ناشر:** مكتبه رحمانيه محله جنكي نزد قصه خواني (پشاور)
**اهتمام طباعت:** الحاج شاه زاده صاحب

****************

بسم الله الرحمن الرحيم

# فهرس العناوين والمحتويات

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ، وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.
(سورة الصافات:١٨٢)

***************

بسم الله الرحمن الرحيم

## ١١٦_ باب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ فِي صَلاَةِ الصُّبْحِ

### دسحر په مونځ کي دلوستل کيدونکو سورتونو بيان

٣٠٦_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مِسْعَرٍ، وَسُفْيَانَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عَلاَقَةَ، عَنْ عَمِّهِ قُطْبَةَ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " يَقْرَأُ فِي الفَجْرِ وَالنَّخْلَ بَاسِقَاتٍ فِي الرَّكْعَةِ الأُولَى ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ، وَأَبِي بَرْزَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ قُطْبَةَ بْنِ مَالِكٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ " قَرَأَ فِي الصُّبْحِ بِ: الوَاقِعَةِ " وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ " يَقْرَأُ فِي الفَجْرِ مِنْ سِتِّينَ آيَةً إِلَى مِائَةٍ " وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ " قَرَأَ: إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ " وَرُوِيَ عَنْ عُمَرَ، أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى أَبِي مُوسَى، أَنِ اقْرَأْ فِي الصُّبْحِ بِطِوَالِ المُفَصَّلِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَعَلَى هَذَا العَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. وَبِهِ قَالَ: سفيان الثوري، وَابْنُ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ.([1])

**ترجمه** : دقطبه بن مالك رضي الله عنه بيان دي چي ما دسحر دمونځ په رومبي ركعات كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه "والنخل باسقات" اوريدلي وو

امام ترمذي وائي دقتبه بن مالك حديث حسن صحيح، په دي باب كي دعمرو بن حريث، جابر بن سمره، عبدالله بن سائب، ابو برزه او ام سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي دسحر په مونځ كي يي سورة فاتحه لوستلي وه، او دا هم مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په سحر كي دشپيتو نه واخله سلو پوري ايتونه لوستل، او دا هم مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسحر مونځ كي "اذالشمس كورت" سورت لوستلي دي، اود عمر رضي الله عنه په باره كي مروي دي چي ابوموسي اشعري ته يي خط ليكلي وو چي دسحر په مونځ كي طوال مفصل لوله. داهل علمو هم په دي باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري او ابن مبارك، او شافعي قول دي.

**تشريح** : دلته امام ترمذي خلور بابونه قائم كري دي او په مونځ كي يي قرائت مسنون مقدار بيان كري دي اودبعضي سورتونو تعين يي هم كري دي په دي مسئله كي اصل الوصول دعمر

---

[1] _ صحيح مسلم في الصلاة ٣٥ (٤٥٧) . سنن النسائي في الافتتاح ٤٢ (١٥١) . سنن ابن ماجه في الإقامة (٨١٦) . (تحفة الأشراف : ٥٠٨٤) . سنن الدارمي في الصلاة ٦٦ (١٣٣٢)

فاروق رضي الله عنه خط دي چي ابو موسي اشعري ته يې ليکلي وو حاصل دخط دا وو چې دسحر او ماسپخين په مونځ کې دطوال مفصل قرائت مسنون دي يعني دسورة حجرات نه دسورة بروج پورې، او دمازيګر او ماخوستن په مونځ کې د اوساط مفصل قرائت مسنون دي، يعني دبروج نه واخله د دالبينه پورې البته په دې کې اختلاف هم ثابت دې ددې دپاره چې خلق کوم خاص صورت واجب او نه ګڼړي.

**د سورة تكوير فضائل:**

دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي خوك چې دقيامت منظر په سترګو ليدل خوښوي نو هغه دې "اذا الشمس كورت" او "واذا السماء انشقت" او واذا السماء انفطرت" لولي ترمذي دا روايت د حسن درجې ګڼړلي دي او دبغوي په روايت کې صرف داولني سورت ذکر دی .

ابن ابي حاتم او کتاب في البحر والاحوال کې ابن ابي الدنيا او ابو الشيخ په کتاب العظمة کې ددې ايت په ضمن کې هم دابن عباس رضي الله عنهما قول ددې مضمون مطابق نقل کړي دي چې دقيامت په ورځ به الله تعالى نمر او سپوږمۍ او ستوري بې نوره کړي او سمندر ته به يې اوغورځوي او يوه مغربي هوا به راوليږي چې په سمندر باندې به اولګي د ټول سمندر نه به اور جوړ شي .

دبعضې علماؤ قول دي چې کله نمر سمندر ته اوغورځولي شي نو دسمندر نه به په ګرميدو سره اور جوړ شي ، ابن ابي حاتم دابن ابي مريم قول نقل کړي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې نمر د بې نوره کيدو نه پس سمندر ته اوغورځولي شي او ستوري دخواره واره کيدو نه پس جهنم ته پريوځي او علاوه دعيسى عليه السلام او دهغه دمور نه چې به دکوم معبود علاوه دالله تعالى نه پرستش کيدو هغوئ به جهنم ته اوغورځولي شي ، زه وايم چې سمندر ته دنمر غورځيدل او جهنم ته غورځيدل ظاهرا متعارض دي ددې دواړو تطبيق داسې کيدې شي چې سمندر به پخپله ګرم اور اوګرځي، بخاري دابو هريره رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقيامت په ورځ به سپوږمۍ او نمر بې نوره کړې شي بزار پخپل مسند کې دومره اضافه بيان کړې ده چې اور ته به اوغورځولي شي.

**د زيد بن علاقه رضي الله عنه حالات**

نوم زيد دپلار نوم علاقه دقبيله بني ثقيف سره تعلق لري ،دې په تابعينو کې شميرل شوی دی په ۱۵۳يا ۱۵۸کې وفات شوی دی او دده عمر پدغه وخت کې دسل کالو نه زيات وو چې صحاح سته ورنه نقل دروايت کړی دی، اوپه ثقه راويانو کې شميرلی شوی دی.

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ١١٧ـ باب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ

### دماسپخين او مازيګر په مونځ کې دلوستل کېدونکو سورتونو بيان

٣٠٧ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِ: السَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ وَ السَّمَاءِ وَالطَّارِقِ وَشِبْهِهِمَا" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ خَبَّابٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَالْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ "قَرَأَ فِي الظُّهْرِ قَدْرَ تَنْزِيلِ السَّجْدَةِ" وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ "يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَةِ الأُولَى مِنَ الظُّهْرِ قَدْرَ ثَلاثِينَ آيَةً، وَفِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ قَدْرَ خَمْسَ عَشْرَةَ آيَةً" وَرُوِيَ عَنْ عُمَرَ أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى أَبِي مُوسَى، أَنِ اقْرَأْ فِي الظُّهْرِ بِأَوْسَاطِ الْمُفَصَّلِ، وَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ الْقِرَاءَةَ فِي صَلَاةِ الْعَصْرِ كَنَحْوِ الْقِرَاءَةِ فِي صَلَاةِ الْمَغْرِبِ، يَقْرَأُ بِقِصَارِ: الْمُفَصَّلِ وَرُوِيَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: تَعْدِلُ صَلَاةُ الْعَصْرِ بِصَلَاةِ الْمَغْرِبِ فِي الْقِرَاءَةِ. وقَالَ إِبْرَاهِيمُ: تُضَاعَفُ صَلَاةُ الظُّهْرِ عَلَى صَلَاةِ الْعَصْرِ فِي الْقِرَاءَةِ أَرْبَعَ مِرَارٍ.[1]

**ترجمه** دجابر بن سمره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په ماسپخين او مازيګر کې "والسماء ذات البروج، والسماء والطارق" او ددې پشان سورتونه لوستل

امام ترمذي وائي دجابر بن سمره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دې باب کې د خباب، ابو سعيد، ابوقتاده، زيد بن ثابت، او براء بن عازب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي رسول الله صلى الله عليه وسلم باره کې مروي دي چې په ماسپخين کې يې د سورة الم السجده په مقدار تلاوت کړي وو، دا هم مروي دي چې رسول الله دماسپخين په رومبي رکعات کې د ديرش ايتونو په مقدار او په دويم رکعات کې دپنځلس ايتونو په مقدار قرائت کولو، اود عمر رضي الله عنه په باره کې مروي دي چې ابوموسى اشعري ته يې خط ليکلي وو چې دسحر په مونځ کې اوساط مفصل لوله.دبعضې اهل علمو رائې ده چې دمازيګر قرائت دماښام

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ١٣١ (٨٠٥) . سنن النسائي في الافتتاح ٦٠ (٩٨٠، ٩٨١) . (تحفة الأشراف : ٢١٣٤) . مسند احمد (٥ / ١٠١، ١٠٣، ١٠٦، ١٠٨)

دقرائت پشان وي، يعني امام به قصار مفصل لولي او دابراهيم نخعي قول دي چي دماسپخين قرائت دمازيگر دقرائت يو په څلور دبل وي.

**تشريح** : د سورة البروج فضائل اود بروج لفظ تحقيق.

په صحيحينو کې دمعراج دحديث په تفصيل کې راغلي دي چي بيازه بيت المعمور ته پورته کړي شوم يعني اوم اسمان ته دکعبې په مقابل کښې، په سورة تطفيف کې دوهب بن منبه قول تير شوي دي چې په اوم اسمان کې يو مکان دي چې سپين کور ورته ونيلي شي هلته دمومنانو روحونه جمع کيږي،

يادبرج نه مراد داسمان دروازي دي څکه چي وتونکي خاصکر په دروازو باندي وتل کوي دفلاسفه داتباع په نتيجه کې دعوامو هم داخيال دي چي په وهمي طور اسمان په دولسو حصو تقسيم کړي شوي دي او هري يوي حصي ته بي بروج وئيلي شي په کوم کې چي ثوابت (يعني غير متحرک ستوري) موجود وي او سياري هم تلل راتلل کوي او دثوابتو په اجتماع سره چي کوم شکل جوړيږي هم هغه ددي دپاره نوم ايخودلي کيږي لکه حمل (دچيلي بچي) ثور (غويي) جوزا (غبرگوني بچي) مگر دا قول قابل داعتبار نه دي ددي خيال بناپدي خبره ده چي داسمان حرکت دوامي دي او ستوري پدي کې پيوست دي ليکن دا اقوال غلط دي . په قران او سنت سره ثابته ده چي هره يوه سياره په فلك کې په اوار رفتار سره گرځي او په اسمانونو کې غير متحرك ستوري بالکل موجود نه دي چي ددي دمجموعي په بنا داسمان يوي خاص حصي ته بروج اووئيلي شي دالله تعالي په کلام کې دبي دينه فلسفيانو اصطلاح مراد کيدي نشي نوپدي وجه داسمان موهوم حصو ته بروج نشي وئيلي، دبروج لفظي ساخت خو دظهور په معني دلالت کوي او اصطلاحي معني يې داسمان محض وهمي حصه ده . داهم وئيلي شوي دي چي دبرج نه مراد لوي ستوري دي څکه چي هغه بالکل ښکاره وي (حسن، مجاهد، قتاده).

***************

## ١١٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ فِي الْمَغْرِبِ

### دماښام په مونځ کې دلوستلې کيدونکو سورتونو بيان

٣٠٨ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُمِّهِ أُمِّ الْفَضْلِ، قَالَتْ: خَرَجَ إِلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَاصِبٌ رَأْسَهُ فِي مَرَضِهِ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ فَقَرَأَ بِـ: "الْمُرْسَلَاتِ". قَالَتْ: فَمَا صَلَّاهَا بَعْدُ حَتَّى لَقِيَ اللَّهَ قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ أَبُو

عِيسَى: حَدِيثُ أُمِّ الفَضْلِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ " قَرَأَ فِي المَغْرِبِ بِ: الأَعْرَافِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا " وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَنَّهُ قَرَأَ فِي المَغْرِبِ بِ: الطُّورِ " وَرُوِيَ عَنْ عُمَرَ أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى أَبِي مُوسَى، أَنِ اقْرَأْ فِي المَغْرِبِ بِقِصَارِ المُفَصَّلِ. وَرُوِيَ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ أَنَّهُ قَرَأَ فِي المَغْرِبِ بِقِصَارِ المُفَصَّلِ. قَالَ: وَعَلَى هَذَا العَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. وَبِهِ يَقُولُ: ابْنُ المُبَارَكِ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. وقَالَ الشَّافِعِيُّ: وَذُكِرَ عَنْ مَالِكٍ أَنَّهُ كَرِهَ أَنْ يُقْرَأَ فِي صَلَاةِ المَغْرِبِ بِالسُّوَرِ الطِّوَالِ نَحْوَ الطُّورِ وَ المُرْسَلَاتِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا أَكْرَهُ ذَلِكَ بَلْ أَسْتَحِبُّ أَنْ يُقْرَأَ بِهَذِهِ السُّوَرِ فِي صَلَاةِ المَغْرِبِ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چي دده مور ام فضل به فرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته په داسي حال كي راغي چي دبيمارۍ په وجه يي په سر باندي پټۍ ترلي وه او دمابنام مونځ يي وركړو او سورة مرسلات يي پكي اولوستلو او بيا يي ددينه پس دا سورة په مابنام كي نه دي لوستلي تردي پوري چي خپل محبوب حقيقي (الله تعالي) ته رخصت شو.

امام ترمذي واني دام الفضل حديث صحيح دي، او په دي باب كي د جبير بن مطعم، ابن عمر، ابو ايوب، او زيد بن ثابت رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي، درسول الله صلي الله عليه وسلم باره كي مروي دي چي دمابنام په دوه ركعاتونو كي يي سورة الاعراف لوستلي وو او درسول الله باره كي دا هم مروي دي چي دمابنام په مونځ كي سورة الطور لوستلي وو، دعمر رضي الله عنه باره كي مروي دي چي ابوموسي اشعري ته يي خط ليږلي وو چي ته به په مابنام كي قصار مفصل لولي، دابوبكرصديق رضي الله عنه باره كي مروي دي چي هغه به په مابنام كي قصار مفصل لوستل، داهل علمو په دي باندي عمل دي، ابن مبارك ، احمد ، او اسحاق هم په دي باندي قول كري دي امام شافعي واني دامام مالك باره كي ذكر شوي دي چي دمابنام په مونځ كي يي دسورة طور او مرسلات پشان اوږده سورتونه لوستل مكروه گنړلي دي، امام ترمذي واني دامام شافعي قول دي ليكن زه ورته مكروه نه وايم بلكه په مابنام كي ددي سورتونولوستل مستحب گنړم

---

1 _ صحيح البخاري في الأذان ٩٨ (٧٦٣) والمغازي ٨٣ (٤٤٢٩) . صحيح مسلم في الصلاة ٣٥ (٤٦٢) . سنن ابي داود في الصلاة ١٣٢ (٨١٠) . سنن النسائي في الافتتاح ٦٤ (٩٨٦) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٩ (٨٣١) . (تحفة الأشراف : ١٨٠٥٢) . مسند احمد (٦ في ٣٣٨، ٣٤٠) . سنن الدارمي في الصلاة ٦٤ (١٣٣١)

**تشريح** : د سورة المرسلات فضائل
رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زه سورة هود او ددي ملګرو سورتونو بوډا کړم دا حديث عقبه بن عامر او ابو جحيفه په روايت سره طبراني نقل کړي دي درسول الله صلي الله عليه وسلم مطلب داوو چي پدي کي الله تعالي حکم کړي دي "فاستقم کما امرت ومن تاب معك" يا دا مطلب وو چي پدي کي دقيامت او په تيرو شوو قومونو دغالب کيدو ذکر دي . دوروستني مطلب تائيد په هغه روايت سره کيږي کوم چي حاکم دابو بکر په سند سره نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زه سورة هود او الواقعه او المرسلات او عم يتساءلون او واذا الشمس کورت بوډا کړم (رواه الترمذي عن ابن عباس والحاکم عن ابي بکر وابن مردويه عن سعد ) .
دا قسم يو روايت دانس رضي الله عنه نه هم مروي دي کوم چي عبدالله بن احمد بيان کړي دي ليکن ددي روايت الفاظ دادي چي زه سورة هود او ددي ملګرو سورتونو بوډا کړم خکه چي پدي کي دقيامت او دنورو قومونو دواقعاتو بيان دي .

*****************

## ۱۱۹_ باب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ فِي صَلاَةِ الْعِشَاءِ
### دماسخوتن په مونځ کي دلوستل کيدونکو سورتونو بيان

٣٠٩_ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْخُزَاعِيُّ الْبَصْرِيُّ. حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ. حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ وَاقِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَقْرَأُ فِي الْعِشَاءِ الآخِرَةِ: الشَّمْسِ وَضُحَاهَا وَنَحْوِهَا مِنَ السُّوَرِ" قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بُرَيْدَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ "قَرَأَ فِي الْعِشَاءِ الآخِرَةِ: التِّينِ وَالزَّيْتُونِ". وَرُوِيَ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ فِي الْعِشَاءِ بِسُوَرٍ مِنْ أَوْسَاطِ الْمُفَصَّلِ نَحْوِ سُورَةِ الْمُنَافِقِينَ وَأَشْبَاهِهَا. وَرُوِيَ عَنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ أَنَّهُمْ قَرَءُوا بِأَكْثَرَ مِنْ هَذَا وَأَقَلَّ. فَكَأَنَّ الأَمْرَ عِنْدَهُمْ وَاسِعٌ فِي هَذَا. وَأَحْسَنُ شَيْءٍ فِي ذَلِكَ مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ "قَرَأَ: الشَّمْسِ وَضُحَاهَا وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ".[1]

---

[1] _ سنن النسائي في الافتتاح ٧١ (١٠٠٠) ، (تحفة الأشراف : ١٩٦٢) ، مسند احمد (٥ في ٣٥٣، ٣٥٥) سنن النسائي في الافتتاح ٧١ (١٠٠٠) ، (تحفة الأشراف : ١٩٦٢) ، مسند احمد (٥ في ٣٥٣، ٣٥٥)

**ترجمه** : دبريده رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ماخوستن كي "والشمس وضحاها" اولوستلو او ددي برابر سورتونه به يي لوستل.
امام ترمذي وائي دبريده رضي الله عنه حديث حسن دي، او په دي باب كي د براء بن عازب او انس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي، درسول الله باره كي مروي دي چي په ماخوستن كي به يي سورة والتين والزيتون لوستلو، دعثمان بن عفان رضي الله عنه باره كي مروي دي چي هغه به په ماخوستن كي اوساط مفصل سورتونه لوستل لكه سورة منافقون، اوددي بشان نور سورتونه، دصحابه كرامو او تابعينو نه دا هم مروي دي چي هغوئ ددينه زيات او كم هم لوستلي دي گويا كي دهغوئ په نزد په دي معامله كي وسعت دي ليكن په دي سلسله كي دټولو نه بهتر څيز هغه دي كوم چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي سورة الشمس او سورة التين به يي لوستلو .

**دبريده رضي الله عنه حالات**

نوم بريده كنيه ابو عبدالله او دپلار نوم حصيب بن عبدالله دي، كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته ورسيدو نو بريده يي په خدمت كي حاضر شو نو رسول الله ورته داسلام دعوت وركړو نو دی فورا مسلمان شو او دده سره دبني اسلم اتيا كسان هم په اسلام كي داخل شول (طبقات ابن سعد).
په صلح حديبيه او بيعة الرضوان كي يي هم شركت كړی دی (اسد الغابه).
او په فتح مكه كي يي هم ملگرتيا كړي وه (مسند احمد).
تقريبا په شپاړسو غزواتو كي شريك پاتي شوی دی (بخاري كتاب المغازي).
كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داسامه په مشرئ كي اخر لښكر تيار كړو نو په دي كي هم شريك وو (طبقات ابن سعد).
غرض دا چي دده په رگ رگ كي دجهاد جذبي توپونه وهل او دژوند مزه به يي داسونو په زغلولو كي ليدله (طبقات ابن سعد).
دیزید په زمانه كي دهجرت په ۶۳ كال وفات شو چي دمروياتو شمير يي ۱۶۴ دی يو متفق عليه دی او دوه په بخاري كي دي يولس په مسلم كي دي (تهذيب الكمال).

* * * * * * * * * * * * * * * * *

٣١٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ فِي الْعِشَاءِ الآخِرَةِ بِالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دماخوستن مونځ کي سورة التين اولوستلو
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

## ١٢٠_ باب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الإِمَامِ

### د امام په اقتداء کي دمقتدي دپاره دقراءت لوستلو بيان

٣١١_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ، فَثَقُلَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: "إِنِّي أَرَاكُمْ تَقْرَءُونَ وَرَاءَ إِمَامِكُمْ". قَالَ: "قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ إِي وَاللهِ. قَالَ: "فَلَا تَفْعَلُوا إِلَّا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَإِنَّهُ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُبَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ الزُّهْرِيُّ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ" قَالَ: وَهَذَا أَصَحُّ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ فِي الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الإِمَامِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ يَرَوْنَ الْقِرَاءَةَ خَلْفَ الإِمَامِ. (٢)

---

1 _ صحيح البخاري في الأذان ١٠٠ (٧٦٦)، و١٠٢ (٧٦٩)، وتفسير التين ١ (٤٩٥٢)، والتوحيد ٥٢ (٧٥٤٦)، صحيح مسلم في الصلاة ٣٦ (٤٦٤)، سنن ابي داود في الصلاة ٢٧٥ (١٢٢١)، سنن النسائي في الافتتاح ٧٢ (١٠٠١)، و٧٣ (١٠٠٢)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٠ (٨٣٤)، (تحفة الأشراف : ١٧٩١)، موطا امام مالك في الصلاة ٥ (٢٧)، مسند احمد (٤ في ٢٨٦، ٣٠٢)

2 _ سنن ابي داود في الصلاة ١٣٦ (٨٢٣)، (تحفة الأشراف : ٥١١١)، مسند احمد (٥ في ٣١٣، ٣١٦، ٣٢٢)

**ترجمه** : دعباده بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسحر مونځ اوکړو او قرائت ورباندي درروند شو نو دمونځ پوره کولو نه پس يې اوفرمائيل ماته داسي ښکاري چي تاسو په امام پسي قرائت وائي مونږ عرض اوکړو هو، په الله قسم چي مونږ قرائت وايو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل تاسو به داسي نه کوئ مګر علاوه دسورة فاتحي نه ځکه چي څوك دا اونه لولي نومونځ يې نه کيږي

امام ترمذي وائي دعباده رضي الله عنه حديث حسن دي. دا حديث زهري دمحمود بن ربيع نه اومحمود دعباده بن صامت نه او عباده دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهغه چا مونځ نه کيږي څوك چي سورة فاتحه اونه لولي او دا په دي باب کي دټولو نه صحيح ترين روايت دي. په دي باب کي د ابوهريره، عائشه، انس، ابوقتاده، او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، په صحابه کرامو او تابعينو کي داکثرو اهل علمو په امام پسي دقرائت په سلسله کي په دي روايت باندي عمل دي او د تابعينو نه پس په اهل علمو کي امام مالك، ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم په دي باندي قول کړي دي او دوئ ټول په امام پسي دقرائت کولو قائل دي.

****************

## ١٢١_ باب مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الإِمَامِ إِذَا جَهَرَ الإِمَامُ بِالْقِرَاءَةِ

### په جهري مونځونوکي په امام پسي دقرائت نه کولو بيان

٣١٢_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ. حَدَّثَنَا مَعْنٌ. حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ. عَنِ ابْنِ شِهَابٍ. عَنِ ابْنِ أُكَيْمَةَ اللَّيْثِيِّ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنْ صَلَاةٍ جَهَرَ فِيهَا بِالْقِرَاءَةِ. فَقَالَ: "هَلْ قَرَأَ مَعِي أَحَدٌ مِنْكُمْ آنِفًا؟" فَقَالَ رَجُلٌ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ. قَالَ: "إِنِّي أَقُولُ مَالِي أُنَازَعُ الْقُرْآنَ". قَالَ: فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ الْقِرَاءَةِ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا جَهَرَ فِيهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الصَّلَوَاتِ بِالْقِرَاءَةِ حِينَ سَمِعُوا ذَلِكَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ. وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ. وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَابْنُ أُكَيْمَةَ اللَّيْثِيُّ اسْمُهُ: عُمَارَةُ. وَيُقَالُ عَمْرُو بْنُ أُكَيْمَةَ. وَرَوَى بَعْضُ أَصْحَابِ الزُّهْرِيِّ هَذَا الْحَدِيثَ وَذَكَرُوا هَذَا الْحَرْفَ. قَالَ: قَالَ الزُّهْرِيُّ: فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ الْقِرَاءَةِ حِينَ سَمِعُوا ذَلِكَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَلَيْسَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ مَا يَدْخُلُ عَلَى مَنْ رَأَى الْقِرَاءَةَ خَلْفَ الإِمَامِ. لِأَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ هُوَ الَّذِي رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الْحَدِيثَ.

وَرَوَى أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ فَهِيَ خِدَاجٌ غَيْرُ تَمَامٍ" فَقَالَ لَهُ حَامِلُ الْحَدِيثِ: إِنِّي أَكُونُ أَحْيَانًا وَرَاءَ الْإِمَامِ. قَالَ: اقْرَأْ بِهَا فِي نَفْسِكَ. وَرَوَى أَبُو عُثْمَانَ النَّهْدِيُّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "أَمَرَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أُنَادِيَ أَنْ لَا صَلَاةَ إِلَّا بِقِرَاءَةِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ" وَاخْتَارَ أَكْثَرُ أَصْحَابِ الْحَدِيثِ أَنْ لَا يَقْرَأَ الرَّجُلُ إِذَا جَهَرَ الْإِمَامُ بِالْقِرَاءَةِ، وَقَالُوا: يَتَتَبَّعُ سَكَتَاتِ الْإِمَامِ. وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الْإِمَامِ. فَرَأَى أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمُ الْقِرَاءَةَ خَلْفَ الْإِمَامِ، وَبِهِ يَقُولُ: مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ: أَنَا أَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ وَالنَّاسُ يَقْرَءُونَ، إِلَّا قَوْمًا مِنَ الْكُوفِيِّينَ، وَأَرَى أَنَّ مَنْ لَمْ يَقْرَأْ، صَلَاتُهُ جَائِزَةٌ. وَشَدَّدَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي تَرْكِ قِرَاءَةِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَإِنْ كَانَ خَلْفَ الْإِمَامِ. فَقَالُوا: لَا تُجْزِئُ صَلَاةٌ إِلَّا بِقِرَاءَةِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَحْدَهُ كَانَ أَوْ خَلْفَ الْإِمَامِ. وَذَهَبُوا إِلَى مَا رَوَى عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَرَأَ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلْفَ الْإِمَامِ، وَتَأَوَّلَ قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا صَلَاةَ إِلَّا بِقِرَاءَةِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ" وَبِهِ يَقُولُ: الشافعي، وَإِسْحَاقُ وَغَيْرُهُمَا. وَأَمَّا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، فَقَالَ: مَعْنَى قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ إِذَا كَانَ وَحْدَهُ". وَاحْتَجَّ بِحَدِيثِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، حَيْثُ قَالَ: مَنْ صَلَّى رَكْعَةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ، فَلَمْ يُصَلِّ إِلَّا أَنْ يَكُونَ وَرَاءَ الْإِمَامِ. قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: فَهَذَا رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، تَأَوَّلَ قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ أَنَّ هَذَا إِذَا كَانَ وَحْدَهُ" وَاخْتَارَ أَحْمَدُ مَعَ هَذَا الْقِرَاءَةَ خَلْفَ الْإِمَامِ، وَأَنْ لَا يَتْرُكَ الرَّجُلُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَإِنْ كَانَ خَلْفَ الْإِمَامِ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دهغه مونځ نه دفارغيدو نه پس په کوم کي چي په تيز اواز قرائت کيږي اوفرمائيل چي ايا اوس په تاسو کي چا په ماپسي قرائت کړي دي؟ يوکس عرض اوکړو هو اي دالله رسوله، ما په تاسو پسي

---

1 _ سنن ابي داود في الصلاة ۱۳۴ (۸۲۶) . سنن النسائي في الافتتاح ۲۸ (۹۰) . سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۲ (۸۴۸، ۸۴۹) . (تحفة الأشراف : ۱۴۲۶۴) . موطا امام مالک في الصلاة ۱۰ (۴۴) . مسند احمد (۲ في ۲۴۰، ۲۸۴، ۲۸۵، ۳۸۴)

قرائت كړي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ما هم همدا اوس قرائت كولو اخر څه خبره ده چي دقران په لوستلو كي زما د اواز سره نور اوازونه ټكر كيږي او زما په اواز دبل اواز دغالب كولو كوشش كيږي زهري وائي هر كله چي خلقو درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا خبري واوريدي نو خلق په رسول الله صلي الله عليه وسلم پسي په هغه مونځونو كي په كوم كي چي قرائت په تيزه كيږي دقرائت كولو نه منع شول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي، او دابن اكيمه ليثي نوم عماره دي هغه ته عمرو بن حكيمه هم ونيلي شي، دزهري نورو شاگردانو هم دا حديث نقل كړي دي ليكن هغوئ په دي الفاظو نقل كړي دي "قال الزهري فانتهي الناس عن القراءة حين سمعوا ذلك من رسول الله صلي الله عليه وسلم، په دي باب كي دابن مسعود، عمران بن حصين، او جابر بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي ، او په دي حديث كي داسي كوم څيز نشته كوم چي دهغه چا دپاره دركاوټ سبب جوړ شي څوك چي په امام پسي دقرائت كولو قائل دي ځكه چي دا حديث ابوهريره رضي الله عنه نقل كړي دي او ابوهريره درسول الله صلي الله عليه وسلم دا حديث هم نقل كړي دي "چاچه كوم مونځ اوكړو او په هغه كي يي سورة فاتحه پريخودله نو مونځ يي ناقص دي، ناقص معني ناتمام نو دهغه نه يو كس چاچه ورنه دا حديث نقل كړي وو تپوس اوكړو چي زه كله كله په امام پسي ولاړ يم نو څه به كوم ابوهريره ورته اوفرمائيل په زړه كي يي وايه، دابوعثمان نهدي نه روايت دي چي دابوهريره رضي الله عنه بيان دي ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم دا حكم اوكړو چي زه اعلان اوكړم چي دسورة فاتحي نه بغير مونځ نه كيږي، اكثر محدثينو دا خبره اختيار كړي ده چي كله امام په تيز اواز قرائت كوي نو مقتدي به قرائت نه كوي او دا قول يي كړي دي چي دي به دامام دسكتو تتبع جاري ساتي يعني هغه به فاتحه دامام دسكتو په مينځ كي وائي، په امام پسي دقرائت په سلسله كي داهل علمو اختلاف دي صحابه كرام او تابعين او ددوئ نه پس اكثر اهل علم په امام پسي دقرائت وئيلو قائل دي، مالك بن انس، عبدالله بن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهوي هم قرائت خلف الامام اختيار كړي دي عبدالله بن مبارك وائي چي زه په امام پسي قرائت وايم او نور خلق يي هم وائي علاوه د يو څو كوفيانو نه مگر زما خيال دادي چي څوك فاتحه اونه لولي نو مونځ يي درست نه دي، په اهل علمو كي بعضي كسانو په دي سلسله كي سختي كړي ده ددوئ قول دي چي په مونځ كي دسورة فاتحي پريخودل جائز نه دي اگر كه په امام پسي ولاړ وي دوئ وائي چي بغير دسورة فاتحي نه مونځ كفايت نه كوي او دوئ په هغه حديث عمل كړي دي كوم چي عباده بن صامت دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي او پخپله عباده بن صامت به هم په رسول الله پسي قرائت كولو دهغه عمل درسول الله په هغه قول دي په كوم كي چي دا كلمات دي "دسورة فاتحي نه بغير مونځ نه كيږي" او همدا قول دامام شافعي او اسحاق

وغيره هم دي، احمد بن حنبل وائي درسول الله صلي الله عليه وسلم دقول "دسورة فاتحي نه بغير مونځ نه کيږي" مطلب دادي چي کله څوك يواځي مونځ کوي نو بيا دسورة فاتحي نه بغير مونځ نه کيږي امام احمد دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما دحديث نه دا استدلال کړي دي په کوم کي چي دا وارد دي "چاچه يو رکعات اوکړو او په دي کي يي سورة فاتحه اونه لوستله نو دهغه مونځ نه کيږي مگر علاوه دهغه چانه چي په امام پسي ولاړ وي امام احمد بن حنبل وائي چي دا په صحابه کرامو کي يو کس وو او هغوئ دنبي کريم صلي الله عليه وسلم ددي فرمان "دسورة فاتحي نه بغير مونځ نه کيږي" دا تفسير کړي دي چي دا حکم دهغه چا دپاره دي څوك چي يواځي مونځ کوي ددي هر څه باوجود امام احمد بن حنبل په امام پسي دفاتحي لوستل خوښوي او داقول يي کړي دي چي په مونځ کي دسورة فاتحي پريخودل نه دي پکار اگر که په امام پسي ولاړ وي

***************

٣١٣ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ. حَدَّثَنَا مَعْنٌ. حَدَّثَنَا مَالِكٌ. عَنْ أَبِي نُعَيْمٍ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ. أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ. يَقُولُ: " مَنْ صَلَّى رَكْعَةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَلَمْ يُصَلِّ إِلَّا أَنْ يَكُونَ وَرَاءَ الإِمَامِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي چاچه يو رکعات مونځ اوکړو او سورة فاتحه يي پکي پريخوده دهغه مونځ نه کيږي مگر علاوه دهغه چا نه چي په امام پسي ولاړ وي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**د قراءت خلف الامام شرعى حكم**

د قرات خلف الامام متعلق دري مذاهب دي:

(١) د احنافو مسلك.دادي چي مقتدى به په امام پسي بيخى قرات نه وائى.نه فاتحه او نه سورت، كه جهرى مونځ وى اوكه سرى مونځ وى

(٢) د امام مالك اودامام شافعى په دي كي اختلاف دې.يعنى دده په نزد پـه مقتدى باندې د امام شاته فاتحه ونيل واجب دي.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف. وانظر موطا امام مالک في الصلاة ٨(٣٨). (لم يذكره المزى فى مظانه ج٢ في ص٢٨٥٢٨٨ من رقم ٢٤٢٥ إلى ٣١٢٢)

دامام شافعی قدیم قول خو دا دې چې په مقتدی باندې په سری مونځ کې چې په کومو رکعتونو کي جهر نه وی.په هغی کي فاتحه وئیل واجب دی.

(۳)لیکن د امام شافعی قول جدید او صحیح مذهب دا دې چې په مقتدی باندې په هر مانخه کي فاتحه وئیل واجب دی.که جهری مونځ وی اوکه سری وی.دامام شافعی عقلی دلیل دا دې چې قرات یو رکن دې.او په ټولو ارکانوکي امام او مقتدی دواړه شریك وی.مثلاً قیام، رکوع ،سجده وغیره کي دواړه شریك دی.نو په قرات کي به هم دواړه شریك وی.

او نقلی دلیل د ابوعباده (رضي الله عنه) حدیث دې.فرمائی:

(صلى بنا رسول الله صلي الله عليه وسلم الصبح فثقلت عليه القراءة فلما إنصرف قال إني لأرا كم تقرءون خلف إمامكم قلنا أجل: قال لا تفعلوا ذلك الا بفاتحة الكتاب فإنه لا صلاة لمن لم يقرأها)

یعنی رسول الله صلي الله علیه وسلم مونږ ته د سحر مونځ راکولو.نو په دوی باندې لوستل ګران شو.لکه چې رسول پاك صلي الله علیه وسلم سلام اوګرخولو.نو ویي فرمائل.زه وینم چې تاسو په خپل امام پسې شاه ته قرات وائې.مونږ عرض اوکړو.هو. رسول پاك صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل.داسی مکوئ.مګر په فاتحة الکتاب سره.ځکه چې څوك فاتحه اونه وائی.د هغه مونځ نه کیږی.

**داحنافودلائل:** زمونږ دلیل د رسول پاك صلي الله علیه وسلم ارشاد نبوي دې:

(من كان له إمام فقراءة الإمام له قراءة)

وجه د استدلال دا ده چې دامام قرات حکماً د مقتدی دپاره کافی کیږی.نو هرکله چې د مقتدی دپاره حکماً قرات موجود شو.نو اوس به مقتدی دوباره قرات نه کوی.ګنی د مقتدی به دوباره قرات کول لازم شی.حالانکه په مانځه کي دوباره قرات کول مشروع نه دې.

صاحب د هدایه فرمائی چې د صحابه کرامو اجماع هم په دی باندې ده چې مقتدی به په امام پسې قرات نه کوی.خو په دی باندې دا اعتراض کیږی چې بعضي صحابه کرام د قرات خلف الامام د وجوب قائل دی.لکه عباده بن صامت(رضي الله عنه)

جواب دا دې چې دلته د اکثرو صحابو اجماع مراد ده.اتیا صحابه کرامو د قرآت فاتحه خلف الامام انکار کړې دې.

امام شعبی فرمائی چې ما اویا بدریان صحابه کرام لیدلی وو چې د قرات فاتحه خلف الامام نه ئې منع کوله.خود دی اویا یا اتیا صحابه کرامو تعداد دا کثرو صحابه کرامو تعداد نه دې.نو ځکه دی ته د اکثرو صحابه کرامو اجماع وئیل درست نه دی.

دویم جواب : بعضي اهل علمو ددی جواب دا ورکړې دي چی د مجتهدینو صحابه کرامو او لویو صحابه کرامو اجماع مرادده.او مجتهدین صحابه دا دی(١)ابوبکر صدیق(٢)عمربن الخطاب(٣) عثمان بن عفان (۴)علی بن ابی طالب(۵) عبدالرحمن بن عوف (۶) سعدبن ابی وقاص(٧) عبدالله بن مسعود(٨) عبدالله بن عمر(٩) عبدالله بن عباس(١٠) زید بن ثابت رضی الله عنم اجمعین.

یواحتمال دا هم موجود دې چی کوم حضرات د قرات فاتحه خلف الامام قائل دی.د هغوی رجوع ثابته ده.نو په دی صورت کي به اجماع تامه شی.او دا وئیلی شی چی کله ددی لس لویو صحابه کرامو نه نفی ثابته ده.اوددوی خلاف د یو صحابی رد ثابت نه دې.حالانکه په هغه وخت کي د صحابه کرامو لوئي تعداد موجود وو.نو دا اجماع سکوتی شوه.

پاتې شوه.دامام شافعی‌دا وینا چی قرات د امام او مقتدی په مینځ کي مشترك رکن دې.نو مونږ دا منو.خو د مقتدی حصه چپ پاتې کیدل دی.او غوږ کیخودل اوریدل دی. رسول پاك صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دی(إذا قرء فانصتوا) کله چی امام قرات کوی.نو تاسو چپ اوسئ.

(٢)او دالله تعالی ارشاد دې: وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ (الاعراف:٢٠٢)
یعنی کله چی قرآن لوستلي شی.نو تاسو غوږ ایږدئ .اوچپ اوسئ.اودا آیت د مونځ په باره کي نازل شوي دې.خکه چی د ابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دی چی :
(أن أصحاب رسول الله صلي الله عليه وسلم قرأوا خلفه فخلطو عليه القراءة فنزلت)
یعنی د رسول الله صلي الله علیه وسلم صحابه کرامو په رسول پاك صلي الله علیه وسلم پسې قرات لوستلو.نو رسول الله صلي الله علیه وسلم باندې په قرات کي گډوډوالی راغلو.نو دا آیت نازل شو، دغه شان د ابوهریره(رضي الله عنه) نه روایت دې:
(أنه صلي الله عليه وسلم قال إنما جعل الإمام ليؤتم به فإذا كبر فكبروا وإذا قرأ فانصتو)
یعنی امام ددی دپاره مقرر شوي دي چی دده اقتداء وکړی شی.کله چی هغه تکبیر وائی.نو تاسو هم تکبیر وائي.او کله چی هغه قرات وائی.نوتاسو چپ اوسئ.

دامام محمد نه یو روایت دا دې چی د احتیاط دپاره قرات فاتحه خلف الامام مستحسن دې.خکه چی د عباده بن صامت(رضي الله عنه) حدیث وراندې تیر شو چی (لاتفعلوا ذلك الا بفاتحة الكتاب فإنه لا صلاة لمن لم يقرأها)

او د شیخینو په نزد قرات خلف الامام مکروه دی .خکه چی د قرات خلف الامام په باره کي وعید راغلی دي هغه روایتونه کوم چي دقراءت خلف الامام کولو متعلق راغلي دي
(١)رسول پاك صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دی :

(من قرأ خلف الإمام ففی فيه جمرة وقال قد خطأ السنة)
کوم کس چی په امام پسې قرات اووائی.نو دهغه په خوله کي سکروټه واچوئ.اووېي فرمائيل چی ده د سنت نه خلاف اوکړو.
(۲)او د سعد بن ابی وقاص(رضي الله عنه) نه نقل دی
(أنه قال من قرأ خلف الإمام فسدت صلاته) .
یعنی کوم کس چی په امام پسې قرات ولوستلو.نو د ده مونځ فاسد شو.
(۳) او د عمربن خطاب (رضي الله عنه) نه نقل دی
(قال ليت فی فم الذی يقرأ خلف الإمام حجرا أو غير ذلك)
عمربن خطاب (رضي الله عنه) فرمائی.کوم کس چی په امام پسې قرات وائی. کاش چی دده په خوله کي کاڼي اچولي شوي وې.

## د مقتدی دپاره دجمعې په خطبه کې دخاموشۍ حکم

که چرې امام کله قرات کوی.نو مقتدی به غوږ اږدی.اوری به او چپ به وی.اګرچې امام د ترغيب يا ترهيب آيت اووائی، دليله دليل دا دې چی غوږ لګول، اوريدل، اوخاموش پاتې کيدل د نص قرآن: وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ (الاعراف:۲۰۴)نه ثابت دی.اوپه امام پسې روستو قرات کول دجنت سوال کول او د دوزخ نه پناه غوښتل دا ټول ځيزونه په استماع او انصات کي خلل پيدا کوی. ځکه به په دی کي يو کار هم نه کوی.
پاتې شوه دا خبره چی امام يا منفرد به دجنت سوال يا د دوزخ نه پناه غواړی که نه؟
صاحب د عنايه‌ليکلی دی چی امام به دا کار نه په فرض مونځ کي کوی اونه په نفل کي ،ځکه چی دا نه د رسول پاك صلي الله عليه وسلم نه منقول دی.اونه د دوی نه پس داامامانو نه منقول دی.دويم دليل دا دې چی امام به داسی دعاګاني غواړی چی په مقتديانو باندې د تطويل صلاة باعث نشی.ځکه چی دا مکروه دی.نوځکه به هم امام دا کار نه کوی، دغه شان به منفرد هم چی کله فرض مونځ کوی. دا دعاګاني به د فرض مونځ په مينځ کي نه غواړی.ځکه چی د رسول پاك صلي الله عليه وسلم نه منقول نه دی.اونه د هغوی نه پس د امامانو نه منقول دی.مګر که نفل کوی. نودجنت سوال کول او د اور نه پناه غوښتل بهتر دی.ځکه چی د حذيفه (رضي الله عنه) حديث دې
(صليت مع رسول الله صلي الله عليه وسلم صلاة الليل فما مر بآية فيها ذكر الجنة الا وقف وسأل الله الجنة فما مر بآية فيها ذكر النار الا وقف وتعوذ بالله من النار)
فرمائی چی ما د رسوالله سره د شپې مونځ کولو.نو په داسی آيت چی د جنت ذکر به پکې وو.نه به تيريدلو.مګر اودريدلوبه او د جنت سوال به ئې کولو.اوپه داسی آيت چی د جهنم

ذكر به پكي وو.په هغې به نه تيريدلو.مګر رسول پاك صلي الله عليه وسلم به اوريدلو.اود جهنم نه به ئې پناهي غوښتله.
دغه شان كه خطيب په خطبه كي وي.نو قوم به غوږ ايږدي.اوخطبه به په آرام سره اوري.څكه چې ابوهريره(رضي الله عنه) نه روايت دې
(أن النبي قال من قال لصاحبه والإمام يخطب أنصت فقد لغا ومن لغا فلا صلاة له) رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائي چې كوم كس د خطبه په دوران كي خپل ملګرى ته اووئيل.چپ شه.نو ده لغو كار اوكړو.اوچا چې لغو كار اوكړو دهغه مونځ نه كيږي.
دغه شان كه امام په خطبه كي په رسول پاك صلي الله عليه وسلم باندې درود اووائي.نو بيا به هم قوم چپ وي.او غوږ به ايږدي اوري به. دليل دا دې چې:
صلاة على النبي صلى الله عليه وسلم فرض نه دې.اود خطبه اوريدل فرض دي.نو د غير فرض د وجې به فرض نشي پريخودلې.البته كه خطيب دخطبې په دوران كي دا آيت :
إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا (الاحزاب:٥٦)
اولوستلونو ددي آيت اوريدونكى به په زړه كي درود شريف وائي.
حاصل دا دې چې د خطبې په دوران كي درود شريف وئيل ممنوع دي.مګر كله چې خطيب دا آيت اووائي.نوپه دغه وخت كي په زړه كي درود شريف وئيلى شي.دليل دا دې. چې خطيب دالله تعالى نه حكايت اوكړو چې هغه په رسول پاك صلي الله عليه وسلم باندې درود وائي.اوحكايت ئې اوكړو چې فرشتې هم په هغوى باندې درود وائي.او الله تعالى د درود وئيلو حكم وركړې دې.حالانكه پخپله د دوى سره مشغول دې.نو په قوم باندې هم واجب دي چې هغه په درود وئيلو كي مشغول شي.دي دپاره چې هغه څيز متحقق شي.د كوم چې د دوى نه مطالبه شوې ده.داحكم په هغه وخت كي دې.كله چې دى منبر سره نزدې وي.
اوكه يو كس دمنبر نه لرې وي.نو د هغه په حق كي اختلاف دې.يعنى كه د منبر نه دومره لرې وي چې خطبه نشي اوريدې.نو په داسې صورت كي د قرآن قرات غوره دې.كه چپ وايې په دې باره كي د محمد بن سلمه نه روايت دې چې چپ اوسيدل غوره دي.هم دا قول امام كرخي اختيار كړې دې. دليل دا دې چې د قرآن پاك قرات اوريدل اوچپ اوسيدل دوه فرض دي.نو كه دلرې والى د وجې اوريدل ممكن نه وي.نو دويم فرض چې چپ اوسيدل دي ممكن وي نو دا به قائم ساتي.
(۲) امام فضلى فرمائي چې قرات د قرآن غوره دې.دليل ددې دا دې چې د چپ اوسيدو حكم په دې وجه وو چې د قرآن په اوريدو كي تدبر اوكړي.اوچې اوريدل ترې فوت شو.نو د قران قرات دې كوي چې د قرآن لوستلو ثواب حاصل كړي.

تفسير مظهري د ايت كريمه "فاقرؤوا ما تيسر من القران" په تفسير كي د قراءة خلف الامام مسئله داسي واضح كړي ده.

**مسئله:** په مقتدي قراءت دفاتحي واجب دي اوكه نه ؟ دامام شافعي په نزد دمنفرد او دامام پشان په مقتدي باندي هم دفاتحي قرائت واجب دي ، عمرفاروق، عثمان بن عفان ، علي ، ابن عباس او معاذ رضي الله عنهم نه هم ددي پشان روايات مروي دي ، امام مالك ، امام ابو حنيفه او امام احمد په نزد واجب نه دي دامام ابو حنيفه په نزد خو دمقتدي دپاره دفاتحي قرائت مطلقا مكروه دي او امام مالك يي په جهري مونخونو كي مكروه ګڼړي دامام احمد قول دادي چي په سري مونخونو كي دمقتدي دپاره دفاتحي قرائت مستحب دي او په جهري مونخونو كي هم په هغه وخت كي مستحب دي كله چي امام په كوم ايت سكته كوي، دامام دقرائت په حالت كي مكروه دي، زهري دامام مالك او ابن مبارك نه هم دا قول نقل كړي دي او دا دعبدالله بن عمر او عروه بن زبير او ابو القاسم بن محمد نه هم مروي دي.

دامام دقرائت په وخت كي دمقتدي نه دفاتحي دقرائت په سقوط دا حديث دلالت كوي دجابر رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دچا دپاره چي امام وي نو دامام قرائت دده قرائت دي يعني دده دپاره كافي دي (رواه احمد والدارقطني عن جابر الجعفي) دارقطني ددي حديث تضعيف كړي دي .

دابن جوزي بيان دي چي ثوري او شعبه دده تضعيف كړي دي دارقطني دا حديث په يو بل سند چي مدار يي په ليث دي هم نقل كړي دي ليكن ابن عيينه دليث تضعيف كړي دي، امام احمد مذكوره حديث ديحيي بن سلام په سند سره پدي الفاظو نقل كړي دي په كوم مونځ كي چي ام القران اونه لوستلي شي هغه ناتمام دي مګر چي په امام پسي وي دارقطني يحيي ضعيف ګڼړلي دي دابن جوزي قول دي ما هيڅوك داسي نه دي ليدلي چي يحيي يي ضعيف ګڼړلي دي، د دارقطني ، بيهقي او ابن عدي قول دي چي صحيح خبره داده چي دا حديث مرسل دي ځكه چي دحديث حافظانو لكه سفيان بن عيينه، سفيان ثوري، ابو الاحوص ، شعبه اسرائيل ، شريف، جرير، عبدالحميد ، او زهير دا روايت دموسي بن ابي عائشه نه په سند د عبدالله بن شداد سره رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دي، مونږ وايو مرسل هم زمونږ په نزد حجت دي او ابن جوزي خو ددي داتصال دتضعيف نه هم انكار كړي دي ليكن امام ابو حنيفه په هغه سند سره بيان كړي دي كوم چي دشيخينو دشرط مطابق صحيح دي اوګورئ امام محمد په مؤطا كي ليكلي دي،

حدثنا ابو حنيفة ثنا ابو الحسن موسى بن ابي عائشة عن عبد الله بن شداد عن جابر عن النبي صلى الله عليه وسلم.

" ورواه احمد ابن منيع في مسنده بسند صحيح على شرط مسلم قال انا اسحق الأزرق ثنا سفيان وشريك عن موسى ابن ابي عائشة عن عبد الله بن شداد عن جابر "
ددي مبحث په سلسله كې بعضې نور احاديث هم مروي دي مگر ضعيف دي دطوالت دلاړميدو په وجه يې مونږ ترك كوو.

**شبهه:** دايت كريمه "فاقرؤا ماتيسر من القران" حكم دهر مونځ كونكي دپاره عام دي ، هر كله چي داسي وي نو دامام ابو حنيفه دضابطي موافق په اخبار احادو سره ددي حكم تخصيص نشي كيدي.

**جواب:** دا ايت اجماعا عام مخصوص البغض دي يعني هغه كس خوك چي امام لره په ركوع كې بيامومي دده حكم بالاجماع ددينه جدا دي بيا ددينه دمقتدي تخصيص هم جائز دي.
په سري مونځ كې دفاتحي دمستحب كيدو دليل عباده بن الصامت مروي حديث دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي قرائت په جهر سره كيږي نو په تاسو كې دي هيڅوك دقران كومه حصه نه لولي مگر علاوه دام القران نه.
دارقطني ددي حديث دنقل كولو نه پس ليكلي دي چي ددي روايت تمام راويان ثقات دي پدي روايت كې په جهري مونځ كې دمقتدي دپاره دقرائت نه ممانعت راغلي دي دجهري مونځ خصوصيت دا تقاضا كوي چي په سري مونځ كې دي قرائت دفاتحي مستحب وي او بيا دام القران استثني دا تقاضا كوي چي ددي قرائت دي دامام په مختلفو سكتاتو كې اوكړي شي ددي دپاره چي په تمامو احاديثو عمل راشي او په ايت كريمه
"وإذا قرئ القران فاستمعوا له وانصتوا وقوله صلى الله عليه وسلم إذا قرئ فانصتوا"
رسول الله صلي الله عليه وسلم هم فرمائيلي دي اذا قرء فانصتوا يعني كله چي قرائت كيږي نو په خاموشئ سره ورته متوجه شئ دا حديث ابو داود هم دابو هريره رضي الله عنه په روايت سره او نسائي او ابن ماجه هم بيان كړي دي.

**مسئله:** ايا دفرضو او دنفلو په هر ركعات كې قرائت واجب دي؟ امام شافعي امام احمد او مالك په نزد دمونځ په هر ركعات كې علي الاطلاق واجب دي خكه چي دركوع او دسجدي دحكم په شان حكم دقرائت هم دي صرف دامام مالك نه په يو روايت كې يو قول راغلي دي كه چري دڅلور ركعاتي يا دري ركعاتي دفرضي مونځ په يو ركعات كې قرائت ترك كړي شي نو سجده سهو طرف ته به دا عمل راخكلي شي يعني واجب به وي ، امام ابو حنيفه د وترو او نفلو په هر ركعات كې دقرائت دوجوب قائل دي ددي وجه داده چي دنفلو هر دوه ركعاتونه مستقل مونځ دي مگر په فرضو كې صرف په دوه ركعاتي مونځ كې قرائت واجب دي، دقياس تقاضا خو دا وه چي صرف په يو ركعات كې دي قرائت واجب شوي وي خكه چي امر دتكرار تقاضا نه

کوي ليکن کله چي مونږ دقرائت او دمقدار دقرائت قائل يو نو ددي سره به اخري رکعات پدي حکم کې شريك نه وي، دامام ابو حنيفه ددي قول مدار پدي خبره دي چي کله ايت کريمه فاقرؤا ما تيسر من القران دپنځه وختني مونځونو متعلق اوګرځولي شي مګر دا خبره دمنلو لايق نه ده .

دجمهورو دقول دليل مختلف احاديث دي مثلا دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي چي يو کس مسجد ته داخل شو او مونځ يي اوکړو او رسول الله صلي الله عليه وسلم په ممبر باندي تشريف فرما وو دغه کس دمونځ کولو نه پس درسول الله په خدمت کې حاضر شو او سلام يي اوکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم دسلام دجواب ورکولو نه پس اوفرمائيل ورشه او مونځ دي اوکړه ځکه چي تا مونځ نه دي کړي پدي شان سره دي دري پيري لاړو او راغلو په اخر کې يي عرض اوکړو زما دي په هغه ذات قسم وي چاچه ته په حق سره راليږلي يي زه ددينه زيات به مونځ نشم کولي ماته يي اوښايه نو ويي فرمائيل کله چي په مونځ اودريږي نو الله اکبر وايه بيا چي څومره قران په سهولت سره لوستلي شي هغه وايه بيا رکوع کوه کله چي په اطمينان سره رکوع اوکړئ نو دسر پورته کولو نه پس به نيغ اودريږي او بيا به سجده اوکړي چي په اطمينان سره دي سجده اوکړه نو سر به پورته کړي او برابر به کيني بيا به ټول مونځ په همدي طريقه پوره کړي (متفق عليه).

ددي هم معني روايت رفاعه قرظي هم بيان کړي دي کوم چي امام احمد ، ابوداود، ترمذي او نسائي نقل کړي دي .

ابو قتاده په حديث کې راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دماسپخين او مازيګر په اولنو دوه رکعاتونو کې سورة فاتحه او دوه سورتونه لوستلي وو او په اخري دوه رکعاتونو کې يي صرف سورة فاتحه لوستلي وه او دسحر او ماسپخين په اولني رکعات کې يي د دويم په نسبت اوږدوالي کړي وو (بخاري ومسلم).

دابو الدردا رضي الله عنه نه روايت دي يو کس عرض اوکړو اي دالله رسوله ايا په هر مونځ کې قران لوستل ضروري دي؟ نو ويي فرمائيل هو ددي په اوريدو سره يو انصاري اوويل دا واجب شو، که چري دا شبهه اوکړي شي چي دا تمام احاديث احاد دي او په خبر واحد سره په قران زيادت جائز نه دي نو مونږ به دا جواب ورکوو چي داصول فقه ددي ضابطي دمنلو نه پس دا ونيلي کيدي شي چي دا حکم په هغه وخت کې دي کله چي دقران دلالت قطعي وي او ايت فاقرؤا خو دمختلفو تاويلاتو احتمال لري او دکوم قرائت چي دمونځ دپاره حکم شوي دي هغه مجمل دي احاد احاديث دهغي دپاره بيان ګرځيدي شي، والله اعلم.

****************

## ١٢٢_ باب مَا جَاءَ مَا يَقُولُ عِنْدَ دُخُولِ الْمَسْجِدِ

٣١٤_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَسَنِ، عَنْ أُمِّهِ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْحُسَيْنِ، عَنْ جَدَّتِهَا فَاطِمَةَ الْكُبْرَى، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ وَقَالَ: "رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ" وَإِذَا خَرَجَ صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: "رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ فَضْلِكَ" (١)

**ترجمه** فاطمه بنت حسين د خپلي نيا فاطمه بنت رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به کله مسجد ته داخل شو نو په محمد صلي الله عليه وسلم به يي درود وئيلو او بيا به يي دا دعا وئيله" رب اغفر لي ذنوبي وافتح لي ابواب رحمتك" يعني اي الله ماته مغفرت وکړي اود خپل رحمت دروازي راته پرانيزي ، او کله چي به د مسجد نه وتلو نو په محمد صلي الله عليه وسلم به يي سلام وئيلو او بيا به يي دا دعا وئيله" رب اغفر لي ذنوبي وافتح لي ابواب رحمتك. يعني اي الله ماته مغفرت وکړي اود خپل رحمت دروازي راته پرانيزي

*****************

٣١٥_ وقَالَ عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ: قَالَ إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: فَلَقِيتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الْحَسَنِ بِمَكَّةَ فَسَأَلْتُهُ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَحَدَّثَنِي بِهِ، قَالَ: كَانَ إِذَا دَخَلَ، قَالَ: "رَبِّ افْتَحْ لِي بَابَ رَحْمَتِكَ" وَإِذَا خَرَجَ، قَالَ: "رَبِّ افْتَحْ لِي بَابَ فَضْلِكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ، وَأَبِي أُسَيْدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ فَاطِمَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ، وَفَاطِمَةُ بِنْتُ الْحُسَيْنِ لَمْ تُدْرِكْ فَاطِمَةَ الْكُبْرَى، إِنَّمَا عَاشَتْ فَاطِمَةُ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْهُرًا. (٢)

**ترجمه** داسماعيل بن ابراهيم بيان چي زه په مکه کي د عبد الله بن حسن سره ملاو شوم او ددي حديث باره کي مي ورنه پوښتنه وکړله نو هغه راته بيان کړو او ويي فرمائيل کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم مسجد ته داخل شو نو بيا به يي دا دعا وئيله" رب اغفر لي ذنوبي وافتح لي ابواب رحمتك" يعني اي الله ماته مغفرت وکړي اود خپل رحمت دروازي راته پرانيزي.

---

[1] _ سنن ابن ماجه في المساجد ١٣ (٧٧١)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٢١)

[2] _ سنن ابن ماجه في المساجد ١٣ (٧٧١)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٢١)

امام ترمذي وايي چي د فاطمه رضي الله عنها حديث د شواهدو په بنا د حسن درجي دي . كنه نو سند يي متصل نه دى، ځكه چي فاطمه بنت حسين د فاطمه كبري نه سماع نه ده كړي هغه خو د رسول الله نه يو څو مياشتي پس وفات شوي وه، او په دي باب كي د ابو حميد، ابو اسيد، او ابو هريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

## د فاطمه بنت محمد (صلي الله عليه وسلم) فضائل او حالات

دابو موسي رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كامل سړي خو ډير دي مګر كاملي ښځي دري دي علاوه داسيه چي دفرعون ښځه وه او دمريم بنت عمران نه نور څوك نشته او دعائشي فضيلت په نورو ښځو داسي دي لكه دثريد فضيلت چي په نورو طعامونو دي (رواه احمد والبخاري ومسلم والترمذي وابن ماجه).

ثعلبي او ابو نعيم په روايت كي مذكوره حديث په لاندي الفاظو راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كامل سړي خو زيات دي مګر كاملي ښځي صرف څلور دي اسيه بنت مزاحم زوجه فرعون، مريم بنت عمران خديجه بنت خويلد او فاطمه بنت محمد (صلي الله عليه وسلم) او دعائشي فضيلت په نورو ښځو داسي دي لكه دثريد فضيلت چي په نورو خوراكونو دي.

دكامل كيدو نه مراد غالبا كمالاتو دنبوت ته رسيدل دي . دبخاري او مسلم په روايت كي ګويا كي دمخكنو قومونو خبر وركړي شوي دي ځكه چي په هغوئ كي كامل سړي يعني انبياء په كثرت سره راغلي وو او كمالاتو دنبوت ته رسيدونكي په تيرو امتونو كي صرف اسيه او مريم وه.

دانس رضي الله عنه نه مروي دي چي رسوالله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دټولي دنيا دښځو نه مريم بنت عمران خديجه بنت خويلد او فاطمه بنت محمد (صلي الله عليه وسلم) او اسيه بنت مزاحم ستاسو دپاره كافي دي (يعني صرف دا څلور ښځي كاملي دي).

دعلي رضي الله عنه نه مروي دي فرمائيل يي چي پخپله مي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي وو چي دتيرو قومونو په ښځو كي مريم بنت عمران دټولو نه بهتره وه او زمونږ په زنانوو كي دټولو نه بهتره خديجه بنت خويلد ده (متفق عليه).

دام سلمه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دفتح مكي په كال فاطمه رضي الله عنها راوغوښتله او په غوږ كي يي ورته څه اوونيل فاطمي چي واوريدل نو په ژړا شوه خوبيا ورته رسول الله كومه بله خبره هم وكړه چي دهغي په اوريدو سره يي اوخاندل مګر كله چي رسول الله وفات شو نوماد فاطمي نه ددي دژړا او بيا دخاندلو دسبب تپوس اوكړو نو ويي فرمائيل رسول الله اول ماته دا فرمائيلي وو ديره نژدي ده چي زه به وفات شم ماچه دا

واوریدل نو اومي ژړل خوبیايي چي اوفرمائیل علاوه د مریم بنت عمران نه ته به دتمامو جنتي ښځو سرداره یې پس دا چي مي واوریدل نو اومي خاندل (رواه الترمذي).

***************

## ١٢٣_ بَابُ مَا جَاءَ إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ

### کله چي يتاسوکي څوک مسجد ته داخل شي دوه رکعاته تحية المسجد مونځ دي وکړي

٣١٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَجْلِسَ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، نَحْوَ رِوَايَةِ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَرَوَى سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهَذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَالصَّحِيحُ حَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَصْحَابِنَا، اسْتَحَبُّوا إِذَا دَخَلَ الرَّجُلُ الْمَسْجِدَ أَنْ لَا يَجْلِسَ حَتَّى يُصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ لَهُ عُذْرٌ، قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ: وَحَدِيثُ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ خَطَأٌ، أَخْبَرَنِي بِذَلِكَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمَدِينِيِّ. [1]

**ترجمه** : دابوقتاده رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي په تاسو کي څوك مسجد ته راشي نو دکيناستو نه دي مخکي دوه رکعاتونه اوکړي.

امام ترمذي واني دابوقتاده حديث حسن صحيح دي، محمد بن عجلان، او بعضي نورو خلقو دعامر بن عبدالله بن زبير نه هم دا حديث دانس بن مالك دروايت پشان نقل کړي دي ، او سهيل بن ابي صالح دا حديث په سند دعامر بن عبدالله بن زبير عن عمرو بن سليم الزرقي عن جابر بن عبدالله عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، دا حديث غير محفوظ دي

[1] _ صحيح البخاري في الصلاة ٦٠ (٤٤٤) . والتهجد ٢٥ (١١٦٣) . صحيح مسلم في المسافرين ١١ (٧١٤) . سنن ابي داود في الصلاة ١٩ (٤٦٧) . سنن النسائي في المساجد ٣٧ (٧٣١) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٥٧ (١٠١٣) . (تحفة الأشراف : ١٢١٢٣) . موطا امام مالک في السفر ١٨ (٥٧) . مسند احمد (٥ في ٢٩٥، ٢٩٦، ٣٠٣)

او دابوقتاده حديث صحيح دي، په دي باب کي دجابر، ابوامامه، ابوهريره، ابوذر، کعب بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او زمونږ دعلماؤ په همدي باندي عمل دي هغوئ مستحب ګنړلي دي چي کله څوك مسجد ته داخل شي چي څو پوري يي دوه رکعاتونه کړي نه وي ترهغي پوري دي نه کيني مګر دا چي که دچا عذر وي (نو څه حرج نشته) علي بن مديني وائي دسهيل بن ابي صالح نه په دي حديث کي غلطي شوي ده

**لغات** يصل: داد مضارع صيغه ده معني مونځ وکړي اوپه معني ددعا کولو هم راځي. صفت يي مصلي دي ، دصلات مشهوري څلور معني دي مونځ، دعا، رحمت، استغفار.
يجلس: جلس جلوسا ومجلسا معني کيناستل صفت يي جالس او جلوس او جلاس راځي اود باب افعال نه اجلس په معني دکينولو دي.

**تشريح** : دجمهورو علماؤ په نزد تحية المسجد مونځ مستحب دي او داهل ظواهر په نزد واجب دي دجمهورو دليل دمصنف ابن ابي شيبه والادزيد بن اسلم روايت دي او داهل ظواهرو مستدل حديث الباب دي.

امام نووي وايي: دتحية المسجد مونځ فضيلت اوددی ترغيب او داچه جومات کي دوه رکعته مونځ کولو نه مخکي کيناستل مکروه دي يو شرعي حکم دی، هر وخت چي وي دا دوه رکعته که دتحية المسجد په نيت نفل اوکړي که فرض مونځ وي که سنت موکد ياسنن زوايد او نفل وغيره وي. (رياض الصالحين)

عن أَبي قتادة ﷺ ، قَالَ : قَالَ رسول الله ﷺ : ((إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ المَسْجِدَ ، فَلاَ يَجْلِسْ حَتَّى يُصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ)) متفقٌ عَلَيْهِ.

أخرجه: البخاري كتاب الصلاة باب اذا دخل المسجد فلير كع ركعتين ومسلم كتاب صلاة المسافرين باب استحباب تحية المسجد بركعتين ومالك في الموطاء واحمد والترمذي والنسائي وابن ماجه وابن حبان والبيهقي.

دابوقتاده رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي تاسو کي چي څوك جومات ته لاړ شي نو څو پوری چي يی دوه رکعته نه وي کړي نه دی کيني.
کله چي څوك مسجد ته راشي نو پکار ده چي دوه رکعته تحية المسجد مونځ وکړي دجمهورو علماؤ په نزد دا دوه رکعاته مونځ مستحب دی او د داود ظاهري په نزد واجب دی، که څوك مسجد ته راشي او کيني نو داحنافو په نزد بيا هم دا مونځ کولی شي ليکن دامام شافعي په نزد په کيناستو سره ددي مونځ وخت فوت کيږي.

**رسول الله دتحية مسجد مونځ کولو حکم کړي دي**

عن جابرٍ ﷺ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ وَهُوَ فِي المَسْجِدِ، فَقَالَ: ((صَلِّ رَكْعَتَيْنِ)) متفقٌ عَلَيْهِ.
جابر رضي الله عنه نه روايت دی چي زه د رسول الله صلي الله عليه وسلم ملاقات ته ورغلم او هغوی جومات کي وو، نو راته يي اوفرمائيل دوه رکعته مونځ اوکړه بيا به خبری کوو
مطلب دادی چه کله سړی دالله په دربار کي حاضر شي نو اول دي دوه رکعاته مونځ اوکړي کوم ته چي تحية المسجد وئيلی شي ليکن که وخت داسي وي چي مونځ پکي نشي کيدی مثلا جمع ولاړه وي يا دا وخت دمونځ کولو نه وي مکروه وخت وي نو په دي صورت کي دي يوځل سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر وائي.(روضة الصالحين. دليل الفالحين)
أخرجه: البخاري كتاب الصلاة باب اذا دخل المسجد فليركع ركعتين ومسلم كتاب صلاة المسافرين باب استحباب تحية المسجد بركعتين واحمد وابوداود والنسائي والنووي في رياض الصالحين).

***************

## ١٢٤ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ الأَرْضَ كُلَّهَا مَسْجِدٌ إِلاَّ الْمَقْبَرَةَ وَالْحَمَّامَ

### د مسجد او مقبري نه علاوه د زمکي هر يو ځاي کي مونځ کيږي

٣١٧ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ وَأَبُو عَمَّارٍ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدٌ إِلَّا المَقْبَرَةَ وَالحَمَّامَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَحُذَيْفَةَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَأَبِي ذَرٍّ، قَالُوا: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "جُعِلَتْ لِيَ الأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ قَدْ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ العَزِيزِ بْنِ مُحَمَّدٍ رِوَايَتَيْنِ، مِنْهُمْ مَنْ ذَكَرَهُ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَمِنْهُمْ مَنْ لَمْ يَذْكُرْهُ، وَهَذَا حَدِيثٌ فِيهِ اضْطِرَابٌ. رَوَى سفيان الثوري، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَرَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: وَكَانَ عَامَّةُ رِوَايَتِهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَأَنَّ رِوَايَةَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَثْبَتُ وَأَصَحُّ مُرْسَلًا. ([1])

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقبرستان او حمام (غسل خانه) نه علاوه دزمكي هر يو خاي دمسجد كيدو قابل دي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د عبدالله بن عمرو، ابوهريره، جابر، ابن عباس، حذيفه، انس، ابو امامه، او ابوذر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دوئ وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تمامه زمكه زما دپاره سجده گاه او دطهارت او دپاكوالي ذريعه گرخولي شوي ده، دابوسعيد رضي الله عنه حديث دعبدالعزيز بن محمد نه په دوه سندونو مروي دي بعضي علماؤ دابوسعيد واسطه ذكر كړي ده او بعضو نه ده ذكر كړي پس په دي حديث كي اضطراب دي سفيان ثوري په دي سند نقل كړي دي عمرو بن يحيي عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم، يعني مرسل يي نقل كړي دي او حماد بن سلمه دا حديث په سند د عمرو بن يحي عن ابيه عن ابي سعيد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرفوعا نقل كړي دي او محمد بن اسحاق هم دا حديث په سند دعمرو بن يحي عن ابيه سره نقل كړي دي دمحمد بن اسحاق قول دي چي ديحي اكثر احاديث دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دابوسعيد خدري په واسطه مروي دي ليكن په دوئ كي هغه دابوسعيد واسطه نه ده ذكر كړي گويا دسفيان ثوري روايت زيات ثابت او زيات صحيح دي.

**تشريح** : د مسجد د ادابو متعلق تفسير مظهري په سورة الجن كي لاندېني احاديث راجمع كړي دي:

**تشريح** دقتاده قول دي چي يهوديان او عيسايان به عبادت خانو ته تلل او دالله تعالي سره به يي په عبادت كي نور شريكان شريكول ، دمساجد نه مراد هغه تمام مساجد دي دكومو دپاك ساتلو چي الله تعالي حكم كړي دي او فرمائيلي يي دي "طهرا بيتي للطائفين" رسول الله صلي الله عليه وسلم هم فرمائيلي دي چي ماشومان، او ليوني، او دالله تعالي فرضي شريكان ،خريد اوفروخت، او پخپل مينځ كي جنگ جگړي، او چغي او شور، او حدود او رجم، او بربنډي توري، زمونږ دمساجدونه جدا اوساتي ، دمسجد په دروازو كي لوټي اوساتئ او

[1] - سنن ابي داود في الصلاة ٢٤ (٤٩٢). سنن ابن ماجه في المساجد ٤ (٧٤٥). (تحفة الأشراف: ٤٤٠٦). مسند احمد (٣ في ٩٦.٨)

دجمعي په ورځ مسجدونه خوشبوداره کوئ دا حديث ابن ماجه دواصله په روايت مرفوعا نقل کړي دي
ابو داود او ترمذي دعمرو بن شعيب په سند سره دهغه دنيکه بيان نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مسجدونو کې دتيز اواز کولو او شعرونو ونيلو او خريد او فروخت کولو او دجمعي په ورځ دمونځ نه مخکې دحلقي په شکل کې دکيناستلو نه ممانعت فرمائيلي دي.
دا هم ارشاد نبوي دي چي په مسجد کې توکل ګناه ده او ددي کفاره داده چي په خاورو کې دفن کړي شي (بخاري اومسلم).
دانس رضي الله عنه نه دا ارشاد نبوي مروي دي چي ماته به زما دامت نيك کارونه پيش کړي شي ترديچي که چا دمسجد نه کوړه ويستلي وي نو بهر به يي اوغورځوي .
ابو داود او ترمذي دا هم ونيلي دي که څوك دچا نه دخپلي ورکي شوي اوښي دپاره په مسجد کې اعلان کول واوري نو داسي دي اووائي چي الله تعالي دي تاته دا رااوپس نکړي.
ددي وجه داده چي مسجدونه ددي کار دپاره نه دي جوړ کړي شوي (مسلم عن ابي هريره)
ليکن ترمذي او دارمي دا حديث ددومره اضافي سره نقل کړي دي که چري تاسو چالره په مسجد کې په خريد او فروخت اووينئ نو داسي ورته اووائي چي الله تعالي دي تاته پدي کې نفع درنکړي.
دحسن بصري قول دي دالمساجد نه مراد تمام مقامات دي څکه چي ددي امت دپاره تمامه زمکه مسجد ګرځولي شوي ده مطلب دادئ چي په هيڅ ځاي کې به هيچا لره دالله تعالي سره شريك نه ګرځوئ او دالله تعالي په موجودګئ کې به دبل چانه غوښتل نه کوئ
ابن ابي حاتم دابو صالح نه په سند سره دابن عباس قول نقل کړي دي چي جناتو عرض اوکړو اي دالله رسوله ايا مونږ ته اجازت دي چي ستا سره پدي مسجدونو کې دمونځ کولو دپاره تلل راتلل اوکړو نو پدي باره کې ايت کريمه : ان المساجد لله فلا تدعوا مع الله احدا(النور:١٨) نازل شو
ابن جرير دجبير قول نقل کړي دي چي جناتو نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چي مونږ به مسجد ته څنګه راځو ؟او که دا عرض يي اوکړو چي مونږ به مونځ ته څنګه حاضريږو؟ څکه چي مونږ ستا نه ډير لري يو نو پدي باره کې مذکوره ايت نازل شو.

****************

## ١٢٥ــ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ بُنْيَانِ الْمَسْجِدِ

**دمسجد جوړولو دفضيلت بيان**

٣١٨_ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَنْ بَنَى لِلَّهِ مَسْجِدًا بَنَى اللَّهُ لَهُ مِثْلَهُ فِي الْجَنَّةِ " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، وَأُمِّ حَبِيبَةَ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَعَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ، وَوَاثِلَةَ بْنِ الأَسْقَعِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُثْمَانَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَمَحْمُودُ بْنُ لَبِيدٍ قَدْ أَدْرَكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَحْمُودُ بْنُ الرَّبِيعِ قَدْ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمَا غُلاَمَانِ صَغِيرَانِ مَدَنِيَّانِ. ([1])

**ترجمه** : دعثمان بن عفان رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي فرمائيل بي چاچه دالله درضا دپاره مسجد جوړ کړو الله تعالي به دده دپاره دده دجوړ کړي مسجد پشان کور جوړ کړي.

امام ترمذي وائي دعثمان رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابوبکر، عمر، علي، عبدالله بن عمرو، ابن عباس، عائشه، ام حبيبه ، ابوذر، عمروبن عبسه. واثله بن اسقع، ابوهريره او جابر بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : د مسجد فضائل:

سعيد بن جبير د ايت کريمه : ان المساجد لله فلا تدعوا مع الله احدا" په تفسير کي دابن عباس قول نقل کړي دي چي مسجدونه په زمکه کي دالله تعالي کورونه دي او دا اسماني مخلوق ته داسي پرقيدونکي ښکاري لکه چي زمکي والا ته ستوري پرقيدونکي ښکاري دمسجدونو دلوړولو نه مراد دمسجدونو جوړول دي (مجاهد).

په مذکوره ايت کي په "ان ترفع" کي رفع په معني دتعمير ده.

اوپه ايت کريمه " وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَاهِيمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَإِسْمَاعِيلُ" کي هم راغلي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دالله تعالي دپاره مسجد جوړ کړي نو الله تعالي به دده دپاره په جنت کي کور جوړ کړي(متفق عليه من حديث عثمان).

---

[1] _ صحيح مسلم في المساجد ٢ (٥٣٣)، والزهد ٣ (٤٢ في ٥٣٣) . سنن ابن ماجه في المساجد ١ (٧٣٦) . (تحفة الأشراف : ٩٨٣٤) ، مسند احمد (١ في ٦٠ ، ٧٠)

دحسن قول دي چي د "فِيْ بُيُوْتٍ أَذِنَ اللهُ أَنْ تُرْفَعَ" مطلب دادي چي الله تعلي حكم كړي دي چي دده دكور تعظيم دي وكړي شي يعني پدي كې دي بي فائدي او بدي خبري څوك نه كوي او په ايت كريمه ان طهرا بيتي كې همدا مضمون مراد دي بغوي دصالح بن حبان په روايت سره دبريده قول نقل كړي دي چي ددينه مراد صرف څلورمسجدونه دي كوم چي انبياؤ جوړ كړي وو كعبه ابراهيم عليه السلام جوړه كړي وه او بيت المقدس داود او سليمان عليه السلام مسجد نبوي او مسجد قبا رسول الله صلي الله عليه وسلم جوړ كړي وو دكوم اولني بنيادونه چي په تقوي باندي ايخودلي شوي وو .

پس دا مسجدونه لوي فضيلت لري ليكن په خصوصيت سره ددوئ دمراد كولو دپاره څه دليل نشته د في بيوت تعلق دتير شوي عبارت سره دي يعني دالله تعالي دنور مثال داسي دي لكه دالله تعالي په كورونو كې دمشكات رڼا، نو پدي وجه زيات مناسب دا وي چي في بيوت لره يهدي الله لنوره من يشاء سره وتړلي شي او اكثر هدايت په مسجدونو كې اعتكاف كونكو او مونځ كونكو ته حاصليږي دالله رسول فرمائيلي دي مونځ دمومن معراج دي او دا يي هم فرمائيلي دي چي بنده الله تعالي ته ډير نزدي دسجدي په حالت كې وي لهذا تاسو په سجدو كې دعاګاني ډيري غواړئ (رواه مسلم وابو داود والنسائي عن ابي هريرة) دا هم ممكن دي چي د في بيوت تعلق ديو محذوف سره وي يعني دالله په كورونو كې دالله پاكي بيان كړئ (مفسر تفسير مظهري)

****************

٣١٩ــ وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ بَنَى لِلّٰهِ مَسْجِدًا صَغِيرًا كَانَ أَوْ كَبِيرًا بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الجَنَّةِ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ قَيْسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ مَوْلَى قَيْسٍ، عَنْ زِيَادٍ النُّمَيْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا. [1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دالله درضا دپاره كوم مسجد جوړ كړي وړوكي وي او كه لوي وي الله تعالي به دده دپاره په جنت كي كور جوړوي.

امام ترمذي وائي قتيبه هم پخپل سند د انس رضي الله عنه په واسطه د رسول الله نه د ماقبل هم معني روايت نقل کړی دی.

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٣٩)

*****************

## ١٢٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يَتَّخِذَ عَلَى الْقَبْرِ مَسْجِدًا

### په قبرونو دمسجد جوړولو د كراهت بيان

٣٢٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَائِرَاتِ الْقُبُورِ وَالْمُتَّخِذِينَ عَلَيْهَا الْمَسَاجِدَ وَالسُّرُجَ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو صَالِحٍ هَذَا هُوَ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ أَبِي طَالِبٍ وَاسْمُهُ: بَاذَانُ، وَيُقَالُ بَاذَامُ أَيْضًا. (1)

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم قبرونو ته په تلونكو ښځو او په قبرونو دمسجد جوړونكو خلقو او په قبرونو دشمعي بلونكو خلقو باندي لعنت كړي دي.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابوهريرة او عائشه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

*****************

## ١٢٧ـ بَاب مَا جَاءَ فِي النَّوْمِ فِي الْمَسْجِدِ

### په مسجد كي داوده كيدو بيان

٣٢١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: " كُنَّا نَنَامُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَنَحْنُ شَبَابٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي النَّوْمِ فِي الْمَسْجِدِ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لَا يَتَّخِذُهُ مَبِيتًا وَلَا مَقِيلًا، وَقَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ ذَهَبُوا إِلَى قَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ. (2)

---

1 ـ سنن ابي داود في الجنائز ٨٢ (٣٢٣٦). سنن النسائي في الجنائز ١٠٣ (٢٠٢٥). سنن ابن ماجه في الجنائز ٤٩ (١٥٧٥). (تحفة الأشراف: ٥٣٧). مسند احمد (١/٢٢٩، ٢٨٧، ٣٢٣، ٣٣٧)

2 ـ تفرد به المؤلف. وانظر سنن ابن ماجه في المساجد ٦ (٧٥١). (تحفة الأشراف: ٦٩٦). و مسند احمد (١ في ١٢)

**ترجمه** : عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرماني چي مونږ به درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي په مسجد کي اوده کيدو او مونږ نوجوان هلکان وو.
امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي او داهل علمو يو جماعت په مسجد کي داوده کيدو اجازت ورکړي دي، دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي هيڅوک دي مسجد لره دقيلولي او دشپي تيرولو خاي نه گرخوي او بعضي اهل علمو دابن عباس په روايت قول کړي دي.

**تشريح** : داهل علمو په دي کي اختلاف دي چي په مسجد کي دخوب څه حکم دي
(۱) دجمهور اهل علمو په نزد مکروه دي البته مسافر، معتکف، او دچاچه کور نه وي هغوئ ددي حکم نه مستثني دي.
(۲) مگر امام شافعي په نزد نوم في المسجد مطلقا جائز دي او دزير بحث باب دروايت نه يي استدلال کړي دي چي ابن عمر رضي الله عنهما فرماني چي مونږ به درسول الله په زمانه کي په مسجد کي اوده کيدو ليکن دجمهورو علماؤ په نزد دا قسم تمام روايات په حالت داعتکاف يا په حالت د سفر محمول دي.

***************

## ۱۲۸_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ وَإِنْشَادِ الضَّالَّةِ وَالشِّعْرِ فِي الْمَسْجِدِ

### په مسجد کي داخستلو خرڅولو او دورک څيز دموندلو دپاره داعلان کولو او دشعرونو لوستلو دکراهت بيان

۳۲۲_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ: "نَهَى عَنْ تَنَاشُدِ الأَشْعَارِ فِي الْمَسْجِدِ، وَعَنِ الْبَيْعِ وَالِاشْتِرَاءِ فِيهِ، وَأَنْ يَتَحَلَّقَ النَّاسُ فِيهِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ الصَّلَاةِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ بُرَيْدَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَعَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ هُوَ: ابْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل: رَأَيْتُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَذَكَرَ غَيْرَهُمَا يَحْتَجُّونَ بِحَدِيثِ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَقَدْ سَمِعَ شُعَيْبُ بْنُ مُحَمَّدٍ مِنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَمَنْ تَكَلَّمَ فِي حَدِيثِ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ إِنَّمَا ضَعَّفَهُ، لِأَنَّهُ يُحَدِّثُ عَنْ صَحِيفَةِ جَدِّهِ كَأَنَّهُمْ رَأَوْا أَنَّهُ لَمْ يَسْمَعْ هَذِهِ الأَحَادِيثَ مِنْ جَدِّهِ. قَالَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: وَذُكِرَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، أَنَّهُ قَالَ: حَدِيثُ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عِنْدَنَا وَاهٍ، وَقَدْ كَرِهَ

قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ البَيْعَ وَالشِّرَاءَ فِي المَسْجِدِ، وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ رُخْصَةٌ فِي البَيْعِ وَالشِّرَاءِ فِي المَسْجِدِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَيْرِ حَدِيثٍ رُخْصَةٌ فِي إِنْشَادِ الشِّعْرِ فِي المَسْجِدِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مسجد كي داشعار لوستلو او اخستلو خرڅولو او دجمعي په ورځ دمونځ نه مخكي دحلقي په شكل كي دكيناستلو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي دعبدالله بن عمرو بن العاص حديث حسن دي دعمرو پلار شعيب دمحمد بن عبدالله بن عمرو بن العاص ځوي دي، دامام بخاري قول دي چي ما امام احمد او اسحاق بن راهوي ليدلي دي چي هغوئ به دعمرو بن شعيب دحديث نه استدلال كولو دامام بخاري قول دي چي شعيب بن محمد دخپل نيكه عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه اوريدل كړي دي(يعني سماع يي ورنه ثابته ده)، چاچه دعمرو بن شعيب په حديث كلام كړي دي هغوئ صرف په دي وجه ضعيف گرځولي دي چي هغه به دخپل نيكه (عبدالله بن عمرو بن العاص) دصحيفي نه روايت كولو گويا كي ددوئ خيال دادي چي دا احاديث هغه دخپل نيكه نه نه دي اوريدلي، علي بن عبدالله مديني وائي ديحي بن سعيد القطان نه منقول دي چي دعمرو بن شعيب حديث زمونږ په نزد ضعيف دي ، او په دي باب كي دبريده، جابر، انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي بعضي اهل علمو په مسجد كي اخستل خرڅول مكروه گڼرلي دي او همدا دامام احمد او اسحاق قول دي، او په تابعينو كي بعضي اهل علمو په مسجد كي داخستلو او خرڅولو اجازت وركړي دي او همدارنگي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په مسجد كي دشعرگويي رخصت هم منقول دي .

**تشريح** : امام نووي د مسجد په ادابو مستقل باب قائم كړى دى:

"په مسجد كي دجگړو كولو او تيز اواز كولو اود ورك شوي څيز داعلان كولو او بيع اوشراء كولو اود اجاري وغيره معاملاتو كولو دممانعت ذكر يي كړى دى، او بيا يي د ترمذي او مسلم دوه احاديث نقل كړي دي:

عن ابي هريرة : أَنَّ رسولَ اللهِ ﷺ . قَالَ : ((إِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَبِيعُ أَوْ يَبْتَاعُ فِي المَسْجِدِ . فَقُولُوا : لا أَرْبَحَ اللهُ تِجَارَتَكَ . وَإِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَنْشُدُ ضَالَّةً فَقُولُوا : لا رَدَّهَا الله عَلَيْكَ)) . رواه الترمذي ، وقال

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٢٠ (١٠٧٩) . سنن النسائي في المساجد ٢٣ (٧١٣) . سنن ابن ماجه في المساجد ٥ (٧٤٩) .

(تحفة الأشراف : ٨٧٩٢) . مسند احمد (٢ في ١٧٩)

: ((حديث حسن)) .(رياض الصالحين)

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي مسجد کې په څه اخستلو يا خرڅولو باندی اووينئ نو ورته اووائي په دی تجارت کې دی الله ګټه درنکړي او چي څوك دورك څيز دپاره په اعلان کولو والااووينئ نو ورته اووائي خدای پاك دی هيچری تاته دا څيز واپس درنه کړي.

علماء وايي چي مساجد ددي دپاره اباد کړي شوي دي چي هلته دالله ذکر او عبادت او مونځونه او تلاوتونه وکړي شي نو که هلته تجارتونه شروع کړي شي نو بيا په دي عباداتو کې خلل راځي نو که څوك چرته داسي کس ووينئ نو په زبردستۍ سره دي دی منع کړي او ورته دي اووايي چي الله دي درته په دي تجارت کې ګټه درنکړي.

واذا رئيتم من ينشد ضالة الخ. کله چي تاسو څوك اووينئ چي په مسجد کې دورك شوي څيز اعلان کوي نو اووائي چي الله دي درته دا څيز واپس په لاس درنکړي، علماء وائي چي په مسجد کې دځپل ورك شوي څيز اعلان کول منع دي ددي جائز طريقه داده چي داسي کس دي دمسجد د دروازي سره کيني او دهر راتلونکي کس نه دي تپوس کوي په داسي صورت کې به دمسجد احترام هم برقرار پاتي شي او دورك څيز لټون به هم اوشي.

عن بُرَيْدَةَ ﷺ : أَنَّ رَجُلاً نَشَدَ فِي المَسْجِدِ فَقَالَ : مَنْ دَعَا إِلَى الجَمَلِ الأَحْمَرِ ؟ فَقَالَ رسولُ اللهِ ﷺ : ((لا وَجَدْتَ؛ إِنَّمَا بُنِيَتِ المَسَاجِدُ لِمَا بُنِيَتْ لَهُ)) . رواه مسلم .

أخرجه : مسلم كتاب المساجد باب النهي عن نشد الضالة في المسجد ٨٢/٢ (٥٦٩) (٨٠) والمصنف والبيهقي ٤٤/٢ .

دبريده نه روايت دی چي يو سړي په جومات کې دځپل ورك اوښ دپاره اعلان اوکړو وېی وئيل چا سور اوښ ليدلی دی رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل خدايې پاك دی تاته دا په لاس درنه کړي، بيشکه جماتونه چي کوم کار دپاره جوړ دي هغی دپاره جوړ دي (يعنی جوماتونه عبادت دپاره جوړ دي عبادت نه علاوه نور دنياوي کارونه ورکښی کول جائز نه دي).

امام قرطبي فرمائي: وهذا يدل علي ان الاصل ان لايعمل في المسجد غير الصلاة الاذكار وقراءة القران، د پورتني حديث متعلق مولانا رشيد احمد ګنګوهي ليکلي دي: واما انشاد الضالة فالنهي عن رفع الصوت بذلك اذ فيه الاضرار دون غيره وفيه سوء تأديب نسبة الي المسجد وقد يعد فيه رفع الصوت قبيحاً فكيف بنداء من ينشد ضالة الخ.

دورك څيز په لټون کې شور او غوغا کول منع دي کوم چي دمسجد د ادابو او احترام خلاف دي

او د مونځ ګذارو دپاره هم باعث دتشویش دی بیا دهغوی په عبادت کې خپل عبادت ته توجه باقي نه پاتي کیږي
همدا وجه ده چي عمرفاروق رضي الله عنه په داسي موقعه کې په مسجد کې یو تیز اواز واوریدو تپوس یي اوکړو ایا تاته معلومه ده چي ته اوس چرته موجود یي؟ ملاعلي قاري د عمرفاروق رضي الله عنه دا الفاظ نقل کړي دي. ان عمر رضي الله عنه سمع رجلا رافعاً صوته في المسجد فقال اتدري این انت؟

## عمروبن شعیب رضي الله عنه حالات

نوم عمرو شعیب بن محمد بن عبدالله بن عمرو بن العاص هغه عموما دخپل پلار او سعید بن المسیب نه روایتونه اوریدلي دي او دی دحدیث په اسناد کې اکثر موندلی شي "ابیه" کي ضمیر پلار ته راجع دی او ددي مصداق شعیب دی 'جده، په دي ضمیر کې دوه احتماله دي اول ددي مصداق محمد دی ، دویم احتمال دادی چي دجد مرجع ابیه دی او دجد مصداق عبدالله بن عمرو دی کوم چي دشعیب نیکه دی مطلب دا شو چي شعیب دخپل نیکه عبدالله نه روایت کوي ددي احتمالاتو په وجه په سند کې اختلاف راغی پاتي شوه دا خبره چي دا سند قابل داحتجاج دی یا نه دی نو صحیح رائي داده چي دا سند قابل داحتجاج دی کم از کم دحسن درجي دی اصحاب سنن او امام احمد وغیره دا سند قبول کړی دی (میزان الاعتدال، تدریب الرامي)

****************

## ۱۲۹_ باب مَا جَاءَ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِي أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَى

### دهغه مسجد بیان دکوم بنیاد چي په تقوي ایخودلي شوي دي

۳۲۳_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ أُنَيْسِ بْنِ أَبِي يَحْيَى. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. قَالَ: امْتَرَى رَجُلٌ مِنْ بَنِي خُدْرَةَ وَرَجُلٌ مِنْ بَنِي عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِي أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَى. فَقَالَ الْخُدْرِيُّ: " هُوَ مَسْجِدُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَالَ الْآخَرُ: هُوَ مَسْجِدُ قُبَاءٍ. فَأَتَيَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ. فَقَالَ: هُوَ هَذَا يَعْنِي مَسْجِدَهُ وَفِي ذَلِكَ خَيْرٌ كَثِيرٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ:

سَأَلْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي يَحْيَى الأَسْلَمِيِّ، فَقَالَ: لَمْ يَكُنْ بِهِ بَأْسٌ، وَأَخُوهُ أُنَيْسُ بْنُ أَبِي يَحْيَى أَثْبَتُ مِنْهُ. (1)

**ترجمه** : انيس ابويحي دخپل پلار نه او هغه دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت کوي چي دبني خدره او بني عمرو بن عوف د دوه کسانو په مينځ کي د هغه مسجد باره کي اختلاف پيدا شو دکوم بنياد چي په تقوي ايخودلي شوي دي بني خدره والا اوونيل ددينه مراد مسجد نبوي دي او دي بل کس اوونيل ددينه مراد مسجد قباء دي ترديچي دواړه په خدمت نبوي کي حاضر شول رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا همدا دي او په دي کي ډير فوائد دي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او ابوبکر دعلي بن عبدالله نه روايت کوي هغوئ ونيلي دي چي يحي بن سعيد نه دمحمد بن ابي يحي اسلمي باره کي تپوس اوکړي شو هغه اوونيل په ده کي هيڅ حرج نشته ليکن دده ورور انيس بن ابي يحي دده نه زيات قوي دي.

**تشريح** : د مسجد بتقوي تعين اوفضيلت داحاديثو په رڼا کي:
امام احمد ، ابن ابي شيبه ، ترمذي ، نسائي ، ابويعلي، ابن جرير، ابن المنذر ، ابن ابي حاتم، ابو الشيخ، حاکم ، ابن مردويه، او بيهقي په دلائل النبوة کي ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت نقل کړي دي چي فرمائيلي يي وو چي زه په امهات المومنين کي دکومي يوي په کور کي درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شوم او عرض مي اوکړو اي دالله رسوله هغه کوم يو مسجد دي دکوم متعلق چي فرمائيلي شوي دي چي ددي بنياد په تقوي ايخودلي شوي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو ګيټئ ياکانړي راواخستو او زمکي ته يي اوويشتو او ويې فرمائيل ستاسو همدا دمديني مسجد دي.
طبراني او ضياء مقدسي په المختاره کي زيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دهغه مسجد په باره کي تپوس اوکړي شو دکوم بنياد چي په تقوي ايخودلي شوي دي نو ويې فرمائيل ددينه مراد زما مسجد دي ، ابن ابي شيبه او ابن مردويه روايت بيان کړي دي چي دابن عمررضي الله عنهما نه دهغه مسجد په باره کي تپوس اوکړي شو چي بنياد يي په تقوي ايخودلي شوي دي چي هغه کوم مسجد دي نو ويې فرمائيل درسول الله صلي الله عليه وسلم مسجد دي.
دمسجد نبوي په فضائلو کي هغه حديث هم راغلي دي کوم چي شيخينو دابوهريره رضي الله عنه نه نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما دکور اودمنبر په

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۴۴۲۰)

مينځ کې دجنت په باغونو کې يوباغ دي اوزما منبر په حوض دي دبغوي په روايت کې دکور په خاي دقبر لفظ راغلي دي.
شيخينو او امام احمد او نسائي دعبدالله بن زيد مازني نه روايت بيان کړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زمادکور اودمنبر په مينځ کې دجنت په باغونو کې يوباغ دي، اودترمذي هم دا روايت دعلي رضي الله عنه نه بيان کړي دي.
دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما په دي مسجد کې يومونځ کول علاوه دمسجد حرام نه دنورو مساجدو په نسبت دزرو مونځونو کولو نه بهتر دي.

دبعضي علماؤ خيال دي چې د "مسجد اسس علي التقوي" نه مراد مسجد قبا دي، دعطيه په روايت کې هم دابن عباس دا قول ذکر شوي دي، عروه بن زبير ، سعيد بن جبير، اوقتاده هم پدي باندي قول کړي دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم دمسجد قبا بنياد ايخودلي وو دهجرت کولو نه پس چې کله رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته راغي نويوڅو ورځي يې يعني ددوشنبي نه دجمعي پوري په قبا کې قيام اوکړو اوپدي موده کې يې دلته مونځونه اوکړل.
ابن جرير او ابن المنذر او ابن ابي حاتم او بيهقي دا روايت دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت بيان کړي دي او ابوالشيخ دضحاك نه هم بيان کړي دي
بخاري دعبدالله بن دينار په واسطه دابن عمر رضي الله عنهما نه هم داسي روايت نقل کړي دي نافع دابن عمر رضي الله عنهما قول ددومره اضافي سره نقل کړي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به پدي کې دوه رکعاته مونځ کولو، داودي ، سهيلي، اوحافظ ابن حجر وئيلي دي داتفسيري اختلاف دي ځکه چې په دواړو کې دهريومسجد بنياد په تقوي ايخودلي شوي وو.
ددينه مراد خصوص دمورد نه دي ليکن عموم دالفاظو لره اعتبار دي اومسجد نکره موصوفه ده اوددي صفت اسس علي التقوي دي اوداهم عام صفت دي ليکن دايت دسياق نه معلوميږي چې په دي ايت کې مسجد قبا مراد دي اوهم ددي مسجد متعلق ددي ايت نزول شوي دي ځکه چې دمسجد ضرار تعمير مسجد قباته دنقصان رسولودپاره شوي وو اوبيا په وروستني ايت سره هم ددي تائيد کيږي (مظهري، زاد المسير)
سعيد بن جبير دابن عباس قول نقل کړي دي چې مسجدونه په زمکه کې دالله تعالي کورونه دي او دا اسمان مخلوق ته داسي پړقيدونکي ښکاري لکه چې زمکي والا ته ستوري پړقيدونکي ښکاري دمسجدونو دلوړولو نه مراد دمسجدونو جوړول دي (مظهري، زاد المسير).

*****************

## ١٣٠_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ فِي مَسْجِدِ قُبَاءٍ

### په مسجد قبي کي دمونځ کولو فضيلت

٣٢٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلاَءِ أَبُو كُرَيْبٍ، وَسُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، قَالاَ: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ. عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو الأَبْرَدِ مَوْلَى بَنِي خَطْمَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ أُسَيْدَ بْنَ ظُهَيْرٍ الأَنْصَارِيَّ، وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الصَّلاَةُ فِي مَسْجِدِ قُبَاءٍ كَعُمْرَةٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُسَيْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَلاَ نَعْرِفُ لِأُسَيْدِ بْنِ ظُهَيْرٍ شَيْئًا يَصِحُّ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَلاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي أُسَامَةَ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ، وَأَبُو الأَبْرَدِ اسْمُهُ: زِيَادٌ مَدِينِيٌّ. ([1])

**ترجمه** : دابو الابرد د بني خطمه ازاد کړي غلام بيان دي فرمائي چي داسيد بن ظهير نه مي اوريدلي دي (او اسيد بن ظهير دصحابه کرامو دجملي نه دي) چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په مسجد قبي کي مونځ کول داسي دي لکه چي څوك عمره اوکړي

امام ترمذي وائي په دي باب کي دسهل بن حنيف نه هم روايت دي، او حديث د اسيد بن طهير حسن غريب دي او داسيد بن ظهير په روايت کي مونږ ته کوم صحيح روايت نه دي معلوم او مونږ دا حديث صرف دابو اسامه عن عبدالحميد بن جعفر په روايت پيژنو او دابو الابرد نوم زياد مديني دي.

*****************

## ١٣١_ باب مَا جَاءَ فِي أَيِّ الْمَسَاجِدِ أَفْضَلُ

### په مسجدونو کي کوم يو افضل دي

٣٢٥_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ. ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ رَبَاحٍ وَعُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي عبد الله الأغر، عَنْ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ الأَغَرِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صَلاَةٌ فِي مَسْجِدِي هَذَا خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ صَلاَةٍ فِيمَا سِوَاهُ إِلاَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَمْ يَذْكُرْ قُتَيْبَةُ فِي حَدِيثِهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، إِنَّمَا ذَكَرَ عَنْ زَيْدِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٩٧ (١٤١١) (تحفة الأشراف ١٥٥)

عَبْدِ اللَّهِ الأَغَرِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو عَبْدِ اللَّهِ الأَغَرُّ اسْمُهُ: سَلْمَانُ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ وَمَيْمُونَةَ وَأَبِي سَعِيدٍ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَأَبِي ذَرٍّ.[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په مسجد نبوي کي ديو مونځ کول په نورو مسجدونو کي دمونځ کولو نه زر درجي بهتر دي علاوه دمسجد حرام نه.

امام ترمذي وائي قتيبه پخپل حديث کي دعبدالله په ځاي زيد بن رباح ذکر کړي دي او زيد بن رباح دابوعبدالله اغر نه روايت کوي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دابو عبدالله اغر نوم سلمان دي، دا حديث دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دابو هريره په واسطه په ډيرو سندونو مروي دي، او په دي باب کي د علي، ميمونه، ابوسعيد، جبيربن مطعم، عبدالله بن زبير، ابن عمر، او ابوذر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**تشريح** امام ابو يوسف فرمائيلي دي چاچه په مسجد حرام کي ددوه رکعتانه مونځ کولو نذرمنلي وي اوبه بل ځاي کي يي اداکړي نوکافي به نه وي ځکه چي دانس بن مالك په روايت کي راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي پخپل کورکي دنته يو مونځ کول ديو مونځ سره برابر دي اودمحلي په مسجد کي يومونځ کول دپنځه ويشتومونځونوسره برابردي اوپه جامع مسجد کي مونځ کول دپنځه سوه مونځونوسره برابردي اوپه مسجد اقصي کي مونځ کول دزرو مونځونوسره برابردي او زما په مسجد کي مونځ کول دپنځوس زره مونځونوسره برابردي اوپه مسجد حرام کي يومونځ کول دسل زره مونځونوسره برابردي (ابن ماجه)

په طحاوي کښي دعطاء بن زبير په روايت سره منقول دي چي رسول الله صلي اله عليه وسلم فرمائيلي دي زماپه دي مسجد کي يومونځ کول دمسجد حرام نه علاوه دنورو مسجدونونه زرچنده زيات دي اوپه مسجدحرام کي يومونځ کول زماپه مسجد کي دسلومونځونونه بهتردي ، عبدالله بن زبير رضي الله عنه دعمر بن خطاب په روايت سره هم دا حديث نقل کړي دي مګر

---

[1] . صحيح البخاري في الصلاة في مسجد مكة والمدينة ١ (١١٩٠) . صحيح مسلم في الحج ٩٤ (١٣٩٤) . سنن النسائي في المساجد ٤ (٦٩٥) . والحج ١٢٤ (٢٩٠٢) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٩٥ (تحفة الأشراف : ١٣٤٦٤) . وكذا (١٣٥٥١ و٢٩٦٠) . موطا امام مالك في القبلة ٥ (٩) . مسند احمد (٢ في ٢٣٩، ٢٣١، ٢٥٦، ٢٤٤، ٢٤٨، ٢٨٦، ٢٦٦، ٢٦٨، ٢٤٣، ٢٨٣، ٢٨٥، ٢٩٩) . سنن الدارمي في الصلاة ١٣١ (١٣٥٨)

غير مرفوع دي اودجابر بن عبدالله په روايت سره داحديث مرفوع هم مروي دي ابن جوزي په روايت دجابر رضي الله عنه سره په دي الفاظو مرفوع روايت ذكركړي دي چي په مسجد حرام كې يو مونځ دسلو مونځونونه افضل دي ، ليكن دامام ابو حنيفه او امام محمد قول دادي چي دمونځونو دا ترتيبي فضيلت صرف دفرض مونځونو متعلق دي په نوافلوكې دا فضيلت نشته ځكه چي دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دفرضو نه علاوه دسړي دپاره تړول مونځونه پخپل كوركي كول افضل دي (بخاري اومسلم)
داعتكاف حكم دفرض مونځونوپشان دي ځكه چي داعتكاف په صورت كې سړي په مسجد كې دننه اوسيږي او فرضي مونځونوته انتظاركوي ګويا كې داسي ده لكه په مونځ كې چي مشغول وي ابن جوزي رحمة الله عليه په فضائل مكه كې دعبدالله بن عد ي بن الحمرا روايت ليكلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمكي په بازار كې په حروره مقام كې موجود وو اوفرمائيل يې چي په الله تعالي قسم ته په ټولو زمكو كې بهتره يې اودالله په نزد محبوبه يې كه چري زه ستانه نه وي ويستلي شوي نوزه به وتلي نه ووم . دا حديث ابن جوزي دابو هريره رضي الله عنه نه هم مرفوعا بيان كړي دي.( ابن جوزي).

****************

٣٢٦_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ قَزَعَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ، مَسْجِدِ الْحَرَامِ، وَمَسْجِدِي هَذَا، وَمَسْجِدِ الْأَقْصَى ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي د دري مسجدونو نه علاوه كوم بل مسجد ته سفر كول نه دي پكار يو مسجد حرام دي او بل زما مسجد دي او بل مسجد اقصي (بيت المقدس) دي. امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي.

****************

[1] _ صحيح البخاري في الصلاة في مسجد مكة والمدينة ١ (١١٨٨) ، و٦ (١١٩٧) ، وجزاء الصيد ٢٦ (١٨٦٤) ، والصوم ٨٤ (١٩٩٥) ، صحيح مسلم في المناسك ٧٤ (٤١٥ في ٨٢٧) ، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٩٦ (١٤١٠) ، (تحفة الأشراف : ٤٢٧٩)

## ۱۳۲ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمَشْيِ إِلَى الْمَسْجِدِ

### مسجد ته دتلو فضيلت

۳۲۷ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا تَأْتُوهَا وَأَنْتُمْ تَسْعَوْنَ وَلَكِنْ ائْتُوهَا وَأَنْتُمْ تَمْشُونَ وَعَلَيْكُمُ السَّكِينَةَ فَمَا أَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوا وَمَا فَاتَكُمْ فَأَتِمُّوا". وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْمَشْيِ إِلَى الْمَسْجِدِ، فَمِنْهُمْ مَنْ رَأَى الْإِسْرَاعَ إِذَا خَافَ فَوْتَ التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى، حَتَّى ذُكِرَ عَنْ بَعْضِهِمْ أَنَّهُ كَانَ يُهَرْوِلُ إِلَى الصَّلَاةِ، وَمِنْهُمْ مَنْ كَرِهَ الْإِسْرَاعَ وَاخْتَارَ أَنْ يَمْشِيَ عَلَى تُؤَدَةٍ وَوَقَارٍ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَالَا: الْعَمَلُ عَلَى حَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَقَالَ إِسْحَاق: إِنْ خَافَ فَوْتَ التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى فَلَا بَأْسَ أَنْ يُسْرِعَ فِي الْمَشْيِ.[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي جماعت قائم شي نو په منډو منډو مه راځئ بلکه سکون سره راځئ څومره مونځ چي ورسوئ هغه اوکړئ او کوم چي درنه تير شوي وي هغه پوره کړئ.

په دي باب کي دابوقتاده، ابئ بن کعب، ابوسعيد، زيد بن ثابت، جابر، انس بن مالک رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي امام ترمذي وائي مسجد ته دتلو په سلسله کي دعلماؤ اختلاف دي. بعضي اهل علم وائي که چري دتکبير اولي دفوت کيدو خطر وي نو په زر تلو کي څه حرج نشته بلکه دبعضو نه په منډه راتلل هم منقول دي مګر دبعضي نورو اهل علمو په نزد په منډه تلل مکروه دي ددوئ په نزد په قلاره او وقار سره راتلل بهتر دي او دا دامام احمد او اسحاق قول دي ددوئ دا قول دي چي په دي مسئله کي دابوهريره رضي الله عنه حديث معمول بها دي. امام اسحاق وائي که چري دتکبير اولي دفوت کيدو خطر وي نو په تيز تلو کي څه حرج نشته.

---

[1] ـ صحيح البخاري في الجمعة ۱۸ (۹۰۸). صحيح مسلم في المساجد ۲۸ (۶۰۲). سنن ابي داود في الصلاة ۵۴ (۵۷۲). سنن النسائي في الإمامة ۵۷ (۸۶۲). سنن ابن ماجه في المساجد ۱۴ (۷۷۵). (تحفة الأشراف: ۱۵۲۸۹). موطا امام مالک في الصلاة ۱ (۴). مسند احمد (۲ في ۲۳۷، ۲۳۸، ۲۳۹، ۲۷۰، ۲۷۲، ۲۸۲، ۳۱۸، ۳۸۲، ۳۸۷، ۴۲۷، ۴۵۲، ۴۶۰، ۴۷۳، ۴۸۹، ۵۲۹، ۵۳۲، ۵۳۳). سنن الدارمي في الصلاة ۵۹ (۱۳۱۹)

**لغات**: السكينة معنې اطمينان اووقار

**تشريح**: يعني جماعت ته په منډه مه ورځئ دبخاري په يو روايت كي ولاتسعوا لفظ راغلي دي ددينه معلوميږي چي مسجد ته په منډه تلل دوقار او سكينت خلاف دي په دي وجه ترغيب وركولي شي چي سړي كله دكور نه دمونځ دپاره راووځي او ترڅو په لاره روان وي نو په ارام سره دي ځي او كه دجماعت دفوت كيدو يره وي نوتيز دي لاړ شي خو منډې دي نه وهي ليكن دعبدالله بن عمر او ابن مسعود رضي الله عنهما په نزد منډه وهلي شي

وما ادركتم فصلوا: يعني كوم مونځ چي دامام سره بيامومئ هغه ورسره اوكړئ ددينه معلومه شوه چي كوم مونځ دامام سره اوشي نو دا به دمقتدي مونځ وي او ددينه پس به باقي مونځ پوره كوي دمونځ تكميل به دامام دسلام نه پس كوي

فأن احدكم اذاكان يعمد الي الصلاة فهو في الصلاة: ديو سړي چي څو پوري دمونځ اراده وي ترهغې پوري دمونځ په حالت كي شميرلي شي ددينه معلومه شوه چي څوك په كور كي اودس اوكړي او مسجد ته روان شي نو ده ته به دمونځ ثواب ملاويدل شروع شي په همدي وجه امام نووي وئيلي دي چي مونځ ته تلونكي به په لاره كي فحش خبري نه كوي او بدنظري به نه كوي او دهر قسم ګناه نه به ځان ساتي اګر چي دي په مونځ كي نه دي ليكن په مونځ كي شميرلي شوي دي.

***************

٣٢٨ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ حَدِيثِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ بِمَعْنَاهُ. هَكَذَا قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ يَزِيدَ بْنِ زُرَيْعٍ. [1]

**ترجمه** حسن بن علي خلال، دعبدالرزاق نه او عبدالرزاق دمعمر نه او معمرو دزهري نه او زهري دسعيد بن مسيب نه او سعيد دابوهريره رضي الله عنه نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دابوسلمه دحديث هم معني روايت نقل كړي دي، دا رنګي عبدالرزاق دسعيد بن

[1] ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ١٣٢٠٥)، وأخرجه: مسند احمد (٢ في ٢٧٠)

مسيب نه او هغه دابوهريره نه روايت نقل كوي مگر دا روايت ديزيد بن زريع دحديث نه زيات اصح دي.

***************

۳۲۹_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. (1)

**ترجمه:** ابن ابي عمر دسفيان نه او سفيان دزهري نه او زهري دسعيد بن مسيب نه او سعيد دابوهريره نه او ابوهريره دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دمذكوره روايت هم معني حديث نقل كړي دي.

## ۱۳۳_ باب مَا جَاءَ فِي الْقُعُودِ فِي الْمَسْجِدِ وَانْتِظَارِ الصَّلَاةِ مِنَ الْفَضْلِ

### په مسجد كي دكيناستو او دراروان مونځ دپاره دانتظار فضيلت

۳۳۰_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَزَالُ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاةٍ مَا دَامَ يَنْتَظِرُهَا، وَلَا تَزَالُ الْمَلَائِكَةُ تُصَلِّي عَلَى أَحَدِكُمْ مَا دَامَ فِي الْمَسْجِدِ، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ، اللَّهُمَّ ارْحَمْهُ مَا لَمْ يُحْدِثْ فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ حَضْرَمَوْتَ: وَمَا الْحَدَثُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: فُسَاءٌ أَوْ ضُرَاطٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

---

[1] _ صحيح البخاري في الجمعة ١٨ (٩٠٨) . صحيح مسلم في المساجد ٢٨ (٦٠٢) . سنن ابي داود في الصلاة ٥٤ (٥٧٢) . سنن النسائي في الإمامة ٥٧ (٨٦٢) . سنن ابن ماجه في المساجد ١٣ (٧٧٥) . (تحفة الأشراف : ١٥٢٨٩) . موطا امام مالك في الصلاة ١ (٣) . مسند احمد (٢ في ٢٣٧، ٢٣٨، ٢٣٩، ٢٧٠، ٢٧٢، ٢٨٢، ٣١٨، ٣٨٢، ٣٨٧، ٤٢٧، ٤٥٢، ٤٦٠، ٤٧٢، ٤٨٩، ٥٢٩، ٥٣٢، ٥٣٣) . سنن الدارمي في الصلاة ٥٩ (١٣١٩)

[2] _ صحيح البخاري في الوضوء ٣٤ (١٧٦) ، والصلاة ١٢١ (٣٤٥) ، و٨٧ (٤٧٧) ، والأذان ٣٠ (٦٤٧) ، و٣٦ والبيوع ٤٩ (٢٠١٣) ، وبدء الخلق ٧ (٣٢٢٩) . صحيح مسلم في المساجد ٤٩ (٦٤٩) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٠ (٤٦٩) . سنن النسائي في المساجد ٣٠ (٧٣٣) . سنن ابن ماجه في المساجد ١٩ (٧٩٩) . (تحفة الأشراف : ١٤٧٢٣) . مسند احمد (٢ في ٢٦٦، ٢٨٩، ٣١٢، ٣١٩، ٣٩٤، ٤١٥، ٤٢١، ٤٨٦، ٥٠٢) . موطا امام مالك في الصلاة ٢٧ (٥١)

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي چي کله څوك ديو مونځ انتظار کوي نو دا داسي ده لکه چي تردغه وخته پوري په مونځ کي مشغول وي او دداسي کس دپاره فرشتي هميشه درحمت دعا غواړي ترڅو چي دي په مسجد کي موجود وي او ترڅو چي دده اودس مات شوي نه وي نو فرشتي دده په حق کي داسي وائي "اللهم اغفرله اللهم ارحمه" دي وخت کي دحضرموت قبيلي يو کس عرض اوکړو اي ابوهريره دحدث مطلب څه دي ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل هواخارجيدل برابره خبره ده چي د اواز سره وي او که بغير داواز نه وي. او په دي باب کي دعلي. ابوسعيد. انس. عبدالله بن مسعود، او سهل بن سعد رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي امام ترمذي وائي حديث دابوهريره حسن صحيح دي.

**تشريح** : امام نووي د مساجدو په فضيلت کي د مسلم يو روايت نقل کړی دی مونږ يي توضيحا للمقام نقل کوو:

عن ابي هريرة : أَنَّ رسول الله ﷺ ، قَالَ : ((أَلاَ أَدُلُّكُمْ عَلَى مَا يَمْحُو اللهُ بِهِ الخَطَايَا ، وَيَرْفَعُ بِهِ الدَّرَجَاتِ ؟)) قالوا : بَلَى يَارسول الله ، قَالَ : ((إِسْبَاغُ الوُضُوءِ عَلَى المَكَارِهِ ، وَكَثْرَةُ الخُطَا إِلَى المَسَاجِدِ ، وَانْتِظَارُ الصَّلاَةِ بَعْدَ الصَّلاَةِ ؛ فَذٰلِكُمُ الرِّبَاطُ ؛ فَذٰلِكُمُ الرِّبَاطُ))

دا روايت هم دابوهريره رضي الله عنه نه نقل دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي ګورئ زه تاسو ته داسي خبره ښايم چي دهغی دوجی نه الله ستاسو ګناهونه معاف کوي او درجي اوچتوي صحابه کرامو عرض اوکړو ضروريی وفرمائي . ويی فرمائيل چي کله په اودس کي څه تکليف وي هغه وخت هم اودس په ښه شان کول جومات طرف ته ډير تلل راتلل، ډير مانځه نه پس د دويم مانځه په انتظار کي اوسيدل پس هم دادي هغه مرغوب او زړه ته خوښی خبری . او هم دا ستاسو رباط دی .

اخرجه مسلم في کتاب الصلاة باب اسباغ الوضوء علي المکاره .

خطاياه: خطايا جمع دخطية ده ګناه ته وئيلي شي او دبعضو په نزد ارادي د ګناه ته وئيلي شي صفت يي خاطئ دي او جمع خطاة دي.

ګناهونو لره ختمونکي اودرجاتو لره لوړونکي اعمال په پورتني حديث کي خودلی کيږي دمشقت او تکليف په وخت کي په ښه شان سره اودس کول مثلا بيماري وي يا شديده يخني وي نو په داسي وخت کي دپوره ادابو سره اودس کول او دسنن لحاظ ساتل او دري دري پيري اندامونه ښه وينځل ډير فضيلت لري.

او دمسجد په طرف ډير قدمونه ايخودل يعني که مسجد لري هم وي خو دی ورله ورځي او

دجماعت سره مونځ ادا كوي او ديومونځ نه پس دبل مونځ انتظار كول يا دا چي دمسجد نه وتلى هم وي خو دمسجد سره يي زړه تړلى وي.

فذلكم الرباط: رباط په سرحداتو پيري كولو ته ونيلى شي چي دشمن دننه داخل نشي او مسلمانانو ته نقصان ونه رسوي، همدا رنګي دشيطان نه هم په دي اعمالو سره حفاظت كيدى شي او ديته رباط ونيلى شي

****************

## ١٣٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ عَلَى الْخُمْرَةِ

## په جانماز دمونځ كولو بيان

٣٣١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي عَلَى الْخُمْرَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ وَابْنِ عُمَرَ، وَأُمِّ سُلَيْمٍ، وَعَائِشَةَ، وَمَيْمُونَةَ، وَأُمِّ كُلْثُومٍ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الأَسَدِ، وَلَمْ تَسْمَعْ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَبِهِ يَقُولُ: بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: قَدْ ثَبَتَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلاَةُ عَلَى الْخُمْرَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالْخُمْرَةُ هُوَ: حَصِيرٌ قَصِيرٌ.[1]

**ترجمه**: دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په جانماز باندي مونځ وركولو.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د ام حبيبه، ابن عمر، ام سلمه، عائشه، ميمونه، ام كلثوم بنت ابي سلمه بن عبدالاسد رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي. اود ام كلثوم سماع د نبي كريم صلي الله عليه وسلم او ام سلمه رضي الله عنها نه ثابت نه ده.

امام ترمذي وائي حديث دابن عباس حسن صحيح دي او همدا دبعضي اهل علمو قول دي، امام احمد او اسحاق وائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په درئ مونځ كول ثابت دي امام ترمذي وائي خمرة وړي درئ ته ونيلي شي (يعني جا نماز).

****************

## ١٣٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ عَلَى الْحَصِيرِ

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦١١٥)، وانظر: مسند احمد (١/ ٢٦٩، ٣٠٩، ٣٢٠، ٣٥٨)

### په پوزکي(درئ) د مونځ کولو بيان

۲۳۲_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " صَلَّى عَلَى حَصِيرٍ ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَالمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ. إِلَّا أَنَّ قَوْمًا مِنْ أَهْلِ العِلْمِ اخْتَارُوا الصَّلَاةَ عَلَى الأَرْضِ اسْتِحْبَابًا. وَأَبُو سُفْيَانَ اسْمُهُ: طَلْحَةُ بْنُ نَافِعٍ. ([1])

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په پوزكي «درئ» باندي مونځ اوكړو.

امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د انس. او مغيره بن شعبه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او داكثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي البته دعلماؤ يوي ډلي په زمكه مونځ كول استحبابا خوښ كړي دي

***************

## ۱۳٦_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْبُسُطِ

### په بسترو دمونځ كولو بيان

۲۳۳_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ الضُّبَعِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَالِطُنَا حَتَّى إِنْ كَانَ يَقُولُ لِأَخٍ لِي صَغِيرٍ: يَا أَبَا عُمَيْرٍ مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ. قَالَ: وَنُضِحَ بِسَاطٌ لَنَا فَصَلَّى عَلَيْهِ "قَالَ: وَفِي البَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ لَمْ يَرَوْا بِالصَّلَاةِ عَلَى البِسَاطِ وَالطُّنْفُسَةِ بَأْسًا. وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، وَاسْمُ أَبِي التَّيَّاحِ: يَزِيدُ بْنُ حُمَيْدٍ. ([2])

---

[1] _ صحيح مسلم في الصلاة ٥٢ (٥١٩)، والصلاة ٤٨ (٦٦١)، سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٣ (١٠٢٩)، (تحفة الأشراف: ٣٩٨٢)، مسند احمد (٣ في ١٠، ٥٢، ٥٩)

[2] _ صحيح البخاري في الأدب ٨١ (٦١٢٩)، و ١١٢ (٦٢٠٣)، صحيح مسلم في المساجد ٤٨ (٦٥٩)، سنن ابن ماجه في الأدب ٢٤ (٣٧٢٠)، (تحفة الأشراف: ١٦٩٢)، مسند احمد (٣ في ٢١٢)، ويأتي عند المؤلف في البر والصلة برقم: (١٩٨٩)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به زمونږ سره مخالطت(مزاح) کول تردي پوري چي زما کشر ورور ته به يي ونيل "ابوعمير مافعل النغير" يعني اي ابو عمير بلبل دي څه شو؟ زمونږ په درئ به کيناستلو او مونځ يي ورباندي اوکړو

امام ترمذي واني دانس حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د ابن عباس رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دي چي صحابه کرامو او ددوی نه پس په اهل علمو کي داکثرو په دي باندي عمل دي چي په څادر اوقالين باندي يي په مونځ کولو کي څه قباحت نه کنړلو او همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي.

***************

## ۱۳۷_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ فِي الْحِيطَانِ

### په باغونو کي دمونځ کولو بيان

۳۳٤_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يَسْتَحِبُّ الصَّلاَةَ فِي الحِيطَانِ " قَالَ أَبُو دَاوُدَ: يَعْنِي البَسَاتِينَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مُعَاذٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الحَسَنِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، وَالحَسَنُ بْنُ أَبِي جَعْفَرٍ قَدْ ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ وَغَيْرُهُ، وَأَبُو الزُّبَيْرِ اسْمُهُ: مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمِ بْنِ تَدْرُسَ، وَأَبُو الطُّفَيْلِ اسْمُهُ: عَامِرُ بْنُ وَاثِلَةَ. (1)

**ترجمه** دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به په باغونو کي مونځ کول خوښول، امام ابو داود به ونيل دحيطان نه مراد باغونه او باغيچي دي.

امام ترمذي واني دمعاذ حديث غريب دي او مونږ ته صرف دحسن بن ابي جعفر په سند رارسيدلي دي او يحي بن سعيد القطان وغيره دحسن بن ابي جعفر تضعيف کړي دي

***************

## ۱۳۸_ باب مَا جَاءَ فِي سُتْرَةِ الْمُصَلِّي

### دمصلي(مونځ ګذار) دستري بيان

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۱۱۳۲۲)

٣٣٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا وَضَعَ أَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ مِثْلَ مُؤَخَّرَةِ الرَّحْلِ فَلْيُصَلِّ وَلَا يُبَالِي مَنْ مَرَّ وَرَاءَ ذَلِكَ ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَسَبْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ الجُهَنِيِّ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ طَلْحَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَقَالُوا: سُتْرَةُ الإِمَامِ سُتْرَةٌ لِمَنْ خَلْفَهُ. [1]

**ترجمه** دطلحه رضي الله عنه بیان دي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي کله چي څوك خپلي مخي ته دکجاوي د وروستني لرګي په برابر څه شي کیږدي نو مونځ کولي شي او ددي خبري خیال دي نه ساتي چي دده مخي ته څه تیریږي.
امام ترمذي وائي دطلحه رضي الله عنه حدیث حسن صحیح دي، او په دي باب کي د ابوهریره، سهل بن ابي حثمه، ابن عمر، سبره بن معبد جهني، ابو جحیفه، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي.

**تشریح** : که یو کس په میدان کي مونځ کوی .نوخپل مخې ته دی ستره اودروی.اودا مستحب عمل دي، دلیل د ددي قول د رسول پاك صلي الله علیه وسلم دا ارشاد دې :
(إذا صلى أحدكم في الصحراء فليجعل بين يديه سترة)
باقی پاتې شوه دا خبره چی د ستري اندازه به څه وی.نو په دي باره کي فرمائی چی د ستري اوږدوالی کم از کم یو ګز پکار دې.او زیاتی چې څومره وی.څه باك نشته، او دلیل د ددي قول د رسول پاك صلي الله علیه وسلم دا ارشاد دې :
(أيعجز أحدكم إذا صلى في الصحراء أن يكون أمامه مثل مؤخرة الرحل) (موخرة)
د میم ضمه او د خاء کسره .هغه لرګی ته وائی.کوم چی د کجاوی شاه ته د کیناستونکی د سر برابر وی.خاء په تشدید سره ونیل غلط دی (رحل) د کجاوی په معنی دی . صاحب دقدوری فرمائی. چی دبلوالی ئې د یوی ګوتی برابر وی، دلیل دا دې چی ددی نه کم ډبلوالی کتونکو ته نۀ ښکاری. او مقصود نه حاصلیږی.نوځکه ونیلی شوی دی چی کم ازکم د یوی ګوتی د غټ والی په اندازه پکار دی.

[1] _ صحیح مسلم في الصلاة ٤٧ (٤٩٩) . سنن ابي داود في الصلاة ١٠٢ (٦٨٥) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٣٦ (٩٤٠) . (تحفة الأشراف: ٥٠١١) . مسند احمد (١/ ١٦١، ١٦٢)

## دسترې لګولو طريقه

مصلی دی ستره خپلي ښئ؛ يا ګسی وريځی ته مخامخ ساتی.يعنی د دواړو سترګو په مينځ کي دی نه ساتی، ځکه چی په دی باندې اثر وارد شوي دې.امام ابوداود د ضباعه بنت المقداد بن الاسود نه او هغوی د خپل پلار مقداد بن الاسود نه روايت کړې دې:

(قال ما رأيت رسول الله صلي الله عليه وسلم يصلي إلى عود ولا عمود ولا شجر الا جعله على حاجبه الأيمن أوالأيسر ولا يصمد له صمداً)

مقداد (رضي الله عنه) فرمائی.ما د الله تعالی حق پيغمبر کله هم څه لرګی يا ستن، يا وونی طرف ته مونځ کونکی نه دی ليدلې،ګردا چی هغه به ئې خپلي ښئ؛ يا ګسی وريځی ته مخامخ ساتله.او ددی اراده به ئې نه کوله(فتح القدير) صاحب د عنايه دا اثر په دی الفاظو سره نقل کړې دې:

(أنه صلي الله عليه وسلم ما صلى إلى شجرة ولا إلى عود ولا عمود الا جعله على حاجبه الأيمن ولم يصمد له صمداً أى لم يقصده قصداً إلى المواجهة)

صاحب د هدايه فرمائی چی د سترې په ترك كولو كي په هغه وخت كي څه قباحت نشته چی كله د خلقو د تيريدو نه امن وی.او مخامخ لاره نه وی.په دی عبارت کي دی طرف ته اشاره ده.چې د سترې علت مخامخ تيريدل دی.نو چی کوم ځائې کي د تيريدو غالب ګمان نه وی.نو هلته د سترې په پريخودو کي څه قباحت نشته.البته د امن باوجود ستره لګول مستحب دی.(فتح القدير، عنايه)

د جماعت د مونځ په صورت کي دامام ستره د مقتديانو دپاره کافی ده.دليل ددي هغه حديث دې.کوم چی امام بخاری و امام مسلم د ابوجحيفه نه روايت کړې دې.د علامه ابن الهمام د بيان مطابق دحديث متن دادی:

(أنه صلي الله عليه وسلم صلى بهم بالبطحاء وبين يديه عنزة والمرأة والحمار يمرون من ورائها)

يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم په مقام بطحاء کي خلقو ته مونځ کولو.او د رسول پاك صلي الله عليه وسلم مخکې نيزه وه .او ښځی او خرونه د شل نه اخوا تيريدل.

دا د مقتديانو دپاره ستره نه وه.دی نه معلومه شوه چی د امام ستره د مقتديانو دپاره کافی ده.

## د سترې دعدم وجود په صورت کې مصلي لره د تيريدونکی منع کول

که چرې د مصلی مخکې ستره نه وی.يا ستره خو وی.خو ددوی او مصلي په مينځ کي څوك د تيريدو اراده اوکړی.نو مصلی دي د غه تيريدونکی منع کوی.ځکه چی رسول پاك صلي

الله عليه وسلم فرمائيلى دى. (فادرؤاما استطعتم) يعنى څه څومره ممکن وی.نو دی منع کوی.
باقى پاتې شوه دا خبره چې مصلى به تیریدونکی څنګه منع کوی.نو په دی باره کې فرمائی چې په اشاره دی منع کوی.لکه چې رسول پاك صلى الله عليه وسلم د ام سلمه رضی الله عنها دوه بچی منع کړی وو.تفصيل دصاحب د کفایه او عنایه دا ذکرکړې دی:
(أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يصلى في بيت أم سلمة فقام ولدها عمر ليمر بين يديه فأشار إليه أن قف فوقف ثم قامت بنتها زينب لتمر بين يديه فأشار إليها أن قفى فأبت فمرت فلما فرغ من صلاته قال ناقصات العقل ناقصات الدين صواحب يوسف صواحب كرسف يغلبن الكرام ويغلبهن اللام)
تفسير روح البيان په سورة الحشر کې دا روایت داسې نقل کړی دی:
انه عليه السلام كان يصلى في بيت أم سلمة رضى الله عنها فقام عمر بن أم سلمة ليمر بين يديه فأشار اليه ان قف فوقف ثم قامت زينب بنت أم سلمة لتمر بين يديه فأشار إليها أن قفى فأبت ومرت فلما فرغ من صلاته نظر إليها وقال ناقصات العقل ناقصات الدين صواحب يوسف صواحب كرسف يغلبن الكرام ويغلبهن اللئام قال الخبازى في حواشى الهداية قال مولانا حميد الدين رحمه الله كرسف اسم زاهد وقع في الفتنة بسبب امرأة وقال المطرزي فى المغرب كرسف رجل من زهاد بنى إسرائيل كان يقوم الليل ويصوم النهار فكفر بسبب امرأة عشقها ثم تداركه الله بما سلف منه فتاب عليه هكذا في الفردوس ومنه الحديث صاحبات يوسف صاحبات كرسف.
يعنى رسول پاك صلى الله عليه وسلم د ام سلمى رضى الله عنهاکور کې مونځ کولو.نو د ام سلمه رضی الله عنها خونې عمر اودریدلو چې د رسول پاك صلى الله عليه وسلم وړاندې تیر شی. رسول پاك صلى الله عليه وسلم هغه ته اشاره اوکړله چې اودریږه.نو هغه اودریدلو.بیا د ام سلمه ساده لور زینب اودریدله چې د رسول پاك صلى الله عليه وسلم وړاندې تیره شی. رسول پاك صلى الله عليه وسلم هغې طرف ته اشاره اوکړله چې اودریږه.خو هغې اونه منل.او تیره شوه.بیا چې کله صاحب د شریعت د خپل مونځ نه فارغ شو.نو ویې فرمائل. دا د بنی آدم لونړه د عقل او دین په اعتبار سره ناقصې دی.د یوسف ملګری دی.او د کرسف (هغه کپړه چې د حیض اونفاس په دوران کې ئې زنانه استعمالوی) خاوندانی دی.دوی په شریف او ښه خلقو باندې غالب راځی.او رزیل خلق په دوی باندې غالب وی.بهر حال دی حدیث نه په اشاره سره منع کول ثابت شو.

يا به په تسبيح ونيلو سره دی منع کوی.دليل وراندې تير شوې روايت دې.يعنی د رسول پاك صلي الله عليه وسلم قول چی (إذا نابت أحدكم لنائبة في الصلاة فليسبح)
او اشاره او تسبيح دواړه جمع کول مکروه دی.خکه چی په دی دواړو کي په يو باندې اکتفاء کول کافی دی. (عنايه، کفايه)

## دطلحه بن عبيد الله حالات

نوم طلحه کنيه ابو محمد فياض او خير ده لقبونه دي دپلار نوم يي عبيدالله او دمور نوم يي صعبه وو دطلحه نسب په شپږم پوشت کې درسول الله سره يوځاي کيږي دهجرت نبوي نه ۲۴يا ۲۵ کلونه مخکې دده پيدائش شوی دی داتلسو کالو په عمر کې بصري ته لاړو او هلته ورته يو راهب دبعثت نبوي خبر ورکړو او بيا ذابوبکر رضي الله عنه په دعوت سره په اسلام کې داخل شو طلحه دغزوه بدر په موقعه په مدينه کې موجود وو ددينه علاوه يي په تمامو غزواتو کې شرکت کړی دی او په بيعة الرضوان کې هم شامل وو او دنورو خلفاؤ په جنګونو کې هم شريك پاتي شوی دی.
طلحه به ډير زيات سخاوت کولو دفقيرانو مسکينانو دپاره به يي دروازه هر وخت پرانيستلي وه، دقيس بن ابي هاضم بيان دی چي ما دطلحه نه زيات سخاوت کونکی بل څوك نه دی ليدلی الله تعالي ورته فراخه مال هم ورکړی وو چي روزانه اوسط امدن يي زر دينارو ته رسيدو (طبقات ابن سعد).
موصوف په جنګ جمل کې شهيد شو او پدغه وخت کې دده عمر ۶۲ يا ۶۴کلونه وو او په همدې ميدان کې دفن کړی شو ليکن دلته به اوبه اودريدلي نو په خوب کې اوليدلی شو ونيل يي چي زما قبر کوم محفوظ خاي ته منتقل کړئ نو عبدالله بن عباس رضي لله عنهما دابوبکر رضي الله عنه کور په لس زره درهم واخستو او هلته يي منتقل کړو او په دومره ورځو کې دده جسم بالکل محفوظ وو خراب شوی نه وو ترديې چي په سترګو يي کافور لګولی شوي وو هغه هم محفوظ وو دده دمروياتو شمير ۳۸ دی چي دوه په دي کې متفق عليه دي او دوه په مسلم کې دي او دوه په بخاري کې دي.

***************

## ۱۳۹_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْمُرُورِ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي

### دمونځ ګذار مخي ته دتيريدو دکراهت بيان

۳۳۶_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ الْجُهَنِيَّ أَرْسَلَهُ إِلَى أَبِي جُهَيْمٍ يَسْأَلُهُ: مَاذَا سَمِعَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَارِّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي؟ فَقَالَ أَبُو جُهَيْمٍ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِينَ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ" قَالَ أَبُو النَّضْرِ: لَا أَدْرِي، قَالَ: أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ شَهْرًا أَوْ سَنَةً. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي جُهَيْمٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ قَالَ: "لَأَنْ يَقِفَ أَحَدُكُمْ مِائَةَ عَامٍ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْ أَخِيهِ وَهُوَ يُصَلِّي" وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا الْمُرُورَ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي، وَلَمْ يَرَوْا أَنَّ ذَلِكَ يَقْطَعُ صَلَاةَ الرَّجُلِ. وَاسْمُ أَبِي النَّضْرِ: سَالِمٌ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ الْمَدِينِيِّ. (١)

**ترجمه**: دبسر بن سعيد نه روايت دي فرمائي چي زه زيد بن خالد ابو جحيم ته اوليږلم تردي چي ددي خبري تپوس ورنه اوکړم چي دمونځ ګذار مخي ته دتيريدو متعلق يې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه څه اوريدلي دي؟ ابوجحيم اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که چري دمونځ ګذار مخي ته تيريدونکي ته معلومه شي چي په دي کار کي څومره ګناه ده نو نو څلويښت اودريدل به دده دپاره ددي نه بهتر وو چي د مونځ کونکي مخي ته تير شي، ابو النضر راوي وايي ماته پته نشته چي څلويښت يې څه شي ياد کړل ورځي، اوکه مياشتي اوکه کلونه،

امام ترمذي واني په دي باب کي د ابو سعيد خدري، ابو هريره، ابن عمر او عبد الله بن عمرو نه هم احاديث وارد دي، او دا حديث حسن صحيح دی، د نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي فرمائيل يې سل کاله منتظر اودريدل د يو کس دپاره ددي نه بهتر دي چي د مصلي مخي ته تير شي ، امام ترمذي وائي داهل علمو په دي باندي عمل دي، دوي مکروه ګنلي دي د مصلي مخي ته تيريدل او مونځ لره نه ماتوي اود ابو النضر نوم سالم دي اود عمر بن عبيد الله مديني ازاد کړی غلام دی.

**تشريح**: **بيان دهغه مقام چي په هغې کي تيريدل حرام دی** :

(١) چې د مصلى د قدم نه واخله تر د سجدې د مقام پورې هم دا اصح قول دې.او هم دا شمس الائمه سرخسى،شيخ الاسلام او قاضى خان اختيار کړې دي

---

[1] ـ رواه محمد بن الحسن في الموطأ برقم :٢٧١، باب المار بين يدي المصلي، والطبراني في المعجم الاوسط برقم ٩١ ٥٣.

(۲)بعضي مشانخو ونيلي دي چي کله مونځ گذار خپل نظر د خپلی سجدی ځاي ته کړی.او په تيريدونکی دده نظر نه پريوځی.يعنی حد د سجدي د ځاي نه هم وړاندې هغه ځاي پورې دې چې د سجدي ځاي ته نظر کوی.اوپه دغه حالت کي ورته وړاندې څومره ځاي ښکاری.نو چې کوم ځاي ته ښکاری.دهغی ځاي نه تيريدل مکروه نه دی

(۳)بعضو د دوو يا دريو صفونو مقدار مقرر کړې دې.

(۴)اوبعضو دری گزونه اوبعضو پنځوگزو پورې اندازه کړې ده. اوبعضو څلويښتو گزو پورې اندازه کړې ده.دا حکم په هغه وخت کي دې چې دی په صحرا يا په ميدان کي مونځ کوی.

اوکه په مسجد کي مونځ کوی نو دي صورت کي د علماو دوه اقوال دي:

(۱)نو دبعضو رائې دا ده چې پنځوس گزه پريږدی.اواخوا تيريږی

(۲)او د بعضو.قول دا دې چې د مصلی او د قبلی د ديوال په مېنځ کي تيريدل مناسب نه دی. بلکه د ديوال هغه طرف ته دی تيريږی.

صاحب د هدايه فرمائی چې د مونځ گذار وړاندې دتيريدولو کراهت په هغه وخت کي دې چې د مونځ گذار او تيريدونکی په مينځ کي څه څيز حائل نه وی.لکه ستن،ديوال ،ستره،يا ناست سړې ،وغيره اوکه څه څيز حائل وی.نو تيريدونکی گناهگار نه دې. ددی نه پس فرمائی.که يو کس په دوکانچې باندې مونځ کوی.نو مخکې تيريدونکی به په هغه وخت کي گناهگار وی چې د تيريدونکی اندامونه د مصلی د اندامو سره برابر او مخامخ شی.اوکه دسړی قد برابر اوچت ځاي باندې مونځ کوی.نو د هغی نه وړاندې تيريدونکی گناهگار نه دې.

****************

## ۱۴۰_ باب مَا جَاءَ لاَ يَقْطَعُ الصَّلاَةَ شَيْءٌ

### هيڅ يو شي مونځ لره نه باطل کوي

۳۳۷( حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كُنْتُ رَدِيفَ الْفَضْلِ عَلَى أَتَانٍ، فَجِئْنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ بِمِنًى، قَالَ: فَنَزَلْنَا عَنْهَا فَوَصَلْنَا الصَّفَّ فَمَرَّتْ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ فَلَمْ تَقْطَعْ صَلاَتَهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَالْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ

الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ، قَالُوا: لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ شَيْءٌ، وَبِهِ يَقُولُ: سفيان الثوري، وَالشَّافِعِيُّ. [1]

**ترجمه**: دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائيل يي چي زه په يو خر باندي دځپل ورور فضل بن عباس رضي الله عنهما شاته سور وم چي مونږ راغلو او رسول الله صلي الله عليه وسلم په مني کي صحابه کرامو ته مونځ ورکولو مونږ دخر نه کوز شواو په صف کي شامل شو او دا خر دخلقو مخي ته تيريدو راتيريدو او په دي باندي ددي خلقو مونځ باطل نشو.
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کي دعائشه، فضل بن عباس، او ابن عمرر ضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او داکثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي دوئ وائي چي مونځ دهيڅ يو څيز نه فاسدوي ، سفيان ثوري او امام شافعي هم په دي باندي قول کړي دي.

**************

## ١٤١ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّهُ لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ إِلَّا الْكَلْبُ وَالْحِمَارُ وَالْمَرْأَةُ

**مونځ لره دسپي او خر او ښځي تيريدو نه علاوه بل هيڅ يوشي نه فاسدوي**

٣٣٨ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَمَنْصُورُ بْنُ زَاذَانَ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا ذَرٍّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا صَلَّى الرَّجُلُ وَلَيْسَ بَيْنَ يَدَيْهِ كَآخِرَةِ الرَّحْلِ أَوْ كَوَاسِطَةِ الرَّحْلِ، قَطَعَ صَلَاتَهُ الْكَلْبُ الْأَسْوَدُ وَالْمَرْأَةُ وَالْحِمَارُ " فَقُلْتُ لِأَبِي ذَرٍّ: مَا بَالُ الْأَسْوَدِ مِنَ الْأَحْمَرِ مِنَ الْأَبْيَضِ؟ فَقَالَ: يَا ابْنَ أَخِي سَأَلْتَنِي كَمَا سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: " الْكَلْبُ الْأَسْوَدُ شَيْطَانٌ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَالْحَكَمِ بْنِ عَمْرٍو الْغِفَارِيِّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَيْهِ، قَالُوا: يَقْطَعُ الصَّلَاةَ الْحِمَارُ وَالْمَرْأَةُ

---

[1] ـ صحيح البخارى في العلم ١٨ (٧٦) والصلاة ٩٠ (٤٩٣) . والأذان ١٦١ (٨٦١) . وجزاء الصيد ٢٥ (١٨٥٧) . والمغازي ٧٧ (٤٤١١) . صحيح مسلم في الصلاة ٤٧ (٥٠٤) . سنن ابى داود في الصلاة ١١٣ (٧١٥) . سنن النسائى في القبلة ٧ (٧٥٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٣٨ (٩٤٧) (تحفة الأشراف : ٥٨٣٤) . مسند احمد (١ في ٢١٩. ٢٦٤. ٢٦٥، ٣٣٧. ٣٤٢. ٣٦٥) . سنن الدارمى في الصلاة ٣٩ (١٤٥٥)

وَالْكَلْبُ الأَسْوَدُ. قَالَ أَحْمَدُ: الَّذِي لَا أَشُكُّ فِيهِ أَنَّ الْكَلْبَ الأَسْوَدَ يَقْطَعُ الصَّلَاةَ، وَفِي نَفْسِي مِنَ الْحِمَارِ وَالْمَرْأَةِ شَيْءٌ. قَالَ إِسْحَاق: لَا يَقْطَعُهَا شَيْءٌ إِلَّا الْكَلْبُ الأَسْوَدُ. [1]

**ترجمه** : دابو ذر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چي څوك مونځ كوي او دده مخي ته دكجاوي داخري لرګي برابر كوم څيز ولاړ نه وي نو دتور سپي او خره او ښځي دتيريدو سره دده مونځ باطل كيږي، ما دابوذر نه واوريدل فرمائيل يي چي دسور او سپين سپي په مقابله كي دتور سپي څه خصوصيت دي؟ هغه اوونيل اي وراره تاخو زمانه دداسي څيز سوال اوكړو دكوم په باره كي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس كړي وو او راته يي فرمانيلي يي وو چي تورسپي شيطان دي.

امام ترمذي وائي دابوذر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابوسعيد خدري، حكم بن عمرو غفاري، ابوهريره، انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، بعضي اهل علمو ديته ميلان كړي دي چي دخر او ښځي او تور سپي تيريدل دمونځ ګذارو مونځ باطل كوي، داحمد بن حنبل قول دي زما په دي كي هيڅ شك نشته چي دتور سپي تيريدل مونځ فاسدوي ليكن دخر او دښځي دتيريدو په باره كي زما شك او شبه ده ، اسحاق بن راهوي وائي دتور سپي دتيريدو نه علاوه بل دهيڅ شي تيريدل دچا مونځ نه فاسدوي.

امام ترمذي وائي دابوجهيم حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د ابوسعيد خدري ، ابوهريره، ابن عمر، او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم منقول دي چي فرمائيل يي په تاسو كي دي يو كس سل كاله (منتظر) اودريدل ددينه بتهر دي چي هغه خپل مونځ ګذار وورور مخي ته تير شي، داهل علمو په دي باندي عمل دي او هغوئ دمونځ ګذار مخي ته تيريدل مكروه ګڼړلي دي ليكن دهغوئ دا رائي نه ده چي په دي باندي مونځ باطل كيږي.

**تشريح** : **د مونځ ګذار مخكي د ښځي تيريدل**

د مونځ ګذار مخكي د ښځي او سپي او خر تيريدلو سره د مونځ نه ماتيدو متعلق دمذاهب ثلاثه بيان

---

[1] _ صحيح البخاري في الصلاة ١٠١ (٥١٠) . صحيح مسلم في الصلاة ٤٨ (٥٠٤) . سنن ابي داود في الصلاة ١٠٩ (٤٠١) . سنن النسائي في القبلة ٨ (٧٥٤) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٣٧ (٩٢٥) . (تحفة الأشراف : ١١٨٨٣) . موطا امام مالك في قصر الصلاة ١٠ (٣٣) . مسند احمد (٣ في ١٦٩) . سنن الدارمي في الصلاة ١٣٠ (١٣٥٦)

(١) دجمهورعلماږ قول دادی چي دمونځ ګدار مخکې د ښځې تيريدل مونځ نه ماتوي.ښځه که حائضه وی اوکه غيرحائضه وی.دغه شان د سپی او خر تيريدل هم مونځ نه فاسدوی
(٢) اهل ظواهروائی چی ددی دری واړو څیزونو تيريدل مونځ ماتوی.د امام احمدبن حنبل مشهور قول هم دا دې.

**د اهل ظواهر دليل** : د رسول پاك صلي الله عليه وسلم قول دې (تقطع المرأة الصلاة والكلب والحمار) دا حديث د ابوذرغفاری(رضي الله عنه) نه نقل دې(عنايه ،كفايه) يعنى د ښځی سپی او خر تيريدل د مونځ فاسدونكی دی:د جمهورو د دلائلو نه وړاندې د فاضل جلال الدين بن شمس الدين الخوارزمی صاحب د كفايه په ژبه كي د اصحاب ظواهر د پيش كړی حديث جواب واوریٔ.فاضل موصوف فرمائی چی په کوم وخت کي عائشی رضی الله عنهاته دا حديث اورسيدلو.نو هغوی ددی نه انكار اوكړو.او عروه ته مخاطب شوه او ويې فرمائيل:
(يا عروة ما ذا يقول أهل العراق قال يقولون يقطع الصلاة مرور المرأة والحمار والكلب فقالت يا أهل العراق والشقاق والنفاق قرنتمونا بالكلاب والحمار كان رسول الله صلي الله عليه وسلم يصلي بالليل وأنا معترضة بين يديه إعتراض الجنازة فإذا سجد حبست رجلي وإذا قام مددتها)
يعنى ای عروه اهل عراق څه وائی. عروه اوفرمائيل چی اهل عراق وائی چی د ښځی خر او سپی تيريدل مونځ قطع كوی.نو عائشه رضی الله عنها اوفرمائيل ای اهل عراق والشقاق والنفاق تاسو مونږ ښځی د سپو او خرو سره برابروئ.رسول الله به د شپی موخ كولو.او زه به مخامخ ملاسته ووم.لكه څنګه چی جنازه كيخودی شی.كله چی به رسول پاك صلي الله عليه وسلم سجده كوله نو ما به خپلي پښې راغونډولې.اوكله چی به رسول پاك صلي الله عليه وسلم اودريدلو.نو پښې به مي خوورولې.
ددی واقعي نه معلومه شوه چی ام المومنين عائشه رضی الله عنها د حديث نه د ابوذر(رضي الله عنه) په سختئ سره انكار اوكړو.او د مصلی وړاندې د ښځی په تيريدو سره د مونځ فاسديدل ئې په سخته لب او لهجه كي ترديد اوكړو.د زيات نه زيات دا اعتراض كيدلی شی چی بحث د مصلی وړاندې په تيريدو كي دې.د پښو په خورلو كي نه دې.اود عائشی رضی الله عنها د بيان نه د پښو خورول او څملاستل ثابتيږی.د مونځ ګذار وړاندې تيريدل تري نه ثابتيږی .جواب دا دې چی كله ئې پښې خوری كړی وی.اوملاسته وی.نو دا مونځ نه ماتوی.نو تيريدل خو به په درجه اولی سره مونځ نه ماتوی.

**د جمهورو دليل:** د رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد دې (لا يقطع الصلاة مرور شيء فادرأوا ما استطعتم فإنه شيطان)يعنى د هيڅ څيز تيريدل مونځ نه فاسدوی چی څومره كيدی شی

.دفع کوئ.څکه چې دا شیطان دی.خو دومره خبره ضرور ده چې د مونځ ګذار مخکې تیریدونکی ګناهګار دی.څکه چې رسول پاك صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دی:
(لو علم المار بين يدي المصلي ما ذا عليه من الإثم لوقف أربعين) یعنی که د مونځ ګذار مخکې تیریدونکی ته پته لګیدله چې دی څومره ګناهګاریږی. نو څلوېښتو پورې به ولاړ وو.راوی وائی.چې ماته معلومه نه ده چې څلوېښت کاله دی که څلوېښت میاشتې اوکه څلوېښت ورځې.بعضې علماو وئیلی دی چې د ابوهریره (رضي الله عنه) دحدیث نه په طریقه د صحت سره ثابته ده چې څلوېښت کاله مراد دی.

***************

## ١٤٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ

### په یوه جامه کې دمونځ کولو بیان

٣٣٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي فِي بَيْتِ أُمِّ سَلَمَةَ مُشْتَمِلًا فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ، وَسَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ، وَأَنَسٍ، وَعَمْرِو بْنِ أَبِي أَسِيدٍ، وَعُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَكَيْسَانَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، وَأُمِّ هَانِئٍ وَعَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، وَطَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ، وَعُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ الأَنْصَارِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ، وَغَيْرِهِمْ قَالُوا: لَا بَأْسَ بِالصَّلَاةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ، وَقَدْ قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: يُصَلِّي الرَّجُلُ فِي ثَوْبَيْنِ. [1]

**ترجمه** : دعمر بن ابي سلمه رضي الله عنه نه روایت دی فرمائي چې ما رسول الله صلي الله علیه وسلم لره دام المؤمنین ام سلمه رضي الله عنها په کور کې په داسې حال کې اولیدو چې مونځ یې کولو او یوه جامه یې دخان نه راتاو کړې وه.

---

[1] ـ صحيح البخاري في الصلاة ٤ (٣٥٦) . صحيح مسلم في الصلاة ٥٢ (٥١٧) . سنن ابي داود في الصلاة ٧٨ (٦٢٨) . سنن النسائي في القبلة ١٣ (٧٦٥) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٩ (١٠٣٩) . (تحفة الأشراف : ١٠٦٨٤) . وكذا (١٠٦٨٣) . موطأ امام مالك في الجماعة ٩ (٢٩) . مسند احمد (٣ في ٢٦ . ٢٧)

امام ترمذي واي دعمر بن ابي سلمه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابوهريره، جابر، سلمه بن الاكوع، انس، عمرو بن ابي اسيد، ابوسعيد خدري، کيسان، ابن عباس، عائشه، ام هاني، عمار بن ياسر، طلق بن علي. او عباده بن الصامت رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. دصحابه کرامو او ددوئ نه پس دتابعينو او داکثر اهل علمو په همدي باندي عمل دي دوئ وائي چي په يوه جامه کي په مونځ کولو کي هيڅ حرج او قباحت نشته او دبعضي اهل علمو قول دي چي بنده به په دوه جامو کي مونځ کوي.

**دعمر بن ابي سلمه عبدالله بن عبدالاسد رضي الله عنه حالات**

. عمر دام سلمه رضي الله عنها بچی دی کوم چي ددي دمخکني خاوند ابوسلمه نه پيدا شوی وو عمر دهجرت نه دوه کاله مخکي پيداشوی وو او دا هغه وخت وو کله چي ام سلمه په حبشه کي وه عمر پخپلو خويندو او رونړو کي دټولو نه مشر وو کله چي دام سلمه رضي الله عنها سره درسول الله صلي الله عليه وسلم نکاح اوشوه په دي وخت کي دی ماشوم وو او بيا ددينه پس درسول الله صلي الله عليه وسلم په فرورش کي راغی دی درسول الله صلي الله عليه وسلم نه هم براه راست روايات نقل کوي او دخپلي مور ام سلمه رضي الله عنها نه هم نقل کوي (سير اعلام النبلاء).

عمر دعبدالملك بن مروان په زمانه کي وفات شو (اسد الغابه) دابن الاسير په قول دده دوفات کيدو کال ۸۳هجري دی.

***************

## ۱۴۳_ باب مَا جَاءَ فِي ابْتِدَاءِ الْقِبْلَةِ

**دقبلي دابتداء بيان**

۳۴۰_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا وَكِيعٌ. عَنْ إِسْرَائِيلَ. عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ. قَالَ: "لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ صَلَّى نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ سِتَّةَ أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا. وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ أَنْ يُوَجَّهَ إِلَى الْكَعْبَةِ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ (البقرة) فَوَجَّهَ نَحْوَ الْكَعْبَةِ وَكَانَ يُحِبُّ ذَلِكَ. فَصَلَّى رَجُلٌ مَعَهُ الْعَصْرَ. ثُمَّ مَرَّ عَلَى قَوْمٍ مِنَ الْأَنْصَارِ وَهُمْ رُكُوعٌ فِي صَلَاةِ الْعَصْرِ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ. فَقَالَ: هُوَ يَشْهَدُ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَّهُ قَدْ وَجَّهَ إِلَى الْكَعْبَةِ. قَالَ: فَانْحَرَفُوا وَهُمْ رُكُوعٌ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. وَعُمَارَةَ

بْنِ أَوْسٍ، وَعَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيِّ، وَأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ الْبَرَاءِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَاهُ سفيان الثوري، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، ([1])

**ترجمه** : دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته راغلو نو دشپاړسو نه تر اولس مياشتو پوري يي بيت المقدس ته دمتوجه كيدو په حالت كي مونځ كړي وو، مگر رسول الله صلي الله عليه وسلم كعبي طرف ته مونځ كول خوښول نو الله تعالي دا ايت كريمه

"قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ. البقرة)"

نازل كړو، يعني مونږ بار بار اسمان طرف ته ستا دمخ متوجه كيدل وينو نو اوس به مونږ تا لره هغه قبلي ته متوجه كړو په كومه چي به ته خوشحاله شي پس راوگرځوه مخ خپل مسجد حرام طرف ته نو ددينه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم كعبي طرف ته راستون كړو او دا به يي غوښتل هم ، يوكس درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دمازيگر مونځ اوكړو او بيا په څه انصاري كسانو باندي تيريدلو او هغوئ بيت المقدس طرف ته دمازيگر مونځ كولو ده ورته اووئيل زه گواهي وركوم چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په داسي حال كي مونځ كړي دي چي كعبي طرف ته يي مخ گرځولي وو نو هغوئ هم دركوع په حالت كي كعبي طرف ته راوگرځيدل.

امام ترمذي وائي دبراء حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن عمر، ابن عباس، عماره بن اوس، عمروبن عوف مزني، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**تشريح** : تحويل دقبلي يو عظيم الشان انقلاب وو كه چري دفعةً په يوخل باندي دقبلي دتحويل حكم نازل شوي وي نوطبيعتونو به ورسره موافقت نه ووكړي اومن وجه دانكار صورت به پيدا شوي وو . پدي خبر وركولو سره ددغه صورت دپيدا كيدو احتمال باقي پاتي نشو اودتحويل حكم په زړونو كې راسخ شو. همدارنگي مخكي دوخت نه ددي اعتراض دپاره مستعد كول مطلوب دي قبله په اصل كې د څه شي نه دمخكې كيدلو حالت او هيئت ته وئيلي شي لكه چي جلسه دناستي حالت ته وئيلي شي بيا په طور دنقل سره ددي اطلاق په هغه

---

[1] ـ صحيح البخارى في الإيمان ٣٠ (٤٠) . والصلاة ٣١ (٣٩٩) . وتفسير البقرة ١٢ (٤٤٨٦) . و١٨ (٤٤٩٢) وأخبار الآحاد (٧٢٥٢) . صحيح مسلم في المساجد ٢ (٥٢٥) . سنن النسائي في الصلاة ٢٢ (٤٨٩، ٤٩٠) . والقبلة ١ (٧٤٣) سنن ابن ماجه في الإقامة ٥٦ (١٠١٠) . (تحفة الأشراف : ١٨٠٤) . وكذا (١٨٤٩) . مسند احمد (٤ في ٢٨٣، ٣٠٤) . ويأتي عند المؤلف في تفسير البقرة (٢٩٦٢)

مكان باندي جاري شو كوم طرفته چي خلق دمونځ دپاره مخ ګرځوي ، يهوديانو اومشركانو چي د بيت المقدس نه كعبي طرف ته په تحويل باندي اعتراض اوكړو نوپدغه وخت كې آيت كريمه"فلنولينك قبلة ترضاها" نازل شو

ابن جرير دسدي په سند سره بلكه په مختلفو سندونو روايت نقل كړي دي چي كله الله تعالي خپل نبي ته دكعبي طرف ته دمخ ګرځولو حكم اوكړو نو دمكي مشركانو اووئيل چي محمد (صلي الله عليه وسلم) اوس پخپل دين كې حيران شوي دي اوداګمان كوي چي مونږه په سمه لار باندي يو نوپدي وجه يي خپله قبله پريخودله او زمونږ قبله يي اختيار كړه اونزدي ده چي زمونږ په دين كې شامل شي ، علامه بغوي وائي چي دتحويل قبلي په باره كې يهوديانو معاذ بن جبل رضي الله عنه ته اووئيل چي محمد صلي الله عليه وسلم زمونږ قبله دحسد په وجه پريخودله.

ټول جهتونه او تمام مكانات دالله تعالي دي او استقبال قبله عبادت دي اوپه عبادت كې دالله په حكم باندي اعتماد كول پكاردي دكوم خصوصيت مكاني لحاظ پدي كې معتبر ندي نومونږ ته چي الله تعالي دكعبي طرف ته دمخ كولو حكم كړي دي پدي وجه مونږ ددي اتباع كوو

چنانچه په حديث شريف كې وارد دي چي كله دتحويل قبله حكم وارد شونوبعضي مسلمانان يهوديت ته واوړيدل اوداني وويل چي محمد عليه السلام بيا دخپل پلار نيكه دين ته را اوګرځيدو

سوال: چي علم دالله تعالي خو قديم دي نودتحويل قبلي غاية څنګه متصور كيدي شي هغه ته خو دمخكې نه دهرڅا حالت معلوم دي؟

بعضو دا جواب كړي دي چي دعلم نه مراد تميز دي كوم چي دعلم سبب دي دسبب په نوم مسبب مسمي شوي دي

دالله تعالي علم ازلي، قديم، محيط كل دي ، هغه ته هربوشي دهغه دپيدانش نه ډير مخكې په ازل كې معلوم وواوعلم ني داحتياج زماني نه پاك دي او اجمالي دي ليكن اجمالي ناقص ندي ،زمونږ اجمالي علم ناقص وي اود الله تعالي اجمالي علم ناقص نه وي

داجمالي قيد لګولو فائده صرف داده چي دهرخيز دوجود نه مخكې په مجموعي حيثيت سره دهغه انكشاف كيږي ،ددي تعلق دحدوث شيء سره نه وي يعني دشي وجود بالفعل موقوف ندي ، پدي وجه باندي داد الله تعالي صفت كماليه دي ، ليكن دالله تعالي سره يويل علم هم دي كوم ته چي تميز ياظهور فعلي ويلي شي اوداد حادثاتو علم وي اود شي دوجود نه پس وي نوپدي وجه دا علم دالله تعالي صفت كماليه ندي.

چنانچه مروي دي چي حيي بن احطب يهودي اودده ملگرو مسلمانانو ته وئيلي ووتاسوچه څومره زمانه بيت المقدس ته مونځونه کړي دي دا هدايت وو اوکه ګمراهي وه که هدايت وو نوتاسوخو بيا هدايت پريخودواوکه چرې ګمراهي وه نوبياخو تاسوپه ګمراهئ کې دالله تعالي عبادت کړي دي ددي په جواب کې مسلمانانو ووئيل چي هدايت هغه وي په کوم کار چي الله تعالي حکم کړي وي اوګمراهي دهغه دممنوع شده څيزونو ارتکاب دي ترڅوپوري چي بيت المقدس ته دمونځ کولو اجازت ووترهغه وخته پوري هدايت وو اوکله چي ورنه منع راغله نو ګمراهئ شوه دتحويل قبلي نه مخکې دبنو النجار قبيلي نه اسعد بن زراره اودبني سلمه نه براء بن معرور وفات شوي وو اودوي دواړه دنقباؤ نه وو اوددينه مخکې ډير خلق مړه شوي وو دهغوي عزيزان او اقارب رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راغلل اوعرض ني وکړو چي اي دالله رسوله الله تعالي خوتاته ابراهيمي قبلي ته دمخ کولو حکم کړي دي اوزمونږ وفات شوو اقاربو او عزيزانو چي دوفات نه مخکې بيت المقدس ته مونځونه کړي دي دهغوي به څه حال وي؟نوپدي وخت کې الله تعالي آيت کريمه وَمَاكَانَ اللهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ نازل شو.

په صحيحينو کې دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مروي دي چي دتحويل قبله نه مخکې ډيرخلق مړه شوي اوشهيدان شوي دي مونږته داعلم نه وو چي دهغوي په باره څه ووايو(يعني مونځونه ني قبول شوي دي اوکه نه) نو آيت کريمه وَمَاكَانَ اللهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ نازل کړو دنبي کريم صلي الله عليه وسلم زړه داغوبنتل چي دمونځ متعلق کعبي ته دمخ ګرځولو حکم اوشي خکه چي هغه ابراهيمي قبله وه چي مومنانو لره دايمان او مشرکانو لره دمخالفت طرف ته مائل کونکي وه ، دايت دتحويل قبله دقصي ابتدائي حصه ده، اوپه تلاوت کې وروسته کړي شوي ده ، دهجرت نه پس په منسوخ شوو احکاموکې اولني حکم همدا دي اوپدي کې اختلاف هم دي چي دهجرت نه مخکې قبله بيت الله وه اوکه بيت المقدس ، بعضو ويلي دي چي په مکه کې رسول الله صلي الله عليه وسلم بيت المقدس طرف ته مونځ کولواوکعبه به ورته هم مخامخ وه ، داحديث امام احمد دابن عباس رضي الله عنهما نه په جيد سند سره نقل کړي دي اوبعضوئيلي دي چي مطلقا به ني بيت المقدس طرف ته مونځ کولواو ددي ذکر ني ندي کړي چي قبله به ورنه کوم طرف ته وه.

علامه بغوي فرماني چي په مکه کې رسول الله صلي الله عليه وسلم کعبي طرف ته مونځ کولواودهجرت کولونه پس چي مديني ته راغي نودبيت المقدس طرف ته متوجه شو، چنانچه ابن جريرپه خپل تفسير کي دابن عباس رضي الله عنهما نه په جيد سند سره نقل کړي دي چي کله رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته هجرت وکړو نو الله تعالي ورته حکم وکړو چي دبيت المقدس طرف مخ ستون کړه

ابن جرير وائي چې اول به رسول الله صلي الله عليه وسلم د كعبې طرف ته مونځ كولو او بيا په مكه كې داوسيدو په حالت كې ورته دبيت المقدس طرف ته دمونځ كولو حكم اوشو تردې چې درې كاله يې دبيت المقدس طرف ته مونځ اوكړو او بيا يې مدينې ته هجرت اوكړو . اولنې قول يعني دعلامه بغوي مسلك زيات صحيح او قوي دې اوډېر احاديث ددې تائيد كوي.

پدې كې اختلاف هم دې چې دهجرت نه پس دبيت المقدس طرف ته رسول الله صلي الله عليه وسلم څومره زمانه مونځ كړې وو دابو داود په نزد باندې دابن عباس په روايت سره اولس مياشتې دې اودطبراني اوبزار په نزد باندې دعمرو بن عوف دروايت مطابق او دابن ابي شيبه او ابوداود وغيره په نزد دابن عباس دروايت مطابق اودامام مالك او سعيد بن مسيب دقول مطابق شپاړس مياشتې وې اودبخاري په نزد هم دبراء بن عازب دروايت مطابق شپاړس مياشتې وې ، حق دادې چې شپاړس مياشتې او يو څو ورځې رسول الله صلي الله عليه وسلم بيت المقدس طرف ته مونځ كړېدې ځكه چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دمكې نه دربيع الاول په پنځم تاريخ د دوشمبې په ورځ هجرت كړېوو اومدينې ته په دولسم ربيع الاول د دشنبې په ورځ داخل شوې وو او دتحويل قبله حكم دصحيح قول مطابق پنځلسم رجب اوبه دويم هجري كال د بدر دواقعې نه دوه مياشتې مخكې د زوال په وخت كې شوې وو جمهوررو علماؤ دا قول راجح ګرځولې دې اوځوك چې داولس مياشتو قائل دې دهغې وجه داده چې هغوئ تولې مياشتې دكې حسابې كړې دې اوبه كومو روايتونو كې چې ديارلس يا نولس يا اتلس مياشتې ذكر شوې دې يا دوه مياشتې او دوه كاله ذكر شوې دې دا ټول ضعيف اقوال دې په مدينه كې چې كله رسول الله صلي الله عليه وسلم تشريف فرما وو نو يهوديانو به وئيل چې محمد خوبه دين كې زمونږ مخالفت كوي ليكن تابعداري زمونږ دقبلې كوي پدې وجه باندې به رسول الله صلي الله عليه وسلم دا غوښتل چې قبله دې بيت الله شي ، چنانچه نبي كريم صلي الله عليه وسلم جبريل عليه السلام ته خپله دا تمنا ظاهره كړېوه چې بيت الله چونكه زما دپلار نيكه قبله ده نوبېدې وجه باندې زما دا خواهش دې چې الله تعالي دا قبله جوړه كړي ،جبرائيل عليه السلام عرض اوكړو چې يقينا زه ستا پشان بنده يم او ته دالله تعالي په نزد باندې دمرتبې په لحاظ زمانه زيات يې پخپله دالله تعالي نه سوال اوكړه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دعا وغوښتله اودالله تعالي دحكم په انتظار كې يئې اسمان طرف ته كتل تر دې چې الله تعالي يې دعا قبوله كړه او مذكوره ايت نازل شو.

چنانچه ترمذي دابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل كړېدې چې رسول كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دې دمشرق اودمغرب په مينځ كې قبله ده ،ددې حديث نه په واضح طور معلومه شوه چې دلرې اوسيدونكو دپاره قبله جهت دكعبې دې.

پدي حديث كې دمشرق نه دوړو ورځو مشرق مراد دي او همدارنګي دمغرب نه هم دوړو ورځو مغرب مراد دي ددي په مينځ كې جنوبي جهت دي دا داهل مدينه قبله ده اوهمدارنګي دهر ملك دخلقو دپاره جدا قبله ده چنانچه داهل هند دپاره ددوه مغربونو په مينځ كې قبله ده.

په مواهب او سبيل الرشاد كې ذكر شوي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دبنو سلمه قبيلي ام بشر ، ابن براء بن معرور سره دملاقات دپاره دبراء دانتقال نه پس تشريف وړي وو ام بشر رسول الله صلي الله عليه وسلم ته خوراك تيار كړو اوهلته په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندي دماسپخين وخت راغي اوهغه سره دخپلو ملګرو دبني سلمه په جومات كې مونځ ادا كړو كله چي هغه دوه ركعتونه اوكړل نوجبرائيل عليه السلام راغي او اشاره يي وكړه چي دبيت الله طرف ته راوګرځه رسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ په مينځ كې دكعبي طرف ته راوګرځيدو په كومو خايونو كې چي سړي وو هلته ښځي راغلي اوپه كومو خايونو چي ښځي وي هلته سړي لاړل غرض دادي چي ټول په مونځ كې وګرځيدل هم پدي وجه باندي دي جومات ته مسجد القبلتين وئيلي شي.

واحدي وئيلي دي چي زمونږ په نزد باندي دا قصه په انتهائي قوي سند سره ثابته ده غرض داچه رسول الله صلي الله عليه وسلم دماسپخين دوه ركعتونه دبيت المقدس طرف ته كړي وو او باقي دوه ركعتوه يي دكعبي طرف ته اوكړل ، عباد بن بشر رضي الله عنه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره مونځ اوكړو او روان وو چي هغه اوليدل چي بني حارث دمازيګر مونځ كوي اوده ورته په ركوع كې په اوچت اواز سره اووئيل چي زه درته په الله تعالي باندي دقسم سره وايم چي مادرسول الله صلي الله عليه وسلم سره بيت الله طرف ته مونځ اوكړو او راغلم هغوئ چي دا واوريدل نوفورا دبيت الله طرف ته راوګرځيدل.

اوپه صحيح بخاري كې دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم چي اول كوم مونځ دكعبي طرف ته كړي وو هغه دمازيګر مونځ وو . دا حديث دړومبنئ حديث خلاف دي ځكه چي د هغه نه معلوميږي چي اولني مونځ رسول الله صلي الله عليه وسلم كعبي ته دمازيګر كړي وو. (مظهري، در منثور)

ليكن تحقيق دادي چي دماسپخين مونځ يي كړي وو اوپه نورو حديثونو كې چي دمازيګر ذكر راغلي دي ممكن ده چي براء بن عازب ته دبني سلمه په جومات كې دماسپخين نه مخكي اطلاع نه وي شوي يادهغه مراد داوي چي ټول مونځ چي دټولو نه مخكي دقبلي طرف ته شوي دي هغه دمازيګر وو ځكه چي دماسپخين خو صرف دوه ركعتونه دقبلي طرف ته شوي وو يا دا چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپل جومات كې دكعبي طرف ته اولني مونځ دمازيګر كړي وو اودتحويل قبلي خبر قباء والاته بله ورځ دمازيګر په مونځ كې اوشو.

چنانچه په صحيحينو کې دابن عمر رضي الله عنهمانه مروي دي چي په قباء کې خلقو دسحر مونځ کولو او يوکس راغي او وېي ونيل رسول الله صلي الله عليه وسلم ته چي دالله تعالي دطرف نه کعبي ته دمخ گرځولو حکم شوي دي نوهغوئ په دغه وخت کې تول دقبلي طرف ته راوگرځيدل مخکې به ددوئ مخ دشام طرف ته وو ، رافع بن خديج وائي چي مونږ په بني عبد الاشهل کې مونځ کولو چي يوکس راغي چغې يې وهلې چي رسول الله ته دقبلي طرف ته دمخ گرځولو حکم شوي دي زمونږ امام چي دا واوريدل نو دقبلي طرف ته ستون شو اومونږ تول ورسره هم اوگرځيدو.

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي کله رسول الله صلي الله عليه وسلم بيت المقدس ته تشريف يوړو نودبيت الله په ټولو گوټونوکې يې دعا اوغوښتله او دننه يې پکې مونځ اوکړو کله چي بهر راغي نو دکعبي طرف ته متوجه شو او دوه رکعاته مونځ يې اوکړو او وېي فرمائيل چي دا قبله ده.

په صحيحينو کې دعبدالله بن عمرورضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم او ورسره اسامه ، بلال عثمان بن طلحه رضي الله عنهم کعبي ته دننه تشريف يوړو او دروازه يې بنده کړه ابن عمررضي الله عنهما فرمائي کله چي دوئ تول رابهرشول نو مادبلال نه تپوس اوکړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دننه څه اوکړل بلال رضي الله عنه اوفرمائيل چي خپل ښي طرف ته يې دکعبي دوه ستني پريخودي او يوه ستن يې دخان نه چپ طرف ته پريخوده او د دري ستنونه شاته په مونځ اودريدو ، دراوي بيان دي چي په دغه وخت کې په بيت الله کې شپږ ستني وي زه وايم پدي دواړه حديثونو کې څه تعارض نشته ځکه چي ممکن ده چي يو ځل يې دراوتو نه پس مونځ کړي وي اويو ځل يې دننه مونځ کړي وي (مظهري، در منثور)

***************

٢٤١ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانُوا رُكُوعًا فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

[1] ـ صحيح البخاري في الصلاة ٣٢ (٤٠٣) ، وتفسير البقرة ١٤ (٤٤٨٨) ، و١٦ (٤٤٩٠) ، و١٧ (٤٤٩١) ، و١٨ (٤٤٩٢) ، و١٩ (٤٤٩٣) ، و٢٠ (٤٤٩٤) ، صحيح مسلم في المساجد ٢ (٥٢٦) ، سنن النسائي في الصلاة ٢٤ (٤٩٤) ، والقبلة ٢ (٧٤٦) ، (تحفة الأشراف: ٧١٥٤) ، وكذا (٧٢٢٨) ، موطا امام مالک في القبلة ٤ (١) ، مسند احمد (٢ في ١١٣)

**ترجمه** : دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي مذكوره انصار دسحر په مونځ كي دركوع په حالت كي وو امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي.

***************

## ١٤٤ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ

### دمشرق اودمغرب په مينځ كي چي څومره فاصله ده دا ټوله قبله ده

٣٤٢ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي مَعْشَرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ".[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمشرق او مغرب مينځ كي چي څومره فاصله ده داټوله قبله ده.

**تشريح** : دا حكم په اتفاق فقهاؤ او محدثينو دهغه ځا دپاره دي ځوك چي دكعبي په جنوب يا شمال كي واقع وي ځكه چي مدينه دكعبي په شمال كي واقع ده نو په دي وجه ددوئ قبله دمشرق او مغرب مينځ كي واقع كيږي يعني جنوب طرف ته خي، په دي كي ضابطه داده څوك چي په مسجد حرام كي مونځ كوي هغه به خپل مخالف طرف ته مخ گرځوي مثلا چي په مشرق كي وي نو مغرب طرف ته به مخ گرځوي او ددي په عكس هم او څوك چي په شمال كي وي هغه به جنوب ته مخ اړوي او ددي بالعكس هم خو په دي شرط چي كعبه مخامخ وي علي هذا القياس كله چي دي دائري ته وسعت وركړي شي نو بيا به هم دا حكم وي چي جهت به په هره وجه معتبر وي لهذا څوك چي په جنوب مشرق كي واقع وي هغه دپاره مغرب ته مائل كيدل پكار دي او څوك چي په جنوب مغرب كي واقع وي هغه دپاره مشرق ته مائل كيدل پكار دي او څوك چي په شمال مشرق كي واقع وي نو هغه به مغرب طرف ته دقبلي دپاره مائل كيږي او څوك چي په مغرب كي واقع وي دهغه دقبلي ميلان به مشرق طرف ته وي.

اوڅوك چي په مسجد حرام كي داخل وي دهغه دپاره مواجهت الي عين الكعبه ضروري دي او دبهر نه راتلونكو خلقو دپاره جهت ضروري دي نه چي عين كعبي ته ځكه چي دا ممكن نه ده او كه په دي كي لږ شان غلطي واقع شي نو تر ۴۵ درجي زاويه پوري گنجائش شته او زيات گنجائش نشته ورنه مونځ به فاسد شي.

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ٥٦ (١٠١١). (تحفة الأشراف: ١٥١٣٤)

البته دامام شافعي يو قول دادي په كتاب الام كي يي ليكلي دي چي امام شافعي دغانبينو دپاره هم عين كعبي طرف ته متوجه كيدل فرض گرخولي دي، مگر په معارف السنن كي دي ددي مطلب دادي دچادپاره چي توجه ممكن وي هغه به عين كعبي ته متوجه كيږي خكه چي د لري علاقو خلقو دپاره عين كعبي طرف ته متوجه كيدل تكليف بما لا يطاق دي، دجهت په باره كي احنافو ليكلي دي چي په جهت كي انحراف كه د ۴۵ ډگري نه كم وي نو جائز دي او كه ددينه زيات وي نو بيا مونځ نه كيږي او اداء كړي مونځ به يي واجب الاعاده وي.

****************

٣٤٣ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي مَعْشَرٍ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي أَبِي مَعْشَرٍ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، وَاسْمُهُ: نَجِيحٌ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ، قَالَ مُحَمَّدٌ: لَا أَرْوِي عَنْهُ شَيْئًا، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ النَّاسُ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَحَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ المَخْرَمِيِّ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ مُحَمَّدٍ الأَخْنَسِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَقْوَى مِنْ حَدِيثِ أَبِي مَعْشَرٍ وَأَصَحُّ. (١)

**ترجمه** : ديحي بن موسي بيان دي چي محمد بن ابي محشر دسابقه روايت هم معني حديث بيان كړو.

امام ترمذي واني دابوهريره حديث ددي سند نه علاوه په يو بل سند هم مروي دي مگر بعضي محدثينو په ابو معشر راوي باندي دحفظ په اعتبار كلام كړي دي او دابو معشر نوم نجيح مولي بن هاشم دي.

دامام بخاري قول دي چي زه دابو معشر نه روايت نه نقل كوم مگر ډيرو خلقو دده نه اخذ دروايت كړي دي، دامام بخاري قول دي حديث د عبدالله بن جعفر مخرمي عن عثمان بن الاخنسي عن سعيد المقبري عن ابي هريرة زيات قوي او اصح دي دحديث دابو معشر نه.

****************

٣٤٤ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ بَكْرٍ المَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا المُعَلَّى بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ المَخْرَمِيُّ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ مُحَمَّدٍ الأَخْنَسِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «مَا بَيْنَ المَشْرِقِ وَالمَغْرِبِ قِبْلَةٌ» قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَإِنَّمَا قِيلَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ المَخْرَمِيُّ، لِأَنَّهُ مِنْ وَلَدِ المِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ

---

1 ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ٥٦ (١٠١١). (تحفة الأشراف: ١٥١٢٣)

مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ" مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَعَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَابْنُ عَبَّاسٍ، وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: "إِذَا جَعَلْتَ الْمَغْرِبَ عَنْ يَمِينِكَ وَالْمَشْرِقَ عَنْ يَسَارِكَ، فَمَا بَيْنَهُمَا قِبْلَةٌ إِذَا اسْتَقْبَلْتَ الْقِبْلَةَ"، وَقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ هَذَا لِأَهْلِ الْمَشْرِقِ، وَاخْتَارَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ التَّيَاسُرَ لِأَهْلِ مَرْوٍ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم سلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمشرق او مغرب په مينځ كي چي كوم طرف دي دا قبله ده

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دمتعددو صحابه كرامو نه مروي دي چي دمشرق او مغرب مينځ كي طرف قبله ده چي يو په دوئ كي عمر بن خطاب، علي بن ابي طالب، او ابن عباس رضي الله عنهم هم شامل دي، دابن عمر رضي الله عنهما بيان دي كله چي مغرب طرف خپل ښي طرف ته اوګرځوي او مشرق طرف خپل چپ طرف ته نو ددوئ په مينځ كي قبله ده كله چي ته قبلي ته مخامخ شوي، او ابن مبارك وائي مابين المشرق والمغرب قبلة حكم داهل مشرق دپاره دي او ابن مبارك داهل مروه دپاره كس طرف ته مائل كيدل خوښ كړي دي.

**تشريح** : امام نووي د قبلي د ادابو سلسله كي احاديث نقل كړي دي چي ستاسو دفائدي دپاره يي تاسو ته پيش كوو:

### قبلي طرف ته توكل منع دي

عن أنس رضي الله عنه : أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ رَأَى نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ، فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَيْهِ حَتَّى رُؤِيَ فِي وَجْهِهِ، فَقَامَ فَحَكَّهُ بِيَدِهِ، فَقَالَ: ((إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ فِي صَلَاتِهِ فَإِنَّهُ يُنَاجِي رَبَّهُ، وَإِنَّ رَبَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ، فَلَا يَبْزُقَنَّ أَحَدُكُمْ قِبَلَ الْقِبْلَةِ، وَلَكِنْ عَنْ يَسَارِهِ، أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ)) ثُمَّ أَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهِ فَبَصَقَ فِيهِ، ثُمَّ رَدَّ بَعْضَهُ عَلَى بَعْضٍ، فَقَالَ: ((أَوْ يَفْعَلُ هكذا)) متفقٌ عَلَيْهِ.

وَالأَمْرُ بِالْبُصَاقِ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ هُوَ فِيمَا إِذَا كَانَ فِي غَيْرِ الْمَسْجِدِ، فَأَمَّا فِي الْمَسْجِدِ فَلَا يَبْصُقُ إِلَّا فِي ثَوْبِهِ. (نووي)

انس بن مالك رضي الله عنه روايت كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم (دجومات په ديوال باندي) قبلي طرف ته توكلي شوي بلغم اوليدل نو دومره سخت خفه شو چي په مخ مبارك يي دهغي اثرښكاره شو، رسول الله صلي الله عليه وسلم پاڅيدو او هغه يي اوګرولو (صفايي كړو)

1 - سنن ابن ماجه في الإقامة ٥٦ (١٠١١). (تحفة الأشراف: ١٥١٣٢)

دی نه پس یی اوفرمائیل چي کله ستاسو نه څوك دمانځه دپاره اودریږي نو هغه خپل رب سره راز او نیاز دپاره پیش کیږي او الله تعالي دقبلی اودمونځ ګذار په مینځ کې وي داسی حالت کې که چري توکل وي نوخپل ګس طرف ته یی تو کړي یا دخپو لاندي. مخ په قبله یی هیچری مه توکئ، دغه وخت رسول الله صلي الله علیه وسلم دخپل څادر مبارك یوګوټ اونیولو. په هغی کې یی توکړل او بیایی کېره راغونډه کړه وبی مږله او وبی فرمائیل . دارنګی توکل کوئ.

امام نووي وائي چي ګس طرف ته یا په خپو کې دتوکلو اجازت شته خو هلته چي په جومات کې نه وي، جومات کې صرف کپړه کې دتوکانړو اچولو اجازت دی.

أخرجه : البخاري کتاب الصلاة باب حك البزاق باليد من المسجد ومسلم في كتاب الصلاة باب النهي عن البزاق في المسجد. واحمد وعبد الرزاق وابن حبان وابن ابي شيبه والبيهقي.

**تشریح** امام نووي په شرح دمسلم کې لیکلي دي چي په مسجد کې لاړي توکل حرام دي په مسجد کې دننه وي او که بهر قبلي ته مخامخ وي احناف علماء وائي په مسجد کې لاړي توکل مکروه تحریمي دي او مسجد لره دګنده څیزونو نه پاك ساتل واجب دي برابره خبره ده چي دا توکل په فرش باندي وي او که په دیوال باندي وي علماؤ چي دتوکلو کومه طریقه خودلي ده دا یي دمونځ په دوران کې په حالت باندي حمل کړي ده او که په مونځ کې دننه نه وي نودمسجد نه بهر توکلو کې څه حرج نشته دپورتني حدیث نه دا هم معلومیږي که په مسجد کې ګنده څیز اولیدلی شي نو فورا دي پاك کړی شي رسول الله صلي الله علیه وسلم پخپله هم داسي کړي دي او تواضعا یي امت ته تعلیم هم ورکړی دی.

***************

## ١٤٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُصَلِّي لِغَيْرِ الْقِبْلَةِ فِي الْغَيْمِ

### کله چي څوك په وریځ کې دقبلي نه علاوه بل طرف ته مونځ اوکړي

**٣٤٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا أَشْعَثُ بْنُ سَعِيدٍ السَّمَّانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فِي لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ، فَلَمْ نَدْرِ أَيْنَ الْقِبْلَةُ، فَصَلَّى كُلُّ رَجُلٍ مِنَّا عَلَى حِيَالِهِ، فَلَمَّا أَصْبَحْنَا ذَكَرْنَا ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَزَلَ: فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ سورة البقرة آية ١١٥ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَشْعَثَ السَّمَّانِ، وَأَشْعَثُ بْنُ سَعِيدٍ أَبُو الرَّبِيعِ السَّمَّانُ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، وَقَدْ ذَهَبَ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، قَالُوا: إِذَا صَلَّى فِي الْغَيْمِ**

لِغَيْرِ الْقِبْلَةِ ثُمَّ اسْتَبَانَ لَهُ بَعْدَمَا صَلَّى أَنَّهُ صَلَّى لِغَيْرِ الْقِبْلَةِ، فَإِنَّ صَلَاتَهُ جَائِزَةٌ، وَبِهِ يَقُولُ: سفيان الثوري وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** : دعامر بن ربيعه رضي الله عنه بيان دي چې مونږ په يوه تورتم شپه كي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په سفر كي وو او مونږ ته نه معلوميده چې قبله كوم طرف ته دي په مونږ كي هر يو كس هغه طرف ته دمتوجه كيدو په حالت كي مونځ اوكړو كوم طرف ته چې مخكي دهغه توجه وه كله چې مونږ سحر كړو او نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته مو ددي ذكر اوكړو نو په دغه وخت كي ايت كريمه "فاينما تولوا فثم وجه الله" نازل شو.

امام ترمذي وائي ددي حديث سند څه خاص دبهترئ حامل نه دي مونږ ته دا داشعث بن سمان په ذريعه رارسيدلي دي او اشعث بن سعيد د ابو الربيع سمان دحديث په معامله كي ضعيف ګڼرلي شي، او اكثر اهل علمو دي طرف ته ذهاب كړي دي چې څوك دقبلي نه غير بل طرف ته مونځ اوكړي نو مونځ يي درست دي، سفيان ثوري، ابن مبارك، احمد، او اسحاق بن راهويه هم په دي باندي قول كړي دي.

## په مانځه كي قبلې ته مخامخ وريدل

قبلي ته مخ كول هم د مونځ په شرطونو كي يوشرط دې.دليل دالله تعالى ارشاد دې:

﴿فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ﴾وجه د استدلال دا ده چې الله تعالى فرمائيلى دى.﴿فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا﴾ يعني مونږ به تا،ستا خوښي قبلي طرف ته وارووو.او بيا ئي مسجد حرام ته د مخ اړولو حكم اوكړو.

دمانځه دوه صورتونه دى.يا خو به دا په مكه مكرمه كي ادا كوى.اويا به د مكي نه بهر په بل ځائې كي ادا كوى.. په اول صورت كي عين كعبي ته مخ كول ضرورى دى، داځكه چې نبى ﷺ به په مسجد حرام كي مونځ كولو.نو عين كعبي ته به ئې مخ كولو.اوهم دا معمول د صحابه كرامو او تابعينو (رحمه الله)هم پاتې شوې دى .او په دى باندې اجماع ده.

او په دويم صورت كي قبلې طرف ته مخ كول فرض دى دليل ئې دا دې چې نبى ﷺ او مسلمانان په مدينه منوره كي وو.نو الله تعالى هغوى ته مسجد حرام طرف ته د مخ كولو حكم كړې وو.كعي طرف ته دمخ كولوحكم ئې نه وو كړې.نومعلومه شوه چې كوم سړې د مكى نه بهر وى .دهغه دپاره عين كعبي ته مخ كول فرض نه دى.ځكه چې الله تعالى بندګانو لره د هغوى د طاقت مطابق مكلف كوى.دالله تعالى ارشاد دى:

---

1 - سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٠ (١٠٢٠). ويأتي عند المؤلف في تفسير البقرة (٢٩٥٧).

﴿لاَيُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا الا وُسْعَهَا﴾

## د خائف دپاره حکم داستقبال القبله

که یوکس د ویرې د وجې قبلې ته په مخ کولو قادر نه وي.نو کوم طرف ته چې قادر وي.هغه طرف ته دې مخ کوي.ویره که مالي وي یا جاني وي.که د دشمن وي اوکه د خناور وي.اوکه د ډاکو وي.مثلاً چې یو کس سره دا ویره وي.که زه اوخوزیدم.او قبلې ته مې مخ کړو.نو دشمن به په ما اولګي. نو دهغه دپاره په ناسته یا په ملاسته چې څنګه ممکنه وي.هغې طرف ته مخ کول جائزدي .مونځ دې اوکړي.هم دا حکم د هغه بیمار دې چې قبلې طرف ته په اوړیدو باندې قادر نه وي.او داسې څوك هم نه وي چې دې قبلې ته واړوي .

دغه شان که یو کس په کشتۍ کې ناست وي.اوکشتۍ ماته شوه.اوهغه په یوه تخته پاتې شو.اوهغه سره ویره وي.که قبلې ته مخ کوي.نو ډوبیږي.نودده دپاره جائز دي چې کوم طرف ته ممکن وي.هغه طرف ته دې مونځ کوي.

دلیل دا دې چې د اشتباه دحالت په شان دده عذر هم متحقق دی .نو دده دپاره به حقیقةً استقبال د قبلې شرط نه وي.

## حکم دهغه چا چې قبله وریاندې مشتبه شي

که په یوکس باندې د قبلې طرف مشتبه شي.او ورسره داسې څوك هم نه وي چې هغه د قبلې دجهت نه خبر وي.اودهغه نه تپوس اوکړي. نو ددې سړي دپاره تحري (اجتهاد) کول پکار دي.نوچې کوم طرف ته ئې غالب ګمان راغلو.هغه طرف ته دې مونځ اوکړي.

که یو کس د قبلې خودونکې موجود وي. نودهغه نه دې تپوس اوکړي.په دې صورت کې به تحري جائز نه وي.

بغیر د تحري نه مونځ نه کیږي.د تحري د جواز دپاره دلیل دا دې چې یوځل په صحابه کرامو باندې قبله مشتبه شوه. نو هغوی تحري اوکړله. اومونځ ئې اوکړو.بیائې دا واقعه رسول الله ﷺ ته ذکر کړله.نو نبي ﷺ پرې څه انکار اونکړو.

اول خو دا ضروري ده چې د چانه تپوس اوکړي.اودا تپوس کول څکه ضروري دي چې تپوس کول د تحري نه قوي دي. نو چې ترکومې پورې تپوس کول ممکن وي.ترهغه وخته پورې تحري کول ناجائز دي .

## د مونځ کولو نه پس په استقبال د قبله کې د غلطیدو نه پس دمونځ اعاده

که یوکس باندې د قبلې اشتباه راغله .او هغه د قبلې د طرف معلومولو دپاره تحري اوکړه.اومونځ ئې اوکړو.د مانځه نه پس ورته معلومه شوه چې د قبلې طرف ترې خطا شوې وو. یعنې د قبلې نه علاوه بل طرف ته ئې مونځ کړې وو.نود احنافو قول دادی چې په دې

صورت کي په ده باندې د مونځ اعاده نشته.ځکه چې داسې وخت کي شرعی قبله جهت د تحري وی.او هغه د شرعی حکم مطابق مونځ اوکړو.
امام شافعی (رحمه الله) فرمائی.که په تحری سره ئې مونځ کړې وی.اودا ورته معلومه شی چې قبلې طرف ته ئې شاه وه.نود مونځ اعاده واجب ده.ځکه چې په دی صورت کي غلطی په يقين سره ثابته شوه.
زمونږ د طرفه جواب دا دې چې دده په وس کي د تحري نه علاوه بل څه نه وو او تکليف په قدر دطاقت وی.نوځومره چې د ده په طاقت کي وه.هغه ئې اوکړله. نوځکه پري اعاده د مانځه نشته.

## د مانځه په دوران کې د قبلې په طرف پوهيدل

که يوکس په تحری سره مونځ شروع کړی وی.اوهغه ته د مانځه په دوران کي معلومه شوه چې زه د قبلې په طرف کي خطا شوې يم.نودا کس دي د مانځه په دوران کي قبلې طرف ته اوګرځی اودليل ددي دا دې چې اهل قبا ته کله په مانځه کي دا معلومه شوه چې قبله بدله شوه يعنی د بيت المقدس په ځائې خانه کعبي ته د مخ ګرځولو حکم اوشو. نو په هم په مانځه کي د رکوع په حالت کي قبلې طرف ته اوګرځيدل.اوبيا چې کله نبی ﷺ ته ددی علم اوشو.نو هغه د دوی تعريف اوکړو اوانکار ئې اونکړو. دا حکم په هغه صورت کي هم دی چې کله د مانځه په دوران کي دده رائې بدله شی.يعنی کلکه شی.نوهغه طرف ته دی اوګرځی.تر دی که په ګرځيدو کي ئې په قصد څه روستووالی اوکړو. نو مونځ ئې ماتيږی.ځکه چې د مانځه په باقی حصه کي په ده باندې د اجتهاد مطابق عمل کول واجب وو.بغيردماتولو د هغه حصې نه چې وړاندې ئې کړې وه.

****************

## ١٤٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ مَا يُصَلَّى إِلَيْهِ وَفِيهِ

### بيان دهغه مقاماتو او اشياؤ د کومو طرف ته چې مونځ کول مکروه دي

٣٤٦_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا الْمُقْرِئُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ جَبِيرَةَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ الْحُصَيْنِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى أَنْ يُصَلَّى

فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ: فِي الْمَزْبَلَةِ، وَالْمَجْزَرَةِ، وَالْمَقْبَرَةِ، وَقَارِعَةِ الطَّرِيقِ، وَفِي الْحَمَّامِ، وَفِي مَعَاطِنِ الْإِبِلِ، وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللَّهِ ".[1]

**ترجمه** : دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په اوه مقاماتو کي دمونځ کولو نه منع فرمائيلي ده، دګندګئ او خوشايانو غورځولو په ځاي کي، دذبحي کولو په ځاي کي، په قبرستان کي، په عامه لاره کي، په حمام (غسل خانه) کي او داوښانو تړلو په ځاي کي او دبيت الله په چت باندي.

*****************

٣٤٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ جَبِيرَةَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي مَرْثَدٍ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسٍ أَبُو مَرْثَدٍ اسْمُهُ: كَنَّازُ بْنُ حُصَيْنٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِذَاكَ الْقَوِيِّ، وَقَدْ تُكُلِّمَ فِي زَيْدِ بْنِ جَبِيرَةَ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَزَيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ الْكُوفِيُّ أَثْبَتُ مِنْ هَذَا وَأَقْدَمُ، وَقَدْ سَمِعَ مِنَ ابْنِ عُمَرَ، وَقَدْ رَوَى اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ الْعُمَرِيِّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ، وَحَدِيثُ دَاوُدَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْبَهُ وَأَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ الْعُمَرِيُّ ضَعَّفَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، مِنْهُمْ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ.[2]

**ترجمه** : يعني په دي سند باندي هم دماقبل روايت هم معني حديث مروي دي.

امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث زيات قوي نه دي او په زيد بن جبيره باندي دحفظ په اعتبار کلام شوي دي، زيد بن جبير کوفي دده نه زيات قوي دي خو هغه دده نه مخکي تير شوي دي دابن عمر رضي الله عنهما نه يي اوريدل کړي دي، په دي باب کي دابو مرثد کناز بن حصين، جابر او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، ليث بن سعد دا حديث په سند دعبدالله بن عمر العمري عن نافع، عن ابن عمر، عن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، او د داود حديث کوم چي هغه په سند د عن نافع عن ابن عمر

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في المساجد ٤ (٧٤٦) . (تحفة الأشراف : ٧٦٦٠)

[2] ـ سنن ابن ماجه في المساجد ٤ (٧٤٦) . (تحفة الأشراف : ٧٦٦٠)

عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي دليث بن سعد دحديث نه زيات صحيح دي او بعضي محدثينو دعبدالله بن عمرو او عمري تضعيف کړي دي چي يو په هغوئ کي يحي بن سعيد القطان هم دي.

****************

## ١٤٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ وَأَعْطَانِ الإِبِلِ

### دګډو چيلو شپول او داوښا نو ترلو په ځاي کي دمونځ کولو بيان

٣٤٨_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلُّوا فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ وَلَا تُصَلُّوا فِي أَعْطَانِ الإِبِلِ". ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچيلو اودرولو په ځايونو کي مونځ کوئ او داوښانو ترلو په ځايونو کي مونځ مه کوئ.

**تخريج** : تفرد به المؤلف، (تحفة الأشراف : ١٣٥٦٤) . وانظر مسند احمد (٢ في ٢٥١، ٢٩١، ٥٠٨)

****************

٣٤٩_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي حَصِينٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهِ أَوْ بِنَحْوِهِ، قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَالْبَرَاءِ، وَسَبْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ الْجُهَنِيِّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَلَيْهِ الْعَمَلُ عِنْدَ أَصْحَابِنَا، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق وَحَدِيثُ أَبِي حَصِينٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَرَوَاهُ إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي حَصِينٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مَوْقُوفًا وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَاسْمُ أَبِي حَصِينٍ: عُثْمَانُ بْنُ عَاصِمٍ الأَسَدِيُّ. ([2])

**ترجمه** : په دي سند باندي هم دماقبل حديث هم معني روايت مروي دي.

---

[1] _ تفرد به المؤلف، (تحفة الأشراف : ١٣٥٦٤) . وانظر مسند احمد (٢/ ٢٥١، ٢٩١، ٥٠٨)

[2] _ تفرد به المؤلف، (تحفة الأشراف : ١٣٥٦٤) . وانظر مسند احمد (٢ في ٢٥١، ٢٩١، ٥٠٨)

امام ترمذي وائي دابوهريره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او زموږ دعلماؤ په نزد په همدې باندې عمل دی امام احمد او اسحاق بن راهويه هم په دې باندې قول کړي دی، او دابوحصين حديث کوم چي هغه په سند دابوصالح عن ابي هريره عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دی غريب دی دا روايت اسرائيل په سند د ابي حصين عن ابي صالح عن ابي هريره موقوفا نقل کړي دی او مرفوع کړي يې نه دی، دې باب کې دجابر بن سمره، براء، صبره بن معبد، عبدالله بن مغفل، ابن عمر، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

٣٥٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ الضُّبَعِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الغَنَمِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو التَّيَّاحِ الضُّبَعِيُّ اسْمُهُ: يَزِيدُ بْنُ حُمَيْدٍ.

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دګډو چيلو اودرولو په ځايونو کې مونځ کولو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دی.

***************

## ١٤٨ـ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ عَلَى الدَّابَّةِ حَيْثُمَا تَوَجَّهَتْ بِهِ

**په سورلۍ باندې دمونځ کولو دجواز بيان اګر که هر طرف ته يې مخه وي**

٣٥١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، وَيَحْيَى بْنُ آدَمَ، قَالاَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَاجَةٍ، فَجِئْتُ وَهُوَ "يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ نَحْوَ المَشْرِقِ وَالسُّجُودُ أَخْفَضُ مِنَ الرُّكُوعِ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ جَابِرٍ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ العِلْمِ، لاَ نَعْلَمُ بَيْنَهُمْ اخْتِلاَفًا، لاَ يَرَوْنَ بَأْسًا أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ عَلَى رَاحِلَتِهِ تَطَوُّعًا حَيْثُ مَا كَانَ وَجْهُهُ إِلَى القِبْلَةِ أَوْ غَيْرِهَا. [1]

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٧٧ (١٢٢٧)، وراجع أيضا: صحيح مسلم في المساجد ٧ (٥٤٠)، سنن النسائي في السهو ٢ (١١٩٠)، سنن ابن ماجه في الإقامة ٥٩ (١٠١٨)، (تحفة الأشراف: ٢٧٥٠)، مسند احمد (٣ في ٣٣٣)

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه په يو ضرورت پسي اوليږلم ما چي ضرورت پوره کړو او واپس راغلم نو اومي ليدل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په سورلۍ باندي مشرق طرف ته مخامخ مونځ کوي او سجده يې درکوع نه زياته ټيټه وه.

امام ترمذي وائي دجابر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، دا حديث په نورو سندونو هم دجابر نه مروي دي، او په دي باب کي د انس، ابن عمر ابو سعيد ، عامر بن ربيعه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي باندي داکثرو اهل علمو عمل دي په دي کي هيڅ اختلاف نه دي کړي دوئ به په سورلۍ باندي په نفلي مونځ کي څه حرج نه ګڼړلو اګر که مخ به يې هر طرف ته وو.

**تشريح** : دمذکوره روايت نه فقهاؤ دا استدلال کړي دي او دا مسئله يې ثابته کړي ده چي نفلي مونځ په سورلۍ مطلقا جائز دي برابره خبره ده چي قبلي ته مخامخ وي او کنه وي رکوع او سجدي به په اشاره باندي کوي البته په فرضي مونځونو کي قبلي ته مخامخ کيدل ضروري دي که څوک په داسي سورلۍ سور وي چرته چي قبلي ته مخامخ کيدي شي او دا کس مخامخ اودريږي نو مونځ يې درست دي کنه نو جائز به نه وي.

***************

## ١٤٩ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةِ إِلَى الرَّاحِلَةِ

## خپلي سورلۍ ته مخامخ دمونځ کولو بيان

٣٥٢ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى إِلَى بَعِيرِهِ أَوْ رَاحِلَتِهِ وَكَانَ يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ حَيْثُ مَا تَوَجَّهَتْ بِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا يَرَوْنَ بِالصَّلَاةِ إِلَى الْبَعِيرِ بَأْسًا أَنْ يَسْتَتِرَ بِهِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم خپل اوبن يا خپلي سورلۍ ته مخامخ اودريدو او مونځ يې اوکړو او همدا رنګي هغه به پخپله سورلۍ باندي دپاسه مونځ کولو برابره خبره ده چي مخ به يې هر طرف ته وو.

[1] ـ صحيح مسلم في الصلاة ٣٤ (٥٠٢) ، سنن ابي داود في الصلاة ١٠٣ (٦٩٢) ، (تحفة الأشراف : ٨٠٤٩) ، سنن الدارمي في الصلاة ١٢٦ (١٤٥٢) ، وراجع إيضا: صحيح البخاري في الصلاة ٥٠ (٤٣٠)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په همدي باندي بعضي اهل علمو قول کړي دي چي داوبن نه ستره جوړول او بيا هغي ته مخامخ په مونځ اودريدلو کي هيڅ حرج نشته.

***************

## ١٥٠_ باب مَا جَاءَ إِذَا حَضَرَ الْعَشَاءُ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَابْدَءُوا بِالْعَشَاءِ

**کله چي دماښام خوراک حاضر شي او دغه وخت کي جماعت قائم شي اول خوراک اوکړئ**

٣٥٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا حَضَرَ الْعَشَاءُ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَابْدَءُوا بِالْعَشَاءِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عُمَرَ، وَسَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَعَلَيْهِ الْعَمَلُ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَابْنُ عُمَرَ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ يَقُولَانِ: يَبْدَأُ بِالْعَشَاءِ وَإِنْ فَاتَتْهُ الصَّلَاةُ فِي الْجَمَاعَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْتُ الْجَارُودَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا يَقُولُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: يَبْدَأُ بِالْعَشَاءِ إِذَا كَانَ طَعَامًا يَخَافُ فَسَادَهُ وَالَّذِي ذَهَبَ إِلَيْهِ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ أَشْبَهُ بِالِاتِّبَاعِ، وَإِنَّمَا أَرَادُوا أَنْ لَا يَقُومَ الرَّجُلُ إِلَى الصَّلَاةِ وَقَلْبُهُ مَشْغُولٌ بِسَبَبِ شَيْءٍ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: لَا نَقُومُ إِلَى الصَّلَاةِ وَفِي أَنْفُسِنَا شَيْءٌ. ([1])

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر کله چي دماښام خوراک حاضر شي او دغه وخت کي مونځ اودريږي نو اول خوراک اوکړئ.

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د عائشه، ابن عمر، سلمه بن اکوع، او ام سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي ، او په صحابه کرامو کي په اهل علمو په دي باندي عمل دي چي ابوبکر، عمر، او ابن عمر رضي الله عنهم هم په دوئ کي شامل دي او همدا قول دامام احمد او اسحاق بن راهويه هم دي دوئ وائي اول دي خوراک اوکړي اګر که جماعت ورنه فوت کيږي، ددي حديث باره کي علماء وائي چي داسي وخت کي به انسان اول خوراک کوي مګر په هغه وخت کي کله چي دخوراک دخرابيدو خطره وي

[1] ـ صحيح البخارى في الأذان ٤٢ (٦٧٢) . الأطعمة ٥٨ (٥٤٦٣) . و مسلم في المساجد ٦ (٥٥٧) . سنن النسائي في الإمامة ٥١ (٨٥٣) . و ابن ماجه في الإقامة ٣٤ (٩٣٣) . (تحفة الأشراف : ١٤٨٦) . مسند احمد (٣ في ١٠٠، ١١٠، ١٦١، ٢٣١، ٢٣٨، ٢٤٩) . سنن الدارمي في الصلاة ٥٨

ليکن کوم قول ته چي صحابه کرامو وغیره کي بعضو اهل علمو ذهاب کړي دي هغه د اتباع زيات لائق دي ددوئ مقصود دادي چي يو سړي دي په داسي وخت کي په مونځ نه اودريږي چي زړه يې په بل څيز کي مشغول وي او دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي مونږ به هغه وخته پوري په مونځ نه اودريدو څو پوري چي به زمونږ زړونه په بل څيز کي مشغول وو

***************

٣٥٤ـ وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "إِذَا وُضِعَ الْعَشَاءُ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَابْدَءُوا بِالْعَشَاءِ" قَالَ: وَتَعَشَّى ابْنُ عُمَرَ وَهُوَ يَسْمَعُ قِرَاءَةَ الْإِمَامِ. قَالَ: حَدَّثَنَا بِذَلِكَ هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي دمابنام خوراك کيخودلي شي او دي وخت کي مونځ اودريږي نو اول خوراك اوکړئ ابن عمر رضي الله عنهما به دمابنام خوراك کولو او دامام قرائت به يې اوريدلو.

***************

## ١٥١ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةِ عِنْدَ النُّعَاسِ

## دپرکالي په وخت کي دمونځ کولو بيان

٣٥٥ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْكِلَابِيُّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ يُصَلِّي فَلْيَرْقُدْ حَتَّى يَذْهَبَ عَنْهُ النَّوْمُ، فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا صَلَّى وَهُوَ يَنْعَسُ لَعَلَّهُ يَذْهَبُ يَسْتَغْفِرُ فَيَسُبُّ نَفْسَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** : دام المومنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاته چي په مانځه کي خوب ورشي نو پکاره ده چي دومره اوده شي چي

---

[1] ـ صحيح البخاري في الأذان ٤٢ (٦٧٣، ٦٧٤) . صحيح مسلم في المساجد ٦ (٥٥٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٣٤ (٩٣٥) . (تحفة الأشراف : ٧٨٢٥) . كذا (٨٤١٢) . مسند احمد (٢ في ١٠٣)

[2] ـ صحيح البخاري في الوضوء ٥٣ (٢١٢) . صحيح مسلم في المسافرين ٣١ (٧٨٦) . سنن ابي داود في الصلاة ٣٠٨ (١٣١٠) . سنن النسائي في الطهارة ١١٧ (١٦٢) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨٤ (١٣٨٠) . (تحفة الأشراف : ١٧٠٨٤) . مسند احمد (٦ في ٥٦، ٢٠٢، ٢٠٥، ٢٥٩) . سنن الدارمي في الصلاة ١٠٧ (١٤٢٢)

خوب تري لاړ شي، ځکه چي ځاته چي خوب ورځي او مونځ کوي نو ممکنه ده چي دی ځان ته دعا غواړي او دخولي نه يې بده دعا(خيري) اوځي.
امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د انس او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.
**لغات:** نعس: نعس نعسا دفتح او نصر نه په معني دپرکالۍ کولو.
فيسب، سبّ سبًا دنصر نه په معني کنځل کولو دي.
**تشريح:** ((إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ يُصَلِّي فَلْيَرْقُدْ)) يعني کله چي په مونځ کې درباندي پرکالي راشي نو اوده شه، مطلب دادي چي په داسي حالت کې زړه او دماغ حاضر نه وي او ژبه هم ورسره ملګرتيا نه کوي نو که دي څه وايي نو په ژبه به يوڅه اووايي او په زړه کې به يي بل څه وي. ((لا يَدْرِي لَعَلَّهُ يَذْهَبُ يَسْتَغْفِرُ فَيَسُبُّ نَفْسَهُ)) يعني هسي نه چي داستغفار کولو په ځاي ځان ته کنزل ونکړي، مثلا د اللهم اغفرلي په ځاي اللهم اعفرلي ونه وايي.او تبا نشي.
مطلب دادي چي په مونځ کي خشوع او خضوع څومره زياته وي نو دومره به ددي اجر زيات وي او دقبوليت زيات لاتق به وي.
نودخوب حالت دخشوع او خضوع نه مانع دي او صرف مانع ندي بلکه داسي هم کيږي چي سړي يوڅه ونيل غواړي او اووايي بل څه لکه چي د استغفار په ځاي ځان ته خيري وکړي.

*****************

## ١٥٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ زَارَ قَوْمًا لاَ يُصَلِّي بِهِمْ

### ميلمه دي داجازت نه بغير امامت نه کوي

٣٥٦_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ أَبَانَ بْنِ يَزِيدَ الْعَطَّارِ، عَنْ بُدَيْلِ بْنِ مَيْسَرَةَ الْعُقَيْلِيِّ، عَنْ أَبِي عَطِيَّةَ، عن رَجُلٍ مِنْهُمْ قَالَ: كَانَ مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ يَأْتِينَا فِي مُصَلَّانَا يَتَحَدَّثُ، فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ يَوْمًا، فَقُلْنَا لَهُ: تَقَدَّمْ. فَقَالَ: لِيَتَقَدَّمْ بَعْضُكُمْ حَتَّى أُحَدِّثَكُمْ لِمَ لَا أَتَقَدَّمُ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ زَارَ قَوْمًا فَلَا يَؤُمَّهُمْ وَلْيَؤُمَّهُمْ رَجُلٌ مِنْهُمْ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَغَيْرِهِمْ قَالُوا: صَاحِبُ المَنْزِلِ أَحَقُّ بِالإِمَامَةِ مِنَ الزَّائِرِ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: إِذَا أَذِنَ لَهُ فَلَا بَأْسَ أَنْ يُصَلِّيَ بِهِ. وقَالَ إِسْحَاق: بِحَدِيثِ مَالِكِ بْنِ

الْحُوَيْرِثِ، وَشَدَّدَ فِي أَنْ لَا يُصَلِّيَ أَحَدٌ بِصَاحِبِ الْمَنْزِلِ، وَإِنْ أَذِنَ لَهُ صَاحِبُ الْمَنْزِلِ، قَالَ: وَكَذٰلِكَ فِي الْمَسْجِدِ لَا يُصَلِّي بِهِمْ فِي الْمَسْجِدِ إِذَا زَارَهُمْ يَقُولُ: لِيُصَلِّ بِهِمْ رَجُلٌ مِنْهُمْ. (1)

**ترجمه** : دابو عطيه عقيلي بيان دي فرمائي چي مالك بن الحويرث رضي الله عنه به زمونږ مسجد ته تلو راتلو او احاديث به يي بيانول يوه ورځ ددرس يا تقرير په دوران كي دمونږ وخت راغي چنانچه هم دلته ورباندي مونږ كول ضروري شو نو خلقو ورته دامامت درخواست اوكړو مالك بن حويرث اوفرمائيل پكار خو داده چي په تاسو كي يو كس مخكي شي او زه ولي امامت نه كوم ددي به درته وجه بيان كړم او بيا يي دا حديث بيان كړو مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يي چي كله يو كس ديو قوم دملاقات دپاره لاړ شي يعني هلته ميلمه شي نو هلته دي دهغوئ امامت نه كوي او پكار دا چي په هغوئ كي يو كس امامت وركړي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په صحابه كرامو وغيره كي داكثرواهل علمو په دي باندي عمل دي هغوئ وائي چي كوربه دميلمه په نسبت دامامت كولوزيات حقدار دي، دبعضي اهل علموقول دي چي كله ميلمه ته اجازت وركړي شي نو دده په اجازت بيا په امامت وركولو كي هيڅ قباحت نشته، اسحاق بن راهوي دمالك بن حويرث دحديث مطابق قول كړي دي چي په دي مسئله كي يي سختي كړي ده چي ميلمه به كوربه ته امامت نه وركوي اگر كه كوربه ورته اجازت هم وركړي وي دا رنګي داسحاق قول دي چي دا حكم درباندي دمسجد په باره كي هم دي چي كله يو كس ديوقوم دملاقات دپاره تلي وي نو په قوم كي دي يو كس خپل قوم ته امامت وركړي.(او ميلمه دي امامت نه وركوي)

**تشريح** : دلته دا اعتراض واردېږي چي كله قوم ميلمه ته اجازت وركړي نو بيا په امامت كي څه مانع پاتي شو؟ اجازت وركولو نه پس خو دميلمه دپاره امامت وركول جائز شول.

جواب: په كوم حديث كي چي اجازت استثناء راغلي ده مالك رضي الله عنه ته دغه حديث نه دي رسيدلي او دده په حديث كي استثناء نشته نو ځكه مالك دوئ ته امامت ورنكړو، او ددينه بهتر جواب دادي چي مالك بن الحويرث رضي الله عنه غوښتل چي خلق ددي واقعي په ذريعه حديث ياد كړي كه مالك مونږ وركړي وي نو ددي حديث ديادولو دپاره به كومه خاص واقعه

---

1 ـ سنن ابي داود في الصلاة ٦٦ (٥٩٦)، سنن النسائي في الإمامة ٩ (٧٨٨)، مسند احمد (٣ في ٤٣٦). (تحفة الأشراف: ١١١٨٦)

نه وه پس دا حديث به بعضو ته ياد وو او دبعضو نه به هير شوي وو او دامامت نه دانكار نه پس اوس به دا هر چاته ياد وي.

## دابو عطيه رضي الله عنه حالات:

دده په نوم کې اختلاف دی دبعضو په نزد مالك بن عامر دی او دبعضو په نزد مالك بن ابي عامر دی یا مالك بن عوف دی مشهور تابعي دی او همدان قبیلي سره يي تعلق دی چې عموما دابن مسعود او ابو موسي اشعري رضي الله عنه نه نقل دروايت كوي اسحاق او اعمش وغيره ثقه گنړلی دی په ۷۸هجري کې وفات شوی دی بخاري او مسلم او سنن والا ورنه نقل دروايت کړی دی.

***************

## ١٥٣_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يَخُصَّ الإِمَامُ نَفْسَهُ بِالدُّعَاءِ

### په دعا کي امام خپل ځان لره دخاص کولو دکراهت بیان

٣٥٧_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنِي حَبِيبُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي حَيٍّ الْمُؤَذِّنِ الْحِمْصِيِّ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ أَنْ يَنْظُرَ فِي جَوْفِ بَيْتِ امْرِئٍ حَتَّى يَسْتَأْذِنَ، فَإِنْ نَظَرَ فَقَدْ دَخَلَ، وَلَا يَؤُمَّ قَوْمًا فَيَخُصَّ نَفْسَهُ بِدَعْوَةٍ دُونَهُمْ، فَإِنْ فَعَلَ فَقَدْ خَانَهُمْ، وَلَا يَقُومُ إِلَى الصَّلَاةِ وَهُوَ حَقِنٌ" قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ثَوْبَانَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنِ السَّفْرِ بْنِ نُسَيْرٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَكَأَنَّ حَدِيثَ يَزِيدَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي حَيٍّ الْمُؤَذِّنِ، عَنْ ثَوْبَانَ فِي هَذَا أَجْوَدُ إِسْنَادًا وَأَشْهَرُ.[1]

**ترجمه**: دثوبان رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهیچا دپاره جائز نه دي چي دچا کور ته ورودانګي او اوګوري مګر چي اجازت يي خو پوري اخستلي نه وي او که چا دچا کور ته وکتل نو دا داسي ده لکه چي ورته داخل شي او دا رنګي يو کس دي يو قوم ته په داسي شان سره امامت نه ورکوي چي دوی پرېږدي او خپل ځان په دعا

[1] _ الطهارة ٢٢(٩٠). سنن ابن ماجه في الإمامة ٣١(٩٢٣). (تحفة الأشراف: ٢٠٨٩).

کي خاص کړي او که چا داسي اوکړل نو خيانت يي اوکړو او نه دي څوك په مونځ په داسي حال کي اودريږي چي وړوکي يا لوي اودس ماتي تېنګ کړي وي.
امام ترمذي وائي دثوبان رضي الله عنه حديث حسن دي ، دا حديث دمعاويه بن صالح نه هم مروي دي او معاويه دا په سند د سفر بن نسير عن يزيد بن شريح عن ابي امامة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، ديزيد بن شريح حديث د ابي حي المؤذن عن ثوبان سند په اعتبار عمده او مشهور دي، او په دي باب کي دابوهريره او ابوامامه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : وَلَا يَؤُمَّ قَوْمًا فَيَخُصَّ نَفْسَهُ بِدَعْوَةٍ دُونَهُمْ: دي باره کي امام ترمذي په ابواب الطهارت رقم الحديث: ۱۴۷ کي په ۱۱۱_بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبَوْلِ يُصِيبُ الأَرْضَ کي زيات واضح او تفصيلي او صريح الدلالت حديث د ابو هريره رضي الله عنه نه نقل کړی.دی دلته يي تنويرا للمقام نقل کوو:

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: دَخَلَ أَعْرَابِيٌّ الْمَسْجِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فَصَلَّى. فَلَمَّا فَرَغَ. قَالَ: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا وَلَا تَرْحَمْ مَعَنَا أَحَدًا. فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: "لَقَدْ تَحَجَّرْتَ وَاسِعًا". فَلَمْ يَلْبَثْ أَنْ بَالَ فِي الْمَسْجِدِ فَأَسْرَعَ إِلَيْهِ النَّاسُ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَهْرِيقُوا عَلَيْهِ سَجْلًا مِنْ مَاءٍ أَوْ دَلْوًا مِنْ مَاءٍ" ثُمَّ قَالَ: "إِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِينَ وَلَمْ تُبْعَثُوا مُعَسِّرِينَ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي يو اعرابي مسجد ته داخل شوم، او نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مسجد کي ناست وو ده مونځ اوکړو او چي کله يي مونځ پوره کړو نو ويي ونيل اي الله ته په ما باندي او په محمد (صلي الله عليه وسلم) باندي رحم اوکړي رسول الله صلي الله عليه وسلم اعرابي ته متوجه شو او ويي فرمائيل تا خو يو ډير فراخه څيز (رحمت الهي) راتنګ کړو او بيا يوه شيبه پس اعرابي په مسجد کي متيازي اوکړي خلقو په تيزئ سره ورمنډه کړل نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل يوه بوکه اوبه وربانديژ واړوئ او بيا يي اوفرمائيل تاسو خو اساني کونکي ليږلي شوي يئ نه چي سختي کونکي.

## دثوبان رضي الله عنه حالات

نوم ثوبان کنيه ابو عبدالله چي په يمن کي دمشهور خاندان حمير سره يي تعلق وو ثوبان يو غلام وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که خوښه دي وي خپل خاندان ته لاړ شه او که زمونږ سره دي اوسيدل خوښ وي نو اوسيږه ته به داهل بيتو نه شميرلی شي نو په دي بنا ثوبان په اهل بيتو کي شميرلو ته پخپل خاندان ترجيح ورکړه.

همیشه به یي درسول الله صلي الله علیه وسلم خدمت کولو او د رسول الله دفرمان سره به یي دخان نه زیات محبت کولو یو خل نبي کریم صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل هیځ کله به چاته لاس نه خوروي نو ددینه پس که به دده نه داس چابك هم اوغورځیدو نو پخپله به وریسي کوځیدو او اوچتولو به یي خو دچانه به یي سوال نه کولو (مسند احمد).

دنبي کریم صلي الله علیه وسلم دخدمت کولو په وجه یي پخپله بهترینه استفاده اوکړه په همدي وجه ابن عبدالبر لیکلي دي چي ثوبان دهغه دري کسانو نه دی چاچه احادیث محفوظ کړي دي او ددي اشاعت یي هم کړی دی (استیعاب) دمرویاتو شمیر یي ۱۲۷ دی.

***************

## ١٥٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ أَمَّ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ

### دیو داسي کس قوم ته امامت ورکول چي قوم یي نه خوښوي

٣٥٨_ حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى بْنُ وَاصِلِ بْنِ عَبْدِ الأَعْلَى الكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ القَاسِمِ الأَسَدِيُّ، عَنِ الفَضْلِ بْنِ دَلْهَمٍ، عَنِ الحَسَنِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلاَثَةً: رَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ، وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ، وَرَجُلٌ سَمِعَ حَيَّ عَلَى الفَلاَحِ ثُمَّ لَمْ يُجِبْ" قَالَ: وَفِي البَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَطَلْحَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو وَأَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ لاَ يَصِحُّ لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنِ الحَسَنِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَمُحَمَّدُ بْنُ القَاسِمِ تَكَلَّمَ فِيهِ، أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ وَضَعَّفَهُ وَلَيْسَ بِالحَافِظِ. وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ أَنْ يَؤُمَّ الرَّجُلُ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ. فَإِذَا كَانَ الإِمَامُ غَيْرَ ظَالِمٍ، فَإِنَّمَا الإِثْمُ عَلَى مَنْ كَرِهَهُ. وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ فِي هَذَا: إِذَا كَرِهَ وَاحِدٌ أَوِ اثْنَانِ أَوْ ثَلاَثَةٌ، فَلاَ بَأْسَ أَنْ يُصَلِّيَ بِهِمْ حَتَّى يَكْرَهَهُ أَكْثَرُ القَوْمِ. ([1])

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بیان دي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم په دري کسانولعنت فرمائیلي دي یو هغه کس دي چي خلقوته امام ورکوي او خلق یي نه خوښوي، دویمه هغه ښځه ده چي په داسي حال کي شپه تیره کړي چي خاوند ورنه راضي نه وي دریم هغه کس چي "حي علي الفلاح" واوري او ددي جواب ورنکړي (یعني جماعت ته حاضرنشي).

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٢٨)

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه دا حديث صحيح نه دي څکه چي په حقيقت کي دا حديث دحسن بصري نه بغير دکومي واسطي نه درسول الله نه مرسل مروي دي، دمحمد بن قاسم متعلق امام احمد بن حنبل کلام کړي دي او ضعيف يي ګرځولي دي څکه چي هغه حافظ نه وو، په دي باب کي دابن عباس ، طلحه، عبيدالله بن عمرو، او ابوامامه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دبعضي اهل علمو په نزدي دا کار مکروه دي چي يو سړي خلقو ته امامت ورکوي او خلق يي نه خوښوي مګر کله چي امام مجرم نه وي نو ګنهګار به هغه څوک وي څوک چي ده لره نه خوښوي امام احمد او اسحاق بن راهويه قول په دي باره کي دادي چي کله امام لره يو يا دوه کسان نه خوښوي نو په داسي امام پسي په مونځ کولو کي څه قباحت نشته، قباحت هغه وخت کي دي کله چي اکثريت ده لره نه خوښوي

***************

۳۵۹ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ ، عَنْ مَنْصُورٍ ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ ، عَنْ زِيَادِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الْمُصْطَلِقِ ، قَالَ: كَانَ يُقَالُ: " أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ اثْنَانِ، امْرَأَةٌ عَصَتْ زَوْجَهَا، وَإِمَامُ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ ". قَالَ هَنَّادٌ، قَالَ جَرِيرٌ، قَالَ: مَنْصُورٌ: فَسَأَلْنَا عَنْ أَمْرِ الْإِمَامِ، فَقِيلَ لَنَا: إِنَّمَا عَنَى بِهَذَا أَئِمَّةً ظَلَمَةً فَأَمَّا مَنْ أَقَامَ السُّنَّةَ فَإِنَّمَا الْإِثْمُ عَلَى مَنْ كَرِهَهُ. (١)

**ترجمه** : دعمرو بن حارث المصطلق بيان دي وئيلي کيدل به چي دقيامت په ورځ به په تولو خلقو کي دسخت عذاب والا دوه قسمه خلق وي، يو قسم هغه ښځي دي چي دخپلو خاوندانو نافرماني کوي او دويم قسم هغه امامان دي چاله چي قوم نه خوښوي منصور وائي چي مونږ په دي سلسله کي تپوس اوکړو نو مونږ ته اووئيلي شول چي ددينه مراد ظالمان امامان دي ليکن کوم امام چي سنت قائموي ګناه به په هغه چا وي څوک چي ده لره نه خوښوي

**دعمرو بن حارث رضي الله عنه حالات**

نوم عمرو دپلار نوم حارث بن ابي ضرار دی د خزاعه قبيلي سره تعلق لري او د ام المؤمنين جويريه رضي الله عنها ورور وو په اهل کوفه کي شميرلی شوی دی چي عموما ابو وائل شقيق بن سلمه او ابو اسحاق سبيعي ورنه نقل دروايت کوي

حافظ ابن حجر وائي چي دی صحابي دی صرف همدا روايت ورنه بخاري نقل کړی دی او يو

---

١ ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠٧١٣)

روايت يې په مسلم کې هم شته تو تل ورنه دوه روايات نقل شوي دي.

***************

٣٦٠- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ وَاقِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو غَالِبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا أُمَامَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلَاثَةٌ لَا تُجَاوِزُ صَلَاتُهُمْ آذَانَهُمْ: الْعَبْدُ الْآبِقُ حَتَّى يَرْجِعَ، وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ، وَإِمَامُ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو غَالِبٍ اسْمُهُ: حَزَوَّرٌ. [1]

**ترجمه** : دابو امامه رضي الله عنه نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي د دري قسمه کسانو مونځ د دوئ د غوږونو نه پورته نه خيژي يو تختيدونکي غلام دي ترڅو پوري چې خپل مالك ته واپس راغلي نه وي، دويم قسم هغه ښځي دي چې شپه تيره کړي او خاوند ورنه ناراض وي، دريم قسم هغه امامان دي چې قوم يې نه خوښوي.

امام ترمذي وائي دا حديث ددي سند په اعتبار حسن غريب دي.

" وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ "ددي حديث په تشريح کي علماؤ ليکلي دي چې دحيض حالت هم عذر نه دي ، ځکه چې په دي صورت کي که جماع نشي کولي نو لوازم دجماع خو کولي شي لکه بوسه اخستل غاړه ورکول وغيره ، دشرمګاه نه علاوه باقي تمام بدن نه فائده اخستلي شي.

فبات غضبان، يعني چې شپه مروره تيره کړي، علماء وايي چې دلته دشپې ذکر ځکه خاص شوي دي چې دا معامله اکثر دشپې کولي شي، پس که دورځي داسي حالت پيښ شي نو هم به دا ښځه دعتاب لائق وي.

حتي تصبح، په بل روايت کي رازي حتي ترجع، ددي حديث نه بعضي علماؤ استدلال کړي دي چې په شريعت کي دخاوند څومره اهميت دي چې دده دجذباتو دتسکين باره کي دالله فرشتي خفه کيږي نو که کومه ديني معامله وي او په دي خاوند خفه شي نو بيا به ددي څومره زيات اهميت وي.

په بل روايت کي راځي "ومن حق الزوج علي زوجته ان لاتصوم تطوعا الا باذنه وان فعلت لم يقبل".

امام نووي وايي چې خاوند هر وخت دښځي دفائدي اخستلو حق هر وخت لري نو که ښځه

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٩٣٢)

دخاوند داجازت نه بغير روجي نيسي نودخاوند د حق فوت كولو په وجه به دا روژه قبوله نوي شاهد ، شاهد په معني دحاضر دي ، او كه خاوند غائب وي نو بيا باك نشته.
ولا تاذن في بيته الا باذنه، يعني دخاوند داجازت نه بغير به څوك كور ته نه راولي، خو دميلمنه راتلل د دبينه مستثني دي. «روضه الصالحين»

*****************

## ١٥٥_ بَاب مَا جَاءَ إِذَا صَلَّى الإِمَامُ قَاعِدًا فَصَلُّوا قُعُودًا

### كله چي امام په ناسته مونځ وركوي نو مقتديان به هم ورسره په ناسته مونځ كوي

٣٦١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنْ ابْنِ شِهَابٍ. عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. أَنَّهُ قَالَ: خَرَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ فَرَسٍ. فَجُحِشَ. فَصَلَّى بِنَا قَاعِدًا فَصَلَّيْنَا مَعَهُ قُعُودًا ثُمَّ انْصَرَفَ. فَقَالَ: " إِنَّمَا الإِمَامُ أَوْ إِنَّمَا جُعِلَ الإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ. فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا. وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا. وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوا. وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ. فَقُولُوا: رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ. وَإِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوا. وَإِذَا صَلَّى قَاعِدًا فَصَلُّوا قُعُودًا أَجْمَعُونَ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَائِشَةَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ وَجَابِرٍ وَابْنِ عُمَرَ وَمُعَاوِيَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَنَسٍ. أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " خَرَّ عَنْ فَرَسٍ فَجُحِشَ ". حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ. مِنْهُمْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللهِ. وَأُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ. وَأَبُو هُرَيْرَةَ وَغَيْرُهُمْ. وَبِهَذَا الْحَدِيثِ يَقُولُ أَحْمَدُ. وَإِسْحَاقُ: وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا صَلَّى الإِمَامُ جَالِسًا لَمْ يُصَلِّ مَنْ خَلْفَهُ إِلَّا قِيَامًا. فَإِنْ صَلَّوْا قُعُودًا لَمْ تُجْزِهِمْ. وَهُوَ قَوْلُ: سفيان الثوري، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. وَابْنِ الْمُبَارَكِ. وَالشَّافِعِيِّ. (١)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنهم بيان دي چي يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلم داس نه راپريوتو او زخمي شو نو مونږ ته يي په ناسته مونځ راكړو او مونږ ورسره هم په ناسته مونځ اوكړو بيا چي كله مونږ ته راوګرځيدو نو ويي فرمائيل امام خو وي ددي دپاره يا امام جوړولي شي ددي دپاره چي اقتداء يي اوكړي شي كله چي امام الله اكبر اووائي نو تاسو ورسره هم الله

---

[1] _ صحيح البخارى في الصلاة ١٨ (٣٧٨) . والأذان ٥١ (٦٨٩) . و ٨٢ (٨٣٢) . و ١٢٨ (٨٠٥) . وتقصير الصلاة ١٧ (١١١٣) . صحيح مسلم في الصلاة ١٩ (٤١١) . سنن ابى داود في الصلاة ٦٩ (٦٠١) . سنن النسائى في الإمامة ١٦ (٧٩٥) . و ٤٠ (٨٣٢) . والتطبيق ٢٢ (١٠٦٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٤٤ (١٢٣٨) . (تحفة الأشراف : ١٥٢٣) . وكذا (١٥٢٩) . موطا امام مالك في الجماعة ٥ (١٦) . مسند احمد (٣/ ١١٠. ١٦٢)

اکبر اووائي او چي کله رکوع اوکړي نو تاسو هم رکوع کوئ او چي کله سر پورته کړي د رکوع نه نو تاسو هم ورسره سرونه پورته کړي او چي کله سمع الله لمن حمده اووائي نو تاسو "ربنا لك الحمد" اووائي او چي کله سجدي ته لاړ شي نو تاسو هم سجده اوکړئ او چي کله په ناسته مونځ کوي نو تاسو هم ورسره په ناسته مونځ اوکړئ.

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي د عائشه، ابوهريره، جابر، ابن عمر، او معاويه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او بعضي صحابه کرام لکه عبدالله، اسيد بن حضير، او ابوهريره رضي الله عنهم هم پکي شامل دي دي طرف ته ميلان کړي دي او همدا دامام احمد او اسحاق قول هم دي، مګر دبعضي اهل علمو قول دي چي کله امام په ناسته مونځ ورکوي نو مقتديان دي ورسره اودريږي او که دوئ هم ورسره په ناسته مونځ اوکړو نو دا مونځ به ددوئ نه کافي نه وي دا دسفيان ثوري، مالك بن انس، ابن مبارك او امام شافعي قول دي.

****************

## ١٥٦_باب مِنْهُ

### دامام د پيروئ متعلق يو بل باب

٣٦٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ بْنُ سَوَّارٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ نُعَيْمِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلْفَ أَبِي بَكْرٍ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ قَاعِدًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِذَا صَلَّى الإِمَامُ جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا" وَرُوِيَ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "خَرَجَ فِي مَرَضِهِ وَأَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي بِالنَّاسِ، فَصَلَّى إِلَى جَنْبِ أَبِي بَكْرٍ وَالنَّاسُ يَأْتَمُّونَ بِأَبِي بَكْرٍ، وَأَبُو بَكْرٍ يَأْتَمُّ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". وَرُوِيَ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى خَلْفَ أَبِي بَكْرٍ قَاعِدًا". وَرُوِيَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى خَلْفَ أَبِي بَكْرٍ وَهُوَ قَاعِدٌ".[1]

---

[1] _ سنن النسائي في الإمامة ٨ (٧٨٤)، وليس عنده "قاعداً" (تحفة الأشراف: ١٧٦١٣). مسند احمد (٦ في ١٥٩)

**ترجمه** : عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغه بيمارئ كي په كومه كي چي وفات شوي وو په ابوبكر رضي الله عنه پسي په ناسته مونځ كړي وو.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنهاحديث حسن صحيح غريب دي.

او دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي امام په ناسته مونځ وركوي نو تاسو هم په ناسته مونځ كوئ، او دام المؤمنين نه دا هم مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله بيمارئ كي اووتلو او ابوبكر رضي الله عنه خلقو ته مونځ وركولو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دابوبكررضي الله عنه په اړخ كي مونځ اوكړو خلقو به په ابوبكر پسي اقتداء كوله او ابوبكر به درسول الله صلي الله عليه وسلم اقتداء كوله، او دهغي نه دا هم مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوبكر رضي الله عنه پسي په ناسته مونځ كړي وو، او دانس رضي الله عنه نه هم مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوبكر رضي الله عنه پسي په ناسته مونځ كړي وو.

****************

٣٦٣_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ بْنُ سَوَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: " صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَرَضِهِ خَلْفَ أَبِي بَكْرٍ قَاعِدًا فِي ثَوْبٍ مُتَوَشِّحًا بِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَهَكَذَا رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَقَدْ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ. عَنْ ثَابِتٍ، وَمَنْ ذَكَرَ فِيهِ عَنْ ثَابِتٍ فَهُوَ أَصَحُّ.[1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله بيمارئ كي په ابوبكر رضي الله عنه پسي مونځ اوكړو چي په يوه جامه كي يي خان تاؤ كړي وو

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي دا رنګي دا روايت يحيي بن ايوب هم دحميد نه او حميد دثابت نه او ثابت دانس رضي الله عنه نه نقل كړي دي دارنګي داروايت نورو خلقو هم دحميد نه اوحميد دانس رضي الله عنه نه نقل كړي دي مګر هغوئ په دي كي دثابت واسطه نه ده ذكر كړي اوچاچه دثابت واسطه ذكر كړي ده هغه روايت زيات صحيح او قابل داعتماد دي.

****************

[1] .. تفرد المؤلف (تحفة الأشراف : ٢٩٧) ، وانظر مسند احمد (٣ في ١٥٩، ٢١٦، ٢٢٣)

## ١٥٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي الإِمَامِ يَنْهَضُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ نَاسِيًا

**امام چي د دوه رکعاتو نه پس د کيناستو په ځاي نيغ اودريږي او کيناستل ورنه هير شي**

٣٦٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: صَلَّى بِنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ، "فَنَهَضَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، فَسَبَّحَ بِهِ الْقَوْمُ وَسَبَّحَ بِهِمْ، فَلَمَّا صَلَّى بَقِيَّةَ صَلَاتِهِ سَلَّمَ، ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ وَهُوَ جَالِسٌ، ثُمَّ حَدَّثَهُمْ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ بِهِمْ مِثْلَ الَّذِي فَعَلَ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَسَعْدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُحَيْنَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي ابْنِ أَبِي لَيْلَى مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، قَالَ أَحْمَدُ: لَا يُحْتَجُّ بِحَدِيثِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، وقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل ابْنُ أَبِي لَيْلَى هُوَ صَدُوقٌ وَلَا أَرْوِي عَنْهُ، لِأَنَّهُ لَا يَدْرِي صَحِيحَ حَدِيثِهِ مِنْ سَقِيمِهِ، وَكُلُّ مَنْ كَانَ مِثْلَ هَذَا فَلَا أَرْوِي عَنْهُ شَيْئًا، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، رَوَاهُ سُفْيَانُ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُبَيْلٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، وَجَابِرٌ الْجُعْفِيُّ، قَدْ ضَعَّفَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، تَرَكَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ وَغَيْرُهُمَا، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا قَامَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مَضَى فِي صَلَاتِهِ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، مِنْهُمْ مَنْ رَأَى قَبْلَ التَّسْلِيمِ، وَمِنْهُمْ مَنْ رَأَى بَعْدَ التَّسْلِيمِ، وَمَنْ رَأَى قَبْلَ التَّسْلِيمِ فَحَدِيثُهُ أَصَحُّ، لِمَا رَوَى الزُّهْرِيُّ وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ ابْنِ بُحَيْنَةَ. (١)

**ترجمه** : دعامر بن شراحيل شعبي بيان دي فرمائي چي مونږ ته مغيره بن شعبه رضي الله عنه مونځ راکړو او په دوه رکعاتو کي د کيناستو په ځاي اودريدو خلقو ورته سبحان الله سبحان الله اووزونه ورکړل او هغه ته يي دا رايادول غوښتل چي کيني نو په سبحان الله ونيلو سره يي ورته اشاره اوکړه چي خلق اودريږي بيا چي کله هغوئ باقي مونځ پوره کړو او سلام يي اوګرځولو او په ناسته يي دوه سجدي دسهو اوکړي او بيا يي خلقو ته حديث بيان کړو چي

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة (١٠٣٦) . (تحفة الأشراف : ١١٥٠٢) . مسند احمد (٤ في ٢٤٧، ٢٥٣، ٢٥٤) . سنن الدارمي في الصلاة ١٧٦ (١٥٤٢)

رسول الله صلي الله عليه وسلم هم دخلقو سره داسي كړي وو لکه څرنګه چي هغوئ (مغيره) اوکړل.
امام ترمذي وائي دمغيره رضي الله عنه حديث په نورو سندونو هم مروي دي. بعضي اهل علمو په ابن ابي ليلي راوي دحفظ په اعتبار كلام كړي دي امام احمد بن حنبل وائي دابن ابي ليلي حديث قابل داستدلال دي، محمد بن اسماعيل بخاري وائي ابن ابي ليلي صدوق دي ليکن زه ورنه اخذ دروايت نه کوم ځکه چي دا نه معلوميږي دده کوم احاديث صحيح دي او کوم يې ضعيف دي او دهر چاچه دا حال وي زه ورنه نقل دروايت نه کوم. دا روايت دمغيره بن شعبه نه په نورو سندونو هم مروي دي، سفيان په سند دجابر عن المغيره بن شبيل عن قيس بن ابي حازم عن المغيرة بن شعبة سره نقل کړي دي او دجابر جعفي بعضي اهل علمو تضعيف کړي دي يحي بن سعيد او عبدالرحمن مهدي وغيره دده نه اخذ دروايت نه دي کړي. او په دي باب کي د عقبه بن عامر، سعد، او عبدالله بن بحينه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي چي يو سړي کله د دوه رکعاتوکولو نه پس په غلطئ دکيناستلو په ځاي اودريږي نو خپل مونځ دي جاري اوساتي او په اخر کي دي دوه سجدي دسهو اوکړي. دبعضي اهل علمو خيال دي چي سجدي به دسلام ګرځولو نه مخکي کوي او بعضي اهل علم وائي چي دسلام ګرځولو نه پس به سجدي کوي ځوك چي مخکي دسلام نه دسجدو کولو قائل دي دهغوئ روايت زيات صحيح دي ځکه چي دا روايت زهري او يحي بن سعيد انصاري دعبدالرحمن بن اعرج نه او هغه دعبدالله بن بحينه رضي الله عنه نه نقل کړي دي.

**تشريح**: دسلام نه مخکي او وروسته دسجده سهو متعلق دفقهاو مذاهب ثلاثه:

که په مانځګه کي د ځګه فعل زياتوالی وشی.ياکميګ.نوبه ده به دوه سجدي د سهو واجب وی.

.پاتي شوه داخبره چي دسلام نه پس به واجب وی.اوکه دسلام نه مخکي ، ددي په جواز کي د هيچا اختلاف نشته. د ټولو اتفاق دی چی سجده سهودسلام نه مخکي اوکړی.يا د سلام نه پس.دواړه جائزدی.ليکن په افضليت کي اختلاف دي.

(۱)داحنافو په نزد د سلام نه پس غوره ده.

(۲)اود امام شافعی په نزد دسلام نه مخکي غوره ده.

(۳)او امام مالك فرمائی. که د مونځ ګذار سهو دنقصان په وجه وی.نوسجده سهو به دسلام نه مخکي کوی.اوکه د زياتوالی په وجه وی.نودسلام نه پس به سجده سهو کوی

**دامام شافعی دليل** دادي چی نبی کريمﷺسجده سهودسلام نه مخکي کړي ده.لکه چی په صحاح سته کي دعبدالله بن مالك(رضي الله عنه) حديث دي.دبخاری الفاظ دی دی .

(ان النبي كريم صلي الله عليه وسلم صلى الظهر فقام فى الركعتين الا وليين ولم يجلس فقام الناس معه حتى إذا قضى الصلوة و انتظر الناس تسليمه كبر و هو جالس فسجد سجدتين قبل أن يسلم).

يعني نبى كريم ﷺ د ماسپخين مونځ كولو او په مخكنو دوو ركعتوكي بغير د قعدى كولو پاڅيدلو. هغوى ﷺ سره خلق هم پورته كيدل تردى چى كله مونځ ختميدو ته نزدى شو اوخلقو؛ رسول پاك صلي الله عليه وسلم دسلام اؤولو انتظار كولو

نورسول پاك صلي الله عليه وسلم په ناسته ناسته تكبير اووئيلو. اود سلام اؤولونه مخكي ئيگ دوه سجدي اوكوئيگ. د دى حديث نه معلومه شوه چى سجده سهو قبل السلام ده

**داحنافودلائل:** اول دليل درسول پاك صلي الله عليه وسلم قول:

(١) (لكل سهو سجدتان بعد السلام) ديگ. (ابوداوٗد ،ابن ماجه)

(٢)دويم دليل حديث فعلى ديگ چى رسول پاك صلي الله عليه وسلم دسلام نه پس دوه سجدى كؤى دى. صاحب دهدايه وائى چى دوه فعلى حديثونه متعارض شى.نودا دواړه به پريخودى شى.اودرسول پاك صلي الله عليه وسلم په قول به عمل كولى شى.اودنبى كريم ﷺ قول دادي چى دسهو دوه سجدي دسلام نه پس دى.

(٣)داحنافو عقلى دليل دادي چى په اجماع سجده سهو نشى مكرر كيدى .اود سلام نه مخكي د سجده سهو كولو په صورت كي دتكرار امكان دي.په دى طريقه چى دسلام نه مخكي ئي سجده اوكړه. بياچى كله دسلام اړولو وخت راغي.نو د ده شك شو چى درى ركعته شوى دى اوكه څلور.په دى سوچ كي پروت وو.تردى چى په سلام كي تاخيراوشو.بيا ورياد شو چى څلور ركعته شوى دى نواوس دسلام دتاخيرد وجى په ده دوه سجدي د سهو واجب شوي نودا كس به دوباره سجده سهوكوى اوكه نه.نودوه صورتونه دى. كه ده دوباره سجده سهواونكړه.نوپه مونځ كي به داسى نقص باقى پاتيگ شى چى د هغى تلافى نه ده شوي.اوكه دوباره ئي سجده سهواوكړه.نوسجده سهو به مكررشى.حالانكه دا په اجماع سره غير مشروع ده.په دى وجه مناسب دى چى سجده سهو د سلام نه پس اوشى چى د ټولو سهوو تلافى اوشى.

**مسئله:** دسجده سهو نه مخكي دواړو طرف ته سلام واړوى اوكه يوطرف، په دى باره كي د هدايه دمصنف په نزد راجح دا دى چى دواړو طرفونو ته سلام واړوى.

(١) ددى قائل شمس الائمه سرخسى، صدرالاسلام اوفقيه ابوالليث دى.

(٢) بعضى فقهاء وائى چى د امام ابو حنيفه رحمه الله اود امام ابو يوسف په نزد هم داحكم دي.اودشيخ الاسلام خواهرزاده،علامه فخرالاسلام اودصاحب ايضاح په نزد راجح دادى چى صرف كس طرف ته سلام واړوى.

هدايه مصنف دليل دابيان کړي دي چې په احاديثوکي کوم خاي لفظ دسلام ذکر دي دهغی نه متعارف اومعهود سلام مراددیگ اومتعارف دواړو طرف ته سلام اړول دی یوطرف ته مراد نه دی ،په دی وجه دواړو طرف ته سلام اړول ضروری دی
(۳) د شیخ الاسلام خواهرزاده وغیره دلیل دادي چې دسلام دوه حکمونه دی یوخودقوم دپاره تحیه او دعا او بل قطع کول د احرام اودلته مونږ قطع کول مقصودنه دی نومعلومه شوه چې تحلیل مراددي اوپه تحلیل کي تکرار نه وی.په دی وجه دسلام دتکرار هیڅ ضرورت نشته بلکه یوطرف ته به کافی وی.

****************

٣٦٥ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنِ الْمَسْعُودِيِّ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ، قَالَ: صَلَّى بِنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ " فَلَمَّا صَلَّى رَكْعَتَيْنِ قَامَ وَلَمْ يَجْلِسْ فَسَبَّحَ بِهِ مَنْ خَلْفَهُ، فَأَشَارَ إِلَيْهِمْ أَنْ قُومُوا، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ سَلَّمَ وَسَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ وَسَلَّمَ. وَقَالَ: هَكَذَا صَنَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : دزياد بن علاقه بيان دي چې مونږ ته مغيره بن شعبه رضي الله عنه مونځ راکړو کله چې يي دوه رکعاتونه اوکړل نو په تشهد کي دکيناستو بغير اودريدو څوك چې وروستو ولاړ وو هغوی سبحان الله اوازونه شروع کړل نو مغيره ورته اشاره اوکړه چې تاسو هم اودريږئ بيا چې کله هغه دمونځ نه فارغ شو نو سلام يي اوګرځولو او دوه سجدي دسهو يي اوکړي او بيا يي سلام اوګرځولو او بيا يي اووئيل همداسي رسول الله صلي الله عليه وسلم هم کړي وو
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دا حديث دمغيره بن شعبه نه په نورو سندونو هم مروي دي.

****************

## ١٥٨ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي مِقْدَارِ الْقُعُودِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ

**په اولنو دوه رکعاتونوکي په تشهد کي دکيناستلو دمقدار بيان**

---

[1] ـ انظر ما قبله (تحفة الأشراف : ١١٥٠)

٣٦٦ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ هُوَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنَا سَعْدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الأُولَيَيْنِ كَأَنَّهُ عَلَى الرَّضْفِ". قَالَ شُعْبَةُ: ثُمَّ حَرَّكَ سَعْدٌ شَفَتَيْهِ بِشَيْءٍ، فَأَقُولُ: حَتَّى يَقُومَ، فَيَقُولُ حَتَّى يَقُومَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، إِلَّا أَنَّ أَبَا عُبَيْدَةَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِيهِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ يَخْتَارُونَ أَنْ لَا يُطِيلَ الرَّجُلُ القُعُودَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الأُولَيَيْنِ وَلَا يَزِيدَ عَلَى التَّشَهُّدِ شَيْئًا، وَقَالُوا: إِنْ زَادَ عَلَى التَّشَهُّدِ فَعَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ، هَكَذَا رُوِيَ عَنِ الشَّعْبِيِّ وَغَيْرِهِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم په اولنو دوه ركعاتونو كيناستلو نو داسي به ښكاريدلو لكه چي هغه په ګرم كاڼړي ناست وي شعبه وائي چي بيا سعد خپلو دواړو شونډو ته په څه خبره حركت وركړو نو ما اووئيل تردي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به اودريدو؟نو هغوئ اووئيل تردي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به اودريدو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي مګر دابوعبيده سماع دخپل پلار نه ثابت نه ده داهل علمو په دي باندي عمل دي او هغوئ دا قول اختياركړي دي چي په اولنو دوه ركعاتونو كي قعده اوبږدول پكار نه دي او نه دتشهد نه زيات څه لوستل پكار دي دوئ وائي كه چا دتشهد نه زيات كلمات اولوستل نو سجده سهو به ورباندي لازميږي دشعبي وغيره نه هم داسي مروي دي.

******************

## ١٥٩ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الإِشَارَةِ فِي الصَّلَاةِ

### په مولځ كي داشاري كولو بيان

٣٦٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الأَشَجِّ، عَنْ نَابِلٍ صَاحِبِ العَبَاءِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ صُهَيْبٍ، قَالَ: " مَرَرْتُ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّي،

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ١٨٨(٩٩٥). سنن النسائي في التطبيق ١٠٥(١١٧٧). (تحفة الأشراف : ٩٦٠٩). مسند احمد (١/ ٣٨٦، ٤١٠، ٤٢٨، ٤٦٠)

فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَرَدَّ إِلَيَّ إِشَارَةً، وَقَالَ: لَا أَعْلَمُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: إِشَارَةً بِإِصْبَعِهِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ بِلَالٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَعَائِشَةَ. (1)

**ترجمه** : دابن عمر رضي الله عنهمانه مروي دي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خوا كي تير شوم او هغه په مونځ كي مشغول وو ما چي ورباندي سلام واچولو نو په اشاري سره يې جواب راكړو ابن عمر وائي زما خيال دي چي صهيب راوي اوونيل دګوتي په اشاري سره يې جواب راكړو.

امام ترمذي وائي دصهيب حديث حسن دي ، په دي باب كي دبلال، ابوهريره، عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

٣٦٨ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قُلْتُ لِبِلَالٍ: كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ حِينَ كَانُوا يُسَلِّمُونَ عَلَيْهِ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ؟ قَالَ: " كَانَ يُشِيرُ بِيَدِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَحَدِيثُ صُهَيْبٍ حَسَنٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ اللَّيْثِ، عَنْ بُكَيْرٍ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قُلْتُ لِبِلَالٍ: كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ حَيْثُ كَانُوا يُسَلِّمُونَ عَلَيْهِ فِي مَسْجِدِ بَنِي عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ؟ قَالَ: كَانَ يَرُدُّ إِشَارَةً، وَكِلَا الْحَدِيثَيْنِ عِنْدِي صَحِيحٌ، لِأَنَّ قِصَّةَ حَدِيثِ صُهَيْبٍ غَيْرُ قِصَّةِ حَدِيثِ بِلَالٍ، وَإِنْ كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَوَى عَنْهُمَا فَاحْتَمَلَ أَنْ يَكُونَ سَمِعَ مِنْهُمَا جَمِيعًا. (2)

**ترجمه** : دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي دبلال رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو چي رسول الله به كله په مونځ كي وو نو خلقو به ورباندي سلام واچولو نو جواب به يې څنګه وركولو، بلال اوونيل دلاس په اشاره به يې جواب وركولو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او دصهيب حديث حسن دي مونږ يې صرف دليث په روايت پيژنو او هغه دبكير نه روايت كړي دي او دا دزيد بن اسلم نه مروي دي چي دابن عمر نه روايت كوي چي دبلال نه مي تپوس اوكړو نبي كريم صلي الله عليه وسلم به څنګه

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ١٧٠ (٩٢٥) ، سنن النسائي في السهو ٦ (١١٨٨) ، (تحفة الأشراف : ٤٩٦٦) ، مسند احمد (٢ في ٣٣٢) ، سنن الدارمي في الصلاة ٩٤ (١٤٠١)

[2] ـ سنن ابي داود في الصلاة ١٧٠ (٩٢٥) ، (تحفة الأشراف : ٢٠٣٨) ، مسند احمد (٦ في ١٢)

جواب ورکولو کله چي خلقو په مسجد بن عمرو بن عوف کي رسول الله ته سلام کړي وو؟ هغه په جواب کي اوونيل چي په اشاري سره به يي جواب ورکولو زما په نزد دواړه احاديث صحيح دي خکه چي دصهيب رضي الله عنه قصه دبلال دقصي نه علاوه ده اګر چي ابن عمر ددي دواړو نه نقل د روايت کړي دي ددي خبري احتمال شته چي ددواړو نه يي اوريدلي وي

***************

## ۱۶۰ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ التَّسْبِيحَ لِلرِّجَالِ وَالتَّصْفِيقَ لِلنِّسَاءِ

### په مونځ کي دسهو کيدو په حالت کي سړو دپاره سبحان الله ونيل پکار دي او دښځو دپاره لاس پړقول

۳۶۹ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "التَّسْبِيحُ لِلرِّجَالِ وَالتَّصْفِيقُ لِلنِّسَاءِ" قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ عَلِيٍّ وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عُمَرَ وقَالَ: عَلِيٌّ كُنْتُ إِذَا اسْتَأْذَنْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّي سَبَّحَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سړو لره پکار دي چي امام ته دتنبيه ورکولو دپاره سبحان الله اووائي او ښځو لره پکار دي چي لاس اوپړقوي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعلي، سهل بن سعد، جابر، ابوسعيد، ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، علي رضي الله عنه وائي کله چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه د دننه تللو دپاره اجازت غوښتلو او هغه به په مونځ کي مشغول وو نو سبحان الله به يي ونيل داهل علمو په دي باندي عمل دي او امام احمد او اسحاق بن راهويه هم په دي باندي قول کړي دي.

---

[1] ـ صحيح البخاري في العمل في الصلاة ٥ (١٢٠٣) . صحيح مسلم في الصلاة ٢٣ (٤٢٢) . والصلاة ١٤٣ (٩٣٩) . سنن النسائي في السهو ١٥ (١٢٠٨) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٥ (١٠٣٤) . (تحفة الأشراف : ١٢٥١٤) . مسند احمد (٢ في ٢٦١، ٣١٤، ٣٧٦، ٤٣٢، ٤٤٠، ٤٧٣، ٤٧٩، ٤٩٢، ٥٠٧) . سنن الدارمي في الصلاة ٩٥ (١٤٠٣)

**تشريح** : انما التصفيق للنساء، يعني لاس پرقول دښځو كار دي، د مقتديانو دپاره خان ته د امام متوجه كولو دپاره سبحان الله ويل پكار دي، لكه چي په پوتني روايت كښ دي التسبيح للرجال و التصفيق للنساء يعني دسړو دپاره سبحان ويل دي او لاس پرقول دښځو دپاره دي پورتني روايت امام ترمذي مختصر نقل كړى دى مگر بخاري چي د سهل بن سعد نه كوم روايت نقل كړى دى هغه زيات تفصيلي دي:

عن أَبِي العباس سهل بن سَعد الساعِدِيّ ﷺ : أَنَّ رَسُول الله ﷺ بَلَغَهُ أَنَّ بَنِي عَمرو بن عَوْفٍ كَانَ بَيْنَهُمْ شَرٌّ، فَخَرَجَ رسولُ الله ﷺ يُصْلِحُ بَيْنَهُمْ فِي أُنَاسٍ مَعَهُ، فَحُبِسَ رَسُول الله ﷺ وَحَانَتِ الصَّلاَةُ، فَجَاءَ بِلاَلٌ إِلَى أَبِي بكر رضي الله عنهما، فَقَالَ: يَا أَبَا بَكْرٍ، إِنَّ رَسُول الله ﷺ قَدْ حُبِسَ وَحَانَتِ الصَّلاَةُ فَهَلْ لَكَ أَنْ تَؤُمَّ النَّاس؟ قَالَ: نَعَمْ، إِنْ شِئْتَ، فَأَقَامَ بِلاَلٌ الصَّلاَةَ، وتَقَدَّمَ أَبُو بَكْرٍ فَكَبَّرَ وَكَبَّرَ النَّاسُ، وَجَاءَ رَسُول الله ﷺ يَمْشِي فِي الصُّفُوفِ حَتَّى قَامَ فِي الصَّفِّ، فَأَخَذَ النَّاسُ فِي التَّصْفِيقِ، وَكَانَ أَبُو بكرٍ ﷺ لاَ يَلْتَفِتُ فِي الصَّلاَةِ، فَلَمَّا أَكْثَرَ النَّاسُ فِي التَّصْفِيقِ الْتَفَتَ، فإِذَا رَسُول الله ﷺ، فَأَشَارَ إِلَيْه رسولُ الله ﷺ فَرَفَعَ أَبُو بَكْرٍ ﷺ يَدَهُ فَحَمِدَ اللهَ، وَرَجَعَ القَهْقَرَى وَرَاءهُ حَتَّى قَامَ فِي الصَّفِّ، فَتَقَدَّمَ رَسُول الله ﷺ، فَصَلَّى لِلنَّاسِ، فَلَمَّا فَرَغَ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، فَقَالَ: ((أَيُّهَا النَّاسُ، مَا لَكُمْ حِينَ نَابَكُمْ شَيْءٌ فِي الصَّلاَةِ أَخَذْتُمْ فِي التَّصفيقِ؟! إِنَّمَا التَّصفيق للنِّساء. مَنْ نَابَهُ شَيْءٌ فِي صَلاتِهِ فَلْيَقُلْ: سُبْحَانَ الله، فَإِنَّهُ لاَ يَسْمَعُهُ أحدٌ حِينَ يقُولُ: سُبْحَانَ الله، إلاَّ الْتَفَتَ. يَا أَبَا بَكْرٍ: مَا مَنَعَكَ أَنْ تُصَلِّي بالنَّاسِ حِينَ أَشَرْتُ إِلَيْكَ؟))، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: مَا كَانَ يَنْبَغِي لابْنِ أَبِي قُحَافَةَ أَنْ يُصَلِّي بالنَّاسِ بَيْنَ يَدَيْ رَسُول الله ﷺ. مُتَّفَقٌ عَلَيهِ.

دسهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اطلاع ملاؤ شوه چي په بني عوف كښ څه جهگړه راپيدا شوي ده رسول الله صلي الله عليه وسلم سره دځو ملگرو دصلح صفايئ دپاره تشريف يوړو، هلته معاملات اصلاح كولو كښ ناوخته شو او (دمازيگر) دمونځ وخت شو، دلته بلال رضي الله عنه ابوبكر صديق ته اوونيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم خو هلته پاتې شو او دمانځه وخت شو ايا تاسو به امامت اوكړئ؟ ابوبكر صديق رضي الله عنه اوفرمائيل كه تاسو غواړئ نو څه به مونځ وركړم نو بلال رضي الله عنه اقامت اوكړو او ابوبكر رضي الله عنه او نورو تكبير تحريمه اوكړو او مونځ يې شروع كړو. په دې كښ رسول الله صلي الله عليه وسلم تشريف راوړو او دخلقو مينځ كښ تير شو په اول صف كښ اودريدو (دى كتلو سره) خلقو (دصديق اكبر متوجه كولو دپاره) لاسونه پرقول شروع كړل، هغوئ چونكه مانځه كښ دمشغولتيا په وجه هيڅ يو طرف ته نه متوجه كيدل، په دې وجه يې

لاسونو پرقولو طرف ته توجه ورنکړه ليکن چي کله خلقو زيات لاسونه پرقول شروع کړل نو هغه متوجه شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم يې اوليدو رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپل ځايي دپاتي کيدلو او دامامت جاري ساتلو اشاره اوکړه ليکن ابوبکر رضي الله عنه لاس اوچت کړو او دالله پاك حمد يې بيان کړو او په شاراغی اول صف کې اودريدو، بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم وړاندي شو خلقو ته يې مونځ ورکړو کله چي دمونځ نه فارغ شو نو صحابه کرامو ته متوجه شو او ويې فرمائيل په تاسو څه شوي دي چي کله تاسو ته په مانځه کې څه خبر راپيښه شي نو تاسو لاسونه پرقول شروع کړئ ؟ لاسونه پرقول خو ښځو دپاره دي تاسو ته چي څه خبره راپيښه شي نو سبحان الله وايئ نو اوريدونکی به تاسو ته متوجه کيږي، او ای ابوبکر! کله چي ماتاته اشاره اوکړه نو تاته امامت جاري ساتلو کې څه مانع وو؟ هغه وخت ابوبکر صديق رضي الله عنه عرض اوکړو چي دابوقحافه دځوي داطاقت چرته شته چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم په موجودګئ کې خلقو ته مونځ ورکړي (بخاري ومسلم).

***************

## ١٦١_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ التَّثَاؤُبِ فِي الصَّلاَةِ

## په مونځ کي داسويلي کولو دکراهت بيان

٣٧٠_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " التَّثَاؤُبُ فِي الصَّلَاةِ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَجَدِّ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ التَّثَاؤُبَ فِي الصَّلَاةِ، قَالَ إِبْرَاهِيمُ: إِنِّي لَأَرُدُّ التَّثَاؤُبَ بِالتَّنَحْنُحِ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په مونځ کي اسويلي راتلل دشيطان دطرفه وي اوپه تاسو کي چي چا له اسويلي راشي نوچه خومره پوري ممکن وي دا دي بند کړي.

---

1 _ صحيح البخارى في بدء الخلق ١١ (٣٢٨٩) ، والأدب ١٢٥ (٦٢٢٣) ، و١٢٨ (٦٢٢٦) . صحيح مسلم في الزهد ٩ (٢٩٩٢) . (تحفة الأشراف : ١٣٩٦٢) ، وكذا (١٣٠١٩) . مسند احمد (٢ في ٢٦٥، ٣٩٧، ٤٢٨، ٥١٧) . ويأتي عند المؤلف في الأدب برقم: ٢٧٤٦)

امام ترمذي وائي دابوهريره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابوسعيد خدري، او دعدي بن ثابت دنيکه (عبيد بن عازب) نه هم روايتونه وارد دي. بعضي اهل علمو په مونځ کي اسويلي کول مکروه ګڼړلي دي دابراهيم نخعي قول دي زه اسويلي په غاړي تازه کولو دفع کوم.

****************

## ١٦٢ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ صَلاَةَ الْقَاعِدِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ صَلاَةِ الْقَائِمِ

### په ناسته په مونځ کولوثواب په ولاړي دمونځ کولوپه نيمه دي

٣٧١ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ. حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلاَةِ الرَّجُلِ وَهُوَ قَاعِدٌ. فَقَالَ: "مَنْ صَلَّى قَائِمًا فَهُوَ أَفْضَلُ، وَمَنْ صَلَّى قَاعِدًا فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَائِمِ. وَمَنْ صَلَّى نَائِمًا فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَاعِدِ" قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَنَسٍ، وَالسَّائِبِ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دعمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دي چي مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه دهغه چا باره کي تپوس اوکړو څوک چي په ناسته مونځ کوي وبي فرمائيل څوک چي په ولاړه مونځ کوي هغه په ناستي دمونځ کولو نه افضل دي خکه چي ده ته به په ولاړي دمونځ کولو والا په نسبت نيم ثواب ملاويږي او څوک چي په ملاسته مونځ کوي ده ته به په ناسته دمونځ کونکي په نيمه ثواب ملاويږي.

امام ترمذي وائي دعمران بن حصين حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کي دعبدالله بن عمر ، انس، سائب، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

### دعمران بن حصين رضي الله عنه حالات

نوم عمران کنيه او ابو نجيد او دپلار نوم يي حصين وو دهجرت په ابتداء کي مسلمان شوى وو (مستدرك حاكم).

په بعضي غزواتو کي يي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يي ملګرتيا کړي وه او درسول

---

[1] ـ صحيح البخارى في تقصير الصلاة ١٧ (١١١٥) . و١٨ (١١١٦) . سنن ابى داود في الصلاة ١٧٩ (٩٥١) . سنن النسائي في قيام الليل ٢١ (١٦٦١) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢١ (١٢٣١) . (تحفة الأشراف : ١٠٨٣١) . مسند احمد (٢ في ٤٣٣، ٤٣٥، ٤٤٢، ٤٤٣)

الله په ټوله زندګۍ کې دی په مدینه کې پاتې شوی دی او د وفات نبوي نه پس یې مدینې ته راتلل پریخودل او ګوشه نشیني یې اختیار کړه، عمرفاروق رضي الله عنه په زمانه کې چې کله بصره اباده شوه نو هلته منتقل شوه او عمرفاروق رضي الله عنه ورته دتعلیم خدمت حواله کړو (طبقات ابن سعد).

عمر رضي الله عنه ددور نه پس چې کله جنګونه شروع شول نو ده ورنه ځان اوساتلو (الاصابه).

علامه ابن عبدالبر لیکلي دي كان من فضلاء الصحابة وفقهائهم (الاستيعاب).

دحسن بصري قول دی چې دعمران پشان بل بهترین سړی بصرې ته نه دی راغلی (استیعاب).

دده په زندګۍ کې یو څو خصوصیات وو مثلا احترام رسول داسوه رسول پابندي په عبادت کې ریاضت کول باوجود ددي چې دده ذات مرجع الخلائق وو څوك چې به په لاره تیریدل نو دده نه به یې مسائل معلومول.

وفات: داستخساء په مرض مریض شو او هم دې مرض په نتیجه کې په ۵۲هجري کې په بصره کې وفات شو (مستدرك).

مرویات: دده دمرویاتو شمیر ۱۳۰دي په احادیثو کې به یې ډیر زیات احتیاط کولو نو ځکه یې دمرویاتو شمیر کم دی چې ۸ دهغې نه متفق علیه دي په بخاري کې څوارلس او نهه په مسلم کې دي. (روضة الصالحين)

***************

۳۷۲ـ وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ طَهْمَانَ بِهَذَا الْإِسْنَادِ، إِلَّا أَنَّهُ يَقُولُ: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ الْمَرِيضِ، فَقَالَ: "صَلِّ قَائِمًا، فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا، فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ"[1]

**ترجمه**: دا حدیث دابراهیم بن طهمان په سند باندې هم مروي دی مګر دابراهیم سند داسې دی عمران بن حصین وائي چې ما درسول الله صلي الله علیه وسلم نه دمریض باره کې تپوس اوکړو نو ویې فرمائیل مونځ په ولاړه کوه او که ددې طاقت دې نه وي نو په ناسته یې کوه او که په ناسته دمونځ کولو طاقت دې نه وي نو په ملاسته یې کوه.

**تشریح**: په دې حدیث کې یو اشکال دی دا حدیث به خالي نه وي یا به دمفترض په باره کې وي، یا به دمتنفل په باره کې وي که دمفترض په باره کې وي نو د دوه حالاتو نه به خالي نه وي

[1] ـ صحيح البخاري في تقصير الصلاة ١٩ (١١١٧)، سنن ابي داود في الصلاة ١٧٩ (٩٥٢)، وانظر ما قبله (تحفة الأشراف:

يا به مفترض په قيام قادر وي او يا به نه وي که په قيام قادر وي نو بيا خو په ناسته او په ملاسته دده مونځ فاسد وي او که په قيام قادر نه وي نو بيا خو دده په اجر کي کمي نه راځي. او که دمتنفل په باره کي وي نو بيا به هم د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا به متنفل معذور وي او يا به نه وي که معذور وي خو په ثواب کي يې کمي نه کيږي او که غير معذور وي دده دپاره دجمهورو په نزد په ملاسته نفل کول جائز نه دي لهذا په دي صورت کي د "من صلاح نائما" څه مطلب دي.

جواب: دا حديث دمعذور متنفل په باره کي دي او متنفل معذور په دوه قسمه دي يو هغه چي په قيام قادر نه وي او دمشقت سره په قيام قادر وي په مذکوره حديث کي د دويم قسم بيان دي که په ناسته مونځ کوي نو دده دپاره اجازت دي او که په ولاړه يې کوي دا دده دپاره عزيمت دي که چري دي په عزيمت عمل کوي نو ده ته به زيات ثواب ملاؤ شي او که په رخصت عمل کوي نو دعزيمت په نيمه ثواب به ورته ملاؤ شي اگر چي دروغ سړي دثواب په مقابله کي به دا نيم ثواب وي غرض دا چي دلته نيم ثواب دعزيمت په مقابله کي دي نه چي دصحت مند په مقابله کي.

*****************

## ١٦٣_ باب ما جاء في الرجل يتطوعُ جالسا

### په ناسته دنفلي مونځ کولو بيان

٣٧٢_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ المُطَّلِبِ بْنِ أَبِي وَدَاعَةَ السَّهْمِيِّ، عَنْ حَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: " مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سُبْحَتِهِ قَاعِدًا حَتَّى كَانَ قَبْلَ وَفَاتِهِ بِعَامٍ، فَإِنَّهُ كَانَ يُصَلِّي فِي سُبْحَتِهِ قَاعِدًا، وَيَقْرَأُ بِالسُّورَةِ وَيُرَتِّلُهَا حَتَّى تَكُونَ أَطْوَلَ مِنْ أَطْوَلَ مِنْهَا ". وَفِي البَابِ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ حَفْصَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ " يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ جَالِسًا، فَإِذَا بَقِيَ مِنْ قِرَاءَتِهِ قَدْرُ ثَلَاثِينَ أَوْ أَرْبَعِينَ آيَةً قَامَ فَقَرَأَ، ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ صَنَعَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذَلِكَ ". وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ " يُصَلِّي قَاعِدًا، فَإِذَا

قَرَأَ وَهُوَ قَائِمٌ، رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَائِمٌ، وَإِذَا قَرَأَ وَهُوَ قَاعِدٌ، رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَاعِدٌ ". قَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: وَالعَمَلُ عَلَى كِلَا الحَدِيثَيْنِ كَأَنَّهُمَا رَأَيَا كِلَا الحَدِيثَيْنِ صَحِيحًا مَعْمُولًا بِهِمَا. (1)

**ترجمه** دام المؤمنين حفصه رضي الله عنها بيان دي فرمائي كله چي هيڅ كله مي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ناسته په مونځ كولو نه دي ليدلي تردي پوري چي وفات كيدو ته يې يو كال پاتي شو نو بيا يې په ناسته مونځ كول شروع كړو او چي سورت به يې لوستلو نو په وقفي وقفي سره به يې لوستلو تردي چي داوږد نه به اوږد شو

امام ترمذي وائي دحفصه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د ام سلمه، او انس بن مالك رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم باره كي مروي دي چي دشپي به يې په ناسته مونځ كولو او كله چي به د ديرش يا څلويښتو ايتونو په مقدار تلاوت پاتي شو نو بيا به اودريدو او قرائت به يې كولو او بيا به يې ركوع كوله او بيا به يې په دويم ركعات كي هم داسي كول او درسول الله باره كي دا هم مروي دي چي په ناسته به يې مونځ كولو او چي كله به يې په ولاړه قرائت كولو نو ركوع او سجده به يې هم په ولاړه كوله او چي كله به يې په ناسته قرائت كولونو ركوع اوسجده به يې هم په ناسته كول، داامام احمد او اسحاق بن راهويه قول دي چي دا دواړه روايتونه صحيح او معمول بها دي.

## دام المومنين حفصه رضي الله عنها حالات:

نوم حفصه دپلار نوم عمربن الخطاب چي ولادت يې دبعثت نبوي نه پنځه كاله مخكې شوی دی او پدغه وخت كې قريش دكعبي په تعمير كي مصروف وو اولنۍ نكاح يې د خنيس بن حذافه سره شوي وه.

دخپل مور او پلار او خاوند سره يوځاي مسلمانه شوي وه دخاوند سره يې هجرت هم كړی وو ليكن كله چي په غزوه بدر كې وفات شو نو ددينه پس يې درسول الله صلي الله عليه وسلم سره نكاح اوشوه مروي دي چي دوفات كيدو په وخت كې يې هم روژه وه.

دهجرت په ۴۵كال په مدينه كې وفات شو او دا د معاويه رضي الله عنه زمانه وه او مروان چي دمديني والي وو جنازه يې ورباندي اوكړه ددي ورور عبدالله بن عمر او دهغه ځامنو عاصم سالم عبدالله او حمزه قبر ته اوسپارلو دوفات په وخت كې يې خپل ورور عبدالله بن عمر رضي

1 - صحيح مسلم في المسافرين ١٦ (٧٣٣)، سنن النسائي في قيام الليل ١٩ (١٦٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٨١٣)، موطأ امام مالك في الجماعة ٧ (٢١)، مسند احمد (٦ في ٢٨٥)

الله عنه ته وصيت اوكړو چي دغابه مقام كوم جائيداد دى هغه به په طور دصدقي وقف كړي

***************

۲۷٤_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُصَلِّي جَالِسًا فَيَقْرَأُ وَهُوَ جَالِسٌ، فَإِذَا بَقِيَ مِنْ قِرَاءَتِهِ قَدْرُ مَا يَكُونُ ثَلَاثِينَ أَوْ أَرْبَعِينَ آيَةً، قَامَ فَقَرَأَ وَهُوَ قَائِمٌ ثُمَّ رَكَعَ وَسَجَدَ، ثُمَّ صَنَعَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذَلِكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په ناسته مونځ كولو نو قرائت به يي هم په ناسته كولو بيا چي به كله د ديرشو يا څلويښتو ايتونو په مقدار قرائت باقي پاتي شو نو بيا به اودريدو او دا به يي په ولاړه كول او بيا به يي ركوع كوله او بيا به يي سجده كوله او بيا به يي په دويم ركعات كي هم داسي كول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

۲۷٥_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ وَهُوَ: الْحَذَّاءُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَ: سَأَلْتُهَا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ تَطَوُّعِهِ، قَالَتْ: "كَانَ يُصَلِّي لَيْلًا طَوِيلًا قَائِمًا وَلَيْلًا طَوِيلًا قَاعِدًا، فَإِذَا قَرَأَ وَهُوَ قَائِمٌ رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَائِمٌ، وَإِذَا قَرَأَ وَهُوَ جَالِسٌ رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ جَالِسٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2]

**ترجمه** : دعبدالله بن شقيق بيان دي فرمائي چي دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مي رسول الله صلي الله عليه وسلم دنفلي مونځ باره كي تپوس اوكړو نو ويي فرمائيل رسول الله به دشپي راتلو پوري په ولاړه مونځو كولو او ترډير وخته پوري به يي په ناسته كولو كله چي به يي

---

[1] _ صحيح البخاری في تقصير الصلاة ۲۰ (۱۱۱۸، ۱۱۱۹) ، والتهجد ۱٦ (۱۱۳۸) ، صحيح مسلم في المسافرين ١٦ (٤٢١) ، سنن ابی داود في الصلاة ١٧٩ (٩٥٣، ٩٥٤) ، سنن النسائي في قيام الليل ١٨ (١٦٤٩) ، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٣٠ (١٢٢٧) ، (تحفة الأشراف: ١٧٧٠٩) ، موطا امام مالک في الجماعة ٧ (٢٣) ، مسند احمد (٦ في ١٧٨، ٢٣١)

[2] _ صحيح مسلم في المسافرين ١٦ (٧٣٠) ، سنن ابی داود في الصلاة ٢٩٠ (١٣٥١) ، سنن النسائي في قيام الليل ١٨ (١٦٤٧، ١٦٤٨) ، (تحفة الأشراف: ١٦٢٠٧) ، مسند احمد (٦ في ٣٠)

په ولاړه قرائت کولو نو درکوع او سجده به يي هم په ولاړه کوله او کله چي به يي په ناسته قرائت کولو نو رکوع او سجده به يي هم په ناسته کول.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ١٦٤_ باب مَا جَاءَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنِّي لأَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فِي الصَّلاَةِ فَأُخَفِّفُ

**دماشوما نو دژړا داوريدو وخت کي په مونځ کي درسول الله دا ختصار کولو بيان**

٣٧٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " وَاللَّهِ إِنِّي لَأَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ وَأَنَا فِي الصَّلَاةِ فَأُخَفِّفُ مَخَافَةَ أَنْ تُفْتَتَنَ أُمُّهُ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په الله قسم کله چي زه په مونځ کي يم او دغه وخت کي دماشومانو ژړا واورم نو ددي ويري په وجه مونځ مختصر کوم چي ددي ماشوم مور چرته په فتنه کي مبتلا نشي.
امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د ابوقتاده، ابو سعيد، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ١٦٥_ باب مَا جَاءَ لاَ تُقْبَلُ صَلاَةُ الْمَرْأَةِ إِلاَّ بِخِمَارٍ

**دپېروني يا لوي څادراغوستلو نه بغير دښځو دمونځ نه کيدو بيان**

٣٧٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ صَفِيَّةَ ابْنَةِ الْحَارِثِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ الْحَائِضِ إِلَّا بِخِمَارٍ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. وَقَوْلُهُ الْحَائِضِ يَعْنِي الْمَرْأَةَ الْبَالِغَ يَعْنِي إِذَا حَاضَتْ،

---

[1] _ تفرد به المؤلف. وراجع: صحيح البخاري في الأذان ٦٥ (٧٠٩، ٧١٠). صحيح مسلم في الصلاة ٣٧ (٤٧٠). سنن ابن ماجه في الإقامة ٤٩ (٩٨٩). (تحفة الأشراف: ٧٤٢)

قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ أَنَّ المَرْأَةَ إِذَا أَدْرَكَتْ فَصَلَّتْ وَشَيْءٌ مِنْ شَعْرِهَا مَكْشُوفٌ لَا تَجُوزُ صَلَاتُهَا، وَهُوَ قَوْلُ الشافعي، قَالَ: لَا تَجُوزُ صَلَاةُ المَرْأَةِ وَشَيْءٌ مِنْ جَسَدِهَا مَكْشُوفٌ. قَالَ الشافعي: وَقَدْ قِيلَ إِنْ كَانَ ظَهْرُ قَدَمَيْهَا مَكْشُوفًا فَصَلَاتُهَا جَائِزَةٌ.(1)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دبالغي ښځي مونځ بغير دڅادر اغوستلو نه نه کيږي.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن دي ، او په دي باب کي د عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي چي کله يوه ښځه بالغه شي او مونځ کوي او دويښتو څه حصه يي ښکاري نو ددي مونځ جائز نه دي او دا دامام شافعي قول هم دي، امام شافعي وائي ښځه به په داسي حال کي مونځ کوي چي دجسم هيڅ يوه حصه يي نه ښکاري، امام شافعي دا هم وائي، وئيلي شوي دي که چري ددي ددوارو خپو تلي ښکاري نو مونځ يي درست دي.

***************

## ١٦٦ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ

### په مونځ کي دسدل دکراهت بيان

٣٧٨ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عِسْلِ بْنِ سُفْيَانَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ" قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عِسْلِ بْنِ سُفْيَانَ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ، فَكَرِهَ بَعْضُهُمُ السَّدْلَ فِي الصَّلَاةِ وَقَالُوا: هَكَذَا تَصْنَعُ اليَهُودُ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّمَا كُرِهَ السَّدْلُ فِي الصَّلَاةِ إِذَا

---

(1) ـ سنن ابي داود في الصلاة ٨٥ (٦٤١) . سنن ابن ماجه في الطهارة ١٣٢ (٦٥٥) . (تحفة الأشراف : ١٧٨٤٦) . مسند احمد (٦ في ١٥٠، ٢١٨، ٢٥٩)

لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ، فَأَمَّا إِذَا سَدَلَ عَلَى الْقَمِيصِ فَلَا بَأْسَ. وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ وَكَرِهَ ابْنُ الْمُبَارَكِ السَّدْلَ فِي الصَّلَاةِ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مونځ کي دسدل کولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي مونږ دابوهريره حديث دعطاء په روايت دابوهريره نه يي مرفوعا نقل کړي دي دعسل بن سفيان په سند پيژنو ، په دي باب کي دابو جحيفه رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي، دسدل باره کي په اهل علمو کي اختلاف دي بعضي وائي چي سدل کول مکروه دي دوئ وائي چي سدل به يهوديانو کولو او دبعضو قول دي سدل په مونځ کي په هغه وخت کي مکروه وي کله چي په جسم باندي صرف يوه کپړه وئ او چي کله څوك دقميص دپاسه سدل کوي نو په دي کي څه قباحت نشته او همدادامام احمد قول دي ليکن ابن مبارك په مونځ کي سدل کول مطلقا مکروه ګنړلي دي.

**تشريح** : دسدل څلور تفسيرونه دي:

(۱) چي کپړه په سر راواړوي او دواړه پلوونه يي ازاد پريږدي.

(۲) سدل ديته وائي چي څادر په اوګو راواړوي او پلوونه يي کولاؤ پريږدي.

(۳) سدل ديته وائي چي يو کس خان په څادر کي په داسي شان تاؤ کړي چي لاسونه يي هم په څادر کي بند پاتي شي او بيا په داسي حال کي رکوع او سجده کوي.

(۴) دسدل نه مراد دادي چي پرتوګ يا لنګ دکعبين نه لاندي وي، داولنو تفسيرونو په اعتبار سدل په مونځ کي مکروه دي او دڅلورم تفسير په اعتبار دمونځ او غير مونځ په حالتونو کي ناجائز دي څکه چي په احاديثو کي دداسي سدل متعلق شديد ممانعت او وعيد مذکور دي.

## په مانځه کي د جامي راغوندول او د سدل کراهت

صاحب دکفايه وائي : سدل د جامي دا دې چې کله د سجدي کولو اراده اوکړی.نو دخپلي مخی يا شاه نه جامه راوچته کړی.اوس حاصل د مسئلی دا دې چی که جامه په زمکه باندي راوغورځيږی.نو دادی نه رانيسی.څکه چی په دی کي يو قسم تکبر دي.

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٨٥ (٦٤٣) . سنن النسائي في السهو ٧ (١١٩٢) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٣ (١٠٢٨) . (تحفة الأشراف : ١١٩٩٧) . سنن الدارمي في الصلاة ١١٠ (١٤٢٨)

دليل ددی قول دا دې چې چې امام ابوداود د ابوهريره(رضي الله عنه) نه روايت کړې دې:(أنه صلى الله عليه وسلم نهى عن السدل في الصلاة وأن يغطي الرجل فاه)

يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم په مانځه کي د سدل نه منع کړې ده.او ددی نه ئې منع کړې ده چی سړې خپله خوله پټه کړی.سدل دا دې چی خپله جامه په خپل سر او اوږو باندې راواچوی.اود هغی اړخونه دواړو طرفونو ته زوړند پريږدی.

صاحب د کفايه فرمائی چی سدل دی ته وائی چی څادر يا قباء په خپلو اوږو باندې واچوی.او خپل لاسونه په نستونړو کي نه پټوي.که د قميص دپاسه وی اوکه د قميص لاندې وی اوبه مونځ کي به نه خوراك کوی اونه څکاك کوی.خکه چی دا د مونځ په اعمالو کي نه دې.خوکه د غاښونو په مينځ کي څه څيز وی.اوبيا هغه تير کړی.نودده مونځ نه فاسديږی. خکه چی کوم څيز د غاښونو په مينځ کي وی.هغه د لاړو تابع دې.او د لاړو تيرول د مونځ فاسدونکی نه دې.نو ددی تابع به هم په تيرولو سره د مونځ فاسدونکی نه وی.(کفايه علي الهدايه).

***************

## ١٦٧_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ مَسْحِ الْحَصَى فِي الصَّلاَةِ

## په مونځ کي دخپلي مخي نه دکيټولري کولو دکراهت بيان

٣٧٩_ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلاَةِ فَلاَ يَمْسَحِ الْحَصَى فَإِنَّ الرَّحْمَةَ تُوَاجِهُهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ مُعَيْقِيبٍ، وَعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، وَحُذَيْفَةَ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّهُ كَرِهَ الْمَسْحَ فِي الصَّلاَةِ" وَقَالَ: إِنْ كُنْتَ لاَ بُدَّ فَاعِلاً فَمَرَّةً وَاحِدَةً، كَأَنَّهُ رُوِيَ عَنْهُ رُخْصَةٌ فِي الْمَرَّةِ الْوَاحِدَةِ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. (1)

---

1 _ صحيح البخاری في العمل في الصلاة ٨ (١٢٠٧) . صحيح مسلم في المساجد ١٢ (٥٤٦) . سنن ابي داود في الصلاة ١٧٥ (٩٤٦) . سنن النسائي في السهو ٨ (١١٩٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٢ (١٠٢٦) . (تحفة الأشراف : ١١٩٨٥) . مسند احمد (٢ في ٤٢٦) . و (٥ في ٤٢٥ . ٤٢٦) سنن الدارمي في الصلاة ١١٠ (١٤٢٧)

**ترجمه** : دابوذر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي څوك په مونځ اودريږي نو دخپلي مخي نه دي ګيتي نه لري كوي ځكه چي دغه وخت كي دالله رحمت ده ته مخامخ شوي وي.

امام ترمذي وائي دابوذر حديث حسن دي او په دي باب كي د معيقيب، علي، حذيفه، جابر بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي په مونځ كي به يي ګيتي لري كول نه خوښول ارشاد نبوي دي كه ګيتي لري كول ضروري وي نو يو ځل نيم جائز دي ګويا كي درسول الله نه يو ځل رخصت مروي دي او داهل علمو په دي قول عمل دي.

**تشريح** : مسلمانانو به داسلام په ابتدائي دور كي په زمكه دځه ځيز دغوړولو نه بغير مونځ كولو ځكه چي دوئ ته به داغوستلو دپاره جامي نه رسيدلي نو دغوړولو دپاره يي يا دجانماز دپاره به يي كپړه دكوم ځاي نه راوړي وه او دعربو زمكه كاړځنه وي سجده كول ورباندي ګران وو هغوئ به ددي دپاره ځاي اوارولو مګر كله كله به ورته داوارولو موقعه ملاؤ نشوه او كله كله به يي ديته خيال رانغلو نو په دي وجه دوئ ته په مونځ كي ديوځل نيم دپاره دسجدي كولو دپاره دځاي د اوارولو اجازت وركړي شو مګر بار بار دا كار كول مكروه ګڼړلي شوي دي همدا وجه ده چي ارشاد نبوي دي "په مونځ كي په كاڼړو لوبي مه كوئ ځكه چي دي وخت كي دالله رحمت تاسو ته متوجه وي".

****************

٣٨٠ـ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مُعَيْقِيبٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ مَسْحِ الْحَصَى فِي الصَّلاَةِ، فَقَالَ: "إِنْ كُنْتَ لاَ بُدَّ فَاعِلاً فَمَرَّةً وَاحِدَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

[1] ـ صحيح البخاري في العمل في الصلاة ٨ (١٢٠٧) . صحيح مسلم في المساجد ١٢ (٥٤٦) . سنن ابي داود في الصلاة ١٧٥ (٩٤٦) . سنن النسائي في السهو ٨ (١١٩٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٢ (١٠٢٦) . (تحفة الأشراف : ١١٤٨٥) . مسند احمد (٣ في ٤٢٦) . و (٥ في ٤٢٥، ٤٢٦) سنن الدارمي في الصلاة ١١٠ (١٤٢٧)

**ترجمه** : دمعيقيب رضي الله عنه بيان دي چي ما په مونځ كي دګيتو لري كولو په سلسله كي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو ، ويي فرمائيل كه چري ضرورت وي نو يو خل يي لري كړه.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

## ١٦٨ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ النَّفْخِ فِي الصَّلاَةِ

## په مونځ كي دپوكو كولو دكراهت بيان

٣٨١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، أَخْبَرَنَا مَيْمُونٌ أَبُو حَمْزَةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ مَوْلَى طَلْحَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلاَمًا لَنَا يُقَالُ لَهُ أَفْلَحُ، إِذَا سَجَدَ نَفَخَ، فَقَالَ: "يَا أَفْلَحُ تَرِّبْ وَجْهَكَ" قَالَ أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ: وَكَرِهَ عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ النَّفْخَ فِي الصَّلاَةِ، وَقَالَ: إِنْ نَفَخَ لَمْ يَقْطَعْ صَلاَتَهُ. قَالَ أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ: وَبِهِ نَأْخُذُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، وَقَالَ مَوْلًى لَنَا يُقَالُ لَهُ رَبَاحٌ. ([1])

**ترجمه** : دام سلمه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زمونږ دكور يو هلك اوليدو چي نوم يي افلح وو كله چي به يي سجده كوله نو پوكي به يي كولو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل اي افلح خپل تندي په خاورو ككړ كړه، داحمد بن منيع بيان دي چي عباد بن العوام په مونځ كي پوكي كول مكروه ګڼرلي دي او ونيلي يي دي كه چا په مونځ كي پوكي اوكړو مونځ يي نه باطل كيږي احمد بن منيع وائي مونږ همدا قول اختيار كړي دي.
امام ترمذي وائي دا حديث بعضي نورو علماؤ دابو حمزه په واسطه نقل كړي دي او د "غلاما لنا يقال له افلح" په خاي "مولي لنا يقال له رباح" مذكور دي.

*****************

٣٨٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ مَيْمُونٍ أَبِي حَمْزَةَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ، وَقَالَ: غُلاَمٌ لَنَا يُقَالُ لَهُ رَبَاحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أُمِّ سَلَمَةَ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِذَاكَ، وَمَيْمُونٌ أَبُو حَمْزَةَ قَدْ ضَعَّفَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي النَّفْخِ فِي الصَّلاَةِ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنْ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٨٢٢٤)

نَفَخَ فِي الصَّلَاةِ اسْتَقْبَلَ الصَّلَاةَ، وَهُوَ قَوْلُ سفيان الثوري وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: يُكْرَهُ النَّفْخُ فِي الصَّلَاةِ وَإِنْ نَفَخَ فِي صَلَاتِهِ لَمْ تَفْسُدْ صَلَاتُهُ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. ([1])

**ترجمه**: په مذکوره سند حماد بن زيد دميمون بن ابي حمزه نه دپورتني حديث هم معني روايت نقل کړي دي او په دي کي "غلام لنا يقال له رباح" مذکور دي.
امام ترمذي وائي دام سلمه رضي الله عنها دحديث سند څه خاص قوي نه دي . ميمون ابوحمزه بعضي محدثينو ضعيف ګڼلي دي، او په مونځ کي دپوکي کولو په سلسله کي په اهل علمو کي اختلاف دي دبعضو قول دي چي څوك په مونځ کي پوکي اوکړي نو دا مونځ به دوباره کوي او همدا دسفيان ثوري او اهل کوفه قول دي او بعضي وائي چي په مونځ کي پوکي کول مکروه دي او که چا په مونځ کي پوکي اوکړو نو مونځ يي نه فاسديږي دا دامام احمد او اسحاق بن راهويه وغيره قول دي.

***************

## ١٦٩ــ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الِاخْتِصَارِ. فِي الصَّلَاةِ

**په مونځ کي په تشو باندي دلاسونو ايخودلو دمما نعت بيان**

٣٨٣ــ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ مُخْتَصِرًا" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الِاخْتِصَارَ فِي الصَّلَاةِ، وَكَرِهَ بَعْضُهُمْ أَنْ يَمْشِيَ الرَّجُلُ مُخْتَصِرًا. وَالِاخْتِصَارُ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ يَدَهُ عَلَى خَاصِرَتِهِ فِي الصَّلَاةِ أَوْ يَضَعَ يَدَيْهِ جَمِيعًا عَلَى خَاصِرَتَيْهِ. وَيُرْوَى أَنَّ إِبْلِيسَ إِذَا مَشَى مَشَى مُخْتَصِرًا. ([2])

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مونځ کي په تشو باندي دلاسونو ايخودلو نه منع فرمانيلي ده.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٢٢٢)

[2] ـ صحيح البخاري في العمل في الصلاة ١٧ (١٢٢٠) . صحيح مسلم في المساجد ١١ (٥٣٥) . سنن ابي داود في الصلاة ١٦٧ (٩٤٧) . سنن النسائي في الافتتاح ١٢ (٨٩١) . (تحفة الأشراف : ١٣٥٦٠) . مسند احمد (٢ في ٢٣٢ . ٢٩٠ . ٢٩٥ . ٣٣١ . ٣٩٩) . سنن الدارمي في الصلاة ١٣٨ (١٤٦٨)

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دي، بعضي اهل علمو په مونځ كي په تشو لاسونه ايخودل مكروه ګڼرلي دي او بعضو په تشو دلاسونو ايخودلو په حالت كي تلل مكروه ګڼرلي دي، او اختصار ديته وائي چي انسان په مونځ كي خپل لاس په تشي كيږدي او يا دواړه لاسونه په تشي كيږدي مروي دي چي شيطان كله روان وي نو په تشي يي لاس ايخودلي وي روان وي.

**تشريح** : داختصار دري تعريفونه دي:

(۱) په قرائت كي تخفيف كول (۲) په مونځ كي په همسا خان تينګول (۳) وضع اليد علي الخاصرة، دلته په حديث كي دريم تفسير مراد دي او ددي دممانعت دري وجوهات دي اوله وجه داده كله چي شيطان دجنت نه زمكي ته راشړلي شوي وو نو په همدي حالت كي زمكي ته راغلي وو، دويمه وجه داده په تشو لاس ايخودل دجهنميانو داستراحت حالت دي، دريمه وجه داده دا حالت دخشوع او خضوع خلاف دي.

***************

## ۱۷۰_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ كَفِّ الشَّعْرِ فِي الصَّلاَةِ

### دمونځ په حالت كي دويښتو تړلو دكراهت بيان

۳۸٤_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، أَنَّهُ مَرَّ بِالْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ وَهُوَ يُصَلِّي وَقَدْ عَقَصَ ضَفِيرَتَهُ فِي قَفَاهُ فَحَلَّهَا، فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ الْحَسَنُ مُغْضَبًا، فَقَالَ: أَقْبِلْ عَلَى صَلاَتِكَ وَلاَ تَغْضَبْ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " ذَلِكَ كِفْلُ الشَّيْطَانِ " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي رَافِعٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ وَهُوَ مَعْقُوصٌ شَعْرُهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَعِمْرَانُ بْنُ مُوسَى هُوَ: الْقُرَشِيُّ الْمَكِّيُّ وَهُوَ أَخُو أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى. (۱)

**ترجمه** : دابورافع رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي زه دحسن بن علي په خوا كي تير شوم او هغه مونځ كولو او خپل ويښته يي په غړئ پوري تړلي وو نو ابو رافع دا پرانيستل حسن

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ۸۸ (٦٤٦) ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٤ (١٠٤٢) . (٦ في ٨، ٣٩١) . (تحفة الأشراف : ١٢٠٢٠) .

سنن الدارمي في الصلاة ١٠٥ (١٤٢٠)

رضي الله عنه ورته دخفګان په نظر اوکتل نو ابو رافع اوونيل ته خپل مونځ جاري اوساته او غصه کيږه مه ما دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يې چې دا دشيطان حصه ده.

امام ترمذي وائي دابورافع حديث حسن دي، او په دي باب کې دام سلمه، او عبدالله بن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي هغوئ دا مکروه ګڼړلي دي چې يو سړي دمونځ په حالت کې خپل ويخته وتړي.

**تشريح** : ويخته ددي دپاره په مرئ پوري تړل چې په سجده کې په خاورو ګنده نشي دا طريقه کول مکروه دي بلکه دمونځ په دوران کې په ځان پوري جامي راټولول هم مکروه دي او دا ځکه کله چې انسان سجده کوي نو ټول ځيزونه په سجده کې شريکيږي او دا کار دي لره دسجدي نه منع کول دي، دويمه خبره داده چې ويخته يا جامي دخاورو نه ساتل تکبر هم دي او په مونځ کې خو دخشوع حکم دي، دکف الشعر کراهت اتفاقي او اجماعي دي.

****************

## ١٧١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي التَّخَشُّعِ فِي الصَّلَاةِ

## په مونځ کې دخشوع کولو بيان

٣٨٥ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ رَبِّهِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ أَبِي أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَافِعِ ابْنِ الْعَمْيَاءِ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الصَّلَاةُ مَثْنَى مَثْنَى تَشَهَّدُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ وَتَخَشَّعُ وَتَضَرَّعُ وَتَمَسْكَنُ وَتَذَرَّعُ وَتُقْنِعُ يَدَيْكَ، يَقُولُ: تَرْفَعُهُمَا إِلَى رَبِّكَ مُسْتَقْبِلًا بِبُطُونِهِمَا وَجْهَكَ، وَتَقُولُ: يَا رَبِّ يَا رَبِّ، وَمَنْ لَمْ يَفْعَلْ ذَلِكَ فَهُوَ كَذَا وَكَذَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وقَالَ غَيْرُ ابْنِ الْمُبَارَكِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: مَنْ لَمْ يَفْعَلْ ذَلِكَ فَهِيَ خِدَاجٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل يَقُولُ: رَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ فَأَخْطَأَ فِي مَوَاضِعَ. فَقَالَ: عَنْ أَنَسِ بْنِ أَبِي أَنَسٍ وَهُوَ عِمْرَانُ بْنُ أَبِي أَنَسٍ، وَقَالَ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، وَإِنَّمَا هُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعِ ابْنِ الْعَمْيَاءِ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ، وَقَالَ شُعْبَةُ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْمُطَّلِبِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَإِنَّمَا هُوَ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ

الْمُطَّلِبِ، عَنِ الفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَحَدِيثُ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ هُوَ حَدِيثٌ صَحِيحٌ يَعْنِي أَصَحَّ مِنْ حَدِيثِ شُعْبَةَ. (1)

**ترجمه** : دفضيل بن عياض نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مونځ دوه دوه ركعاته دي او دهر دوه ركعاتونو نه پس تشهد دي او تشهد په مونځ كي دخشوع او خضوع او مسكنت او ژړا او زارئ داظهار نوم دي او تاسو خپل دواړه لاسونه پورته كړئ يعني دخپل رب په وړاندي خپل لاسونه پورته كړئ په داسني حال كي چي ورغوي ستاسو دمخ طرف ته وي او داسي واني اي ربه اي ربه او چاچه داسي اونكړل هغه داسي دي او داسي دي.

امام ترمذي وائي دابن مبارك نه علاوه نورو خلقو په دي حديث كي "من لم يفعل ذلك فهي كذا وكذا خداج" يعني چاچه داسي اونكړل مونځ يي ناقص دي جمله نه ده نقل كړي، ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي شعبه دا حديث د عبد ربه بن سعيد نه نقل كړي دي او دهغه نه په ډيرو مقاماتو كي غلطياني شوي دي يوه غلطي يي دا كړي ده چي هغه دانس بن ابي انس نه روايت كړي دي او حال دادي چي هغه عمران بن ابي انس دي، دويمه غلطي يي دا كړي ده چي هغه "عن عبدالله بن الحارث عن المطلب عن النبي صلي الله عليه وسلم" وئيلي دي او حال دادي چي صحيح عن ربيعة بن الحارث بن عبدالمطلب عن الفضل بن عباس عن النبي صلي الله عليه وسلم دي، امام بخاري وائي دليث بن سعد حديث صحيح دي يعني دشعبه د روايت نه زيات صحيح دي.

******************

## ١٧٢_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ التَّشْبِيكِ بَيْنَ الأَصَابِعِ فِي الصَّلاَةِ

### دمونځ په حالت كي ديو لاس په ګوتو كي دبل لاس دګوتو وركولو دكراهت بيان

٣٨٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنِ ابْنِ عَجْلاَنَ. عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ. عَنْ رَجُلٍ. عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ. أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: "إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ ثُمَّ خَرَجَ عَامِدًا إِلَى الْمَسْجِدِ فَلاَ يُشَبِّكَنَّ بَيْنَ أَصَابِعِهِ فَإِنَّهُ فِي صَلاَةٍ" قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ. عَنِ ابْنِ عَجْلاَنَ. مِثْلَ حَدِيثِ اللَّيْثِ. وَرَوَى شَرِيكٌ. عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلاَنَ.

1 _ تفرد به المؤلف ورواه النسائي في الكبرى في الصلاة (١٩) (تحفة الأشراف: ١١٠٢٣)

عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا الحَدِيثِ، وَحَدِيثُ شَرِيكٍ غَيْرُ مَحْفُوظٍ. (١)

**ترجمه** دكعب بن عجره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي څوك په تاسو كي په ښه شان سره اودس اوكړي او مسجد ته دتلو په اراده دكور نه روان وي نو تشبيك دي نه كوي (يعني ديو لاس ګوتي دي دبل لاس په ګوتو كي نه وركوي) ځكه چي دي په مونځ كي دي.

امام ترمذي وائي دكعب بن عجره حديث دابن عجلان نه ډيرو خلقو دليث دحديث هم معني نقل كړي دي، او شريك په سند د "محمد بن عجلان عن ابيه عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم" سره نقل كړي دي او ددي روايت هم معني روايت يي بيان كړي دي او دشريك روايت غير محفوظ دي.

## كعب ابن عجره رضي الله عنه حالات

نوم كعب كنيه ابو محمد په يوه غزوه كي يي لاس كټ شوی وو او دسر ويخته يي ګنړ وو (طبقات ابن سعد).

دهجرت نه پس مسلمان شوی وو او دمسلمانيدو نه پس يي په تمامو غزواتو كي شركت كړی دی په غزوه حديبيه كي هم درسول الله صلي سره موجود وو دويختو دګنړوالي په وجه يي په سر كي دومره ډيري سپږي شوي وي چي په مخ به يي راروانې وي نو رسول الله ورته دويختو كټ كولو مشوره وركړه نو بيا يي ددينه پس كټ كړل دده په سيرت كي دحق حمايت او حب رسول سر فهرست دي دكعب رضي الله عنه په اخلاقو كي دا دوه څيزونه ډير روښانه دي چي يو ځل درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو چي درسول الله رنګ دلوږي په وجه تغير شوی وو نو دی فورا پوهه شو او ديهودي اوښ يي اوبه كولو ده به اوښ ته يوه بوكه اوبه په يوه كجوره اچولي كله چي يو څو كجوري ورسره جمع شوي نو هغه يي درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضري كړي (الاصابه).

دهجرت په ٥١كال كي كله چي دده عمر ٧٥كلونه وو په مدينه كي وفات شو او دروايتونو تعداد يي ٤٧دی.

****************

---

١ (تحفة الأشراف: ١١١٢١). وأخرجه مسند احمد (٣ في ٢٤٢). سنن ابن ماجه في الإقامة ٤٢ (٩٦٧)

## ١٧٣_ باب مَا جَاءَ فِي طُولِ الْقِيَامِ فِي الصَّلاَةِ

### په مونځ کي داوږد قيام کول بيان

٣٨٧_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الصَّلاَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "طُولُ الْقُنُوتِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُبْشِيٍّ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ.(١)

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي چي يو ځل دنبي كريم صلي-الله عليه وسلم نه تپوس اوكړي شو چي په مونځونو كي كوم يو مونځ افضل دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په كوم كي چي قيام اوږد وي.

امام ترمذي وائي دجابر بن عبدالله حديث حسن صحيح دي او په نورو سندونو هم دا روايت دجابر بن عبدالله نه مروي دي، او په دي باب كي دعبدالله بن حبشي او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي اوږد قيام كول افضل دي او كه ډيري سجدي كول افضل دي.

(١) دامام ابو حنيفه او امام شافعي او جمهورو اهل علمو په نزد اوږد قيام كول افضل دي.

(٢) او دبعضي اهل علمو په نزد كثرت دسجود افضل دي.؟

دامام ابو حنيفه او جمهورو دلائل دوئ په دي مسئله كي دحديث الباب نه استدلال كړي دي چي دجابر په حديث كي مروي دي كله چي درسول الله نه دافضل مونځ په باره كي تپوس اوكړي شو نو په جواب كي يي طول القنوت يعني اوږد قرائت كول اوفرمائيل.

دليل دبعضي اهل علمو په دي باب پسي راتلونكي باب دي وفيه "مامن عبد يسجد لله سجدة الا رفعه الله بها درجة وحط بها عنه خطيئة" يعني الله تعالي په هره سجده دبنده درجي لوړوي او په هره سجده غلطي معاف كوي ددي روايت نه اشارة معلومه شوه چي كثرت دسجود افضل دي.

---

[1] ـ صحيح مسلم في المسافرين ٢٢ (٧٥٦). سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٠٠ (١٤٢١). (تحفة الأشراف: ٢٤٦٤). مسند احمد (٣ في ٣٠٢، ٣٩١، ٤١٢)

جواب: دلته ذکر دجزء دي او مراد کل دي خکه چي دمونځ نه بغير سجده معتبر نه وي مګر علاوه دسجدي دتلاوت نه.
امام نووي د اوږد قيام په فضائلو کي يو متفق عليه روايت نقل کړی دی کوم چي په لاندينو کرخولي ذکر کولی شي:
عن ابن مسعود ﷺ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ لَيلَةً، فَأَطَالَ القِيامَ حَتَّى هَمَمْتُ بِأَمْرِ سُوءٍ! قيل: وَمَا هَمَمْتَ بِهِ؟ قَالَ: هَمَمْتُ أَنْ أَجْلِسَ وَأَدَعَهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيهِ.
أخرجه البخاري ٢٤/٢ ، ١١٣٥ ، كتاب التهجد باب تطويل القيام في صلاة الليل. ومسلم ١٨٦/٢ ، ٧٧٣ ، ٢٠٤ ، واحمد في المسند ٣٦٤٦ وابن ماجه.
دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چي يوه شپه مي رسول الله صلي الله عليه وسلم سره مونځ کولو رسول الله صلي الله عليه وسلم قيام دومره اوږد کړو چي زما زړه ته يو خراب خيال راغلو، چاترينه تپوس اوکړو چي څه خراب خيال درته راغلي وو هغه اوونيل دا خيال راغلو چي زه کينم او رسول الله صلي الله عليه وسلم دغه شان ولاړ پريږدم بخاري او مسلم.
**لغات:** همت: هَمَّ هَمًّا دنصر نه په معني دقصد او ارادي کولو دي.
د اوږد قيام په باره کي دعلماؤ اختلاف دی چي اوږد قيام افضل دی او که ډيري سجدي کول؟ دامام ابو حنيفه او شافعي په نزد اوږد قيام افضل دی او دعبدالله بن عمر او امام احمد او په يو قول کي امام شافعي په نزد زياتي سجدي يعني ډير رکعاتونه کول افضل دي دامام ابو يوسف په نزد دورځي زيات رکعاتونه کول افضل دي او دشپي اوږد قيام کول افضل دي خو پورتني روايت دامام ابو حنيفه دقول تائيد کوي په يو بل روايت کي داسي راغلي دي "سئل اي الاعمال افضل قال طول القيام" يعني درسول الله نه تپوس اوکړی شو چي کوم يو عمل ډير افضل دی نو ويې فرمائيل اوږد قيام کول.
"هممت ان اجلس وادعه" يعني قصد مي اوکړو چي کينم او دده ملګرتيا پريږدم دا عمل ابن مسعود بد اوګڼل اګر چي جائز دی چي که مقتدي عاجز وي نو کيناستی شي دلته دا عمل ابن مسعود خکه بد اوګڼلو چي دا بده خبره ده چي رسو الله صلي الله عليه وسلم دي ولاړ وي او زه کينم.

****************

## ١٧٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَثْرَةِ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ وَفَضْلِهِ

**درکوع او سجدي دکثرت فضيلت**

٣٨٨_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ. حَدَّثَنَا الوَلِيدُ. قَالَ: وحَدَّثَنَا أَبُو مُحَمَّدٍ رَجَاءٌ. قَالَ: حَدَّثَنَا الوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ. عَنِ الأَوْزَاعِيِّ. قَالَ: حَدَّثَنِي الوَلِيدُ بْنُ هِشَامٍ المُعَيْطِيُّ. قَالَ: حَدَّثَنِي مَعْدَانُ بْنُ طَلْحَةَ اليَعْمَرِيُّ. قَالَ: لَقِيتُ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقُلْتُ لَهُ: دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ يَنْفَعُنِي اللَّهُ بِهِ وَيُدْخِلُنِي الجَنَّةَ. فَسَكَتَ عَنِّي مَلِيًّا ثُمَّ التَفَتَ إِلَيَّ. فَقَالَ: عَلَيْكَ بِالسُّجُودِ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: "مَا مِنْ عَبْدٍ يَسْجُدُ لِلَّهِ سَجْدَةً إِلَّا رَفَعَهُ اللَّهُ بِهَا دَرَجَةً وَحَطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً"(1)

**ترجمه** : د معدان بن طلحه يعمري بيان دي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دازاد كړي غلام ثوبان رضي الله عنه سره ملاقات اوكړو او هغوئ ته مي اوونيل چي ماته كوم داسي عمل اوښايئ په كوم چي الله تعالي ماته نفع رسوي او جنت ته مي داخلوي ددي وينا نه پس ثوبان يوه شيبه خاموش اودريدو او بيا زما طرف ته متوجه شو او ويي فرمائيل چي سجدي ديري كوه څكه چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي هر يو بنده چي دالله تعالي درضا دپاره سجده كوي الله تعالي ددي سجدي په بركت دده يوه يوه درجه لوروي او يوه يوه ګناه يي معاف كوي.

****************

٣٨٩_ قَالَ مَعْدَانُ بْنُ طَلْحَةَ: فَلَقِيتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ. فَسَأَلْتُهُ عَمَّا سَأَلْتُ عَنْهُ ثَوْبَانَ. فَقَالَ: عَلَيْكَ بِالسُّجُودِ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: "مَا مِنْ عَبْدٍ يَسْجُدُ لِلَّهِ سَجْدَةً إِلَّا رَفَعَهُ اللَّهُ بِهَا دَرَجَةً وَحَطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً" قَالَ مَعْدَانُ بْنُ طَلْحَةَ اليَعْمَرِيُّ. وَيُقَالُ ابْنُ أَبِي طَلْحَةَ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. وَأَبِي أُمَامَةَ. وَأَبِي فَاطِمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ثَوْبَانَ. وَأَبِي الدَّرْدَاءِ فِي كَثْرَةِ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي هَذَا البَابِ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: طُولُ القِيَامِ فِي الصَّلَاةِ أَفْضَلُ مِنْ كَثْرَةِ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: كَثْرَةُ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ أَفْضَلُ مِنْ طُولِ القِيَامِ. وقَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: قَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا حَدِيثَانِ وَلَمْ يَقْضِ فِيهِ بِشَيْءٍ. وقَالَ إِسْحَاقُ: أَمَّا فِي النَّهَارِ فَكَثْرَةُ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ وَأَمَّا بِاللَّيْلِ فَطُولُ القِيَامِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَجُلٌ لَهُ جُزْءٌ بِاللَّيْلِ يَأْتِي عَلَيْهِ. فَكَثْرَةُ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ فِي هَذَا

1 _ تفرد به المؤلف رحمه الله

أَحَبُّ إِلَيَّ لِأَنَّهُ يَأْتِي عَلَى جُزْئِهِ، وَقَدْ رَبِحَ كَثْرَةَ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا قَالَ إِسْحَاقُ: هَذَا لِأَنَّهُ كَذَا وُصِفَ صَلَاةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ وَوُصِفَ طُولُ الْقِيَامِ، وَأَمَّا بِالنَّهَارِ فَلَمْ يُوصَفْ مِنْ صَلَاتِهِ مِنْ طُولِ الْقِيَامِ مَا وُصِفَ بِاللَّيْلِ. [1]

**ترجمه** دمعدان بن طلحه بیان دی چي بیا مي ملاقات دابو الدرداء رضي الله عنه سره اوشو نو دهغه نه مي هم په دي باره کي سوال اوکړو په څه باره کي چي مي دثوبان نه کړي وو نو هغه راته هم اووئیل چي سجدي کول په خان باندي لازم کړه ځکه چي ما درسول الله صلي الله علیه وسلم نه اوریدلي دي هر یو بنده چي دالله درضا دپاره سجدي کوي الله تعالي دهغي په برکت دده یوه درجه لوړوي او یوه ګناه یي محوه کوي.

امام ترمذي وائي درکوع اوسجدي دکثرت په سلسله کي دثوبان او ابو الدرداء رضي الله عنهما احادیث دحسن صحیح درجي والا دي، او په دي باب کي دابوهریره، ابو امامه، او ابو فاطمه رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي . او په دي باب کي داهل علمو اختلاف دي دبعضو قول دي چي په مونځ کي اوږد قیام کول دډیرو سجدو کولو نه افضل دي او دبعضو قول دي چي په کثرت سره رکوع او سجده کول داوږد قیام نه افضل دي، احمد بن حنبل وائي چي دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه په دي سلسله کي دواړه قسمه احادیث مروي دي لیکن په دي کي هغوئ کومه فیصله نه ده کړي چي په دي روایاتو کي کوم یو راجح دي، اسحاق بن راهویه وائي چي دورځي په کثرت سره رکوع او سجدي کول افضل دي او دشپي اوږد قیام کول افضل دي مګر دا چي یو کس داسي وي دچاچه دشپي په حصه کي دقران لوستلو کومه حصه متعین ده نو بیا دهغه په حق کي دشپي هم رکوع او سجدي په کثرت سره افضل دي ځکه چي دي خو به دقران هغه هومره حصه وائي کومه چي هغه دخان دپاره خاص کړي وي او په کثرت سره درکوع او سجدي کولو نفع به ورته جدا حاصل شي، اسحاق بن راهویه داخبره په دي وجه کړي ده چي دنبي کریم صلي الله علیه وسلم دقیام اللیل حال دا بیان کړي شوي دي چي هغه به په دي کي ډیر اوږد قیام کولو پاتي شول دورځي مونځونه نو په دي سلسله کي دا نه دي بیان شوي چي په دي مونځونو کي به یي دشپي دمونځونو پشان اوږد قیام کولو.

***************

## ١٧٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي قَتْلِ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ فِي الصَّلَاةِ

---

[1] ـ صحيح مسلم في الصلاة ٤٣ (٤٨٨) . سنن النسائي في التطبيق ٨٠ (١١٣٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٠١ (١٤٢٣) . (تحفة الأشراف: ٢١١٢) . مسند احمد (٢٧٦،٥ ،٢٨٠ ،٢٨٣)

## دمونځ په دوران کې دمار لړم دوژلو بيان

٣٩٠ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل ابْنُ عُلَيَّةَ وَهُوَ: ابْنُ إِبْرَاهِيمَ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ ضَمْضَمِ بْنِ جَوْسٍ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: "أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِ الأَسْوَدَيْنِ فِي الصَّلاَةِ الْحَيَّةُ وَالْعَقْرَبُ" قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ. وَأَبِي رَافِعٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ. وَإِسْحَاق. وَكَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ قَتْلَ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ فِي الصَّلاَةِ. وقَالَ إِبْرَاهِيمُ: إِنَّ فِي الصَّلاَةِ لَشُغْلاً. وَالْقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ. (١)

**ترجمه**: دابو هريره رضي الله عنه نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په مونځ کې د دوه تورو څيزونو يعني دمار او لړم دوژلو حکم کړي دي امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دې باب کې دابن عباس او ابو رافع رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دصحابه کرامو وغيره بعضي اهل علمو هم په دې باندې عمل دې او په همدې امام احمد او اسحاق بن راهويه هم قول کړي دي، مګر بعضي اهل علمو په مونځ کې دمار لړم وژل مکروه ګڼړلي دي، ابراهيم نخعي وائي چې مونځ پخپله يو شغل دې او دا څيز په دې کې مخل وي، اولني قول راجح دي.

## په مانځه کې مارلړم قتلول

د مانځه په حالت کې مار او لړم قتلول بغير د کراهت نه مباح دی دليل ددي قول د رسول پاك صلي الله عليه وسلم دا ارشاد دې (اقتلوا الأسودين ولو كنتم في الصلاة) په حديث کې د اسودين نه مراد مار او لړم دې.ترجمه دا شوه چې مار او لړم قتلوئ اګرکه تاسو په مانځه کې يئ.

او عقلی دليل دا دې چې مار او لړم وژل ددی وجی جائز دی چې په دی سره د زړه مشغوليت لري کيږی.يعنی د مونځ ګذار نظر چې تر څو پورې په هغی باندې وی.نو دده زړه هغی طرف ته متوجه وی.او ده ته د مانځه روح چې حضور قلب دی نه حاصليږی.څکه ونيلی شوی دی

---

١ ـ سنن ابي داود في الصلاة ١٦٩ (٩٢١). سنن النسائي في السهو ١٢ (١٢٠٣). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٣٦ (١٢٤٥). (تحفة الأشراف: ١٣٥١٣). سنن الدارمي في الصلاة ١٧٨ (١٥٤٥)

چی دویٔ وژنیٔ چی د زړه مشغولیت مو ختم شی.او حضور قلب درته نصیب شی.نو دا د مار او لړم وژل د مونځ گذار مخکي د تیریدونکی منع کولو سره مشابه شو.
دضرباتو دعدد متعلق دوه اقوال دي
(۱) صاحب دعنایه لیکلی دی چی مصنف د هدایه ددی څه تفصیل نه دی ذکر کړې دې چی په یو ځل به ئې وژنی او که بار بار وهلو ته ضروت پیښ شی.نو په څو کرته کي به ئې وژنی.هم دا دویم قو ل د شمس الائمه سرخسی دې.یعنی که په یو ځل وهلو سره ئې وژل ممکن وی.نو یو ځل به ئې وهی.او که څو ځله وهلو ته ضرورت پیښ شی.نو په دی به هم صرفه نه کوی.حاصل دا دې چی مقصود ددی قتلول دی.که په یوځل وهلو سره وی.اوکه په گڼرو وهلو سره وی.دلیل ددي قول دا دې چی رسول پاك صلي الله علیه وسلم (اقتلوا الأسودين) فرمائیلی دی.او په دی کي څه تفصیل نشته.
(۲) دبعضي فقهاؤ خیال دا دې چی که په یوځل وهلو سره قتلول ممکن وی.نو وژنی دې.اومونځ دی نه راگرځوی.اوکه څوکرته وهل په عمل کي راشی.نو مونځ به راگرځوی.ځکه چی دا عمل کثیر دې.اوعمل کثیر مفسد د صلاة دې.
لیکن ددی جواب دا دې.بیشکه چی په څو ځله لرگی وهلو کي عمل کثیر دې.خو دا عمل کثیر داسی دې چی ددی د شریعت د طرفه رخصت او اجازت دې.لکه په مانځه کي چی حدث پیښ شی.نو ددی نه پس د مصلی تلل د کوهی نه اوبه راویستل او اودس کول دا مجموعه عمل کثیر دې.خو د شریعت د رخصت ورکولو د وجی مفسد د صلاة نه دی. نو هم دغه شان دلته هم چونکه د شریعت د طرفه رخصت دې.نو ځکه په بار بار وهلو کي فساد د مانځه نشته.
(۱) صاحب د هدایه فرمائی په دی حکم کي د مار ټول قسمونه برابر دی.که هغه سپین وی اوکه برگ یا تور. هم دا قول صحیح دې.ځکه چی کوم حدیث مونږ ذکر کړې دې.هغه مطلق دې.ټولو ته شامل دې
(۲) فقیه ابوجعفر هندوانی فرمانی. چی بعضي سپین ماران په کورنونو کي اوسیږی.او نیغ گرځی.هغه پیریان وی.د هغوی قتلول مباح نه دی.ځکه چی د الله تعالی رښتینی پیغمبر صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دی(إیاکم والحیة البیضاء فإنها من الجن) یعنی د سپین رنگ مار قتلولو نه ځان ساتیٔ.ځکه چی دا پیری وی.په دی کي د مونځ او غیر مونځ څه تفصیل نشته.نود داسی قسم مار د قتلولو په مانځه کي هم اجازت نشته.البته که د وړاندې نه دی اووائی.چی تاسو لاړ شیٔ.د مسلمانانو لار پریږدیٔ.گنی مونږ مو قتلوو.او ددی باوجود هم هغه نه تلو نود هغه قتلول مباح دی.

(۳) امام ابوجعفر طحاوی په مارانو کي فرق کول غلط گرځولي دی.ځکه چی رسول الله صلي الله علیه وسلم د پیریانو نه وعده اخستی وه چی دوی به امت ته د مار په صورت کي نه ښکاره کیږی.اونه به د دوی کورونو ته داخلیږی.نو چی دوی وعده ماته کړی.نو قتل ئي مباح شو.هم دا قول شمس الائمه سرخسی اختیار کړی دی.او په حدیث کي د"اسودین"نه مراد صرف تور ماران نه دی.بلکه دا لفظ د عربو په عرف کي د مطلق مار دپاره استعمالیږی.که د هر رنګ وی.

***************

# أبــــواب الــــــسهـــو

هرکله چي مصنف د ادا د بیان نه چی فارغ شو.نواوس هغه څیزبیانوی چی په ادا کي د واقع کیدونکی نقصان تلافی کوی.یعنی سجده سهو.دسجدي ترکیب د(اضافت المسبب الی السبب) د قبیلی نه دی.ځکه چی په مانځه کي سهودسجدو واجبولو سبب دی.

باقي دا چی په مانځه کي د دوه سجدو مقررولوڅه حکمت دی؟.نود حکیم الامت په ژبه دحق بیان اوګورئ اوله سجده نفس ته په دی خبره تنبیه ورکولو دپاره ده چی زه ددی خاورونه پیدا شوي یم.اودویمه سجده په دی خبره دلا لت دی چی زه به هم دی خاوروته ورځم.

تهانوی صاحب په (احکام اسلام عقل کی نظرمین)کي لیکلی دی چی شیطان دسجدي نه انکارکړي وو.دده د ذلیل کولو دپاره دوه سجدي فرض شوي.اود ازل عهد نه پس چی دسجدي نه پورته شو.نودکافرانو نه کول معلوم شو.دخپل توفیق په شکریه کي دویمه سجده شوي وه هغه اوس هم اقي ده. (احسن الهدایه)

## ١٧٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي سَجْدَتَيِ السَّهْوِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ

### دسلام نه مخکي دسجده سهو کولو بیان

۳۹۱ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ ابْنِ بُحَيْنَةَ الأَسَدِيِّ حَلِيفِ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " قَامَ فِي صَلَاةِ الظُّهْرِ وَعَلَيْهِ

جُلُوسٌ. فَلَمَّا أَتَمَّ صَلَاتَهُ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ سَجْدَةٍ وَهُوَ جَالِسٌ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ، وَسَجَدَهُمَا النَّاسُ مَعَهُ مَكَانَ مَا نَسِيَ مِنَ الْجُلُوسِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن بحينه رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم دماسپخين په مونځ كي اودريدو او كيناستل ورله پكار وو چنانچه كله يې مونځ پوره كړو نو دسلام ګرخولو نه مخكي يې په همدغه خاي كي دوه سجدي اوكړي او په هره سجده كي يې الله اكبر اوونيل او خلقو ورسره هم سجده اوكړه په بدل دهغه جلسه كي كومه چې ورنه هيره شوي وه.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي.

***************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى وَأَبُو دَاوُدَ قَالَا حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ السَّائِبِ الْقَارِيَّ كَانَا يَسْجُدَانِ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ قَالَ أَبُو عِيسَى حَدِيثُ ابْنِ بُحَيْنَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ يَرَى سَجْدَتَيِ السَّهْوِ كُلِّهِ قَبْلَ السَّلَامِ وَيَقُولُ هَذَا النَّاسِخُ لِغَيْرِهِ مِنَ الْأَحَادِيثِ وَيَذْكُرُ أَنَّ آخِرَ فِعْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَلَى هَذَا

و قَالَ ( حمد ) وَإِسْحَقُ إِذَا قَامَ الرَّجُلُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ فَإِنَّهُ يَسْجُدُ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ قَبْلَ السَّلَامِ عَلَى حَدِيثِ ابْنِ بُحَيْنَةَ.

دمحمد بن ابراهيم نه روايت دي چې ابوهريره او عبدالله بن السائب دواړو به سجده سهو دسلام نه مخكي كوله . او په همدي دبعضي اهل علمو عمل دي او دامام شافعي هم دا قول دي دامام شافعي رائي داده چې سجده سهو په هر صورت كي دسلام نه مخكي كول پكار دي او دا حديث دنورو احاديثو دپاره ناسخ دي خكه چې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم عمل په اخر كي په همدي باندي پاتي شوي دي. او احمد او اسحاق بن راهويه وائي كله چې يو كس د دوه ركعاتونو كولو نه پس اودريږي نو هغه به دابن بحينه په حديث دعمل كولو په حال كي سجده سهو دسلام نه مخكي كوي

---

[1] ـ البخاري في الأذان ١٤٦ (٨٢٩)، و ١٤٧ (٨٣٠) والسهو ١ (١٢٢٥)، و ٥ (١٢٣٠)، والأيمان والنذور ١٥ (٦٦٧٠) . مسلم في المساجد ١٩ (٥٧٠) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٠٠ (١٠٣٤) . النسائي في التطبيق ١٠٦ (١١٧٨) والسهو ٢٨ (١٢٦٢) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٣١ (١٢٠٦، ١٢٠٧) . (تحفة الأشراف : ٩١٥٤) . موطأ امام مالك في الصلاة ١٧ (٦٥) . مسند احمد (٥/٣٤٥، ٣٤٦) سنن الدارمي في الصلاة ١٧٦ (١٥٤٠)

***************

قال علي بن المديني: وَعَبْدُ اللهِ ابْنُ بُحَيْنَةَ هُوَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَالِكٍ وَهُوَ ابْنُ بُحَيْنَةَ مَالِكٌ أَبُوهُ وَبُحَيْنَةُ أُمُّهُ هَكَذَا أَخْبَرَنِي إِسْحَقُ بْنُ مَنْصُورٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمَدِينِيِّ قَالَ أَبُو عِيسَى وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي سَجْدَتَيِ السَّهْوِ مَتَى يَسْجُدُهُمَا الرَّجُلُ قَبْلَ السَّلَامِ أَوْ بَعْدَهُ فَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنْ يَسْجُدَهُمَا بَعْدَ السَّلَامِ وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَأَهْلِ الْكُوفَةِ و قَالَ بَعْضُهُمْ يَسْجُدُهُمَا قَبْلَ السَّلَامِ وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ الْفُقَهَاءِ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ مِثْلِ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ وَرَبِيعَةَ وَغَيْرِهِمَا وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ و قَالَ بَعْضُهُمْ إِذَا كَانَتْ زِيَادَةٌ فِي الصَّلَاةِ فَبَعْدَ السَّلَامِ وَإِذَا كَانَ نُقْصَانًا فَقَبْلَ السَّلَامِ وَهُوَ قَوْلُ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ

و قَالَ مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَجْدَتَيِ السَّهْوِ فَيُسْتَعْمَلُ كُلٌّ عَلَى جِهَتِهِ يَرَى إِذَا قَامَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ عَلَى حَدِيثِ ابْنِ بُحَيْنَةَ فَإِنَّهُ يَسْجُدُهُمَا قَبْلَ السَّلَامِ وَإِذَا صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا فَإِنَّهُ يَسْجُدُهُمَا بَعْدَ السَّلَامِ وَإِذَا سَلَّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ فَإِنَّهُ يَسْجُدُهُمَا بَعْدَ السَّلَامِ وَكُلٌّ يُسْتَعْمَلُ عَلَى جِهَتِهِ وَكُلُّ سَهْوٍ لَيْسَ فِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذِكْرٌ فَإِنَّ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ قَبْلَ السَّلَامِ و قَالَ إِسْحَقُ نَحْوَ قَوْلِ ( حم ) فِي هَذَا كُلِّهِ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ كُلُّ سَهْوٍ لَيْسَ فِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذِكْرٌ فَإِنْ كَانَتْ زِيَادَةٌ فِي الصَّلَاةِ يَسْجُدُهُمَا بَعْدَ السَّلَامِ وَإِنْ كَانَ نُقْصَانًا يَسْجُدُهُمَا قَبْلَ السَّلَامِ.

علي بن مديني وائي چي عبدالله بن بحينه عبدالله بن مالك دي دابن بحينه دپلار نوم مالك دي او بحينه دده مور ده، دسجده سهو باره كي په اهل علمو كي اختلاف دي چي دسلام نه مخكي كول پكار دي او كه روسته دبعضو علماؤ رائي داده چي دا د دسلام نه پس كول پكار دي او دا قول د سفيان ثوري او اهل كوفه دي، او دبعضي علماؤ خيال دي چي دا دسلام نه مخكي كول پكار دي او همدا دمديني داكثرو فقهاؤ قول دي مثلا يحيي بن سعيد. ربيعه وغيره او دا دامام شافعي قول هم دي او دبعضي علماؤ قول دي چي كله په مونځ كي زيادت اوشي نو سجده سهو دسلام نه پس پكار دي او چي كله مونځ كي كمي شوي وي نو بيا دسلام نه مخكي سجده سهو پكار ده او همدا دمالك بن انس قول دي . احمد بن حنبل وائي په كوم صورت كي چي سجده سهو څنګه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي ده په هم هغه شان او په هم هغه طريقه يي كول پكار دي ، امام احمد وائي كه يو كس د دوه ركعاتونو نه پس اودريږي نو دابن بحينه دحديث مطابق به اول سجده كوي او كه چاپه ماسپخين كي پنځه ركعاتونه اوكړل نو دي به سجده سهو دكلام نه پس كوي او كه يو كس په ماسپخين او مازيګر

کي په دوه دوه رکعاتونو سلام اوګرځولو نو په داسي صورت کي به سجده سهو دسلام نه پس کوي همدارنګي چي په کوم شان او څنګه څنګه فعل درسول الله صلي الله عليه وسلم موجود دي په هغي باندي په هم هغه شان عمل کول پکار دي او که دسهو په صورت کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه کوم فعل مروي نه وي نو په داسي حالاتو کي به سجده سهو دکلام نه مخکي کوي، داسحاق بن راهويه او امام احمد دقول موافق وايو مګر فرق صرف دومره دي هغوئ وائي چي دسهو په صورت کي که درسول الله کوم فعل موجود نه وي او په مونځ کي دزيادت نقصان شوي وي نو سهو به دسلام نه پس کوي او که دکمي نقصان شوي وي نو دسلام نه مخکي به يي کوي.

***************

## ١٧٧_ باب مَا جَاءَ فِي سَجْدَتَيِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلاَمِ وَالْكَلاَمِ

### دسلام او کلام نه پس دسهو دوه سجدو کولو بيان

٣٩٢_ حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا "، فَقِيلَ لَهُ أَزِيدَ فِي الصَّلاَةِ، " فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي چي يو ځل نبي کريم صلي الله عليه وسلم په ماسپخين کي پنځه رکعاتونه اوکړل نو تپوس ورنه اوکړي شو چي ايا په مونځ کي اضافه راغله (چه دخلورو په ځاي مو پنځه اوکړل) نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دسلام ګرځولو نه پس دوه سجدي اوکړي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

[1] _ صحيح البخاري في الصلاة ٣١ (٤٠١)، و٣٢ (٤٠٣)، والسهو ٢ (١٢٢٦)، والأيمان ١٥ (٦٦٧١)، وأخبار الآحاد ١ (٧٢٤٩). صحيح مسلم في المساجد ١٩ (٥٧٢)، سنن ابي داود في الصلاة ١٩٦ (١٠١٩)، سنن النسائي في السهو ٢٥ (١٢٤٢)، و٢٦ (١٢٥٥). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢٩ (١٢٠٣)، و١٣٠ (١٢٠٥)، و١٣٣ (١٢١١)، و١٣٦ (١٢١٨)، (تحفة الأشراف: ٩٤١١). مسند احمد (١/ ٣٧٩، ٤٢٩، ٤٣٨، ٤٥٥)، سنن الدارمي في الصلاة ١٧٥ (١٥٣٩)

٣٩٣_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ بَعْدَ الْكَلَامِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ مُعَاوِيَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. (1)

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسهو دواړه سجدي دخبرو كولو نه پس اوكړلي

امام ترمذي وائي دابن مسعود حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دمعاويه ،عبدالله بن جعفر، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

*****************

٣٩٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "سَجَدَهُمَا بَعْدَ السَّلَامِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ رَوَاهُ أَيُّوبُ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ وَحَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: إِذَا صَلَّى الرَّجُلُ الظُّهْرَ خَمْسًا فَصَلَاتُهُ جَائِزَةٌ، وَسَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ وَإِنْ لَمْ يَجْلِسْ فِي الرَّابِعَةِ، وَهُوَ قَوْلُ الشافعي، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا وَلَمْ يَقْعُدْ فِي الرَّابِعَةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ فَسَدَتْ صَلَاتُهُ، وَهُوَ قَوْلُ: سفيان الثوري وَبَعْضِ أَهْلِ الْكُوفَةِ. (2)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د سهو دواړه سجدي دسلام ګرځولو نه پس كړي وي.

امام ترمذي وائي دابوهريره رضي الله عنه داحديث حسن صحيح دي دا روايت ايوب او نورو راويانو هم دابن سيرين نه نقل كړي دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي چي كله يو كس په هيره دماسپخين مونځ كي پنځم ركعات اوكړي نو دهغه مونځ درست دي او دسهو دوه سجدي دي اوكړي اګر كه دي په څلورم ركعات كي كيناستلي هم نه وي همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق قول دي دبعضي علماؤ قول دي چي كله څوك دماسپخين مونځ كي

1 _ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ٩٤٢٢)

2 _ تفرد به المؤلف. وانظر حديث رقم: ٣٩٩ (تحفة الأشراف: ١٥٢٨)

پنځم رکعات اوکړي او په څلورم کي کيناستلي نه وي نو مونځ يي فاسد کيږي دا دسفيان ثوري او بعضي کوفيانو قول دي.

**تشريح** : دسلام نه مخکي او وروسته دسجده سهو متعلق دفقهاو مذاهب ثلاثه:

که په مونځ کي د څه فعل زياتوالی وشی.ياکمي.نوپه ده به دوه سجدي د سهو واجب وی پاتي شوه داخبره چی دسلام نه پس به واجب وی.اوکه دسلام نه مخکي . ددی په جوازکي د هيڅا اختلاف نشته.د ټولو اتفاق دی چی سجده سهودسلام نه مخکي اوکړی.يا د سلام نه پس.دواړه جائزدی.ليکن په افضليت کي اختلاف دي.

(۱)داحنافو په نزد د سلام نه پس غوره ده

(۲)اود امام شافعی په نزد دسلام نه مخکي غوره ده

(۳)او امام مالك فرمائی. که د مونځ گذار سهو دنقصان په وجه وی.نوسجده سهو به دسلام نه مخکي کوی.اوکه د زياتوالی په وجه وی.نودسلام نه پس به سجده سهو کوی.

**دامام شافعی دليل** دادي چی نبی کريمﷺسجده سهودسلام نه مخکي کړي ده.لکه چی په صحاح سته کي دعبدالله بن مالك(رضي الله عنه) حديث دي.دبخاری الفاظ دا دي:

(ان النبي كريم صلي الله عليه وسلم صلى الظهر فقام فى الركعتين الا وليين ولم يجلس فقام الناس معه حتى إذا قضى الصلوة و انتظر الناس تسليمه كبر و هو جالس فسجد سجدتين قبل أن يسلم)

يعنی نبی کريم ﷺ د ماسپخين مونځ کولو او په مخکنو دوو رکعتوکي بغير د قعدی کولو پاسيدلو.هغوی ﷺ سره خلق هم پاځيدل تردی چی کله مونځگ ختميدو ته نزدی شو اوخلقود رسول پاك صلي الله عليه وسلم دسلام اړولو انتظار کولو.

نورسول پاك صلي الله عليه وسلم په ناسته ناسته تکبير اووئيلو. اود سلام اړولونه مخکي نيگ دوه سجدي وکړی. د دی حديث نه معلومه.شوه چی سجده سهو قبل السلام ده.

**داحنافودلائل**: اول دليل درسول پاك صلي الله عليه وسلم قول.

(۱) (لكل سهو سجدتان بعد السلام) ديگ (ابوداوٗد،ابن ماجه)

(۲)دويم دليل حديث فعلی ديگ چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم دسلام نه پس دوه سجدی کړی دی. صاحب دهدايه وائی چی دوه فعلی حديثونه متعارض شی.نودا دواړه به پريخودی شی.اودرسول پاك صلي الله عليه وسلم په قول به عمل کولی شی.اودنبی کريم ﷺ قول داديگ چی دسهو دوه سجدي دسلام نه پس دی.

(۳)داحنافو عقلی دليل داديگ چی په اجماع سجده سهو نشی مکرر کيدی .اود سلام نه مخکي د سجده سهو کولو په صورت کي دتکرار امکان ديگ.په دی طريقه چی دسلام نه

مخکي ئیگ سجده اوکوه. بیاچی کله دسلام اوولو وخت راغیگ نو د ده شك شو چی دری رکعته شوی دی اوکه خکلور په دی سوچ کي پروت وو تردی چی په سلام کي تاخیراوشو بیا وریاد شو چی خکلور رکعته شوی دی نواوس دسلام دتاخیرد وجی په ده دوه سجدي د سهو واجب شویگ نودا کس به دوباره سجده سهوکوی اوکه نه نودوه صورتونه دی که ده دوباره سجده سهواونکوه نوپه مانحگه کي به داسی نقص باقی پاتیگ شی چی د هغی تلافی نه ده شویگ اوکه دوباره ئیگ سجده سهواوکوه نوسجده سهو به مکررشی حالانکه دا په اجماع سره غیر مشروع ده په دی وجه مناسب دی چی سجده سهو د سلام نه پس اوشی چی دتگولوسهوو تلافی اوشی

**مسئله:** دسجده سهو نه مخکي دواړو طرف ته سلام واړوی اوکه یوطرف، په دی باره کي د هدایه دمصنف په نزد راجح دا دی چی دواړو طرفونو ته سلام واړوی

(۱) ددی قائل شمس الائمه سرخسی، صدرالاسلام اوفقیه ابواللیث دی

(۲) بعضی حضرات وائي چی د امام ابو حنیفه رحمه الله اود امام ابو یوسف په نزد هم داحکم دي اودشیخ الاسلام خواهرزاده، علامه فخرالاسلام اودصاحب ایضاح په نزد راجح دادی چی صرف کس طرف ته سلام واړوی.

هدایه مصنف دلیل دابیان کړې دې چی په احادیثوکي کوم خائي لفظ دسلام ذکر دې دهغی نه متعارف اومعهود سلام مراددې اومتعارف دواړو طرف ته سلام اړول دی یوطرف ته مراد نه دی ،په دی وجه دواړو طرف ته سلام اړول ضروری دی.

(۳) د شیخ الاسلام خواهرزاده وغیره دلیل دادې چی دسلام دوه حکمونه دی .یوخودقوم دپاره تحیه او دعا .او بل قطع کول د احرام.اودلته مونږ قطع کول مقصودنه دی .نومعلومه شوه چی تحلیل مراددې اوپه تحلیل کي تکرار نه وی.په دی وجه دسلام دتکرار هیڅ ضرورت نشته.بلکه یوطرف ته به کافی وی.

*****************

## ۱۷۸_ بابُ مَا جَاءَ فِي التَّشَهُّدِ فِي سَجْدَتَيِ السَّهْوِ

### په سجده سهو کي دتشهد وئیلو بیان

۳۹۵_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَشْعَثُ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ خَالِدٍ الحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي المُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «صَلَّى بِهِمْ فَسَهَا فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ تَشَهَّدَ ثُمَّ سَلَّمَ» قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَرَوَى مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي المُهَلَّبِ وَهُوَ عَمُّ أَبِي

قِلَابَةَ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَرَوَى مُحَمَّدٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، وَأَبُو الْمُهَلَّبِ اسْمُهُ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرٍو، وَيُقَالُ أَيْضًا: مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو، وَقَدْ رَوَى عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، وَهُشَيْمٌ وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ بِطُولِهِ، وَهُوَ حَدِيثُ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "سَلَّمَ فِي ثَلَاثِ رَكَعَاتٍ مِنَ الْعَصْرِ، فَقَامَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ الْخِرْبَاقُ" وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي التَّشَهُّدِ فِي سَجْدَتَيِ السَّهْوِ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: يَتَشَهَّدُ فِيهِمَا وَيُسَلِّمُ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَيْسَ فِيهِمَا تَشَهُّدٌ وَتَسْلِيمٌ وَإِذَا سَجَدَهُمَا قَبْلَ السَّلَامِ لَمْ يَتَشَهَّدْ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالَا: إِذَا سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ قَبْلَ السَّلَامِ لَمْ يَتَشَهَّدْ. (1)

**ترجمه** : دعمران بن حصين رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم مونږ ته مونځ راكولو او سهو ورنه اوشوه او بيا يي دوه سجدي اوكړي بيا يي تشهد اووئيل او بيا يي سلام اوګرځولو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، عبدالوهاب ثقفي خشين او ددينه علاوه نورو خلقو دا روايت په سند د "خالد الحذاء عن ابي قلابة" سره نقل كړي دي او هغه همدا دعمران بن حصين حديث دي چي رسول الله صلي الله عيله وسلم په مازيګر كي صرف دري ركعاتونه اوكړل او سلام يي اوګرځولو نو يو كس پاڅيدو چي خرباق به ورته وئيلي كيدل او تپوس يي اوكړو ايا په مونځ كي كمي اوكړي شو او كه ستاسو نه هير شو

په سجده سهو كي دتشهد په سلسله كي داهل علمو اختلاف دي دبعضو قول دي چي دسجده سهو نه پس به تشهد وائي او سلام به ګرځوي او بعضي وائي چي په سجده سهو كي تشهد او سلام ضروري نه دي او كله چي څوك دسلام نه مخكي سجده سهو كوي نو تشهد دي نه وائي همدا دامام احمد او اسحاق قول دي چي كله څوك دسلام نه مخكي سجده كوي نو تشهد دي نه وائي (اختلاف په هغه صورت كي دي كله چي سجده سهو دسلام نه پس وي).

**تشريح** : مسئله: درود على النبي كريم صلي الله عليه وسلم اوماثوره دعاګاني په قعدي د صلوة كي ونيل پكاردي اوكه په قعده د سهو كي. دقعده صلوة نه د سجده سهو نه مخكني قعده مراد ده.اود قعده سهو نه مراد د سجده (سهو) نه پس قعده ده.

په دى باره كي د احنافو اهل علمو متعدد اقوال دي:

---

1 سنن ابي داود في الصلاة ٢٠٢ (١٠٣٩). سنن النسائي في السهو ٢٣ (١٣٣٧). (تحفة الأشراف: ١٠٨٨٥)

(١) امام طحاوی فرمائی چی په دواړو قعدوکي دی اووائی یعنی په قعدی دصلوة کي هم اوپه قعدی دسهو کي هم.اودشیخینو په نزد به په قعدی دصلوه کي وائی یعنی دسجده سهو نه مخکي.

(٢)اودامام محمد په نزد به په قعده د سهوکي وائی یعنی دسجده سهونه پس. مصنف دهدايه هم دی ته صحیح ونیلی دی.

امام طحاوی دخپل مذهب تائید کي یوه ضابطه بیان کړیګ ده. چی هرهغه قعده چی : هغی په آخرکي سلام وی.په هغی کي به درود علی النبي کریم صلي الله علیه وسلم ونیلی شی نو ددی ضابطی په رنړاکي دواړو قعدوکي یعنی په قعدی دصلوه اوپه قعدی دسهو په آخر کي سلام شته.

د امام محمد دلیل دادي چی درود او دعا د مانځه په آخری قعده کي ونیلی شی.اوپه کوم کس چی سجده سهوواجب شوه.د هغه دغه سلام کول چی دسجده سهو دپاره دي.هغه د مانځه نه ویستل کوی.اوچی دا سلام د مانځه نه ویستل کوی.نوهم قعده د صلوة. قعده د ختم شوه.اود امام محمد په نزد چونکه دا سلام دمانځه نه خارجول نه کوی.بلکه دسجده سهو نه پس کوم چی سلام دی هغه د مانځه نه خارجول کوی.په دی وجه به قعده سهو قعده دختم وی.نه داچی قعده دصلوة اود درود او دعاء مقام چونکه دمونځ آخردي.په دی وجه په قعده سهو کي به درود او دعا ونیلی شی.په قعده دصلوة کي به نشی ونیلي.د امام محمد قول مفتیٰ به دي.

****************

## ١٧٩_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُصَلِّي فَيَشُكُّ فِي الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ

### کله چي دمونځ کولو په وخت کي دچا دکمي یا زیاتي کولو شک پیدا شي نو څه به کوي

٣٩٦_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ عِيَاضٍ يَعْنِي ابْنَ هِلَالٍ. قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي سَعِيدٍ أَحَدُنَا يُصَلِّي فَلَا يَدْرِي كَيْفَ صَلَّى، فَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلَمْ يَدْرِ كَيْفَ صَلَّى فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُثْمَانَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: " إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي الْوَاحِدَةِ وَالثِّنْتَيْنِ

فَلْيَجْعَلْهُمَا وَاحِدَةً وَإِذَا شَكَّ فِي الثِّنْتَيْنِ وَالثَّلَاثِ فَلْيَجْعَلْهُمَا ثِنْتَيْنِ وَيَسْجُدُ فِي ذَلِكَ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ " وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَصْحَابِنَا، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا شَكَّ فِي صَلَاتِهِ فَلَمْ يَدْرِ كَمْ صَلَّى فَلْيُعِدْ. (1)

**ترجمه** عياض يعني ابن هلال وائي چي ما ابو سعيد خدري رضي الله عنه ته اوونيل کله کله يو کس مونځ کوي او دا ورته نه وي معلومه چي څومره رکعاتونه يي کړي دي (نو داسي کس به څه کوي) ابوسعيد خدري رضي الله عنه اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي په تاسو کي يو کس مونځ کوي او دا ورته نه وي معلومه چي څومره مونځ يي کړي دي نو هغه دي په ناسته دسهو دوه سجدي اوکړي (په يقيني خبره دبناء کولو نه پس) امام ترمذي وائي دابوسعيد حديث حسن دي او په دي باب کي دعثمان، ابن مسعود، عائشه ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دا حديث دابوسعيد خدري نه په نورو سندونو هم مروي دي او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي فرمائيل يي کله چي په تاسو کي دچا په يو يا دوه کي شك پيدا شي نو دادي يو اوګڼي او کله چي دچا په دوو او دريو کي شك پيدا شي نو دا دي دوه اومني او دسلام ګرځولو نه مخکي دي دسهو دوه سجدي اوکړي او په همدي باندي زمونږ دفقهاؤ او محدثينو عمل دي دبعضي اهل علمو قول دي کله چي دچا پخپل مونځ کي شك پيدا شي او هغه ته نه وي معلومه چي څومره رکعاتونه يي کړي وي داسي کس به خپل مونځ راګرځوي.

***************

٣٩٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ الشَّيْطَانَ يَأْتِي أَحَدَكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَيَلْبِسُ عَلَيْهِ حَتَّى لَا يَدْرِيَ كَمْ صَلَّى فَإِذَا وَجَدَ ذَلِكَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ " قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

---

1 ـ سنن ابي داود في الصلاة ١٩٨ (١٠٢٩). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢٩ (١٢٠٤). (تحفة الأشراف: ٤٣٩٦). مسند احمد (٣ في ١٢، ٣٧، ٥٠، ٥١، ٥٣)

2 ـ صحيح البخاري في الأذان ٤ (٦٠٨). والعمل في الصلاة ١٨ (١٢٢٢). والسهو ٦ (١٢٣١). وبدء الخلق ١١ (٣٢٨٥). صحيح مسلم في الصلاة ٨ (٣٩). والمساجد ١٩ (٥٤٠). سنن ابي داود في الصلاة ١٩٨ (١٠٣٠). سنن النسائي في الأذان ٣٠ (٦٧١).

دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي انسان ته شيطان دمونځ په وخت کي راځي او ده لره په شك کي غورځوي تردي چي انسان ته ياد پاتي نشي چي څومره رکعاتونه يي کړي دي چنانچه په تاسو کي که څوك دا قسم شبه محسوس کړي نو هغه لره پکار دي چي په ناسته ناسته دي دسهو دوه سجدي اوکړي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

٣٩٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ ابْنُ عَثْمَةَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا سَهَا أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلَمْ يَدْرِ وَاحِدَةً صَلَّى أَوْ ثِنْتَيْنِ فَلْيَبْنِ عَلَى وَاحِدَةٍ فَإِنْ لَمْ يَدْرِ ثِنْتَيْنِ صَلَّى أَوْ ثَلَاثًا فَلْيَبْنِ عَلَى ثِنْتَيْنِ فَإِنْ لَمْ يَدْرِ ثَلَاثًا صَلَّى أَوْ أَرْبَعًا فَلْيَبْنِ عَلَى ثَلَاثٍ وَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي کله چي يو کس نه په مونځ کي هيريدل اوشي او هغه ته دا نه وي ياد چي ما څومره رکعاتونه کړي دي يو رکعات مي کړي دي او که دوه نو داسي صورت کي دي دي يو اومني او که دا ورته نه وي معلومه چي دوه رکعاتونه کړي دي او که دري نو په داسي صورت کي دي دوه اومني او په دي دي بناء اوکړي او که څوك په دي نه پوهيږي چي دري رکعاتونه مي کړي دي او که څلور نو په دريو دي بناء اوکړي او دسلام ګرځولو نه مخکي دي د دسهو دوه سجدي اوکړي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي دا حديث دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه په نورو سندونو هم مروي دي

ـ والسهو ٢٥ (١٢٥٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٣٥ (١٢١٦) . (تحفة الأشراف : ١٥٢٣٩) . مسند احمد (٢ في ٢١٢، ٢٥٨، ٢١١، ٢٦٠، ٥٠٣، ٥٢٢، ٥٢١)

[1] ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٢ (١٢٠٩) . (تحفة الأشراف : ٩٧٢٢) . مسند احمد (١ في ١٩٠، ١٩٣)

**تشريح** : دشك واقع كيدو په حالت کي دوه صورتونه دي .که د ادا شوی رکعتونو دمقدار په باره کي زيات شك راشي.نو ددی دوه صورتونه دی(١)یاخوبه ده ته د يوطرف ظن غالب وی(٢)، یا به نه وی که ظن غالب وی.نوهم د هغی مطابق دی عمل کوی.ځکه چی دنبی کریم ﷺ ارشاددی.

(من شك فی صلاته فليتحر الصواب) ملاعلی قاری د صحيحنو په حواله دا حديث څه قدری په تفصيل سره ذکرکړي دی:

(عن ابن مسعود(رضي الله عنه) ان النبیﷺ قال إذا شك أحدكم فليتحر الصواب وليتم عليه ثم ليسلم ثم ليسجد سجدتين)

يعنی چی کله په تاسو کي چاته شك پيښ شی.نوهغه دی درست خبري دپاره په زړه سره تحری اوکړی.اودتحری اوډظن غالب مطابق دی عمل اوکړی.بیادی سلام واړوی.اودوه سجدي دی اوکړی. دويم عقلی دليل دی چي که هرځل دمونځ د اعادی حکم ورکړې شی.نوحرج به واقع شی.د دی وجی د حرج لري کولو دپاره به په ظن غالب عمل کولی شی، اوکه ده ته د يوطرف هم ظن غالب نه وی.نو په اقل دی عمل اوکړی.يعنی که په دری يا څلور رکعته کي شك وی.اود هيڅ يوغالب ګمان نه وی.نودری رکعته دی خيال کړی، ددي قول دليل د رسول الله صلي الله عليه وسلم دا فرمان دی :

(من شك فی صلاته فلم يدر أثلاثا صلی أم أربعا بنی علی الأقل) امام ترمذی داحديث په دی الفاظوسره ذکر کړي دی : (عن عبد الرحمن بن عوف(رضي الله عنه) قال سمعت النبیﷺ يقول إذا سهی أحدكم فی صلاته فلم يدر واحدة صلی او ثنتين فليبن علی واحدة فأن لم يدر ثنتين صلی أو ثلاثا فليبن علی ثنتين فإذا لم يدر ثلاثا أو أربعا فليبن علی ثلاث).

که د سرنه دمونځ کولو اراده اوکړی.نو موجوده مشکوك فيه مونځ په سلام قطع کول غوره دی.يعنی باقاعده دی سلام واړوی.اودسرنه دی مونځ شروع کړی .په کلام سره مونځ قطع کول غوره نه دی.ځکه چی په شريعت کي سلام ته محلل ونيلی شوې دې. کلام نه،کلام خومفسد دمونځ دې.دنبي کريم صلي الله عليه وسلم حديث دی (تحليلها التسليم) نو په اسلامی شريعت او حديث رسولﷺ کي سلام محلل (دمونځ نه خارجونکی ) معلوم شو .نو په سلام د مونځ نه وتل غوره دی.په کلام نه اوکه دمونځ نه د وتلوصرف نيت اوکړې شی.اود مانځه قطع کونکی عمل موجود نه شی..نودا کافی نه دې.بلکه نيت چی تر کومه پورې داسی عمل سره متصل نه وی چی هغه قاطع دمونځ وی نو هغه لغونيت دې او ددی هيڅ اثرنشته.

په اقل دبناء کولو په صورت کي دی په هر رکعت قعده اوکړی.اوتشهد دی اووائی.مثلاً په رباعی مونځ کي مونځ گذار ته دا شك پیښ شو چی داړومبی رکعت دی اوکه دویم. اویوطرف ته ئې غالب گمان هم نه وی.نودادی ړومبی رکعت اوگنړی.خو ددی رکعت پوره کیدو نه پس دی قعده اوکړی.ځکه چی دا هم ممکن ده چی دا دویم رکعت وی.اوپه دویم رکعت قعده واجب ده.په دی وجه دې د قعدی په حکم کي اومنی. بیادی پاسی دریم رکعت دی اوکړی.او بیادی قعده اوکړی.ځکه ممکن ده چی دا څلورم رکعت وی.اوپه څلورم رکعت قعده فرض ده.بیا دی پاڅي څلورم رکعت دی اوکړی . او قعده دی اوکړی. ځکه چی دمونځ گذار په نزد دی د څلورم رکعت په حکم کي دې.او په څلورم رکفت قعده فرض ده.حاصل داچی د فرض قعدی اود واجب قعدی پاتې کیدو په ویره دی په هر رکعت قعده اوکړی.(عنایه شرح هدایه)

****************

## ١٨٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُسَلِّمُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ

### باب دي په بيان دهغه كس كي چي دماسپخين دمازيگر په مونځ كي په دوه دوه ركعاتو نو سلام واړوي

٣٩٩_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ أَبِي تَمِيمَةَ وَهُوَ: أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " انْصَرَفَ مِنَ اثْنَتَيْنِ، فَقَالَ لَهُ ذُو الْيَدَيْنِ: أَقُصِرَتِ الصَّلَاةُ أَمْ نَسِيتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَصَدَقَ ذُو الْيَدَيْنِ. فَقَالَ النَّاسُ: نَعَمْ. فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى اثْنَتَيْنِ أُخْرَيَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ ثُمَّ كَبَّرَ فَرَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ " قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَذِي الْيَدَيْنِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ. فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْكُوفَةِ: إِذَا تَكَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ نَاسِيًا أَوْ جَاهِلًا أَوْ مَا كَانَ فَإِنَّهُ يُعِيدُ الصَّلَاةَ. وَاعْتَلُّوا بِأَنَّ هَذَا الْحَدِيثَ كَانَ قَبْلَ تَحْرِيمِ الْكَلَامِ فِي الصَّلَاةِ. قَالَ: وَأَمَّا الشَّافِعِيُّ فَرَأَى هَذَا حَدِيثًا صَحِيحًا. فَقَالَ بِهِ، وقَالَ: هَذَا أَصَحُّ مِنَ الْحَدِيثِ الَّذِي رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي " الصَّائِمِ إِذَا أَكَلَ نَاسِيًا فَإِنَّهُ لَا يَقْضِي وَإِنَّمَا هُوَ رِزْقٌ رَزَقَهُ اللَّهُ ". قَالَ الشافعي: وَفَرَّقَ هَؤُلَاءِ بَيْنَ الْعَمْدِ وَالنِّسْيَانِ فِي أَكْلِ الصَّائِمِ بِحَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ. وقَالَ أَحْمَدُ فِي حَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ: إِنْ تَكَلَّمَ الْإِمَامُ فِي شَيْءٍ مِنَ

صَلَاتِهِ وَهُوَ يَرَى أَنَّهُ قَدْ أَكْمَلَهَا ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ لَمْ يُكْمِلْهَا يُتِمُّ صَلَاتَهُ، وَمَنْ تَكَلَّمَ خَلْفَ الْإِمَامِ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّ عَلَيْهِ بَقِيَّةً مِنَ الصَّلَاةِ، فَعَلَيْهِ أَنْ يَسْتَقْبِلَهَا. وَاحْتَجَّ بِأَنَّ الْفَرَائِضَ كَانَتْ تُزَادُ وَتُنْقَصُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَإِنَّمَا تَكَلَّمَ ذُو الْيَدَيْنِ وَهُوَ عَلَى يَقِينٍ مِنْ صَلَاتِهِ أَنَّهَا تَمَّتْ، وَلَيْسَ هَكَذَا الْيَوْمَ لَيْسَ لِأَحَدٍ أَنْ يَتَكَلَّمَ عَلَى مَعْنَى مَا تَكَلَّمَ ذُو الْيَدَيْنِ، لِأَنَّ الْفَرَائِضَ الْيَوْمَ لَا يُزَادُ فِيهَا وَلَا يُنْقَصُ، قَالَ أَحْمَدُ نَحْوًا مِنْ هَذَا الْكَلَامِ. وقَالَ إِسْحَاقُ نَحْوَ قَوْلِ أَحْمَدَ فِي هَذَا الْبَابِ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم (دماسپخين يادمازيگر) دوه ركعاتونه اوكړل او دمقتديانو طرف ته راوګرځيدو ذواليدين عرض اوكړو اي دالله رسوله ايا په مونځ كي كمي راغلو او كه ستاسو نه هير شول؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم تپوس اوكړو ايا ذواليدين رښتيا وائي؟ خلقو عرض اوكړو هو. رسول الله صلي الله عليه وسلم دوه ركعاتونه اوكړل او بيا يي سلام اوګرځولو او بيا يي الله اكبر اووئيل او بيا يي دخپلي مخكنۍ سجدي پشان او يا يي ددينه لږه اوږده سجده اوكړه او بيا يي الله اكبر اووئيل او سر يي پورته كړو بيا يي دخپلي مخكنۍ سجدي پشان يا ددينه لږه زياته سجده اوكړه يعني سجده سهو.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعمران بن حصين، ابن عمر، او ذواليدين رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. ددي حديث متعلق داهل علمو اختلاف دي اهل كوفه وائي كله چي څوك په مونځ كي په هيره يا په بي علمۍ كي يا په كومه بله وجه خبري اوكړي نو دا به دسره دوباره مونځ راګرځوي او هغوئ په دي حديث كي په ذكر شوي واقعه كي تاويل كوي او دا قول كوي چي دا واقعه دهغه وخت سره تعلق لري كله چي په مونځ كي دخبري كولو حرمت نه وو راغلي، امام شافعي دا حديث صحيح ګڼرلي دي او هم ددي حديث مطابق يي فتوي وركړي ده دامام شافعي قول دي چي داحديث دهغه حديث نه زيات صحيح دي كوم چي دروژه دار په سلسله كي مروي دي كله چي هغه په هيره خوراك

---

[1] ـ صحيح البخارى في الأذان ٨٨ (٤٨٢). والأذان ٦٩ (٧١٤). والسهو ٣ (١٢٢٧). و٣ (١٢٢٨). و٨٥ (١٣٦٧). والأدب ٣٥ (٦٠٥١). وأخبار الآحاد ١ (٧٢٥٠). صحيح مسلم في المساجد ١٩ (٥٧٣). سنن ابي داود في الصلاة ١٩٥ (١٠٠٨). سنن النسائي في السهو ٢٢ (١٢٢٥). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٣٤ (١٢١٤). (تحفة الأشراف: ١٤٤٤٩). مسند احمد (٢ في ٢٣٥، ٤٢٣، ٤٦٠). سنن الدارمي في الصلاة ١٧٥ (١٥٢٨).

اوکړي نو په هغه باندي دروژي قضاء نشته ځکه چي دي دالله تعالي ورکړي رزق خوري. امام شافعي مزيد وائي دي خلقو چي دروژه دار په قصدي خوراك کولو او دهيري په صورت کي په خوراك کولو کي فرق کړي دي دا دابوهريره رضي الله عنه دحديث په وجه دي. امام احمد دابوهريره دحديث متعلق وائي که امام دا اوګنړي چي دده مونځ پوره شوي دي او څه خبري اوکړي او بيا ورته معلومه شي چي دده مونځ خو لا پوره شوي نه دي نو دي دي خپل مونځ پوره کړي او څوك چي دامام په اقتداء کي ولاړ وي او خبري اوکړي او دا ورته معلومه وي چي دي وخت کي دده په ذمه دمونځ څه حصه باقي ده نو په هغه باندي لازم دي چي خپل مونځ راوګرځوي او هغوئ په دي خبره استدلال کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي په فرائضو کي کمي زيادت راتلي شو او ذواليدين چي کومي خبري کړي وي دا خو صرف په دي وجه وي چي دهغه يقين وو چي مونځ کامل شوي دي او اوس خو دهيچا دپاره دا قسم خبري کول جائز نه دي کومي چي د ذواليدين دپاره جائز کړي شوي وي ځکه چي اوس په فرائضو کي کمي زيادت نشي راتلي، دامام احمد قول هم دي قول ته نزدي دي او اسحاق بن راهويه هم په دي باب کي دامام احمد دقول مطابق رائي اختيار کړي ده

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي په مونځ کي خبري کول دمونځ دپاره مفسد دي او کنه دي.

(۱) دامام ابو حنيفه په نزد کلام في الصلاة مطلقا مفسد دمونځ دي برابره خبره ده چي قصدا وي او که سهوا وي او يا جهلا وي

(۲) دامام شافعي په نزد که کلام سهوا يا جهلا وي نو مفسد دمونځ نه دي

(۳) د امام مالك په نزد په کلام في الصلاة دمونځ داصلاح دپاره وي نو مفسد نه دي او کنه نو مفسد به وي.

(۴) دامام احمد په نزد که چري کلام في الصلاة دمونځ دپوره کيدو په ګمان باندي وي نو مفسد نه دي حاصل دکلام دادي چي دائمه ثلاثه په نزد في الجمله کلام مفسد دصلاة نه دي او دامام ابو حنيفه په نزد مفسد دمونځ دي.

امام ابو حنيفه ددي قراني ايت نه استدلال کوي "قوموا لله قانتين" دلته دقنوت نه مراد سکوت دي او دا ايت دکلام في الصلاة په ممانعت کي نازل شوي دي او په دي کي عموم دي هر قسم کلام به منع وي، دزيد بن ارقم بيان دي فرمائي چي مونږ به په مونځ کي خبري کولي تردي پوري چي ايت کريمه قوموا لله قانتين نازل شو نو مونږ ته دسکوت کولو حکم اوکړي شو او کلام في الصلاة منع کړي شو دا رنګي داحنافو دويم دليل په مسلم کي دمعاويه رضي الله

عنه حديث دي او دريم دليل يي په نسائي كي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه واقعه ده په كوم كي چي دحبشي نه دراتلو واقعه ذكر شوي ده د دلائلو تفسير په فتح القدير كي كتلي شي.
دليل دائمه ثلاثه حديث الباب دي چي رسول الله څلور ركعاتي مونځ وركړو نو ذواليدين دا سوال اوكړو "اقصرت الصلاة ام نسيت يارسول الله" رسول الله ورته اوفرمائيل هيڅ هم نه دي شوي نورو صحابه كرامو چي دذواليدين تصديق اوكړو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم يو ركعات بل اوكړو او دا تمامه معامله دمونځ په دوران كي شوي وه لهذا كلام في الصلاة ددوئ په نزد مفسد دصلاة نه دي.
ددي جواب دادي چي دا واقعه منسوخ شوي ده بيا امام شافعي زمونږ په دي جواب دري اعتراضات كړي دي چي تفصيل يي دعلم فقه په مطولاتو كي مذكور دي "من ارادها فاليراجع" والله اعلم بالثواب.

****************

## ١٨١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ فِي النِّعَالِ
### دپيزار دخپو كولو په حالت كي د مونځ كولو بيان

٤٠٠ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ أَبِي مَسْلَمَةَ، قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: "أَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي نَعْلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي حَبِيبَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ، وَشَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، وَأَوْسٍ الثَّقَفِيِّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَطَاءٍ رَجُلٍ مِنْ بَنِي شَيْبَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. [1]

**ترجمه**: دابومسلمه سعيد بن يزيد بيان دي فرمائي چي دانس بن مالك رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم به په پيزار كي مونځ كولو؟ نو هغه اوفرمائيل هو، په پيزار كي به يي مونځ كولو.
امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعبدالله بن مسعود ، عبدالله بن ابي حبيبه ، عبدالله بن عمرو ، عمرو بن حريث، شداد بن اوس ثقفي او

---

[1] ـ صحيح البخاري في الصلاة ٢٢ (٣٨٦) ، واللباس ٣٧ (٥٨٥٠) . صحيح مسلم في المساجد ١٣ (٥٥٥) . سنن النسائي في القبلة ٢٣ (٧٧٦) . (تحفة الأشراف : ٨٦٦) . مسند احمد (٣ في ١٠٠، ١٦٦، ١٨٩) . سنن الدارمي في الصلاة ١٠٣ (١٣١٨)

ابوهريره، او عطاء رضي الله عنهم دبني شيبه قبيلي يو فرد نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي.

**تشريح** : مذاهب دفقهاؤ.

دمذكوره حديث نه ثابتيږي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په پيزار كي مونځ كړي دي.

(۱) دامام احمد او اهل ظواهرو په نزد په پيزار كي مونځ كول مستحب دي.

(۲) دجمهور فقهاء او محدثينو په نزد مباح دي نه مستحب دي او نه مكروه دي.

داستحباب دقائلينو دليل په ابو داود كي دشداد بن اوس رضي الله عنه روايت دي "قال النبي صلي الله عليه وسلم خالفوا اليهود فانهم لايصلون في نعالهم ولا خفافهم".

جواب: كه چري دا حكم ديهوديانو دمخالفت په وجه وي نو اوس خو دهغوئ مخالفت دپيزار په وستلو كي دي ځكه چي په دي زمانه كي يهوديان پخپل معبد كي په پيزارونو كي عبادت كوي نو په دي وجه ددي مخالفت بغير پيزار نه په مونځ كولو كي دي باقي دا چي ددي حديث نه جواب كولو ته ضرورت نشته ځكه چي احناف هم دجواز قائل دي، علامه خطابي ليكلي دي داستحباب هيڅوك قائل نه دي بله دا چي ددي په سند كي مروان بن معاويه مدلس دي او عنعني كوي همدارنګي په دي روايت كي يعلاء بن شداد لې.

جواب نمبر(۲) : ابن دقيق العيد وائي په نعلين كي د مونځ كولو رخصت دي او مقصد دصلاة نه دي اګر چي په دي كي زينت په مصلي دي مګر په دي كي دنجاست احتمال هم شته او قاعده داده چي جلب دمصالحو او منفعت مؤخر وي د دفعي دمفاسدو او مضرت نه لهذا دمونځ كولو وخت كي پيزار ويستل پكار دي مګر دا جواز په يو څو شرائطو مشروط دي:

(۱) پيزار به داسي وي چي دانسان ګوتو لره به په زمكه دلګيدو نه منع كونكي وي.

(۲) پيزار به داسي وي چي جومات نه ګنده كوي.

(۳) پيزار به داسي وي چي ګنده به نه وي بلكه پاك به وي.

معارف السنن په حواله دعلامه زاهد الكوثري ليكلي دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كي په مسجدونو كي كانړي او ګيټئ موجود وي مګر نن سبا په مساجدونو كي فرشونه وي نو په دي وجه كه دپيزار په ذريعه دمسجد دګنده كيدو خطره وي نو جائز به نه وي. مګر دنن سبا پيزار دي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دزماني په پيزار باندي قياس نكړي شي ددي يو څو وجوهات دي.

(۱) په هغه زمانه كي به پيزار دومره نرم وو چي دپيزار په موجودګئ كي به هم دګوتو راتاوول اسان وو په خلاف دهغه پيزار چي كوم اوس استعماليږي ځكه چي دا سخت وي كه چري پيزار داسي وي چي دخپو ګوتي دپيزار اخري حصي ته نشي رسيدلي نو په دي كي به مونځ نه كيږي

دارنګي هغه زمانه کي به خلق اودس ماتولو دپاره صحرا، ته تلل او په کانړو به يي استنجاء کوله مګر نن سبا په ليټرين کي دنجاست او تلويث احتمال زيات وي
۳، دا رنګي په هغه زمانه کي به په کوڅوکي نجاست موجود نه وو او کوڅي پخي هم نه وي که يو څيز به په نجاست ګنده شو نو په شګو پوري دمږلو په وجه به ختميدو
او کوم حديث چي دابوهريره رضي الله عنه نه دايت خذوا زينتکم په تفسير کي وارد دي چي "خذوا زينة الصلاة" ددينه ابن حجر جواب کړي دي چي ابن عدي په الکامل کي دابن مردويه په حواله ليکلي دي چي دا حديث سخت ضعيف دي ،معارف السنن، او قاضي شوکاني هم په الفوائد المجموعه کي ددي حديث تضعيف کړي دي ،محاسن ترمذي،

***************

## ۱۸۲_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْقُنُوتِ فِي صَلاَةِ الْفَجْرِ

### دسحر په مونځ کي ددعا قنوت وئيلو بيان

د وترو په هر رکعت کي د سورة فاتحه او بل يو سورت وئيل په اتفاق سره واجب دی. دصاحبينو او امام شافعی په نزد خو ددی وجی چی وتر سنت دی.او په سنتو او نوافلو کي په هر رکعت کي قرات مسنون دی.
او د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد وتر اګرچی واجب دی.خو چونکه د وترو د وجوب ثبوت په سنت سره دي.او سنت مفيد د يقين نه دی.نو څکه د دی په وجوب کي يوقسم شك پاتي شو.نو د احتياط د وجی امام ابو حنيفه رحمه الله په هر رکعت کي قرات واجب اوګرځولو.لکه څنګه چی په سنتو او نوافلو کي په هر رکعت کي قرات واجب دي.
د قنوت لوستلو طريقه داده.چی په دريم رکعت کي د سورة فاتحه د قرات او ضم د سورت نه پس چی کله د دعاء قنوت وئيلو اراده اوکړی.نو خپل دواړه لاسونه به د غوږونو پوري پورته کړی.او تکبير به اووائی بيا دی دعاءقنوت اووائی . تکبير وئيل واجب دی.
دليل ددی قول دا دي چی د مصلی حالت بدل شو.په دی طريقه چی اول په حقيقی قرات کي مشغول وو.او اوس په شبيه قرات يعنی دعاء قنوت کي مشغوليږی.او چونکه تکبيرات مشروع شوی دی.د حالت تبديلئ په وخت کي نو څکه په دی موقع هم تکبير وئيل واجب دي.(اشرف الهدايه. شرح هدايه)

۴۰۱_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالاَ: حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يَقْنُتُ فِي صَلاَةِ الصُّبْحِ وَالمَغْرِبِ " قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ

عَبَّاسٍ، وَخُفَافِ بْنِ أَيْمَاءَ بْنِ رَحْضَةَ الغِفَارِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ البَرَاءِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي القُنُوتِ فِي صَلَاةِ الفَجْرِ. فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمُ القُنُوتَ فِي صَلَاةِ الفَجْرِ. وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ. وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: لَا يُقْنَتُ فِي الفَجْرِ إِلَّا عِنْدَ نَازِلَةٍ تَنْزِلُ بِالْمُسْلِمِينَ. فَإِذَا نَزَلَتْ نَازِلَةٌ فَلِلْإِمَامِ أَنْ يَدْعُوَ لِجُيُوشِ الْمُسْلِمِينَ. [1]

**ترجمه**: دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دسحر او ماښام په مونځ كي دعا قنوت لوستلو.

امام ترمذي واني دبراء حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعلي. انس. ابوهريره. ابن عباس، او خفاف بن ايماء بن رحضه غفاري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. په سحر كي دقنوت ونيلو په سلسله كي په اهل علمو كي اختلاف دي دبعضي صحابه كرامو او اهل علمو قول دي چي دسحر په مونځ كي دعاء قنوت لوستل پكار دي او همدا دامام مالك او شافعي قول دي، اسحاق بن راهويه واني دسحر په مونځ كي به دعاء قنوت نه واني مگر هغه وخت كي ونيلي شي كله چي په مسلمانانو كوم مصيبت نازل شوي وي په داسي صورت كي امام لره پكار دي چي دمسلمانانو دلښكرونو دپاره دعا اوغواړي.

**تشريح**: **دعا قنوت ويل په كومو مونځونو كي پكار دي**

په غير دوترو نه په قنوت كي د اهل علمو دوه مذاهب دي:

(١)داحنافو په نزد د وترو نه علاوه په بل مونځ كي قنوت نشته.

(٢)امام شافعی فرمائی چی د سحر په مانځه كي قنوت مسنون دی.ابونصر بغدادی فرمائی چی د امام شافعی په نزد د سحر په مانځه كي قنوت ونيل مسنون دی.

**امام شافعی دليل** د انس (رضي الله عنه) حديث دي:

(كان رسول پاك صلي الله عليه وسلم يقنت في صلاة الفجر إلى أن فارق الدنيا).

يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم به د سحر په مانځه كي قنوت ونيل.تردی چی د دنيا نه رخصت شو.

**داحنافو دليل** د ابن مسعود (رضي الله عنه) حديث دي:

[1] ـ صحيح مسلم في المساجد ٥٢ (٦٧٨) . سنن ابي داود في الصلاة ٣٤٥ (١٤٤١) . سنن النسائي في التطبيق ٢٩ (١٠٤٤) . (تحفة الأشراف : ١٧٨٣) . مسند احمد (٤ في ٢٩٩) . سنن الدارمي في الصلاة ٢١٦ (١٦٣٨)

(أن النبي صلي الله عليه وسلم قنت في صلاة الفجر شهراً يدعو على حي من أحياء العرب).
رسول پاك صلي الله عليه وسلم يوه مياشت د سحر په مانخه كي قنوت ونيل.د عربود يوى قبيلى دپاره ئې خيرې كولې.
(۲)په خپله د انس (رضي الله عنه) نه نقل دى چى:
(قال قنت رسول الله صلي الله عليه وسلم في صلاة الفجر شهراً أو قال أربعين يوماً على أهل ذكوان وعصبة حين قتلوا القراء وهم سبعون رجلاً أو ثمانون)
يعنى رسول پاك صلي الله عليه وسلم يو مياشت يا څلويښت ورځې قنوت ونيلى وو.مقصد هغه خلقو ته خيري كول وو.چا چى اويا يا اتيا قاريان شهيدان كړى وو. ددى حديث نه هم معلومه شو چى رسول پاك صلي الله عليه وسلم د سحر په مانخه كي د څو ورځو نه علاوه دعاء قنوت نه دى ونيلي
(۳)ابوعثمان نهدى فرمائي:
(صليت خلف أبي بكر (رضي الله عنه) سنتين وصليت خلف عمر (رضي الله عنه) كذلك فلم أر واحداً منهما يقنت في صلاة الفجر).
مسئله: د طرفينو قول دى كه يو شافعي المسلك امام د سحر په مانخه كي دعاء قنوت اوونيل.اومقتدى حنفي وى.نو په داسى صورت كي د طرفينو په نزد دى حنفى المسلك مقتدى چپ وى.قنوت دى نه وائى.
(۲)اوامام ابويوسف فرمائى چى د امام اتباع دى كوى.يعنى حنفى المسلك مقتدى دى هم قنوت وائى.
دامام ابويوسف دليل دا دې چى مقتدىٰ په يقين سره د امام تابع دې.او اصل دا دې چى مقتدى دامام متابعت اوكړى.او د سحر په مانخه كي قنوت ونيل مختلف فيه دى.څكه چى د بعضي مجتهدينو په نزد د سحر په مانځه قنوت ونيل مسنون دى.او د بعضو په نزد د سحر په مانخ كي قنوت وو.څو منسوخ شوى دى. نو ددى اختلاف د وجى د سحر په مانخه كي قنوت ونيل او نه ونيل مشكوك او محتمل دى او دا ثابت اصول دادى چى اصل اويقيني څيز د شك د وجى نشى پريخودې.نوڅكه به د امام تابعدارى نه پريږدى.بلكه د امام تابعدارى به كوى.
د طرفينو دليل دا دې چى دسحر په مانخه كي قنوت ونيل منسوخ شوى دى.څكه چى رسول الله صلي الله عليه وسلم د سحر په مانخه كي يو مياشت قنوت ونيلى وو.بيا ئې پريخودى وو.او په منسوخ كي متابعت نشى كولې.نوڅكه دى حنفى المسلك مقتدى د قنوت په ونيلو كي د شافعي المسلك تابعدارى نه كوى.بلكه چپ دى ولاړ وى.

## په صورت دعدم اتباع کي دماموم متعلق دوه اقوال

(۱)پاتې شوه دا خبره چې مقتدی تابعداری نه کوی.نوڅه به کوی؟نو په دی باره کي د بعضي علما.ؤ رايه دا ده چې مقتدی دی چپ ولاړ وی چی په کوم ځيزکي تابعداری واجب ده.په هغی کي تابعداری اوشی.يعنی قيام او قنوت دوه ځيزونه دی.نو حنفی مقتدی دی په قيام کي د خپل امام تابعداری کوی.او په قنوت کي دی تابعداری نه کوی.

(۲) او د بعضو قول دې چې کله شافعی المسلك امام قنوت ونيل شروع کړی.نو حنفی المسلك دی کينی چې د امام پوره مخالفت ښکاره شی.ځکه چې چپ ولاړ کس د دعا کونکی سره شريك وی.لکه څنګه چې مقتدی قرات نه کوی.اوچپ ولاړ وی.خو ددی باوجود د امام سره په قرات کي شريك وی.

صاحب د عنايه د قول اول د اظهريت وجه دا ذکر کړې ده چې د امام فعل په مشروع او غير مشروع دواړو باندې مشتمل دې.نو قيام کوم چې مشروع دی .په دی کي دی د امام تابعداری کوی.او قنوت کوم چې غير مشروع دې.په دی کي دی اتباع نه کوی.بلکه چپ دی ولاړ وي . په عين الهديه کي ليکلی دی چې اول قول ددی وجی اظهر دې چې په مانځه کي د امام مخالفت کول اګرچې په رکن او شرط کي نه دی.خو بيا هم د دوو وجوهاتو د جهته بد دی. اول دا چې دا د اقتداء د شان نه خلاف دی.ځکه چې په حديث کي دی (إنما جعل الإمام ليؤتم به) يعنی امام خو ددی دپاره وی چې دده تابعداری اوکړې شی . دويم دا چې دا فعل ددی وجی که عمل کثير نه دې.مفسد هم نه دې.او لږ مکروه دې.

بعضي علماء فرمائی چې کله امام قنوت وائی.نوحنفی المسلك مقتدی دی التحيات وغيره اووائی.او د امام نه وړاندې دی سلام واړوی.ځکه چې امام دحنفی المسلك مقتدی په نزد په بدعت کي لګيا شو.نو دده د انتظار څه وجه نشته.مصنف د هدايه دا قول ذکر نکړو.ځکه چې په دی صورت کي سلام کوم چې امر مشروع دې.په دی کي دامام مخالفت لازميږی.اودا مناسب نه ده.

## په وترو کي دجهر او اخفا متعلق دوه اقوال دي

(۱) په قنوت کي اخفاء مختار ده.دعاء قنوت ويونکی که مقتدی وی او که منفرد وی.ځکه چې قنوت يوه دعا ده.او په دعاکي اخفاء غوره ده

(۲)د بعضي علما.ؤ خيال دا دې چې قنوت دی په جهر سره لولی.ځکه چې قنوت د قرآن سره مشابه دې.هم دا وجه ده چې د (اللهم إنا نستعينك) په باره کي صحابه کرامو اختلاف کړې دې چې آيا دا قرآن دی اوکه نه دې.د ابن مسعود(رضي الله عنه) قول دا دې چې قنوت د قرآن سورت دې.او ابی بن کعب(رضي الله عنه) فرمائی چې دا قرآن نه دې. عالمان هم ددی

قائلين دي.خو د احتياط تقاضا هم دا ده چی حائضه او نفاسه او جنب دي د لوستلو نه ځان ساتی(كفايه)

د عمر(رضي الله عنه) نه منقول دی:

(اللهم اغفرلنا وللمؤمنين والمؤمنات والمسلمين والمسلمات وألف بين قلوبهم وأصلح بينهم وانصرهم على عدوك وعدوهم اللهم العن كفرة أهل الكتاب الذين يصدون عن سبيلك ويكذبون رسلك ويقاتلو أوليائك اللهم خالف بين كلمتهم وزلزل أقدامهم وأنزل بهم بأسك الذى لا يرد عن القوم المجرمين بسم الله الرحمن الرحيم إنا نستعينك ونستغفرك ونؤمن بك ونتوكل عليك ونثنى عليك الخير نشكرك ولانكفرك ونخلع ونترك من يفجرك بسم الله الرحمن الرحيم اللهم إياك نعبد ولك نصلى ونسجد وإليك نسعى ونحفد ونرجوا رحمتك ونخشى عذابك إن عذابك بالكفار ملحق).

په بعضى رواياتو كي د (اللهم إنا نستعينك) نه شروع شوي ده. (احسن الهدايه. والكفايه.والعنايه علي الهدايه.)

****************

## ١٨٣_ باب مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الْقُنُوتِ

### د دعاء قنوت نه ويلو بيان

٤٠٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الأَشْجَعِيِّ، قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي: يَا أَبَةِ إِنَّكَ قَدْ صَلَّيْتَ خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ، وَعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ هَا هُنَا بِالْكُوفَةِ نَحْوًا مِنْ خَمْسِ سِنِينَ، أَكَانُوا يَقْنُتُونَ؟ قَالَ: أَيْ بُنَيَّ مُحْدَثٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ، وقَالَ سفيان الثوري: إِنْ قَنَتَ فِي الفَجْرِ فَحَسَنٌ وَإِنْ لَمْ يَقْنُتْ فَحَسَنٌ، وَاخْتَارَ أَنْ لَا يَقْنُتَ، وَلَمْ يَرَ ابْنُ المُبَارَكِ القُنُوتَ فِي الفَجْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَبُو مَالِكٍ الأَشْجَعِيُّ اسْمُهُ: سَعْدُ بْنُ طَارِقِ بْنِ أَشْيَمَ.[1]

---

[1] _ سنن النسائي في التطبيق ٣٢ (١٠٨١)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٣ (١٢٤١)، (تحفة الأشراف: ٤٩٧٦)، مسند احمد ٣/ ٤٧٢)

**ترجمه** : دابومالك سعد بن طارق اشجعي بيان دي چي ما خپل پلار طارق بن اشيم، ته عرض اوكړو چي اي پلاره تا خو په رسول الله صلي الله عليه وسلم او ابوبكر او عمر او عثمان رضي الله عنهم پسي مونځونه كړي دي او په علي رضي الله عنه پسي دي هم كړي دي او دلته دي په كوفه كي هم پنځه كالو پوري مونځونه كړي دي ايا هغوي به قنوت نازله لوستلو؟ زما پلار اوونيل اي زما بچيه دا بدعت دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او داكثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي، سفيان ثوري وائي كه دسحر مونځ كي څوك قنوت نازله اولولي نو هم ښه ده او كه څوك يې نه لولي نو هم ښه ده خو هغوي نه لوستل خوښ كړل او ابن مبارك به په سحر كي دعاء قنوت نه لوستل خوښول

*****************

٤٠٣ـ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه** : ابوعوانه دمالك اشجعي نه په همدي سند ددي يو هم معني روايت بيان كړي دي

*****************

## ١٨٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَعْطُسُ فِي الصَّلَاةِ

### په مونځ كي دپرنجي كولو بيان

٤٠٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا رِفَاعَةُ بْنُ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ الزُّرَقِيُّ، عَنْ عَمِّ أَبِيهِ مُعَاذِ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَطَسْتُ، فَقُلْتُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ مُبَارَكًا عَلَيْهِ كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَيَرْضَى، فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ، فَقَالَ: "مَنِ الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ؟" فَلَمْ يَتَكَلَّمْ أَحَدٌ ثُمَّ قَالَهَا الثَّانِيَةَ: "مَنِ الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ؟" فَلَمْ يَتَكَلَّمْ أَحَدٌ ثُمَّ قَالَهَا الثَّالِثَةَ: "مَنِ الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ" فَقَالَ رِفَاعَةُ بْنُ رَافِعٍ ابْنُ عَفْرَاءَ: أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "كَيْفَ قُلْتَ؟" قَالَ: قُلْتُ الْحَمْدُ لِلَّهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ مُبَارَكًا عَلَيْهِ كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَيَرْضَى، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدِ ابْتَدَرَهَا بِضْعَةٌ وَثَلَاثُونَ مَلَكًا أَيُّهُمْ يَصْعَدُ بِهَا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَنَسٍ، وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَعَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ رِفَاعَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَكَأَنَّ هَذَا الْحَدِيثَ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ

**الْعِلْمِ أَنَّهُ فِي التَّطَوُّعِ، لِأَنَّ غَيْرَ وَاحِدٍ مِنَ التَّابِعِينَ، قَالُوا: إِذَا عَطَسَ الرَّجُلُ فِي الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ إِنَّمَا يَحْمَدُ اللَّهَ فِي نَفْسِهِ وَلَمْ يُوَسِّعُوا فِي أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ.** [1]

**ترجمه** : رفاعه بن رافع رضي الله عنه بیان دي فرماني چي ما يو خل په رسول الله صلي الله عليه وسلم پسي مونځ اوکړو او په مونځ کي پرنجي راغي نو ما "الحمدلله حمدا كثيرا طيبا مباركا فيه مباركا عليه ومايحب ربنا ويرضي" اوونيل كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ نه فارغ شو او مونږ ته راوګرځيدو نو تپوس يې اوکړو په مانځه كي خبري چا كولي؟ نو هيچا ورته جواب ورنکړو نو بيا يې دوباره دا سوال اوکړو چي په مونځ كي چا خبري كولي نو دي ځل هم ورته چا جواب ورنکړو نو په دريم ځل يې بيا دا تپوس اوکړو چي په مونځ كي خبري چا كولي؟ رفاعه بن رافع وائي ما عرض اوكړو چي اي دالله رسوله خبري ما كولي . رسول الله رانه تپوس اوكړو تا په مونځ كي څه وئيلي وو؟ ابو رافع اوونيل ما داسي وئيلي دي :

"الحمدلله حمدا كثيرا طيبا مباركا فيه مباركا عليه ومايحب ربنا ويرضي"

نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په هغه ذات مي دي قسم وي دچا په اختيار كي چي زما روح دي د ديرشو نه زياتو فرشتي په دي باندي راتولي شوي چي په دوئ كي به څوك دا كلمات اسمان ته خيژوي.

امام ترمذي وائي رفاعه بن رافع حديث حسن دي ، او په دي باب كي دانس، وائل بن حجر، او عامر بن ربيعه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دبعضي اهل علمو په نزد دا واقعه په نفلي مونځ كي شوي ده ځکه چي دمتعددو تابعينو قول دي كله چي څوك په فرض مونځ كي پرنجي اوكري نو په زړه كي دي الحمدلله اووائي او ددينه زيات هغوئ اجازت نه دي وركړي.

**تشريح** : دحديث مطلب دادي چي له پرنجي والا الحمد لله اووايي نو په اوريدونكي يرحمك الله ويل اتفاقا لازم دي.

### دهر اوريدونكي په يرحمك الله ويلو كي دفقهاؤ مذاهب

داحنافو په نزد يرحمك الله ويل واجب علي الكفايه دي مطلب دادى كه چري دپرنجي

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ١٢١ (٧٧٣). سنن النسائي في الافتتاح ٣٦ (٩٣٢) . (تحفة الأشراف : ٣٦٠٦) . وراجع أيضا: صحيح البخاري في الأذان ١٢٦ (٧٩٩) . و سنن ابي داود في الصلاة ١٢١ (٧٧٠) . وسنن النسائي في التطبيق ٢٢ (١٠٦٣) . ومافي القرآن ٧(٢٥) . و مسند احمد (٤في٣٤٠)

اوريدونكي ډير كسان وي نو كه په دوئ كې يوكس يرحمك الله اووائي كافي به وي او وجوب به دټولو دذمې نه ساقط شي.
داكابرو علماؤ يوجماعت او صاحب دسفر السعادت وائي چي دپرنجي جواب وركول په اوريدونكي باندي فرض دي. او كه څوك جواب نه وركوي ګنهګار به وي
ليكن دشوافعو علماؤ په نزد سنت علي الكفايه دي
دامام مالك په مذهب كې يو څو اقوال دي ديو قول په اعتبار واجب دي او دبل قول په اعتبارسنت دي.
فليقل يهديكم الله ويصلح بالكم . كله چي پرنجي كونكي ته په يرحمك الله سره جواب وركړی شي نو پرنجي والابه يهديكم الله ويصلح بالكم وائي علماء وائي كه چري ددي سره يغفرالله لي ولكم يوځاي كړی شي نو ډير به بهتر وي.
د مسلم په حديث كي دي كه فرنجي كونكي الحمد لله ونه وايي نو "فلا تشمتوه" يعني جواب مه وركوئ.
معلومه شوه چي پرنجي والا الحمدلله اووائي نو په يرحمك الله سره دي جواب وركړی شي خو كه پرنجيدونكي الحمدلله ونيلي نه وي نو بيابه ورته په يرحمك الله جواب نشي وركولی همدارنګي كه چا الحمدلله اوونيل خوچا وانه اوريدل نو په دي صورت كي هم جواب وركول ضروري نه دي.
كه چري دا صورت پيښ شي چي په مجلس كي څوك پرنجي اوكړي او الحمدلله اووائي او هغه په مجلس كي بعضو كسانو اوريدلی وي او بعضو نه وي اوريدلی نو اوس چي په دوئ كي چا اوريدلی دی په هغوئ باندي جواب وركول لازم دي اوچاچه نه دی اوريدلی په هغوئ لازم نه دي.
قاضي ابوبكر ابن العربي المالكي ليكلي دي چي كله بعضو يرحمك الله اوونيل نو ددينه دا معلومه شوه چي هغه به الحمدلله ونيلي وي اوس كه چا نه وي اوريدلي هغوئ لره هم يرحمك الله ونيل پكار دي.
د فقهاؤ ديرحمك الله په جواب وركولو دويم اختلاف په دي كي دی چي كله څوك په مونځ ولاړ وي فرنجي وكړي نو مذكوره دعا به وايي او كه نه ؟ او د چا فرنجي واوري نو جواب وركول ضروري دي او كه ممنوع دي؟ . په دي باره كي د اهل علمو اختلاف دی: معارف السنن ليكلي دي: دجمهورو علماؤ قول دادی چي كه څوك داسي وكړي مونځ نه فاسد كيږي، البته ددي د استحباب هيڅوك ندي قائل.(معارف السنن)

**درفاعه بن رافع رضي الله عنه حالات**

نوم رفاعه كنيه ابو معاذ دمور نوم ام مالك بنت ابي سلول چي د عبدالله بن ابي منافق خور وه، رفاعه پلار رافع په قبيله بني خزرج کې دتولو نه ړومبی مسلمانيدونکی شخصيت دی، دبيعت عقبه نه دوه کاله مخکې مسلمان شوی دی او دده مور هم ربنتوني مومنه وه او رفاعه پخپله په عقبه ثانيه کې دخپل پلار سره مکي ته لاړو او درسول الله په لاس مسلمان شو او په تمامو غزواتو کې يې شرکت کړی دی دبدر ذکر خو په بخاري کې دی خو په جنګ جمل او صفين کې هم دعلي رضي الله عنه سره ملګری وو چې په ۴۱ يا ۴۲هجري کې وفات شوی دی او دا دامير معاويه دحکومت ابتدائي زمانه وه يو څو روايات ورنه مروي دي چې دري ددينه په بخاري کې هم موجود دي.

***************

## ١٨٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي نَسْخِ الْكَلاَمِ فِي الصَّلاَةِ

### په مونځ کې دخبرو اترو دجواز منسوخ کيدو بيان

٤٠٥ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ أَبِي خَالِدٍ. عَنِ الْحَارِثِ بْنِ شُبَيْلٍ. عَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ. عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ. قَالَ: "كُنَّا نَتَكَلَّمُ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلاَةِ. يُكَلِّمُ الرَّجُلُ مِنَّا صَاحِبَهُ إِلَى جَنْبِهِ حَتَّى نَزَلَتْ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ سورة (البقرة) فَأُمِرْنَا بِالسُّكُوتِ وَنُهِينَا عَنِ الْكَلاَمِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ. وَمُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالُوا: إِذَا تَكَلَّمَ الرَّجُلُ عَامِدًا فِي الصَّلاَةِ أَوْ نَاسِيًا أَعَادَ الصَّلاَةَ. وَهُوَ قَوْلُ: سفيان الثوري، وَابْنِ الْمُبَارَكِ وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا تَكَلَّمَ عَامِدًا فِي الصَّلاَةِ أَعَادَ الصَّلاَةَ وَإِنْ كَانَ نَاسِيًا أَوْ جَاهِلًا أَجْزَأَهُ. وَبِهِ يَقُولُ: الشَّافِعِيُّ.(١)

**ترجمه** دزيد بن ارقم رضي الله عنه بيان دي چې مونځ به په رسول الله صلي الله عليه وسلم پسې په مونځ کې خبري اتري کولي او يو کس به دخپل خوا کې کس سره خبري کولي تردي [illegible]

[illegible]

(١) صحيح البخاري في العمل في الصلاة ٢ (١٢٠٠)، وتفسير البقرة ٤٢ (٤٥٣٤)، صحيح مسلم في المساجد ٧ (٥٣٩) سنن ابي داود في الصلاة ١٧٨ (٩٤٩). سنن النسائي في السهو ٢٠ (١٢٢٠) تحفة الأشراف (٣٦٦١) مسند احمد (٤/٣٦٨). ويأتي عند المؤلف في تفسير البقرة [illegible]

پوري چي ايت كريمه "وقوموا لله قانتين" نازل شو نو مونږ ته دخاموش اودريدو حكم اوشو او دخبرو كولو نه مونږ منع كړي شو.

**تشريح** : په خبروكولوسره دمونځ فاسديدو متعلق دوه مذاهب دي:

(۱)مسئله :كه يو كس په خپل مونځ كي په قصد يا په سهو كلام اوكړو.نو دده مونځ باطل شو.كلام د داسي حروفو آواز ته وائي چي مفيد د معنى وي.كله يو حرف وي.لكه .ق، يعنى بچ شه اوكه يوحرف بى معنى وي.نوكلام نه دې

(۲)او د امام شافعي په نزد د خطا او نسيان په صورت كي مونځ نه فاسديږي.په دى شرط چي اوږد نه وي.ځكه چي اوږد كار دخطاء او نسيان سره منافي دى.

**دامام شافعي مستدل** حديث معروف دې (رفع عن أمتي الخطأء والنسيان) يعنى زما دامت نه خطاء او نسيان پورته كړې شوې. ددينه استدلال په دوه وجو دى

(۱)او وجه د استدلال دا ده چي حكم په دوه قسمه وي.دنيوى (د مونځ فاسدونكى ) او اخروى (گناهگاريدل)نو لكه چي رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي زما د امت نه د خطاء او نسيان دنيوى او اخروى دواړه حكمونه پورته شوى دى.يعنى په دى دواړو كي نه څه ځيز فاسديږى.اونه په آخرت كي څه گناه شته

(۲)صاحب دعنايه ليكلى دى چي وجه د استدلال دا ده چي ددى دواړه حقيقت خو غير مرفوع دي.ځكه چي دا دواړه په خلقو كي موجود دى.نو ددى حكم يعنى فساد راوستل به مرفوع وى.

**داحنافو دليل** د معاويه بن الحكم اسلمى(رضي الله عنه) حديث دې.پوره حديث داسى دې

:(قال صليت خلف رسول الله صلي الله عليه وسلم فعطس بعض القوم فقلت يرحكم الله فرماني القوم بأبصارهم فقلت واثكل اماه مالي أراكم تنظرون إلى شزر فضربوا بأيديهم على أفخاذهم فعلمت أنهم يسكتوننى فلما فرغ النبي صلي الله عليه وسلم دعاني فوالله ما رأيت معلماً أحسن تعليما منه ما قهرني ولا زجرني ولكن قال إن صلاتنا هذه لايصلح فيها شئ من كلام الناس وإنما هي التسبيح والتهليل وقراءة القرآن)

يعنى معاويه بن حكم(رضي الله عنه) فرمائى چي ما په رسول الله صلي الله عليه وسلم پسې مونځ كولو.نو يو كس پرنجى اوكړو.ما ورته (يرحمك الله ) اوويل نو ما اوويل.ددوى ميندي دى بورى شي. ما څه چل كړي دې چي زه تاسو ته گورم چي په برندو سترگو گورئ.نو هغوى خپل پتونان په خپلو لاسونو اووهل،نو زه پوهه شوم چي دوى ما چپ كول غواړى چي كله رسول پاك صلي الله عليه وسلم د مانځه نه فارغ شو.نو زه يې راوغوښتلم.په الله قسم چي

ما د رسول پاك صلي الله عليه وسلم نه بنه معلم نه دی ليدلي چي ماته نۀ په غصه شوائ نۍ زه اورټلم.بلکه ويي فرمائيل چی زمونږ په دی مونځ کي د خلقو د خبرو نه دځه ځ ګنجائش نشته.دا خوصرف تسبيح ،تهليل او قرات د قران دي ، ددی حديث نه معلومه شو چی په مونځ کي د کلام عدم وجود د مونځ حق دي.لکه ځنګه چی د طهارت وجود د مونځ حق دي.نو لکه ځنګه چی دعدم طهارت سره مونځ جائز نه دي.دغه شان د کلام د وجود سره هم مونځ جائز نه دي.

**دامام شافعی د پیش کړی حدیث نه جواب** دا دي چی حديث (رفع عن أمتي الخطأ والنسيان) د ګناه په پورته کيدو باندي محمول دي.حاصل دادی . چی په حديث کي د آخرت حکم يعنی ګناه نه واقع کيدل په اجماع سره مراد دي.اوس که دنيوی حکم يعنی مفسد کيدل تري هم مراد واخستی شی.نو عموم مشترك لازميږی.حالانکه عموم مشترك جائز نه دي.

**په سهو او نسیان او خطا کي فرق** دادي چی سهو وائی.د قوت مدرکه نه د صورت زائله کيدل او نسيان د قوت حافظه نه د صورت زائله کيدل.تردی چی دا کس جديد محتاج شی.او خطاء دا ده چی صورت خو باقي وی.خو چی کله د يو ځيز د تکلم اراده اوکړی.نو بغير د ارادی نه بل ځيز په ژبه باندي راشي.په دی ځائي کي د سهو نه عامه معنی مراد ده.کومه چی دري واړه قسمونو ته شامل ده.اوچونکه په سهو او نسيان کي د شرعی حکم په اعتبار سره ځه فرق نشته.نوځکه مصنف هم د دی دواړو په مينځ کي ځه فرق اونکړو.

**دزيد بن ارقم رضي الله عنه حالات**

نوم زيد کنيه ابوعمر قبيله خزرج په ماشوموالي کي يتيم شوی وو او پرورش يي خپل تره عبدالله بن رواحه رضي الله عنه اوکړو او همدا دزيد په اسلام کي دداخليدو سبب اوګرځيدو دماشوموالي په وجه په غزواتو کي شريك شوی نه وو او شرکت يي په غزوه خندق کي کړی وو دی پخپله وائي ما په اولس غزواتو کي شرکت کړی دی، په دربار رسالت کي ډير مقرب وو کله چي به بيمار شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به يي عيادت له راتلو يو خل يي په سترګه درد راغلی وو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دده دعيادت دپاره راغی دجوړيدو نه پس يي ورنه تپوس اوکړو که دا مرض اوس هم باقي پاتي شوی وی نو ځه به دي کول زيد صبر اوکړو چي صبر او داجر اميد به مي کولو رسول الله ورته اوفرمائيل که داسي دي کولی نو دالله تعالي په وړاندي به بي ګناه ګرځيدلی وی (مسند احمد).

په ۶۸هجري کي په کوفه کي وفات شوی دی او دا دمختار بن ابي عبيد ثقفي زمانه وه دمرویاتو شمير يي ۹۰ دی مزيد حالات يي ابن سعد په طبقات کي ذکر کړي دي.

****************

## ١٨٦_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ عِنْدَ التَّوْبَةِ

### دصلاة توبه بيان

٤٠٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ أَسْمَاءَ بْنِ الْحَكَمِ الْفَزَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا، يَقُولُ: إِنِّي كُنْتُ رَجُلًا إِذَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثًا نَفَعَنِي اللَّهُ مِنْهُ بِمَا شَاءَ أَنْ يَنْفَعَنِي بِهِ، وَإِذَا حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ اسْتَحْلَفْتُهُ، فَإِذَا حَلَفَ لِي صَدَّقْتُهُ، وَإِنَّهُ حَدَّثَنِي أَبُو بَكْرٍ وَصَدَقَ أَبُو بَكْرٍ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَا مِنْ رَجُلٍ يُذْنِبُ ذَنْبًا ثُمَّ يَقُومُ فَيَتَطَهَّرُ ثُمَّ يُصَلِّي ثُمَّ يَسْتَغْفِرُ اللَّهَ إِلَّا غَفَرَ اللَّهُ لَهُ، ثُمَّ قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ وَمَنْ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلا اللَّهُ وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَى مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ (آل عمران) ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَمُعَاذٍ، ووَاثِلَةَ، وَأَبِي الْيَسَرِ وَاسْمُهُ: كَعْبُ بْنُ عَمْرٍو وَقَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ عُثْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ. وَرَوَى عَنْهُ شُعْبَةُ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، فَرَفَعُوهُ مِثْلَ حَدِيثِ أَبِي عَوَانَةَ، وَرَوَاهُ سفيان الثوري، وَمِسْعَرٌ فَأَوْقَفَاهُ وَلَمْ يَرْفَعَاهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مِسْعَرٍ هَذَا الْحَدِيثُ مَرْفُوعًا أَيْضًا، وَلَا نَعْرِفُ لِأَسْمَاءَ بْنِ الْحَكَمِ حَدِيثًا مَرْفُوعًا إِلَّا هَذَا. [1]

**ترجمه**: اسماء بن حکم فزاري وائي چي دعلي رضي الله عنه نه مي اوريدلي دي ما چي به کله درسول الله صلي الله عليه وسلم نه کوم حديث واوريدو نو الله تعالي به په هغه ماته نفع راکوله څومره چي به الله تعالي ماته نفع راکول غوښتل او چي کله به په صحابه کرامو کي چا ماته بيان کړو نو ما به هغه ته قسم ورکولو چي ايا واقعي تا دا حديث درسول الله صلي الله عليه وسلم نه پخپله اوريدلي نو که هغه به زما په وړاندي قسم اوکړو نو ما به يي تصديق اوکړو، ماته حديث بيان کړو ابو بکر او تصديق اوکړو عمر فرمائيل يي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي څوک چي ګناه اوکړي او بيا اودس اوکړي او بيا مونځ اوکړي او بيا دالله تعالي نه معافي اوغواړي نو الله تعالي هغه ته معافي کوي او بيا يي دا ايت

---

[1] - سنن ابي داود في الصلاة ٣٦١ (١٥٢١) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٩٣ (١٣٩٥) . (تحفة الأشراف: ٦٦١٠) . مسند احمد (١في
[2] وياتي عند المؤلف في تفسير آل عمران برقم: ٣٠٠٦)

كريمه وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ وَمَنْ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلا اللَّهُ وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَى مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ (آل عمران) تلاوت كړو.
دا هغه كسان دي چې كله د بې حيايئ كار وكړي او يا په ځانونو ظلم وكړي نو يادوي دوئ الله لره، اود خپلو ګناهونو مغفرت ورنه غواړي ، اود الله نه علاوه بل هيڅوك ګناهونه نشي بښلي، او دوئ بيا پخپله ګناه كلك هم نشي.
امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن دي او مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي يعني دعثمان بن مغيره په سند مونږ ته رارسيدلي دي او دده نه شعبه او نورو محدثينو هم روايت نقل كړي دي هغه دا روايت دابوعوانه دروايت پشان مرفوعا نقل كړي دي او دا روايت سفيان ثوري او مسعر هم نقل كړي دي ليكن ددوئ دواړو روايت موقوف دي مرفوع نه دي او دمسعر نه دا حديث مرفوعا هم مروي دي او ددي حديث نه علاوه داسماء بن حكم كوم بل حديث مرفوع مونږ ته معلوم نه دي ، او په دي باب كي د ابن مسعود ، ابو الدرداء، انس، ابو امامه، معاذ ، واثله ، ابو اليسر ، كعب بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.
**تشريح** : د ايت كريمه: وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَٰحِشَةً... شان نزول او مختصر تفسير:
فاحشة دفحش نه ماخوذ دي په اصل كې په معني دبدئ اودحد نه دتجاوز كولو دي ، اودلته دفاحشة نه مراد كبيره ګناهونه دي، ځكه چي مرتكب دكبيره دعصيان اودبدئ دحد نه تيريږي، جابر رضي الله عنه فرمائيلي دي فاحشة نه مراد زنا ده.
ابن مسعود رضي الله عنه فرمائيلي دي مسلمانانو عرض وكړو چې اي دالله رسوله زمونږ نه خويني اسرائيل دالله په نظر كې زيات عزت مند وو كه په دوئ كې به چري چا دشپې ګناه اوكړه نوسحر به دهغوئ په دروازه دهغي كفاره ليكلي شوي وه چي خپل غوږ يا پوزه پري كړه يا داسي داسي اوكړه ، نبي كريم صلي الله عليه وسلم چي دا واوريدل نو خاموشي يي اختيار كړه او الله تعالي دا ايت كريمه نازل كړو.
عطاء وئيلي دي ددي ايت نزول دنبهان كجوري خرڅونكي په حق كې شوي وو چي كنيه يي ابو معبد وه، قصه داسي وه چي يوه ښكلي ښځه ده ته د كهجورو اخستلو دپاره راغله نبهان ورته ووئيل چي دا كهجوري ډيري ښې ندي عمده اوغوره كهجوري زما سره په كور كې موجود دي چنانچه نبهان دا ښځه دځان سره كورته راوستله نو چي كورته ني را داخل كړه ځان ته ني راجوښته كړه اوپه غيږ كې ني ونيوله اوخكول ني كړه ، ښځي ورته ووئيل دالله تعالي نه وويريږه نونبهان فورا فريښودله اوپخپل حركت باندي پښيمانه شو اودرسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو اوخپله قصه ني ورته عرض كړه نوپدي باره كې دا ايت كريمه نازل شو.

دمقاتل اوكلبي بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوه كسانو په مينځ كې اخوت قائم كړي وو يو انصاري وو او دويم ثقفي وو ، ثقفي جهاد ته لاړو او خپل انصاري ورور يې دخپل بال بچ نګران اوګرځولو . يوه ورځ انصاري دثقفي دبچو دپاره غوښه واخستله او دثقفي ښځې چې كله دانصاري نه غوښه اخستل اوغوښتل نوهغه په ښځې پسې كورته راننوتواودهغې لاسونه ئي خكل كړل اوبيا ورباندې پښيمانه شو او واپس راغي اوخاوري ئي په سر بادولي اوسرګردانه ځنګل ته روان شو ، ثقفي چې كله راورسيدو اوانصاري ئي داستقبال په حالت كې اونه ليدو نوده دخپلې ښځې نه دانصاري دحال په باره كې تپوس وكړو نوښځې ورته ووئيل دداسې ورونړو تعداد دې الله تعالي زيات نكړي اوپوره حالت ئي ورته بيان كړو . بل جانب ته انصاري په غرونو كې ګرځيدو او توبې ئي ويستلې نوثقفي دهغه تلاش شروع كړو نوچه وئي موندلو نو ابوبكر الصديق رضي الله عنه ته ئي راوستلو ليكن دده دا اميد وو چې شايد دسكون كومه لاره راته ملاو شي ، چنانچه انصاري ورته خپله قصه عرض وكړو او وئې ووئيل چې زه تباه شوي يم ابوبكر الصديق رضي الله عنه ورته ووئيل ته دې هلاك شې ايا تاته دامعلومه نه وه چې دغازي په سلسله كې الله تعالي دومره رحمت كوي څومره چې دمقيم دپاره نه كوي ، اوددينه پس دوئ دواړه دعمر فاروق رضي الله عنه سره ملاو شول عمر رضي الله عنه ورته هم دغه جواب وركړو كوم چې ابوبكر الصديق رضي الله عنه وركړي وو . اخرداچه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضرشول رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته هم دشيخينو پشان جواب وركړو نوپدې باره كې الله تعالي دا ايت كريمه نازل كړو . (تفسير مظهري)

***************

## ١٨٧_ بَاب مَا جَاءَ مَتَى يُؤْمَرُ الصَّبِيُّ بِالصَّلَاةِ

### ماشوم ته به كله په مونځ باندې حكم كولى شي

٤٠٧_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا حَرْمَلَةُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ الرَّبِيعِ بْنِ سَبْرَةَ الْجُهَنِيُّ، عَنْ عَمِّهِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ الرَّبِيعِ بْنِ سَبْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " عَلِّمُوا الصَّبِيَّ الصَّلَاةَ ابْنَ سَبْعِ سِنِينَ وَاضْرِبُوهُ عَلَيْهَا ابْنَ عَشْرٍ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَبْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ الْجُهَنِيِّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَلَيْهِ الْعَمَلُ

عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَالَا: مَا تَرَكَ الْغُلَامُ بَعْدَ الْعَشْرِ مِنَ الصَّلَاةِ فَإِنَّهُ يُعِيدُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَبْرَةُ هُوَ ابْنُ مَعْبَدٍ الْجُهَنِيُّ، وَيُقَالُ هُوَ: ابْنُ عَوْسَجَةَ. [1]

**ترجمه**: سبره بن معبد جهني رضي الله عنه راوي دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو چي كله ماشوم داوو كالو شي نو هغه ته مونځ اوښائي او دلسو كالو په عمر كې یې مونځ نه كولو باندي وهئ.

امام ترمذي وايي چي په دي باب كي د ابن عمر رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دی، او حديث د سبره بن معبد الجهني حسن صحيح دی اوبه همدي د بعضي اهل علمو عمل دی.
امام احمد او اسحاق هم په دي باندي قول كړی دی، دوي وايي چي كوم هلك د لسو كالو نه پس مونځ قضاء كړي نو دهغي قضا به راوړي

**تشريح**: دا امام ابو داود رحمه الله په روايت كې داسی دي چي كله ماشوم داوو كالو شي نو هغه ته دمونځ كولو حكم كوئ.

**لغات**: علموا: علم يعلم تعليما باب تفعيل معني تعليم وركول.

علموا الصبي، په تير شوي روايت كې مروا لفظ وو اوبه ذي كې علموا لفظ دی علماء وائي مخاطب چونكه سرپرست دی ماشوم نه دی نو په دي وجه يي په مختلفو عنواناتو سره دماشومانو تربيت بيان كړو.

الصبي، يعني ماشوم، علامه نووي وائي چي دلته مراد صرف ماشوم نه دی بلكه ماشومه هم مراد ده.واضربوها واضربوه عليها ابن عشر سنين، ليكن په بعضو روايتونو كې ثلاث عشر لفظ هم راغلی دی ليكن عشر سنين په كثرت سره وارد دی په دي وجه علماء ديته ترجيح وركوي.

## ماشوما نو دپاره په دعاګا ني هم غواړئ

په ظاهري نيت سره علماء وائي چي ددعاګانو اهتمام هم كول پكار دي لكه څرنګه چي داسلافو معمول پاتي شوی دی عباس بن عبدالمطلب دخپل خوي تميم دپاره داسي دعاء غوښتلي وه..

تموا بتمام فصاروا عشرة يارب واجعلهم كراما بررة.

دتميم په ذريعه دوئ كامل لس كسان شول ای ربه او دوئ ټول نيكان او شريفان اوګرځوي.
يارب ذكيهم وتمي الثمرة ، يعني ای ربه ددوئ تزكيه اوكړی او دميوو خوراك ورباندي ډير

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٦ (٤٩٣) . (تحفة الأشراف : ٣٨١٠) . سنن الدارمي في الصلاة ١٤١ (١٤٣١)

اوكړي.

****************

## ١٨٨_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُحْدِثُ فِي التَّشَهُّدِ

### څوک چي په تشهد کي بې اودسه شي نو څه به کوي

٤٠٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى الْمُلَقَّبُ مَرْدُوَيْهِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمٍ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ رَافِعٍ، وَبَكْرَ بْنَ سَوَادَةَ أَخْبَرَاهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَحْدَثَ يَعْنِي الرَّجُلَ وَقَدْ جَلَسَ فِي آخِرِ صَلَاتِهِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ فَقَدْ جَازَتْ صَلَاتُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِذَاكَ الْقَوِيِّ وَقَدِ اضْطَرَبُوا فِي إِسْنَادِهِ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، قَالُوا: إِذَا جَلَسَ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ وَأَحْدَثَ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُهُ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا أَحْدَثَ قَبْلَ أَنْ يَتَشَهَّدَ وَقَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ أَعَادَ الصَّلَاةَ، وَهُوَ قَوْلُ الشافعي، وقَالَ أَحْمَدُ: إِذَا لَمْ يَتَشَهَّدْ وَسَلَّمَ أَجْزَأَهُ، لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ" وَالتَّشَهُّدُ أَهْوَنُ، قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي اثْنَتَيْنِ فَمَضَى فِي صَلَاتِهِ وَلَمْ يَتَشَهَّدْ" وقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: إِذَا تَشَهَّدَ وَلَمْ يُسَلِّمْ أَجْزَأَهُ، وَاحْتَجَّ بِحَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ حِينَ عَلَّمَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّشَهُّدَ، فَقَالَ: "إِذَا فَرَغْتَ مِنْ هَذَا فَقَدْ قَضَيْتَ مَا عَلَيْكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمٍ هُوَ الْأَفْرِيقِيُّ، وَقَدْ ضَعَّفَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ مِنْهُمْ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، وَأَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چي دسلام ګرځولو نه مخكي دچا اودس مات شي او هغه دخپل مونځ په اخر كي يعني په اخري قعده كي كيناستلي وي نو دده مونځ درست دي

امام ترمذي وائي ددي حديث سند څه خاص قوي نه دي ددي په سند كي اضطراب دي، بعضي محدثينو دعبدالرحمن بن زياد بن انعم افريقي تضعيف كړي دي چي بو په هغوئ كي د جرح او تعديل امام يحي بن سعيد القطان او احمد بن حنبل هم شامل دي، بعضي اهل علمو دي طرف ته ميلان كړي دي چي كله څوك د تشهد په مقدار كيناستلي وي او دسلام ګرځولو نه

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٧٤ (٦١٧) . (تحفة الأشراف: ٨٦١٠، و ٨٨٤٥)

مخکي يې اودس مات شي نو دده مونځ پوره دي او دبعضي اهل علمو قول دي کله چې بې اودسي دتشهد ونيلو نه مخکي يا دسلام ګرځولو نه مخکي پيدا شي نو مونځ دي راوګرځوي او همدا دامام شافعي قول دي، امام احمد وائي څو پورې چې داسي کس تشهد ونيلي نه وي او سلام اوګرځوي نو دده مونځ به دده نه کافي وي ښکه چې ارشاد نبوي دي"وتحليها التسليم" يعني په مونځ کي چې کوم څيزونه حرام شوي وي هغه اشياء په سلام ګرځولو سره حلاليږي او بغير دسلام ګرځولو نه دمونځ نه وتل نشي کيدي او تشهد دومره اهم نه دي څومره اهم چې سلام دي ښکه چې دسلام په ترک مونځ درست نه پاتي کيږي يو ځل نبي کريم صلي الله عليه وسلم د دوه رکعاتونو کولو نه پس اودريدو او خپل مونځ يې جاري اوساتلو او تشهد يې اونکړو، اسحاق بن رابراهيم بن راهويه وائي کله چې څوک تشهد اووائي او سلام اونه ګرځوي نو مونځ يې اوشو او د ابن مسعود رضي الله عنه دحديث نه يې استدلال کړي دي چې کله رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه ته تشهد خودلو نو ورته يې اوفرمائيل کله چې ته ددينه فارغ شي نو ته خپله فريضه اداء کړه.

***************

## ١٨٩_ باب مَا جَاءَ إِذَا كَانَ الْمَطَرُ فَالصَّلاَةُ فِي الرِّحَالِ

### دباران په دوران کي په کورکي دمونځ کولو بيان

٤٠٩_ حَدَّثَنَا أَبُو حَفْصٍ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَأَصَابَنَا مَطَرٌ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ شَاءَ فَلْيُصَلِّ فِي رَحْلِهِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، وَسَمُرَةَ، وَأَبِي الْمَلِيحِ، عَنْ أَبِيهِ وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ قال أبو عيسى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَخَّصَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْقُعُودِ عَنِ الْجَمَاعَةِ وَالْجُمُعَةِ فِي الْمَطَرِ وَالطِّينِ، وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْت أَبَا زُرْعَةَ يَقُولُ: رَوَى عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَلِيٍّ حَدِيثًا وَقَالَ أَبُو زُرْعَةَ: لَمْ نَرَ بِالْبَصْرَةِ أَحْفَظَ مِنْ هَؤُلَاءِ الثَّلَاثَةِ عَلِيِّ بْنِ الْمَدِينِيِّ، وَابْنِ الشَّاذَكُونِيِّ، وَعَمْرِو بْنِ عَلِيٍّ، وَأَبُو الْمَلِيحِ اسْمُهُ: عَامِرٌ، وَيُقَالُ: زَيْدُ بْنُ أُسَامَةَ بْنِ عُمَيْرٍ الْهُذَلِيُّ. [1]

---

[1] _ صحيح مسلم في المسافرين ٣ (٦٩٨). سنن ابي داود في الصلاة ٢١٣ (١٠٦٥). (تحفة الأشراف: ٢٤١٦) مسند احمد (٣في ٣١٢، ٣٢٤)

**ترجمه**: دجابر رضي الله عنه بيان دي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په يو سفر كي موجود وو چي باران شروع شو نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه څوك پخپله ديره كي مونځ كول غواړي نو كولي يي شي
امام ترمذي وائي دجابر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د ابن عمر، سمره، ابوالمليح، عامر، او عبدالرحمن بن سمره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، بعضي اهل علمو په باران او ختو چقړو كي په مسجد كي دجماعت دپاره درخصت اجازت وركړي دي او همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول دي.

****************

## ١٩٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي التَّسْبِيحِ فِي أَدْبَارِ الصَّلَاةِ

### دمونځ نه پس دتسبيحاتواو اذكارو بيان

٤١٠_ حَدَّثَنَا وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ الْبَصْرِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَتَّابُ بْنُ بَشِيرٍ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، وَعِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ الْفُقَرَاءُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الْأَغْنِيَاءَ يُصَلُّونَ كَمَا نُصَلِّي وَيَصُومُونَ كَمَا نَصُومُ وَلَهُمْ أَمْوَالٌ يُعْتِقُونَ وَيَتَصَدَّقُونَ، قَالَ: " فَإِذَا صَلَّيْتُمْ فَقُولُوا: سُبْحَانَ اللَّهِ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ مَرَّةً، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ مَرَّةً، وَاللَّهُ أَكْبَرُ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ مَرَّةً، وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ عَشْرَ مَرَّاتٍ، فَإِنَّكُمْ تُدْرِكُونَ بِهِ مَنْ سَبَقَكُمْ وَلَا يَسْبِقُكُمْ مَنْ بَعْدَكُمْ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي ذَرٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَفِي الْبَاب أَيْضًا عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَالْمُغِيرَةِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: " خَصْلَتَانِ لَا يُحْصِيهِمَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ: يُسَبِّحُ اللَّهَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ عَشْرًا، وَيَحْمَدُهُ عَشْرًا، وَيُكَبِّرُهُ عَشْرًا، وَيُسَبِّحُ اللَّهَ عِنْدَ مَنَامِهِ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، وَيَحْمَدُهُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، وَيُكَبِّرُهُ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ ".([1])

---

[1] _ صحيح مسلم في المساجد ٢٦ (٥٩٨)، سنن ابي داود في الصلاة ٢١٢ (١٠٦٥)، (تحفة الأشراف: ٦٠١٢)، مسند احمد (٣ في ٣١٢، ٣٢٧)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي يو ځل درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي ځه محتاجه او فقيران خلق حاضر شول او عرض يي اوکړو اي دالله رسوله مالداران خلق داسي مونځونه کوي څنګه چي مونږ کوو او هغوئ داسي روژې هم نيسي څنګه چي مونږ نيسو مګر دهغوئ سره مالونه هم دي چي غلامان ورباندي ازادوي او صدقي ورنه ورکوي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کله چي تاسو مونځ اوکړئ نو ۳۳پيري سبحان الله او ۳۳ پيري الحمد لله او ۳۴پيري الله اکبر او ۱۰خله لا اله الا الله وائي نو تاسو به هغه خلقو پوري اورسيږئ څوك چي ستاسو نه په اجر او ثواب کي مخکي شوي دي او څوك چي ستاسو نه روسته پاتي شوي دي هغوئ به درنه په اجر او ثواب کي مخکي کيدي شي يعني تاسو پسي به در رسيدلی نشي.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن غريب دي، په دي باب کي د کعب بن عجره. انس. عبدالله بن عمرو، زيد بن ثابت، ابو الدرداء ، ابن عمر، او ابو ذر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دا رنګي په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي. او دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي فرمائيل يي دوه داسي عادتونه دي کوم چي په هر يو مسلمان کي راشي جنت ته به داخل شي يو دادي چي دهر مونځ نه پس لس پيري سبحان الله، او لس پيري الحمدلله او لس پيري الله اکبر اووائي ، دويم دادي چي هغوئ د اوده کيدو وخت کي ۳۳پيري سبحان الله او ۳۳پيري الحمدلله او ۳۴پيري الله اکبر اووائي.

**تخريج** : سنن النسائي في السهو ۹۵ (۱۳۵۴) ، (تحفة الأشراف : ۶۰۶۸ و ۶۳۹۳)

**تشريح** : په پورتني حديث کې دصحابه کرامو په نيکو کارونو کې ديو بل سره مقابله کول بيان شوي دي چي هغوئ به ديو بل نه په نيکو کارونو کې مخکې کيدل.

کله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فقراؤ ته دهر مونځ نه پس تسبيحات فاطمه اوخودل نو مالدارو خلقو هم شروع کړل نو مالدارانو خلقو يو طرف ته داسلام داحکامو او فرائضو پابندي کوله او دمالدار کيدو په وجه به يي مالي عبادتونه او صدقات هم ورکول او ورسره يي تسبيحات هم شروع کړل نو په دي وخت کې نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل "ذلك فضل الله يؤتيه من يشاء" يعني دا دالله تعالي فضل دی چي دچا دپاره يي اوغواړي هغه ته يي ورکوي.

**ديو سوال جواب**

دبر کل صلاة ثلاثا وثلاثين مرة: يعني دهر مونځ نه پس به ۳۳پيري سبحان الله، الحمدلله، او الله اکبر لولې.

سوال: ددي عبارت نه ظاهرا معلوميږي چي سبحان الله الحمد لله الله اكبر مجموعه دري ديرش پيري ونيل پكار دي يعني هره يوه كلمه يولس پيري او حال دادى چي مشهوره داده چي په دوئ كې به هر يو لره (۳۳) پيري لولي.
ابن حجر ددي دا جواب كړى دى چي دا عبارت په اصل كې داسي دى "تسبحون خلف كل صلاة ثلاثا وثلاثين" مطلب دادى چي دهر مونځ نه پس به ۳۳ پيري سبحان الله، ۳۳، الحمد لله، ۳۳الله اكبروائي لكه چي ديو بل روايت نه هم دا معلوميږي.

امام نووي ليكلي دي په بعضي روايتونو كې راغلي دي چي الله اكبر ۳۴ پيري او يو خل لااله الاالله وحده لاشريك له له الملك والحمد وهو على كل شئ قدير. هم ونيل پكار دي.
فتح الباري والاليكلي دي چي دمسنون تعداد نه زياتول ددي تاثير ختموي لكه چي ديو حكيم په نسخه كې دكمي او زياتي كولو په وجه دعلاج اثر ختميږي.

**ددي تعداد نه زياتول ندي پكار**

ددي تعداد نه زيات ونيل پكار نه دي ابن حجر په فتح الباري كې ليكلي دي چي دمسنون طريقي نه په زيات لوستلو سره ددي تاثير ختميږي لكه چي دحكيم په نقصه كې كمي او زياتي اوكړى شي نو تاثير يې ختميږي.

***************

## ۱۹۱_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الدَّابَّةِ فِي الطِّينِ وَالْمَطَرِ

**په خټو او چقړو او باران كې په سورلئ با ندي دمونځ كولو بيان**

۴۱۱_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ بْنُ سَوَّارٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ الرَّمَّاحِ الْبَلْخِيُّ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ بْنِ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُمْ كَانُوا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَسِيرٍ، فَانْتَهَوْا إِلَى مَضِيقٍ وَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَمُطِرُوا السَّمَاءُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَالْبِلَّةُ مِنْ أَسْفَلَ مِنْهُمْ " فَأَذَّنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى رَاحِلَتِهِ وَأَقَامَ أَوْ أَقَامَ فَتَقَدَّمَ عَلَى رَاحِلَتِهِ فَصَلَّى بِهِمْ يُومِئُ إِيمَاءً يَجْعَلُ السُّجُودَ أَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوعِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، تَفَرَّدَ بِهِ عُمَرُ بْنُ الرَّمَّاحِ الْبَلْخِيُّ، لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِهِ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ،

وَكَذَلِكَ رُوِيَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ صَلَّى فِي مَاءٍ وَطِينٍ عَلَى دَابَّتِهِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. (١)

**ترجمه** : ديعلي بن مره نه روايت دي فرمائي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په يو سفر کي موجود وم او هغوئ يو تنګ خاي ته ورسيدل او دمونځ وخت ورباندي راغي دپاسه ورباندي باران کيدو او لاندي ختې جوړي شوي نو رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله سورلئ دپاسه اذان اوکړو او اقامت يي اوکړو او خپله سورلئ يي وړاندي ورمخکي کړه او دهغي دپاسه يي خلقو ته مونځ ورکړو رسول الله به په اشاري سره مونځ کولو چي سجده به يي درکوع نه لږه زياته ټيټه وه.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي ځکه چي عمر بن رماح بلخي ددي په روايت کي منفرد دي او دا حديث صرف دهغه په سند متصل دي او دهغه نه دا حديث په اهل علمو کي متعددو او محدثينو نقل کړي دي، دانس بن مالك نه هم ددي روايت يو هم معني حديث مروي دي چي هغه په ختو او چقړو کي پخپله سورلئ باندي مونځ اوکړو او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي امام احمد او اسحاق بن راهويه هم په دي باندي قول کړي دي.

****************

## ١٩٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الِاجْتِهَادِ فِي الصَّلاَةِ

## په مونځ کي دکوشش کولو بيان

٤١٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَبِشْرُ بْنُ مُعَاذٍ العَقَدِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ، عَنِ المُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى انْتَفَخَتْ قَدَمَاهُ، فَقِيلَ لَهُ: أَتَتَكَلَّفُ هَذَا وَقَدْ غُفِرَ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ، قَالَ: "أَفَلَا أَكُونُ عَبْدًا شَكُورًا" قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ المُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

ترجمه : دمغيره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دشپی په

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١١٨٥١)

[2] ـ صحيح البخاري في التهجد ٦، وتفسير الفتح ٢ (٤٨٣٦)، والرقاق ٢٠ (٦٤٧١)، صحيح مسلم في المنافقين ١٨ (٢٨٢٠)، سنن النسائي في قيام الليل ١٧ (١٦٤٥)، سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٠٠ (١٤١٩، ١٤٢٠)، (تحفة الأشراف : ١١٤٩٨) مسند احمد (٤/٢٥١، ٢٥٥)

نفلونو کې دومره ډير اودريدو چې پښې مبارکې به يې اوپړسيدې ما ورته عرض اوکړو، يا رسول الله ! ته دومره تکليف ولې برداشت کوې الله تعالي خو تاته رومبۍ روستۍ ټولې غلطۍ معاف کړي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ايا زه دا خوښه نه کړم چې د الله تعالي شکر گزار بنده شم.

امام ترمذي وايي چې د ابو هريره او عائشه رضي الله عنها نه هم احاديث مروي دي اود مغيره بن شعبه حديث حسن صحيح دی.

**تشريح** : او په بخاري او مسلم دواړو کې دغه شان يو بل روايت د عائشه رضي الله عنها نه هم مروي دي.

**درسول الله كثرت عبادت دشكر ادا كولو دپاره وو**

وقد غفر الله لك ما تقدم من ذنبك وما تأخر: يعني رسول الله ته مخکني او روستني تمام گناهونه معاف شوي وو، سوال ايا د انبياؤ نه هم د گناه صدور کيدي شي؟

جواب دادي چې انبياء عليهم السلام د گناهونو نه معصوم وي په دې باندې د امت د علماؤ اتفاق دي په قران او حديث کې چې هرچرته دمغفرت او ذنب لفظ راغلي دي دهغې نه مراد خلاف اولي وي کوم چې دانبياو نه صادريدلي شي، ځکه چې دنبوت دلوړ مقام په اعتبار سره غير افضل عمل هم لغزش گڼرلي شي، چې په قران او حديث کې ورته په ذنب سره تعبيرونه شوي دي، لکه چې ويلي شوي دي حسنات الابرار سيئات المقربين.

**ايا زه دالله شكر گذار بنده جوړ نشم**

"افلا اكون عبدا شكورا" يعني ايا شکر گذار بنده جوړ نه شم ؟ دا دعبادت اعلي درجه ده چې انسان عبادت دجنت دانعام دپاره اونکړي علي رضي الله عنه فرمائيلي دي دري قسمه خلق عبادت کونکي دي (١) يو دسوداگر عبادت وي دا هغه خلق دي ځوک چې دجنت او دثواب په اوميد او تمنا دالله عبادت کوي (٢) دويم دغلامانو عبادت دی دا هغه خلق دي ځوک چې دعذاب الهي او ددوزخ ديرې په وجه عبادت کوي (٣) دازادو خلقو عبادت دی دا هغه کسان دي ځوک چې دخپل مولا دورکړو نعمتونو دشکر ادا کولو دپاره عبادت کوي.

****************

## ١٩٣_ باب مَا جَاءَ أَنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الصَّلاَةُ

**د قيامت په ورځ به اول د بنده سره دمونځ حساب کيږي**

٤١٣ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ نَصْرِ بْنِ عَلِيٍّ الجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، قَالَ: حَدَّثَنِي قَتَادَةُ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ حُرَيْثِ بْنِ قَبِيصَةَ، قَالَ: قَدِمْتُ المَدِينَةَ، فَقُلْتُ: اللَّهُمَّ يَسِّرْ لِي جَلِيسًا صَالِحًا، قَالَ: فَجَلَسْتُ إِلَى أَبِي هُرَيْرَةَ، فَقُلْتُ: إِنِّي سَأَلْتُ اللَّهَ أَنْ يَرْزُقَنِي جَلِيسًا صَالِحًا فَحَدِّثْنِي بِحَدِيثٍ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يَنْفَعَنِي بِهِ، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ العَبْدُ يَوْمَ القِيَامَةِ مِنْ عَمَلِهِ صَلَاتُهُ فَإِنْ صَلُحَتْ فَقَدْ أَفْلَحَ وَأَنْجَحَ وَإِنْ فَسَدَتْ فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ، فَإِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيضَتِهِ شَيْءٌ قَالَ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: انْظُرُوا هَلْ لِعَبْدِي مِنْ تَطَوُّعٍ فَيُكَمَّلَ بِهَا مَا انْتَقَصَ مِنَ الفَرِيضَةِ، ثُمَّ يَكُونُ سَائِرُ عَمَلِهِ عَلَى ذَلِكَ" قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُ أَصْحَابِ الحَسَنِ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ حُرَيْثٍ غَيْرَ هَذَا الحَدِيثِ، وَالمَشْهُورُ هُوَ قَبِيصَةُ بْنُ حُرَيْثٍ، وَرُوِيَ عَنْ أَنَسِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هَذَا.[1]

**ترجمه**: د حریث بن قبیصه نه روایت دی فرمائي کله چي زه مدیني ته راغلم نو دا دعا مي اوغوښتله چي اي الله زما دپاره د یو نیك ملګري انتظام وکړی نو دابوهریره رضي الله عنه سره کیناستم او ورته مي ووئیل چي ما خو د الله تعالي نه د نیك ملګري سوال وکړو پس یو داسي حدیث راته بیان کړه چي د رسول الله نه دي اوریدلي وي امید دی چي الله تعالي به ماته په هغي نفع راکړي نو وني فرمائیل:

رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي دقیامت په ورځ به تولو نه اول دمانځه حساب کیږي که دایی پوره وو نو کامیاب شو او خلاص شو او که پکښی خرابی وه نو تباه شو او تاواني شو، او که په فرضو کې یی څه کمی وو نو الله تعالي به فرشتو ته حکم اوکړي چي اوګورئ ایا زما دی بنده چرته نفلي مونځونه کړي دي؟ چي په هغی یی دفرضو کمی پوره کړی شي، بیابه دنورو فرضي اعمالو حساب هم پدی طریقه کیږي (یعني که فرض روژه کې یی څه کمی وي نو په نفلي به پوره کولی شي او که زکات کښی یی څه کمی وي نو دخیرات نه به پوره کولی شي وغیره)

امام ترمذي روایت کړی دی او حدیث حسن غریب یی ورته ددي سند په اعتبار ونیلي دي، امام

[1] ـ سنن النسائي في الصلاة ۹ (۴۶۶)، سنن ابن ماجه في الإقامة ۲۰۲ (۱۴۲۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۹۳)، مسند احمد (۲ في ۴۲۵)

ترمذي وايي چي په دي باب کي د تميم الداري نه هم روايت وارد دی. او دا روايت ددي سند نه علاوه په بل سند هم د ابو هريره نه مروي دی،

دارنگي د حسن بعضي شاگردانو د قبيصه بن حريث نه ددي روايت نه علاوه روايات هم نقل کړي دي مگر مشهور روايت د قبيصه بن حريث دی ، دارنگي په دي باب کي د انس بن حکيم ، ابو هريره رضي الله عنهما نه هم ددي حديث هم معني روايتونه مروي دي.

**لغات**: العبد: سړي، غلام جمع يې عبيد راځي جمع الجمع اعابد او معابد راځي.

**تشريح**: اول مايحاسب به العبد يوم القيامة: دهر څه نه مخکې به دقيامت په ورځ دمونځ تپوس کيږي.

سوال: په يو بل روايت کې راځي چي دقيامت په ورځ به دهر څه نه مخکې دناحقه قتل تپوس کيږي.

جواب: په حقوق الله کې به دهر څه نه مخکې به دمونځ تپوس کيږي او په حقوق العباد کې به دهر څه نه مخکې دناحقه قتل تپوس کيږي او همدا جواب په يو بل روايت کې هم راغلی دی.

"اول مايحاسب العبد الصلاة واول مايقضي بين الناس في الدماء" يعني دهر څه نه مخکې حساب به دمونځ کيږي او دهر څه نه مخکې فيصله به دويني په باره کې کيږي.

فان انتقص من فريضته شيئا . الخ. که چري دده په فرائضو کې څه کمی وي نو دده دنوافلو نه به پوره کولی شي.

قاضي ابوبکر ابن عربي وائي چي دفرائضو کمی به دقيامت په ورځ دنوافلو نه پوره کيږي که دچا نه فرائض پاتي شوي وي او نوافل يې موجود وي نو دده نوافل به دفرائض قائم مقام اوگرځي ليکن جمهور علماء وائي که دچا نه فرائض پاتي شوي وي په زرگونو نوافل هم ددي برابر نشي کيدی مگر که په فرائضو کې څه کمی پاتي شوی وي نو دا کمی په نوافلو پوره کيدی شي همدا خبره دمجمع الزوائد په يو روايت کې هم راغلي ده.

****************

## ١٩٤_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً مِنَ السُّنَّةِ وَمَالَهُ فِيهِ مِنَ الْفَضْلِ

### په شپه اوورځ کې د دولس رکعاته سنت اداء کولو دثواب بيان

٤١٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُلَيْمَانَ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ ثَابَرَ عَلَى ثِنْتَيْ

عَشْرَةَ رَكْعَةً مِنَ السُّنَّةِ بَنَى اللَّهُ لَهُ بَيْتًا فِي الجَنَّةِ، أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ المَغْرِبِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ العِشَاءِ، وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الفَجْرِ" قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي مُوسَى، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَمُغِيرَةُ بْنُ زِيَادٍ قَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. (١)

**ترجمه** : د عائشه رضي الله عنها نه روايت دى فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: كوم مسلمان بنده چي هره ورځ دفرضو نه علاوه دولس ركعته نفل مونځ كوي. الله تعالي به ورته په جنت كې كور جوړ كړي، يا يي دا الفاظ وفرمايل: په جنت كې به ورته كور جوړ كړى شي.

امام ترمذي وايي چي په دي باب كي د ام حبيبه، ابو هريره، ابو موسي او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. امام ترمذي وايي چي د عائشي حديث په مذكوره سند حسن غريب دى، اوپه مغيره بن زياد باندي محدثينو د حفظ په اعتبار كلام كړى دى.

**لغات**: بيتا: بات يبيت بيتا ومبيتا ومباتا شپه تيرول يا چاته دشپې ورتلل ، دبيت جمع بيوت دده په معني دكور سره.

**تشريح** : ددينه مراد دولس ركعاته سنت مؤكد دي ددي تفصيل دادى په سحر كې ددوه ركعاته فرضو نه مخكې دوه ركعاتونه كول او په ماسپخين كې دفرضو نه مخكې څلور ركعاته او دفرضو نه پس دوه ركعاته او په مازيگر كې سنت مؤكده نشته او دماښام دمونځ نه پس دوه ركعاته او دوه ركعاتونه دماخوستن دمونځ نه پس نو دا ټول دولس ركعاته شو او په دي باندي په پورتني حديث كې دجنت وعده شوي ده.

په نورو احاديثو كې د دولسو ركعتو تفصيل داسى راغلى دى ، دوه ركعته دسحر دفرضو نه مخكې ، څلور ركعته ماسپخين دفرضونه مخكې او دوه وروسى دوه دماښام دفرضونه روستو اودوه دماخوستن. د مونځ نه پس.

***************

٤١٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ هُوَ ابْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ المُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ عَنْبَسَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الجَنَّةِ، أَرْبَعًا قَبْلَ

---

[1] ـ سنن النسائي في قيام الليل ٦٦ (١٧٩٥، ١٧٩٦). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٠٠ (١١٤٠). (تحفة الأشراف: ١٧٣٩٣)

الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ، وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ " قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ عَنْبَسَةَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَنْبَسَةَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ.[1]

**ترجمه** : د ام حبيبه رضي الله عنها نه روايت دی فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: كوم مسلمان بنده چي هره ورځ دفرضو نه علاوه دولس ركعته نفل مونځ كوي، الله تعالي به ورته په جنت كي كور جوړ كړي، يا يي دا الفاظ وفرمايل: په جنت كي به ورته كور جوړ كړی شي.

امام ترمذي وايي چي په دي باب كي دعنبسه حديث د أم حبيبه په روايت حسن صحيح دی اوپه دي باب كي د عنبسه نه په نورو سندونو هم دا روايت مروي دی.

***************

## ١٩٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ مِنَ الْفَضْلِ

### دسحر ددوه ركعاته سنتو فضائل

٤١٦_ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ التِّرْمِذِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " رَكْعَتَا الْفَجْرِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ التِّرْمِذِيِّ حَدِيثَ عَائِشَةَ.[2]

**ترجمه** : د عائشه رضي الله عنها نه روايت دی فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: دسحر دوه ركعتونه د دنيا او ما فيها نه بهتر دي،

---

[1] _ صحيح مسلم في المسافرين ١٣ (٧٢٨)، سنن ابي داود في الصلاة ٢٩٠ (١٢٥٠)، سنن النسائي في قيام الليل ٦٦ (١٧٩٧، ١٧٩٩)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٠٠ (١١٤١)، (تحفة الأشراف)

[2] _ صحيح مسلم في المسافرين ١٤ (٧٢٥)، سنن النسائي في قيام الليل ٥٦ (١٧٦٠، ٢٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٦١٠٦)، مسند احمد (٦/في ١٤٩)

امام ترمذي وايي چي په دي باب كي د علي، ابن عمر، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او حديث دعائشه رضي الله عنها حسن صحيح دی. دارنګي امام احمد بن حنبل حديث د عائشي د صالح بن عبد الله الترمذي په سند هم نقل کړی دی

***************

## ۱۹۶ـ باب مَا جَاءَ فِي تَخْفِيفِ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ وَمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِيهِمَا

**دسحر د دوه رکعاتونو د مختصر کولو او دهغه صورتونو بیان کوم چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم په دي کي لوستل**

٤١٧ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ وَأَبُو عَمَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "رَمَقْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا فَكَانَ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الفَجْرِ بِ: قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ" قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَفْصَةَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَلَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي أَحْمَدَ، وَالْمَعْرُوفُ عِنْدَ النَّاسِ حَدِيثُ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، وَقَدْ رَوَى عَنْ أَبِي أَحْمَدَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ هَذَا الْحَدِيثُ أَيْضًا، وَأَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ ثِقَةٌ، حَافِظٌ، قَالَ: سَمِعْت بُنْدَارًا، يَقُولُ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَحْسَنَ حِفْظًا مِنْ أَبِي أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيِّ، وَأَبُو أَحْمَدَ اسْمُهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ الْكُوفِيُّ الأَسَدِيُّ. [1]

**ترجمه** : ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چي ما يوه مياشت څار نه کړی ده رسول الله صلي الله عليه وسلم به دسحر دوه رکعته سنتو کي "قل يايها الكافرون" او "قل هو الله احد" ونيل.

امام ترمذي روايت وايي په دي باب كي د ابن مسعود، انس، ابو هريره او ابن عباس او حفصه او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

امام ترمذي وايي حديث دابن عمر د حسن درجي دی اود سفيان ثوري په سند د ابو اسحاق نه مونږ ته ندی رارسيدلی، مګر د ابو احمد په سند د اسرائيل نه او ابو احمد الزبيري ثقه او

---

[1] ـ سنن النسائي في الافتتاح ٦٨ (٩٩٣). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٠٢ (١١٤٩). (تحفة الأشراف: ٧٣٨٨). مسند احمد (٢ في ٩٤، ٩٥، ٩٩)

حافظ وو، د بُندار نه مي اوريدلي دي چي فرمائيل يې د ابو احمد نه مي بالاتر او بهتري حافظي والاكس بل څوك ندی ليدلی، اود ابو احمد نوم محمد بن عبد الله بن الزبير الكوفي الاسدي دی

**لغات**: رمقت رمقة دنصر نه ترديره پوري كنل . شهرا معني مياشت چي جمع يې شهور او اشهر رراځي

**تشريح**: رسول الله به په اول ركعات كي قل ياايها الكافرون او په دويم ركعات كي قل هوالله احد لوستل نو امت لره هم دسحر په مونځ كي ددي اتباع كول پكاردي

*****************

## ۱۹۷ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْكَلَامِ بَعْدَ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ

## د سحر ددوه ركعاتو سنتو نه پس خبري كول

٤١٨ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، قَالَ: سَمِعْتُ مَالِكَ بْنَ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الفَجْرِ، فَإِنْ كَانَتْ لَهُ إِلَيَّ حَاجَةٌ كَلَّمَنِي وَإِلَّا خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمُ الكَلَامَ بَعْدَ طُلُوعِ الفَجْرِ حَتَّى يُصَلِّيَ صَلَاةَ الفَجْرِ، إِلَّا مَا كَانَ مِنْ ذِكْرِ اللَّهِ أَوْ مِمَّا لَا بُدَّ مِنْهُ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (۱)

**ترجمه**: دعائشه رضي الله عنها بيان دي كله چي به نبي كريم صلي الله عليه وسلم دسحر دوه ركعاتونه اوكړل نو كه زما سره به يې څه كار وو نو دهغه كار باره كي به يې ماسره گفتگو كوله او كه څه كار به يې راسره نه وو نو دمونځ دپاره به روان شو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، په صحابه كرامو او اهل علمو كي بعضو دسحر دختلو نه پس دسحر دمونځ كولو پوري خبري كول مكروه گڼړلي دي علاوه ددينه چي كومي خبري دالله تعالي دذكر سره معلق وي او يا نوري دضرورت خبري وي اوهمدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول دي

---

۱ ـ صحيح البخاري في التهجد ۲۴ (۱۱۶۱)، و ۲۵ (۱۱۶۲)، صحيح مسلم في المسافرين ۱۷ (۷۴۳)، سنن ابي داود في الصلاة ۲۹۳ (۱۲۶۲، ۱۲۶۳)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۱۱)

***************

## ١٩٨_ باب مَا جَاءَ لاَ صَلاَةَ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلاَّ رَكْعَتَيْنِ

## دسحر ختلو نه پس دسحر د دوه رکعاتو نه علاوه بل مونځ کول نشته

٤١٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ قُدَامَةَ بْنِ مُوسَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحُصَيْنِ، عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ، عَنْ يَسَارٍ مَوْلَى ابْنِ عُمَرَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ صَلاَةَ بَعْدَ الْفَجْرِ إِلاَّ سَجْدَتَيْنِ" وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ إِنَّمَا يَقُولُ: لاَ صَلاَةَ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلاَّ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَحَفْصَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ قُدَامَةَ بْنِ مُوسَى، وَرَوَى عَنْهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، وَهُوَ مَا اجْتَمَعَ عَلَيْهِ أَهْلُ الْعِلْمِ كَرِهُوا أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلاَّ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دسحر ختلو نه پس دسحر د دوه رکعاته سنتو نه علاوه بل کوم مونځ نشته.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن غريب دي او دا روايت مونږ صرف دقدامه بن موسي په سند پيژنو او دهغه نه ډيرو خلقو اخذ دروايت کړي دي ، او په دي باب کي د عبدالله بن عمرو، او حفصه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او همدا هغه قول دي په کوم چي داهل علمو اجماع ده چي هغوئ دسحر ختلو نه پس دفرضو نه مخکي دسحر د دوه رکعاته سنت کولو نه علاوه بل کوم مونځ کول مکروه ګنړلي دي.

**تشريح: دسحر سنتود قضا راوړلو بيان**

کـه دسـحر سـنت فـوت شـي.نو ددي قـضائي بـه راوړي اوکـه نـه ؟ پـه دي تګـول متـفق دي چـي دنمرختونه مخکي دي قضاء اونکړيـګ شي.حګکه چي سنت کله دخپل حګائيـګ نه فـوت شي.نو نفل ککرحکي.اودسحر مانحګه نه پس دنمر راختو پوريـګ نفل کـول مکروه دي.پـه دي وجه د نمر راختو نه مخکي دي ددي قضاء نـه راوړي.اودنمر راختونه پس پـه قضاء راوړو کي اختلاف دي ، دشيخينو په نزد دنمر راختو نه پس هم دسحردسنتو قضاء واجب نه ده.امام محمد وئيلي دي چي واجب خونه ده.خو بهتره خبره ده چي قضاء راوړي.د امام محمد دليل

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٩٩ (١٢٧٨) . سنن ابن ماجه في المقدمة ١٨ (٢٢٣) . (تحفة الأشراف : ٨٥٤٠) . مسند احمد (٢ في ٢٣،٥٧)

دادي چې د ليلة التعريس په سحر دنمر اوچت راختونه پس نبی کریم ﷺ دسحر دسنتو قضاء کړېگ ده. ددی نه ثابتيږی چې دنمر راختو نه پس دسحر دسنتو قضاء کيږی.د شيخينودليل دادي چې اصل داديگ چې دسنتو قضاء نشي راوړ ليگ.حككه چې قضاء د واجب سره مخصوص ده او واجب سره حككه خاص ده چې قضاء په "مثل دما وجب الامر" ته د سپارلو نوم دی اوسنت،واجب نه دی.په دی وجه مثل د واجبو ته نيگ سپارل خگنكگه متحقق کيدی شی. او دا مفتي به او راجح قول دی.

د امام محمد د پيش کړې دليل جواب دادی چې دليلة التعريس په سحر نبی کريم ﷺ دفرضو په اتباع کي دسحر دسنتوقضاء کړې ده.يعنی چونکه د سحر فرض مونځ هم فوت شوې وو.په دی وجه چی کله رسول پاك صلي الله عليه وسلم دفرضوقضاء راوړله.نو ددی په اتباع کي نې دسنتوهم قضاء راوړله.نو ددی نه علاوه به په اصل باقی پاتې وی.يعنی ددی صورت نه علاوه به قضاء نشی راوړ لې.

صاحب د هدايه وايي چې دسحر دسنتوقضاء به دفرضو په اتباع کي کولی شی.يعنی که دسحر دفرض مونځ قضاء کوی نودسحر د سنتوقضاء دی هم اوکړی دسحر دفرض مونځ قضاء که په جماعت سره کوی اوکه خانله نې قضاء راوړی.دا خبره ياد ساتئ چې دسحر دسنتوقضاء دفرضو په اتباع کي صرف د زواله پورې راوړی شی.خوکه دنمر زوال اوشو.او تراوسه ئې قضائی نه وه راوړې.نوپه دی کي اختلاف دی (۱)بعضي حضرات وائی چې د زوال نه پس دسحر دسنتو قضائی نشته.اگرچې دفرضو تابع ولي نه وی.خکه چې رسول الله ﷺ د زوال نه مخکي دفرضو په اتباع کي دسحر دسنتو قضاء راوړی ده.(۲)او بعضی حضرات وائی چې د زوال نه پس هم دفرضو په اتباع کي دسحر دسنتو قضاء کولی شی.

پاتې شو دسحر دسنتو نه علاوه نورسنت،نو ددی په باره کي حکم دا دې چې د وخت نه پس به يواځې دسنتو قضاء نشی راوړ لې.خو دفرضو په اتباع کي قضائی کيدی شی اوکه نه ؟ په دی باره کي دمشانخو اختلاف دی (۱)بعضو ونيلی دی چې قضاء دی راوړی.خکه چې ډير څيزونه ضمنًا ثابتيږی،اگرچې قصداً نه ثابتيږی.(۲)او بعضو ونيلی دی چې قضاء دی نه راوړی.خکه چې قضاء د واجبوسره خاص ده هم داصحيح قول دې. (اشرف الهدايه. احسن الهدايه)

***************

## ۱۹۹_ بَاب مَا جَاءَ فِي الِاضْطِجَاعِ بَعْدَ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ

**دسحر د دوه رکعاته سنت کولو نه پس د ددې وهلي او پريوتلو بيان**

٤٢٠ـ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُعَاذٍ الْعَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَلْيَضْطَجِعْ عَلَى يَمِينِهِ " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فِي بَيْتِهِ اضْطَجَعَ عَلَى يَمِينِهِ " وَقَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يُفْعَلَ هَذَا اسْتِحْبَابًا. (١)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي کله په تاسو کي څوك دسحر دوه رکعاتونه اوکړي نو په ښئ ډډه دي څملي.

امام ترمذي وائي دابوهريره رضي الله عنه حديث په مذکوره سند حسن صحيح غريب دي. او په دي باب کي د عائشه رضي الله عنها نه هم حديث وارد دي دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به کله پخپل کور کي دسحر دوه رکعاتونه اوکړل نو په ښئ ډډه به څملاستو بعضي اهل علمو قول دي چي دا عمل استحبابي دي.

*****************

## ٢٠٠ـ بَابُ مَا جَاءَ إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلاَةُ فَلاَ صَلاَةَ إِلاَّ الْمَكْتُوبَةُ

**کله چي جماعت قائم شي نودفرض مونځ نه علاوه بل هيڅ قسم مونځ جائز نه دي**

٤٢١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَطَاءَ بْنَ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلاَةُ فَلاَ صَلاَةَ إِلاَّ الْمَكْتُوبَةُ " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ بُحَيْنَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَرْجِسَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَهَكَذَا رَوَى أَيُّوبُ، وَوَرْقَاءُ بْنُ عُمَرَ، وَزِيَادُ بْنُ سَعْدٍ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ مُسْلِمٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، وَسُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ فَلَمْ يَرْفَعَاهُ. وَالْحَدِيثُ الْمَرْفُوعُ أَصَحُّ عِنْدَنَا. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ إِذَا أُقِيمَتِ

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٩٣ (١٢٦١) . (تحفة الأشراف: ١٢٣٤٥) . مسند احمد (٢ في ٤١٥)

الصَّلَاةُ أَنْ لَا يُصَلِّيَ الرَّجُلُ إِلَّا الْمَكْتُوبَةَ. وَبِهِ يَقُولُ: سفيان الثوري، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ. رَوَاهُ عَيَّاشُ بْنُ عَبَّاسٍ الْقِتْبَانِيُّ الْمِصْرِيُّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي جماعت قائم شي نو دفرض مونځ نه علاوه بل هيڅ قسم مونځ جائز نه پاتي کيږي امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن دي، دارنګي په يو بل سند هم دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي . او باقي حديث يي د ما قبل پشان بيان کړو.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دابن بحينه، عبدالله بن عمرو. عبدالله بن سرجش، ابن عباس، او انس رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي او حماد بن زيد او سفيان بن عيينه هم دعمرو بن دينار نه روايت نقل کړي دي ليکن دوئ دواړو دا روايت مرفوع نه دي ذکر کړي او صرف مرفوع حديث زمونږ په نزد زيات صحيح دي، سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد. او اسحاق هم ددي قائل دي، ددينه علاوه په يو دريم سند هم دا حديث په واسطه دابوهريره دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي او هغوئ دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه روايت کړي دي لکه چي عياش بن عباس قتباني مصري دابوسلمه نه او ابو سلمه دابوهريره نه او ابو هريره درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي

**تشريح** : په دي مسئله داهل علمو اتفاق دي چي دسحر دمونځ نه علاوه په نورو تمامو وختونو کي چي کله جماعت قائم شي کوم بل مونځ اداء کول جائز نه پاتي کيږي بلکه په جماعت کي شرکت ضروري دي البته دسحر په سنتو کي اختلاف دي چي کله دسحر جماعت قائم شي نو دي وخت کي سنت کول جائز دي او کنه دي؟ په دي باره کي دعلماؤ دوه مذاهب دي.

(۱) دامام ابو حنيفه او امام مالك په نزد دسحر دجماعت اوريدو نه پس دجماعت دخاي نه اخوا سنت کول جائز دي خو په دي شرط چي دجماعت دفوت کيدو خطره نه وي.

---

[1] ـ صحيح مسلم في المسافرين ۹ (۷۱۰) . سنن ابي داود في الصلاة ۲۹۴ (۱۲۶۶) . سنن النسائي في الإمامة ٦٠ (٨٦٦) . سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۰۳ (۱۱۵۱) . (تحفة الأشراف : ۱۴۲۲۸) . مسند احمد (۲ في ۳۵۲ ، ۴۵۵) . سنن الدارمي في الصلاة ۱۴۹ (۱۱۸۸)

(۲) دامام شافعي او امام احمد په نزد چي کله جماعت قائم شي دغه وخت کي سنت کول جائز نه دي او ددي دليل حديث الباب دي په دي کي ذکر شوي دي چي جماعت قائم شي نو دفرضو نه علاوه کوم بل مونځ جائز نه وي او په دي کي دسحر دمونځ کوم تخصيص نشته

***************

## ۲۰۱ ـ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ تَفُوتُهُ الرَّكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ يُصَلِّيهِمَا بَعْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ

**کله چي دچا نه دسحر دوه رکعاته سنت فوت شي نو دا به دمونځ نه پس اداء کوي**

۴۲۲ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو السَّوَّاقُ الْبَلْخِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ جَدِّهِ قَيْسٍ، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ الصُّبْحَ، ثُمَّ انْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَنِي أُصَلِّي، فَقَالَ: "مَهْلًا يَا قَيْسُ أَصَلَاتَانِ مَعًا". قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي لَمْ أَكُنْ رَكَعْتُ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، قَالَ: "فَلَا إِذًا" قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ لَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ هَذَا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ، وقَالَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ: سَمِعَ عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ، مِنْ سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ هَذَا الْحَدِيثَ. وَإِنَّمَا يُرْوَى هَذَا الْحَدِيثُ مُرْسَلًا. وَقَدْ قَالَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ بِهَذَا الْحَدِيثِ: لَمْ يَرَوْا بَأْسًا أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَكْتُوبَةِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَعْدُ بْنُ سَعِيدٍ هُوَ أَخُ وَيَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: وَقَيْسٌ هُوَ جَدُّ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ وَيُقَالُ: هُوَ قَيْسُ بْنُ عَمْرٍو، وَيُقَالُ: هُوَ قَيْسُ بْنُ قَهْدٍ، وَإِسْنَادُ هَذَا الْحَدِيثِ لَيْسَ بِمُتَّصِلٍ، مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيُّ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ قَيْسٍ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فَرَأَى قَيْسًا، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ. ([1])

**ترجمه** : دقيس (عمرو بن سهل) نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ دپاره راووتلو او دجماعت دپاره اقامت اوونيلي شو او ما ورسره دسحر مونځ اداء کړو بيانبي کريم صلي الله عليه وسلم راوګرځيدو او زه يي اوليدم چي زه مونځ کولو نه ورروان وم ماته يي

[1] سنن ابي داود في الصلاة ۲۹۵ (۱۲٦۷)، سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۰۴ (۱۱۵۴)، رتحفة الأشراف: ۱۱۱۰۲)، مسند احمد (د في ۴۴۷)

اوفرمائيل اي قيس لږ اودربره ايا په يو خاي د دوه مونځونو كولو دپاره روان وي؟ ما عرض اوكړو اي دالله رسوله مادسحر دوه ركعاته سنت نه وو كړي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بيا هم هيڅ حرج نشته.

امام ترمذي وائي مونږ دمحمد بن ابراهيم حديث ددي په مثل صرف دسعد بن سعيد په سند پيژنو، دسفيان بن عيينه قول دي چي عطاء بن ابي رباح هم دا حديث دسعد بن ابي سعيد نه اوريدلي دي دا حديث مرسل هم مروي دي، بعضي اهل مكه ددي حديث مطابق قول كړي دي چي دسحر دفرضو كولو نه پس او دنمر دختلو نه مخكي دسحر د دوه ركعاته سنتو په اداء كولو كي هيڅ حرج نشته، سعد بن ابي سعيد ديحي بن سعيد انصاري ورور دي او قيس ديحي بن سعيد انصاري نيكه دي هغه ته قيس بن عمرو وئيلي كيږي او قيس بن فهد ورته هم وئيلي كيږي ددي حديث سند متصل نه دي، محمد بن ابراهيم تيمي دقيس نه اوريدل نه دي كړي بعضي كسانو دا حديث دسعد بن سعيد نه او سعد دمحمد بن ابراهيم نه نقل كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم راووتلو او قيس يي اوليدلو او دا روايت دعبدالعزيز دحديث نه كوم چي هغه دسعد بن سعيد نه نقل كړي دي زيات صحيح دي.

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي كه ديو كس نه دسحر سنت پاتي شوي وي نو ايا دا دفرض مونځ نه فورا پس اداء كولي شي او كنه؟ په دي كي دوه مذاهب دي.

(۱) دامام ابو حنيفه او امام مالك په نزد دسحر دمونځ نه پس دنمر دختلو نه مخكي سنت اداء كول جائز نه دي دنمر دختلو نه پس به يي كوي ددوئ دليل په راتلونكي باب كي دابوهريره حديث دي "وفيه من لم يصل ركعتي الفجر فليصلهما بعد ماتطلع الشمس".

(۲) دامام شافعي او امام احمد په نزد دسحر دمونځ نه فورا پس سنت اداء كول مكروه دي او هغوئ دحديث الباب نه استدلال كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم قيس ته اوفرمائيل "مهلا ياقيس اصلاتان معا".

***************

## ۲۰۲ ـ بَاب مَا جَاءَ فِي إِعَادَتِهِمَا بَعْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ

### د نمر ختلو نه پس ددي دراكړځولو بيان

۴۲۳ ـ حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ الْعَمِّيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ لَمْ يُصَلِّ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَلْيُصَلِّهِمَا بَعْدَ مَا تَطْلُعُ الشَّمْسُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ فَعَلَهُ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَبِهِ يَقُولُ: سفيان الثوري، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. قَالَ: وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ هَمَّامٍ بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَ هَذَا إِلَّا عَمْرَو بْنَ عَاصِمٍ الْكِلَابِيَّ، وَالْمَعْرُوفُ مِنْ حَدِيثِ قَتَادَةَ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الصُّبْحَ.[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څوك چي دسحر دوه ركعاته سنت اونكړي شي نو دا دي دنمر ختلو نه پس اوكړي.

امام ترمذي وائي دا حديث مونږ صرف په همدي سند پيژنو، دابن عمر نه دا هم مروي دي چي هغه همداسي كړي دي او دبعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي، سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق هم ددي قول قائلين دي. مونږ ته هيڅوك داسي معلوم نه دي چي دهمام نه يې دا حديث په دي سند په همدي طريقه نقل كړي وي مګر علاوه دعمرو بن عاصم كلابي نه، او په سند دقتاده عن النضر بن انس عن بشير بن نهيك عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم. مشهوره داده چي رسول الله فرمائيلي دي چاچه دسحر يو ركعات هم دنمر ختلو نه مخكي اورسولو نو هغه سحر لره اوموندلو

*****************

## ٢٠٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْأَرْبَعِ قَبْلَ الظُّهْرِ

**دماسپخين دمونځ نه مخكي دڅلور ركعاته سنت اداء كولو بيان**

٤٢٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الظُّهْرِ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَائِشَةَ، وَأُمِّ حَبِيبَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ. حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْعَطَّارُ. قَالَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ. عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ. قَالَ: كُنَّا نَعْرِفُ فَضْلَ حَدِيثِ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ عَلَى حَدِيثِ الْحَارِثِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ يَخْتَارُونَ أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ قَبْلَ الظُّهْرِ أَرْبَعَ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢٢١٧)

رَكَعَاتٍ، وَهُوَ قَوْلُ سفيان الثوري، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَإِسْحَاق وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: صَلَاةُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنَى مَثْنَى يَرَوْنَ الْفَصْلَ بَيْنَ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ، وَبِهِ يَقُولُ: الشافعي، وَأَحْمَدُ. (1)

**ترجمه**: دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دماسپخين دمونځ نه مخکي څلور رکعاتونه او ددينه پس دوه رکعاتونه کول.

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن دي، او په دي باب کي دعائشه، ام حبيبه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي مونږ ته ابوبکر عطاء ونيلي دي چي علي بن عبدالله ديحي بن سعيد نه او يحي بن سعيد دسفيان نه نقل کړي دي هغه به ونيل مونږ ته نه ده معلومه چي د عاصم بن ضمره حديث دحارث دحديث نه افضل دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي داکثرو په دي باندي عمل دي هغوئ دا خوښوله چي دماسپخين دمونځ نه مخکي څلور رکعاته اوکړي شي، او همدا دسفيان ثوري، ابن مبارك، اسحاق بن راهويه، او اهل کوفه قول دي ، بعضي اهل علم وائي چي دورځي او دشپي دواړو مونځونه دوه دوه رکعاته دي هغوئ دهر دوه رکعاتو نه پس دفصل کولو قائل دي امام شافعي او امام احمد هم په دي باندي قول کړي دي.

***************

## ٢٠٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ

### دماسپخين دمونځ نه پس د دوه رکعاته سنت کولو بيان

٤٢٥_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا" قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرماني چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره دماسپخين دمونځ نه مخکي دوه رکعاتونه او ددينه پس دوه رکعاتونه اوکړل.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعلي، او عائشه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او دابن عمر حديث حسن صحيح دي.

---

1 _ تفرد به المؤلف وأخرجه في الشمائل (٣٢) أيضا. وانظر ما يأتي برقم: ٤٢٩، و٥٩٨ (تحفة الأشراف: ١٠١٢٩)

2 _ تفرد به المؤلف ويأتي برقم: ٤٣٢ (تحفة الأشراف: ٧٥٩١)

***************

## ۲۰۵ـ باب مِنْهُ آخَرُ

### دماسپخين دمونځ نه پس د دوه رکعاته سنت متعلق يو بل باب

٤٢٦ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ الْعَتَكِيُّ الْمَرْوَزِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " إِذَا لَمْ يُصَلِّ أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ صَلاَّهُنَّ بَعْدَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ الْمُبَارَكِ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رَوَاهُ قَيْسُ بْنُ الرَّبِيعِ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ نَحْوَ هَذَا وَلاَ نَعْلَمُ أَحَدًا رَوَاهُ، عَنْ شُعْبَةَ غَيْرَ قَيْسِ بْنِ الرَّبِيعِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هَذَا. [1]

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي كله چي به دماسپخين نه مخكي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه څلور ركعاته سنت پاتي شول نو هغه به يې دماسپخين نه پس اداء كول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي ، مونږ ته دا حديث صرف په همدي سنت معلوم دي او دا حديث قيس بن ربيع دشعبه نه او شعبه د خالد الحذاء نه همداسي نقل كړي دي او مونږ ته دقيس بن ربيع نه علاوه په بل سند نه دي معلوم چي دشعبه نه يې نقل كړي وي، او په سند دعبدالرحمن بن ابي ليلي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره هم مروي دي.

***************

٤٢٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الشُّعَيْثِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَنْبَسَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ صَلَّى قَبْلَ الظُّهْرِ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا، حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ. [2]

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٠٦ (١١٥٨) . (تحفة الأشراف : ١٦٢٠٨)

[2] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٩٦ (١٢٦٩) . سنن النسائي في قيام الليل (١٨١٥) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٠٨ (١١٦٠) . (تحفة الأشراف : ١٥٨٥٨) . مسند احمد (٦ في ٣٢٦)

**ترجمه** : دام حبيبه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چاچه دماسپخين نه مخکي څلور رکعاتونه او دماسپخين نه پس څلور رکعاتونه اوکړل نو الله تعالي به ده لره دجهنم په اور باندي حرام کړي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دي، دجمهورو په نزد په دي کي دوه سنت مؤکد دي او دوه غير مؤکد دي دا حديث هم درست دي مګر صرف په يو سند د مروي کيدو په وجه غريب دي البته ددي يو بل سند هم شته کوم چي امام ترمذي بيان کړي دي او هغه دباب دريم حديث دي او ددغه حديث هم دا مضمون دي دا حديث دام حبيبه رضي الله عنها نه صرف دهغي ورور عنبســه نقل کړي دي او بيا لاندي ددي ډير سندونه دي.

****************

٤٢٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ التِّنِّيسِيُّ الشَّامِيُّ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنِي الْعَلَاءُ هُوَ: ابْنُ الْحَارِثِ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَنْبَسَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ أُخْتِي أُمَّ حَبِيبَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، تَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَنْ حَافَظَ عَلَى أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ وَأَرْبَعٍ بَعْدَهَا حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَالْقَاسِمُ هُوَ: ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يُكْنَى أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَهُوَ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ مُعَاوِيَةَ، وَهُوَ ثِقَةٌ شَامِيٌّ، وَهُوَ صَاحِبُ أَبِي أُمَامَةَ. (1)

**ترجمه** : دعنبسه بن ابي سفيان رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي ما دخپلي خور ام المؤمنين ام حبيبه رضي الله عنها نه اوريدلي دي فرمائيل يې چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چاچه دماسپخين نه مخکي څلور رکعاتونه اوکړل او بيا يې ددينه پس په څلورو رکعاتونو محافظت اوکړو نو الله تعالي به هغه لره دجهنم په اور باندي حرام کړي.
امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، قاسم په اصل کي دعبدالرحمن خوي دي او دده کنيه ابو عبدالرحمن ده او هغه د عبدالرحمن بن خالد بن يزيد بن معاويه مولي(ازاد کړي غلام) دي او ثقه دي دشام اوسيدونکي او دابوامامه شاګرد دي.

---

[1] ـ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٥٨٦١)

*****************

## ٢٠٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي الأَرْبَعِ قَبْلَ الْعَصْرِ

### دمازيګر دمونځ نه مخکې دڅلور رکعاته سنت کولو بيان

٤٢٩_ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ هُوَ: الْعَقَدِيُّ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيمِ عَلَى الْمَلَائِكَةِ الْمُقَرَّبِينَ وَمَنْ تَبِعَهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُؤْمِنِينَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَاخْتَارَ إِسْحَاق بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَنْ لَا يُفْصَلَ فِي الْأَرْبَعِ قَبْلَ الْعَصْرِ وَاحْتَجَّ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وقَالَ إِسْحَاق: وَمَعْنَى قَوْلِهِ أَنَّهُ يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيمِ يَعْنِي التَّشَهُّدَ. وَرَأَى الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ صَلَاةَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنَى مَثْنَى يَخْتَارَانِ الْفَصْلَ فِي الْأَرْبَعِ قَبْلَ الْعَصْرِ. [1]

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دمازيګر دمونځ نه مخکې څلور رکعاتونه کول او ددې په مينځ کې به يې په مقربو فرشتو او مسلمانانو او مومنانو باندې چاچه دهغوی تابعداري کړې وي دسلام په ذريعه فصل کولو.

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن دې، او په دې باب کې د ابن عمر، عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي اسحاق بن ابراهيم بن راهويه دمازيګر نه مخکې په څلورو رکعاتونو کې فصل نه کولو ته ترجيح ورکړې ده او هغوی ددې حديث نه استدلال کړې دې اسحاق وائي دعلي رضي الله عنه دقول "دسلام په ذريعه په څلورو رکعاتونو کې دفصل کولو" معنې داده چې هغوی به د دوه رکعاتو نه پس تشهد لوستلو او دامام شافعي او احمد رائې داده چې دشپې او ورځې مونځونه دوه دوه رکعاتونه دي او هغوی دمازيګر نه مخکې په دواړو کې دڅلور رکعاتونو مينځ کې دسلام په ذريعه فصل کول خوښوي.

*****************

٤٣٠_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمِ بْنِ مِهْرَانَ، سَمِعَ جَدَّهُ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ،

---

[1] _ تفرد به المؤلف وانظر ما تقدم برقم ٤٢٢، وما يأتي برقم ٥٩٨ (تحفة الأشراف: ١٠١٣٢)

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "رَحِمَ اللَّهُ امْرَأً صَلَّى قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي دي په هر هغه كس رحم اوكړي څوك چي دمازيګر نه مخكي څلور ركعاتونه اوكړي.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب حسن دي

****************

## ٢٠٧ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَالْقِرَاءَةِ فِيهِمَا

### دماښام دمونځ نه پس دوه ركعاتونه كول او په دي كي دقرائت بيان

٤٣١ـ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا بَدَلُ بْنُ الْمُحَبَّرِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَعْدَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ بَهْدَلَةَ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ قَالَ: "مَا أُحْصِي مَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ: قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، مِنْ حَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ عَاصِمٍ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي زه نشم شميرلي چي ما به څومره ډيري رسول الله صلي الله عليه وسلم لره دماښام دمونځ نه پس په دوه ركعاته سنتو كي او دسحر دمونځ نه مخكي په دوه ركعاتونو كي په قل يا ايهالكافرون او په قل هو الله احد ونيلو باندي ليدلي وي او څومره به مي ورنه دا اوريدلي وي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي ، دابن مسعود حديث غريب دي مونږ يي صرف دعبيد الله بن معدان عن عاصم په سند باندي پيژنو.

**تشريح** : د امام مالك په نزد دماښام دمونځ نه پس شپږ ركعاته كول سنت دي او دتولو درجه يوه ده يعني مندوب دي او دنورو اهل علمو په نزد دوه ركعاتونه كول سنت مؤكده دي او څلور

---

1 ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٩٦ (١٢٧١). (تحفة الأشراف: ٧٤٥٢)

2 ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ١١٢ (١١٦٦) (تحفة الأشراف: ٩٢٤٨)

مندوب دي او دي شپږ رکعاتونو ته صلاة الاوابين ونيلي شي لکه څنګه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسحر په سنتو کي داخلاص دوه سورتونه لوستل نو دمابنام نه پس په سنتو کي به يي هم دا دوه سورتونه لوستل.

***************

## ٢٠٨ـ باب مَا جَاءَ أَنَّهُ يُصَلِّيهِمَا فِي الْبَيْتِ

## په کورونو کي دسنتو اداکولو بيان

٤٣٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ. عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِي بَيْتِهِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، وَكَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(١)

**ترجمه** : عبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي ما دمابنام نه پس دوه رکعاتونه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم سره دهغه په کور کي اوکړل.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي درافع بن خديج او کعب بن عجره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي، او دابن عمر حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : امام نووي په مسئله د افضليت التطوع والسنن في البيوت مستقل باب قائم کړی دی چي "باب استحباب جعل النوافل في البيت سواء الراتبة وغيرها والأمر بالتحول للنافلة من موضع الفريضة أو الفصل بينهما بكلام

يعني نفل مونځ کور کي کول مستحب دي، سنت مؤکد وي او که غير مؤکد (نفل) او که څوک يی جومات کي کوي نو دفرضو ځايی نه ورته په ډډه کيدل پکار دي يايی ترمينځه په خبرو جدائي راوستل پکار دي.

امام نووي په دي سلسله کي د بخاري او مسلم متعدد روايات نقل کړي دي، چنانچه د زيد بن ثابت رضي الله عنه يو متفق عليه روايت دی:

عن زيد بن ثابت ﷺ : أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ، قَالَ: ((صَلُّوا أَيُّهَا النَّاسُ فِي بُيُوتِكُمْ، فَإِنَّ أَفْضَلَ الصَّلَاةِ صَلَاةُ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ إِلاَّ الْمَكْتُوبَةَ)) متفقٌ عَلَيْهِ.

دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ای

١ ـ تفرد به المؤلف ويأتي برقم: ٣٣٢ (تحفة الأشراف: ٧٥٩١)

خلقو په کورونو کي مونځونه کوئ ځکه چي دبنده بهترين مونځ هغه دی ، چي په کور کي يې اوکړي مګر علاوه دفرض مونځ نه (چه هغه په جومات کي جمع سره پکار دی)

افضل الصلاة صلاة المرء في بيته : دنارينه افضل مونځ هغه دی کوم چي پخپل کور کي اوکړي خو دفرضو نه علاوه سنت مؤکد وي او که غير مؤکد وي په کور کي کول افضل دي ځکه چي په کور کي سنت ادا کول دريا او نمائش نه خالي وي او اخلاص پکي زيات وي او ددي په وجه کور ته دالله رحمت نازليږي په کور کي نوافل کول مستحب دي او که څوك يې په مسجد کي کوي نو مکروه به نه وي اختلاف صرف په افضليت کي دی.

عن ابن عمر رضي الله عنهما ، عن النَّبِيِّ ﷺ ، قَالَ : ((اجْعَلُوا مِنْ صَلاَتِكُمْ فِي بُيُوتِكُمْ ، وَلاَ تَتَّخِذُوهَا قُبُوراً)) متفقٌ عَلَيْهِ .

ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څه مونځونه کورونو کي هم کوئ کورونو نه اديري مه جوړوئ (يعني دعبادت نه يې خالي مه پريږدئ)

عن جابر ﷺ ، قَالَ : قَالَ رسول الله ﷺ : ((إِذَا قَضَى أَحَدُكُمْ صَلاَتَهُ فِي مَسْجِدِهِ فَلْيَجْعَلْ لِبَيْتِهِ نَصِيباً مِنْ صَلاَتِهِ ؛ فَإِنَّ اللهَ جَاعِلٌ فِي بَيْتِهِ مِنْ صَلاَتِهِ خَيْراً)) رواه مسلم .

دجابر رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو چي په جومات کي فرض مونځ اوکړئ نو په خپل مونځ کي څه برخه پخپلو کورونو کي هم کوئ (يعني سنت او نوافل کور کي کوئ) ځکه پدی مونځ الله تعالي ستاسو کورونو کي برکت اچوي

فأن الله جاعل في بيته من صلاته خيرا: ځکه چي په کور کي دده دمونځ د ادا کولو په وجه الله تعالي خير او برکت نازلوي دحديث مطلب دادی چي خلق دي په کورونو کي هم نوافل او سنت کوي تردي چي کور ته برکت راشي علماء وائي دا حکم دهغه خلقو دپاره دی څوك چي دفرض ادا کولو نه پس کور ته لاړ شي نو که څوك کور ته لاړ نشي يا په اعتکاف کي وي نو بيا دي په مسجد کي نوافل اوکړي دا هم معمول نبوي دی.

***************

٤٣٣ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الحُلْوَانِيُّ الخَلاَّلُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ. أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ. عَنْ أَيُّوبَ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ: " حَفِظْتُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ رَكَعَاتٍ كَانَ يُصَلِّيهَا بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ المَغْرِبِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ

الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ". قَالَ: وَحَدَّثَتْنِي حَفْصَةُ أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الْفَجْرِ رَكْعَتَيْنِ. هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي فرماني چي ماته درسول الله صلي الله عليه وسلم لس ركعاتونه ياد دي چي كوم به يي په شپه او ورځ كي اداء كول دوه ركعاتونه دماسپخين نه مخكي او دوه دماسپخين دمونځ نه پس او دوه ركعاتونه دماښام دمونځ نه پس او دوه ركعاتونه دماخوستن دمونځ نه پس او ماته حفصه رضي الله عنها بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دسحر دمونځ نه مخكي دوه ركعاتونه كول. امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

٤٣٤ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه**: په دي سند باندي هم دابن عمر رضي الله عنهما نه دسابقه روايت هم معني حديث مروي دي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

## ٢٠٩ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ التَّطَوُّعِ وَسِتِّ رَكَعَاتٍ بَعْدَ الْمَغْرِبِ

**دماښام دمونځ نه پس د نفل كولو او شپږ ركعاتونو كولو بيان**

٤٣٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ يَعْنِي مُحَمَّدَ بْنَ الْعَلَاءِ الْهَمْدَانِيَّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ أَبِي خَثْعَمٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ سِتَّ رَكَعَاتٍ لَمْ يَتَكَلَّمْ فِيمَا بَيْنَهُنَّ بِسُوءٍ عُدِلْنَ لَهُ بِعِبَادَةِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ عِشْرِينَ رَكْعَةً بَنَى اللَّهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ

---

[1] ـ صحيح البخاري في التهجد ٣٢(١١٨٠). (تحفة الأشراف: ٤٥٣٢)

[2] ـ تفرد به المؤلف، وانظر ما قبله (تحفة الأشراف: ٦٩٥٩)

غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ زَيْدِ بْنِ الْحُبَابِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي خَثْعَمٍ. قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ، يَقُولُ: عُمَرُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي خَثْعَمٍ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ وَضَعَّفَهُ جِدًّا. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه دمابنام دمونځ نه پس شپږ ركعاتونه اوكړل او ددي په مينځ كي يي څه بدي خبري اونكړي نو ددي ثواب به د دولسو كالو دعبادت برابروي.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه دمابنام دمونځ نه پس شل ركعاتونه اوكړل الله تعالي به دهغه دپاره په جنت كي كور جوړ كړي، دابوهريره رضي الله عنه دا حديث غريب دي او مونږ يي صرف په سند د زيد بن حباب عن عمربن ابي خثعم په سند پيژنو، ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي عمربن عبدالله بن ابي خثعم منكرالحديث دي او بخاري دده سخت تضعيف كړي دي.

***************

## ٢١٠_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ

### دماخوستن دمونځ نه پس د دوه ركعاتونو بيان

٤٣٦_ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ، عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَتْ: "كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الظُّهْرِ رَكْعَتَيْنِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ وَبَعْدَ الْمَغْرِبِ ثِنْتَيْنِ وَبَعْدَ الْعِشَاءِ رَكْعَتَيْنِ وَقَبْلَ الْفَجْرِ ثِنْتَيْنِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن شقيق نه روايت دي فرمائي چي ما دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه درسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ باره كي تپوس اوكړو راته يي اوفرمائيل چي دماخوستن دمونځ نه مخكي به يي دوه ركعاتونه كول او دوه ركعاتونه به يي ددينه پس كول

1 _ سنن ابن ماجه في الإقامة ١١٣ (١١٦٧) (تحفة الأشراف: ١٥٣١٢)

2 _ سنن ابي داود في التطوع ١٦ (٤٣٠). سنن ابي داود في الصلاة ٢٩٠ (١٢٥١). سنن النسائي في قيام الليل ١٨ (١٦٣٤، ١٦٣٨). (تحفة الأشراف: ١٦٢٠٤). مسند احمد (٦ في ٣٠)

دمابنام دمونځ نه پس به يي دوه رکعاتونه اوکړل او دوه رکعاتونه دماخوستن دمونځ نه پس او دوه رکعاتونه به يي دسحر دمونځ نه مخکي کول.

امام ترمذي وائي په دي باب کي د علي او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او دعبدالله بن شقيق دا حديث کوم چي هغه دعائشه رضي الله عنها نه نقل کړي دي حسن صحيح دي.

## عبدالله بن شقيق حالات:

دا د ال حضرمي مولادی دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت نقل کوي او دده په شاګردانو کي يحيي بن قطان او وکيع وغيره قابل ذکر دي اکثر محدثينو دده توثيق کړی دی تردي پوري چي علامه نووي دده په عظمت دعلماؤ اتفاق نقل کړی دی

***************

## ٢١١ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ صَلاَةَ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى

### دشپي نفلي مونځ دوه دوه رکعاتونه دي

٤٣٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "صَلاَةُ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى فَإِذَا خِفْتَ الصُّبْحَ فَأَوْتِرْ بِوَاحِدَةٍ وَاجْعَلْ آخِرَ صَلاَتِكَ وِتْرًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَاب عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ أَنَّ صَلاَةَ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى، وَهُوَ قَوْلُ: سفيان الثوري، وَابْنِ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دشپي نفل دوه دوه رکعاته دي. او کله چي تاسره دسحر دمونځ دوخت داخليدو ويره پيدا شي نو يو رکعات اوکړه او وتر بي اوګرځوه او دشپي خپل اخري مونځ وتر ګرځوه.

امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د عمرو بن عنبسه رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي چي

---

[1] ـ صحيح البخارى في الصلاة ٨٤ (٤٧٢، ٤٧٣) . والوتر ١ (٩٩٠، ٩٩١، ٩٩٣) . والتهجد ١٠ (١١٣٧) . صحيح مسلم في المسافرين ٢٠ (٧٤٩) . سنن ابي داود في الصلاة ٣١٤ (١٣٢٦) . سنن النسائي في قيام الليل ٢٦ (١٦٦٨١٦٧٥) . و٣٥ (١٦٩٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٧١ (١٣٢٠) . (تحفة الأشراف : ٨٣٨٨) . موطا امام مالک في صلاة الليل ٣ (١٣) . مسند احمد ٢ في ٥، ٩، ١٠، ٤٩، ٥٤، ٦٦)

دشپي مونځ دوه دوه رکعاته وي، سفيان ثوري ، ابن مبارك ، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه هم دا قول اختيار کړي دي.

**تشريح** : صلاة الليل مثني مثني: يعني دشپې مونځ دوه رکعاته دي. دشپې مونځ دوه دوه رکعاته دی، دجمهورو علماؤ او صاحبينو په نزد دشپې دوه دوه رکعاته مونځ افضل دی دامام ابو حنيفه په نزد دشپې څلور رکعاتي مونځونه کول افضل دي دجمهورو علماؤ دليل پورتنی حديث دی او امام ابوحنيفه دعائشه رضي الله عنها ددي روايت نه استدلال کړی دی.

ماكان رسول الله يزيد في رمضان ولا في غيره علي احدي عشرة ركعة يصلي اربعا فلاتسئل عن حسنهن وطولهن ثم يصلي اربعا فلا تسئل عن حسنهن وطولهن ثم يصلي ثلاثا.

يعني رسول الله به په رمضان او غير رمضان کي يولس رکعاته تهجد کول څلور رکعاته به يي اوکړل دحسن او اوږدوالي تپوس يي مه کوه او بيابه يي بيا څلور رکعاته اوکړل او بيابه يي دري رکعاته اوکړل، دا اختلاف صرف په افضليت کي دی که څوك دوه رکعاته کوي او که څوك څلور کوي ټول جائز دي.

***************

## ٢١٢_ بابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ صَلاَةِ اللَّيْلِ

### دصلاة الليل (تهجد) دفضيلت بيان

٤٣٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الحِمْيَرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْضَلُ الصِّيَامِ بَعْدَ شَهْرِ رَمَضَانَ شَهْرُ اللَّهِ المُحَرَّمُ وَأَفْضَلُ الصَّلاَةِ بَعْدَ الفَرِيضَةِ صَلاَةُ اللَّيْلِ" قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ جَابِرٍ، وَبِلاَلٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَبُو بِشْرٍ اسْمُهُ: جَعْفَرُ بْنُ أَبِي وَحْشِيَّةَ وَاسْمُ أَبِي وَحْشِيَّةَ: إِيَاسٌ. (١)

---

١ ـ صحيح مسلم في الصيام ٣٨ (١١٦٣) . سنن ابي داود في الصوم ٥٥ (٢٤٢٩) . سنن النسائي في قيام الليل ٦ (١٦١٣) . سنن ابن ماجه في الصوم ٤٣ (١٧٤٢) . (تحفة الأشراف : ١٢٢٩٢) . مسند احمد (٣٤٢، ٣٤٤، ٥٣٥) . (ويأتي عند المؤلف في الصوم ٤٠ برقم ٧٤٠)

**ترجمه** : دابو هريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي درمضان نه پس دټولو نه افضل روژي دالله تعالي دمحرم مياشتي روژي نيول دي او دفرضي مونځونو نه علاوه په ټولو مونځونو کي افضل مونځ تهجد دي.
امام ترمذي وائي په دي باب کي دجابر، بلال او ابو امامه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او حديث دابوهريره حسن صحيح دي.
امام ترمذي وائي دابوبشر نوم جعفر بن ابي وحشي دي او دابو وحشي نوم اياس دي.

***************

## ٢١٣_ بَاب مَا جَاءَ فِي وَصْفِ صَلَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ

**دشپې وخت کي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دتهجد دکيفيت بيان**

٤٣٩_ حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ: كَيْفَ كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ فِي رَمَضَانَ ؟ فَقَالَتْ: مَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَا فِي غَيْرِهِ عَلَى إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً، يُصَلِّي أَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي أَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي ثَلَاثًا " فَقَالَتْ عَائِشَةُ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَتَنَامُ قَبْلَ أَنْ تُوتِرَ ؟ فَقَالَ: " يَا عَائِشَةُ إِنَّ عَيْنَيَّ تَنَامَانِ وَلَا يَنَامُ قَلْبِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دام سلمه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي دام المؤمنين عائشه نه مي تپوس اوکړو چي په رمضان کي درسول الله صلي الله عليه وسلم تهجد څنګه وو؟ نو ويي فرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم به په رمضان او غير رمضان کي ديولس رکعاتونو نه زيات تهجد نه کول دوه دوه رکعاتونه کولو په حال کي به يي څلور رکعاتونه په دومره ښکلي شان او شانداري طريقي سره اداء کول چي دخائست او داوږدوالي تپوس يي مه کوه بيا به يي څه مزيد څلور رکعاتونه د دوه دوه رکعاتو په طريقه اوکړل چي دخائست او د اوږدوالي تپوس يي مه کوه او بيا به يي دري رکعاتونه اوکړل ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها فرمائي چي ما عرض

[1] _ صحيح البخاري في التهجد ١٦ (١١٤٧) . والتراويح ١ (٢٠١٣) . والمناقب ٢٣ (٣٥٦٩) . صحيح مسلم في المسافر ١٧ (٧٣٨) . سنن ابي داود في الصلاة ٣١٦ (١٣٤١) . سنن الترمذي في الصلاة ٢٠٩ (٤٣٩) . سنن النسائي في قيام الليل ٣٦ (١٦٩٨) . موطا امام مالک في صلاة الليل ٢ (٩) . مسند احمد (٦ في ٣٦، ٧٣، ١٠٤)

اوکړو چې اي دالله رسوله چې ايا ته دوتر کولو نه مخکې اوده کيږې نو وېې فرمائيل اي عائشې زما سترګې اودې کيږې خو زړه مې نه اوده کيږي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

٤٤٠_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً، يُوتِرُ مِنْهَا بِوَاحِدَةٍ، فَإِذَا فَرَغَ مِنْهَا اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ "(1)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دشپې يولس رکعاته مونځ کولو او په دې کې به يو رکعات وتر وو کله چې به رسول الله ددينه فارغ شو نو ښخپل ښي طرف به يې ډډه اووهله.

*****************

٤٤١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه** : په دې سند باندې هم دابن شهاب زهري نه دسابقه حديث هم معني روايت مروي دي، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٢١٤_ بَاب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٤٤٢_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ الضُّبَعِيِّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً " قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو جَمْرَةَ الضُّبَعِيُّ اسْمُهُ: نَصْرُ بْنُ عِمْرَانَ الضُّبَعِيُّ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دشپې ديارلس رکعاتونه کول ، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او دابوحمزه ضبعي نوم نصر بن عمران ضبعي دي.

---

1 _ صحيح البخاري في التهجد ١٠ (١١٣٨)، صحيح مسلم في المسافرين ٢٦ (٧٦٤)، (تحفة الأشراف: ٦٥٢٥)

2 _ صحيح البخاري في التهجد ١٠ (١١٣٨)، صحيح مسلم في المسافرين ٢٦ (٧٦٤)، (تحفة الأشراف: ٦٥٢٥)

*****************

## ٢١٥_ باب مِنْهُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٤٤٣_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ تِسْعَ رَكَعَاتٍ" قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَالفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ.(1)

**ترجمه**: دام المومنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دشپې نهه ركعاتونه كول.

امام ترمذي وائي عائشه رضي الله عنها حديث په دي سند حسن غريب دي، او په دي باب كي دابوهريره، زيد بن خالد، او فضل بن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

*****************

٤٤٤_ وَرَوَاهُ سفيان الثوري، عَنِ الأَعْمَشِ نَحْوَ هَذَا. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَكْثَرُ مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي "صَلَاةِ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً مَعَ الوِتْرِ، وَأَقَلُّ مَا وُصِفَ مِنْ صَلَاتِهِ بِاللَّيْلِ تِسْعُ رَكَعَاتٍ".(2).

**ترجمه**: سفيان ثوري هم دا حديث په دي سند داعمش نه نقل كړي دي، او مونږ ته دا محمود بن غيلان بيان كړي دي او محمود ته يحي بن ادم او هغه دسفيان نه او سفيان داعمش نه نقل كړي دي.

امام ترمذي وائي دشپې دمونځ په سلسله كي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه زيات نه زيات دوترو سره ديارلس ركعاتونه مروي دي او كم از كم نهه ركعاتونه مروي دي.

*****************

## ٢١٦_ باب إِذَا نَامَ عَنْ صَلَاتِهِ بِاللَّيْلِ صَلَّى بِالنَّهَارِ

---

1 _ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨١(١٣٦٠). (تحفة الأشراف: ١٥٩٥١). مسند احمد(٦ في ٣٠، ١٠٠)

2 سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨١(١٣٦٠). (تحفة الأشراف: ١٥٩٥١). مسند احمد(٦ في ٣٠، ١٠٠)

## څوک چې دتهجد کولو نه اوده پاتې شي نو دورځې به يې کوي

٤٤٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَمْ يُصَلِّ مِنَ اللَّيْلِ مَنَعَهُ مِنْ ذَلِكَ النَّوْمُ أَوْ غَلَبَتْهُ عَيْنَاهُ صَلَّى مِنَ النَّهَارِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَعْدُ بْنُ هِشَامٍ هُوَ: ابْنُ عَامِرٍ الأَنْصَارِيُّ، وَهِشَامُ بْنُ عَامِرٍ هُوَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ هُوَ ابْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ الْعَنْبَرِيُّ. حَدَّثَنَا عَتَّابُ بْنُ الْمُثَنَّى، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، قَالَ: كَانَ زُرَارَةُ بْنُ أَوْفَى قَاضِيَ الْبَصْرَةِ، وَكَانَ يَؤُمُّ فِي بَنِي قُشَيْرٍ، فَقَرَأَ يَوْمًا فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ. "فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ فَذَلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ خَرَّ مَيِّتًا، فَكُنْتُ فِيمَنِ احْتَمَلَهُ إِلَى دَارِهِ".[1]

**ترجمه**: دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرماني چې کله به رسول الله صلي الله عليه وسلم دشپې تهجد اونکړل او خوب پکې رکاوټ جوړ شو نو دورځې به يې ددې په بدل کې دولس رکعاتونه کول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او سعد بن هشام ابن عامر انصاري دي او هشام بن عامر درسول الله صلي الله عليه وسلم په صحابه کرامو کې دي، دبهز بن حکيم نه روايت دي چې زراره بن اوفي دبصري قاضي وو هغه به بني قشير قبيلې ته امامت ورکولو زراره يوه ورځ دسحر په مونځ کې ايت کريمه "فاذا نقر في الناقور، فذلك يوم عسير" اولوستلو نو بې هوش راپريوتلو او مړ شو او زه هم په هغه خلقو کې شامل وم چاچه دي پورته کړو او کور ته يې اورسولو.

***************

## ٢١٧ـ باب مَا جَاءَ فِي نُزُولِ الرَّبِّ عَزَّ وَجَلَّ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا كُلَّ لَيْلَةٍ

### هره شپه ددنيا اسمان ته دالله تعالي د نزول بيان

٤٤٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الإِسْكَنْدَرَانِيُّ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَنْزِلُ اللَّهُ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا كُلَّ لَيْلَةٍ حِينَ يَمْضِي ثُلُثُ اللَّيْلِ الأَوَّلِ فَيَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ مَنْ ذَا الَّذِي يَدْعُونِي فَأَسْتَجِيبَ لَهُ مَنْ ذَا

---

[1] ـ صحيح مسلم في المسافرين ١٨ (٧٤٦). سنن ابي داود في الصلاة ٣١٦ (١٣٤٢). سنن النسائي في قيام الليل ٢ (١٦٠٢) (في سياق طويل)، و ٦٣ (١٧٩٠). (تحفة الأشراف: ١٦١٠٥). مسند احمد (٦ / ٥٣)

الَّذِي يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ مَنْ ذَا الَّذِي يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ فَلَا يَزَالُ كَذَلِكَ حَتَّى يُضِيءَ الْفَجْرُ " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَرِفَاعَةَ الْجُهَنِيِّ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَعُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ أَوْجُهٍ كَثِيرَةٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرُوِيَ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: "يَنْزِلُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الآخِرُ " وَهُوَ أَصَحُّ الرِّوَايَاتِ.[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي هره شپه څه وخت چي دشپي په دري حصو كي اولنۍ حصه تيره شي ددنيااسمان ته نزول كوي او داسي وائي زه بادشاه يم داسي څوك شته چي ماته چغه اووهي او زه يې چغه واورم او داسي څوك شته چي مانه مغفرت اوغواړي او زه ورته مغفرت اوكړم، او داسي څوك شته چي زما نه خپل حاجت اوغواړي او زه يې ورته وركړم الله تعالي برابر همداسي فرمائي تردي پوري چي سحر راوخيژي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د علي بن ابي طالب، ابوسعيد، رفاعه جهني، جبير بن مطعم، ابن مسعود، ابوالدرداء، عثمان بن ابي العاص رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابو هريره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، دابوهريره حديث په يو څو سندونو دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي او همدا رنګي درسول الله نه دا هم مروي دي چي فرمائيلي يې دي كله چي دشپي په دري حصو كي اخري حصه باقي پاتي شي نو الله تعالي نزول كوي، او دا دټولو نه زيات صحيح روايت دي.

**تشريح**: ددعا دقبوليت دپاره بعضي مفيد تحقيقات ذكر كوو. مسلم مذكوره مسئله په دي الفاظو ثابته كړي ده:

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هره شپه چي كله دشپي اخري حصه پاتي شي نو الله تعالي اسمان دنيا ته نزول كوي او ارشاد فرمائي زه د ټولو جهانونو بادشاه يم ايا څوك شته چي زما نه اوغواړي اوزه يې دعاقبوله كړم

---

[1] ـ صحيح البخارى في التهجد ١٤ (١١٤٥)، والدعوات ١٤ (٦٣٢١)، والتوحيد ٣٥ (٧٤٩٤)، صحيح مسلم في المسافرين ٢٤ (٧٥٨)، سنن ابى داود في الصلاة ٣١١ (١٣١٥)، والسنة ٢١ (٤٧٣٣)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨٢ (١٣٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٣٦٤٧)، موطا امام مالک في القرآن ٨ (٣٠)، مسند احمد (٢ في ٢٦٤، ٢٦٧، ٢٨٣، ٤١٩، ٤٨٧) (عند الأكثر " الآخير ")

، او څوك شته چې زما نه اوغواړي او زه يې ورته ورکړم اوڅوك شته چې زما نه دګناهونو معافي اوغواړي او زه يې ورته معاف کړم (بخاري او مسلم).
دمسلم په روايت کې دومره اضافه ده چې الله تعالى خپل دواړه لاسونه غوړوي او فرمائي ايا څوك قرض ورکونکې شته داسې چاته چې مفلس نه وي اونه دچا حق وهونکې وي ، دا اواز به د صبا راختو پورې کيږي، بغوي دحسن بصري قول نقل کړي دې چې لقمان حکيم خپل خوي ته فرمائيلي وو ته دچرګ نه کمزوری نه يې کوم چې دسحر په وخت کې په چغو چغو اذان کوي اوته په بستره اوده پروت يې.
زيد بن اسلم فرمائيلي دي چې د "المستغفرين بالاسحار" نه هغه خلق مراد دي چې سحر مونځ دجماعت سره کوي ، دسحر وخت صباختو ته نږدې وي نوځکه يې بالاسحار اوونيل.
حسن بصري ددې ايت تشريح داسې کړې ده چې هغوئ دسحر دوخته پورې دتهجدو مونځونه کوي او بيا استغفار وائي.
دنافع بيان دې چې ابن عمر رضي الله عنهما به ټوله شپه عبادت کولو اوبه اخر کې به يې فرمائيل اې نافع ايا سحرشوې دې ؟ مابه عرض اوکړو نه دې نودې به دوباره په مونځ اودريدو او که چرې مابه اوونيل چې سحر شوې دې نو بيا به کيناستو او استغفار به يې شروع کړو اودسحره پورې به په دعا کې مشغول وو.
دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي په هغه ذات مې دې قسم وي دچا په قبضه کې چې زما روح دې که چرې تاسو ګناه نه کوئ نوتاسو به الله تعالى بوځي(فناء کړي) اوداسې خلق به راولي چې ګناهونه به کوي اوبيابه مغفرت هم غواړي اوګناهونه به ئې بښلې کيږي (رواه مسلم، واحمد)

***************

## ٢١٨_ باب مَا جَاءَ فِي قِرَاءَةِ اللَّيْلِ

### په قيام الليل (تهجد ) کې دقرائت کولو بيان

٤٤٧_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ إِسْحَاقَ هُوَ السَّالَحِينِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ الأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَبِي بَكْرٍ: " مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تَقْرَأُ وَأَنْتَ تَخْفِضُ مِنْ صَوْتِكَ " فَقَالَ: إِنِّي أَسْمَعْتُ مَنْ نَاجَيْتُ. قَالَ: " ارْفَعْ قَلِيلًا "، وَقَالَ لِعُمَرَ: " مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تَقْرَأُ وَأَنْتَ تَرْفَعُ صَوْتَكَ " قَالَ: إِنِّي أُوقِظُ الْوَسْنَانَ وَأَطْرُدُ الشَّيْطَانَ. قَالَ: " اخْفِضْ قَلِيلًا " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَأُمِّ هَانِئٍ، وَأَنَسٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ،

وابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَإِنَّمَا أَسْنَدَهُ يَحْيَى بْنُ إِسْحَاق، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. وَأَكْثَرُ النَّاسِ إِنَّمَا رَوَوْا هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ مُرْسَلًا. (1)

**ترجمه** : دابوقتاده رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ابوبكر رضي الله عنه ته اوفرمائيل زه دتهجد په وخت كي ستا په خوا كي تيرشوم او تا قران لوستلو او ستا اواز لږ تيټ وو ابوبكر اوفرمائيل ما خو هغه چاته اورولو دچاسره چي ما مناجات كولو (يعني الله تعالي ته) رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل خپل اواز لږ تيز كړه. او عمر رضي الله عنه ته يي اوفرمائيل او ستا په خوا كي چي زه تيريدم او تا قران لوستلو او اواز دي زيات تيز وو عمر فاروق اوفرمائيل ما اوده خلق ويخول او شيطان مي تختولو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ته دا خپل اواز لږ تيټ كړه. امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي، او په دي باب كي دعائشه، ام هاني، انس، ام سلمه، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دا روايت يحي بن اسحاق دحماد نه مسند كړي دي او اكثر خلقو دا حديث دثابت نه او ثابت دعبدالله بن رباح نه مرسل نقل كړي دي (يعني دابوقتاده ذكر يي نه دي كړي).

**تشريح** : په تهجد كي خفيه قرائت هم جائز دي او جهري قرائت هم جائز دي مگر بهتر درمياني كيفيت دي يعني نه بالكل خفيه او نه بالكل جهر او دا خكه كه څوك يي بالكل پټ اووائي نو طبيعت يي ستړي كيږي او ډير وخته پوري يي نه شي لوستلي او كه څوك يي په تيز اواز اووائي نو هم ستړي كيږي نو په دي وجه درمياني كيفيت به بهتر وي.

*****************

٤٤٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ نَافِعٍ البَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الوَارِثِ، عَنْ إِسْمَاعِيل بْنِ مُسْلِمٍ العَبْدِيِّ، عَنْ أَبِي المُتَوَكِّلِ النَّاجِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِآيَةٍ مِنَ القُرْآنِ لَيْلَةً ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. (2)

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم يوه هفته صرف دقرآن شريف يو ايت په ولاړه لوستلو

---

1 ـ سنن ابي داود في الصلاة ٣١٥ (١٣٢٩). (تحفة الأشراف : ١٢٠٨٨). مسند احمد (١/ ١٠٩)

2 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٧٨٠٢)

امام ترمذي وائي داحديث په دي سند حسن غريب دي

*****************

٤٤٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ كَيْفَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ، أَكَانَ يُسِرُّ بِالْقِرَاءَةِ أَمْ يَجْهَرُ ؟ فَقَالَتْ: "كُلُّ ذَلِكَ قَدْ كَانَ يَفْعَلُ رُبَّمَا أَسَرَّ بِالْقِرَاءَةِ وَرُبَّمَا جَهَرَ" فَقُلْتُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الأَمْرِ سَعَةً. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** عبدالله بن ابي قيس وائي چي دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مي تپوس اوکړو چي دشپي به دنبي کريم صلي الله عليه وسلم قرائت څنګه وو ايا قران به يي په مزه مزه لوستلو او کـه په تيزه؟ ام المؤمنين اوفرمائيل رسول الله به قران هر قسم لوستلو کله به يي پټ لوستلو او کله به يي په جهر سره ما اووئيل دالله ډير شکر دي چاچه ددين په معامله کي پراخي راوستلي ده.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح غريب دي

*****************

## ٢١٩ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ صَلاَةِ التَّطَوُّعِ فِي الْبَيْتِ

### په کورکي د نفلي مونځونو کولو دفضيلت بيان

٤٥٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَفْضَلُ صَلاَتِكُمْ فِي بُيُوتِكُمْ إِلاَّ الْمَكْتُوبَةَ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ سَعْدٍ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدِ اخْتَلَفَ النَّاسُ فِي رِوَايَةِ هَذَا الْحَدِيثِ.

---

1 صحيح مسلم في الحيض ٦ (٣٠٧)، سنن ابي داود في الصلاة ٣٤٣ (١٤٣٧)، سنن النسائي في قيام الليل ٢٣ (١٦٦٣)، (التحفه: ١٦٢٩٧)، مسند احمد (٦ في ١٣٩)، وعند المؤلف في ثواب القرآن ٢٣ (برقم: ٢٩٢٤)

فَرَوَى مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَرْفُوعًا وَرَوَاهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ وَلَمْ يَرْفَعْهُ وَأَوْقَفَهُ بَعْضُهُمْ وَالحَدِيثُ المَرْفُوعُ أَصَحُّ. [1]

**ترجمه** : دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ستاسو په مونځونو كي دټولو نه افضل مونځ هغه دي كوم چي تاسو پخپل كور كي كوئ مگر دفرضو نه علاوه.

امام ترمذي وائي دزيد بن ثابت حديث حسن صحيح دي. او په دي باب كي د عمر، جابر بن عبدالله، ابو سعيد، ابو هريره، ابن عمر، عائشه، عبدالله بن سعد، او زيد بن خالد جهني رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي ، داهل علمو ددي حديث په روايت كي اختلاف دي موسي بن عقبه او ابراهيم بن ابي نضر دواړو دا روايت دابونضر نه مرفوعا نقل كړي دي، او همدارنګي دا حديث مالك بن انس هم دابونضر نه نقل كړي دي ليكن هغه مرفوع نه دي نقل كړي او بعضي اهل علمو دا موقوف ګرځولي دي مګر مرفوع حديث زيات صحيح دي.

**تشريح** : امام نووي په مسئله د افضليت التطوع والسنن في البيوت مستقل باب قائم كړى دى چي "باب استحباب جعل النوافل في البيت سواء الراتبة وغيرها والأمر بالتحول للنافلة من موضع الفريضة أو الفصل بينهما بكلام

يعني نفل مونځ كور كي كول مستحب دي، سنت مؤكد وي او كه غير مؤكد (نفل) او كه څوك يى جومات كي كوي نو دفرضو ځايى نه ورته په ډډه كيدل پكار دي يايى ترمينځه په خبرو جدائي راوستل پكار دي.

امام نووي په دي سلسله كي د بخاري او مسلم متعدد روايات نقل كړي دي، چنانچه د زيد بن ثابت رضي الله عنه يو متفق عليه روايت دى:

عن زيد بن ثابت ﷺ : أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ ، قَالَ : ((صَلُّوا أَيُّهَا النَّاسُ فِي بُيُوتِكُمْ ، فَإِنَّ أَفْضَلَ الصَّلاَةِ صَلاَةُ المَرْءِ فِي بَيْتِهِ إِلاَّ المَكْتُوبَةَ)) متفقٌ عَلَيْهِ.

دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اى خلقو په كورونو كي مونځونه كوئ ځكه چي دبنده بهترين مونځ هغه دى ، چي په كور كي يى

---

[1] ـ صحيح البخاري في الأذان ٨١ (٧٣١) . والأدب ٧٥ (٦١١٣) . والاعتصام ٣ (٧٢٩٠) . صحيح مسلم في المسافرين ٢٩ (٧٨١) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٠٥ (١٠٤٤) . و٣٤٦ (١٤٤٧) . سنن النسائي في قيام الليل ١ (١٦٠٠) . (تحفة الأشراف : ٣٦٩٨) . موطا امام مالك في الجماعة ١ (٤) . مسند احمد (٥ في ١٨٢ . ١٨٣ . ١٨٦ . ١٨٧) . سنن الدارمي في الصلاة ٩٦ (١٤٠٦)

اوکړي بی دفرض مونځ نه زچه هغه په جوماتت کي جمع سره پکار دی ،

افضل الصلاة صلاة المرء في بيته : دنارینه افضل مونځ هغه دی کوم چي پخپل کور کي اوکړي خو دفرضو نه علاوه سنت مؤکد وي او که غیر مؤکد وي په کور کي یې کول افضل دي ځکه چي په کور کي سنت ادا کول دریا او نمائش نه خالي وي او اخلاص پکي زیات وي او ددي په وجه کور ته دالله رحمت نازلیږي په کور کي نوافل کول مستحب دي او که څوك یې په مسجد کي کوي نو مکروه به نه وي اختلاف صرف په افضلیت کي دی.

عن ابن عمر رضي الله عنهما . عن النَّبِيِّ ﷺ . قَالَ : ((اجْعَلُوا مِنْ صَلاَتِكُمْ فِي بُيُوتِكُمْ . وَلاَ تَتَّخِذُوهَا قُبُوراً)) متفقٌ عَلَيْهِ .

ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمانیلي دي څه مونځونه کورونو کي هم کوئ دکورونو نه ادیري مه جوړوی زیعني دعبادت نه یی خالي مه پریږدئ).

عن جابر ﷺ . قَالَ : قَالَ رسول الله ﷺ : ((إِذَا قَضَى أَحَدُكُمْ صَلاَتَهُ فِي مَسْجِدِهِ فَلْيَجْعَلْ لِبَيْتِهِ نَصِيباً مِنْ صَلاَتِهِ ، فَإِنَّ اللهَ جَاعِلٌ فِي بَيْتِهِ مِنْ صَلاَتِهِ خَيْراً)) رواه مسلم .

دجابر رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمانیلي دي تاسو چي په جوماتت کي فرض مونځ اوکړئ نو په خپل مونځ کي څه برخه دخپلو کورونو هم کوئ زیعني سنت او نوافل کور کي کوئ) ځکه پدی مونځ الله تعالي ستاسو کورونو کي برکت اچوي.

فان الله جاعل في بيته من صلاته خيرا: ځکه چي په کور کي دده دمونځ د ادا کولو په وجه الله تعالي خیر او برکت نازلوي دحدیث مطلب دادی چي خلق دي په کورونو کي هم نوافل او سنت کوي تردي چي کور ته برکت راشي علماء واني دا حکم دهغه خلقو دپاره دی څوك چي دفرض ادا کولو نه پس کور ته لاړ شي نو که څوك کور ته لاړ نشي یا په اعتکاف کي وي نوبیا دي په مسجد کي نوافل اوکړي دا هم معمول نبوي دی.

### دزید بن ثابت رضي الله عنه حالات

نوم زید کنیه ابوسعید ، ابوخارجه ، ابوعبدالرحمان لقب مقري ، فرضي، کاتب الوحي ، حبرالامر.

په خزرج قبیله کي دبنو نجار سره تعلق لري او دشپږو کالو عمر کي یي پلار وفات شوی و او دیولسو کالو په عمر کي دمصعب بن عمیر په لاس مسلمان شوی وو کله چي رسول الله صلي الله علیه وسلم مدیني ته راغی نو دی داولسو سورتونو حافظ وو دده عمر په دیارلسو کالو کي روان وو چي دبدرغزوه راغله دده دا خواهش وو چي دی هم پکي شرکت اوکړي مګر دعمر

دكموالي په وجه واپس كړى شو او په غزوه خندق كې درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يوخاي وو.

په جنگ يمامه كې هم شريك شوى وو او په دي جنګ كې په يو غشي هم لګيدلى وو ليكن جسم ته يي څه نقصان نه وو رسيدلى . رسول الله صلي الله عليه وسلم دوحي دليكلو كار دډيرو صحابه كرامو نه اخستلى وو په دوئ كې زيد بن ثابت رضي الله عنه هم شامل وو.

زيد يو عقلمند او انتهائي زكي انسان وو دهجرت په پنځم كال رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ماته دخلقو خطونه راځي چي په عبراني ژبه كې دي په يهوديانو مي اعتبار نشته نو په دي وجه زيد صرف په پنځلسو ورځو كې عبراني او سرياني ژبي زده كړه (مسند احمد).

زيد دفقه امام وو ګويا كې زيد دخلفاء راشده او معاويه رضي الله عنه په زمانه كې مفتي اعظم وو (اعلام الموقعين).

دهجرت په ۴۵كال د ۵۵يا ۵۲كالو په عمر كې وفات شو دده دوفات كيدو په مناسبت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل نن دعلم يوه خزانه ختمه شوه دده دمروياتو شمير ۹۲دى پنځه په دي كې متفق عليه دي.

*****************

٤٥١ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صَلُّوا فِي بُيُوتِكُمْ وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو پخپلو كورونو كي مونځونه كوئ او قبرستان ورنه مه جوړوئ.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

# أبواب الوتر

---

[1] صحيح البخاري في الصلاة ٥٢ (٤٣٢). والتهجد ٣٧ (١١٨٧). صحيح مسلم في المسافرين ٢٩ (٧٧-). سنن ابي داود في الصلاة ٢٠٥ (١٠٤٣). و٣٤٦ (١٤٤٨). سنن النسائي في قيام الليل ١ (١٥٩٩). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨٦ (١٣٧٧). (تحفة الأشراف: ٨٠١٠). وكذا (٨١٤٣). مسند احمد (٢ في ٦. ١٦. ١٢٣)

# ١ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْوِتْرِ

## دوتر مونځ دفضيلت بيان

٤٥٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَاشِدٍ الزَّوْفِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُرَّةَ الزَّوْفِيِّ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ حُذَافَةَ، أَنَّهُ قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ أَمَدَّكُمْ بِصَلَاةٍ هِيَ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ الْوِتْرُ، جَعَلَهُ اللَّهُ لَكُمْ فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى أَنْ يَطْلُعَ الْفَجْرُ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَبُرَيْدَةَ وَأَبِي بَصْرَةَ الْغِفَارِيِّ صَاحِبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ خَارِجَةَ بْنِ حُذَافَةَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، وَقَدْ وَهِمَ بَعْضُ الْمُحَدِّثِينَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَاشِدٍ الزُّرَقِيِّ وَهُوَ وَهَمٌ فِي هَذَا، وَأَبُو بَصْرَةَ الْغِفَارِيُّ اسْمُهُ حُمَيْلُ بْنُ بَصْرَةَ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: جَمِيلُ بْنُ بَصْرَةَ وَلَا يَصِحُّ، وَأَبُو بَصْرَةَ الْغِفَارِيُّ رَجُلٌ آخَرُ يَرْوِي عَنْ أَبِي ذَرٍّ وَهُوَ: ابْنُ أَخِي أَبِي ذَرٍّ. (١)

**ترجمه** : دخارجه بن حذافه رضي الله عنه بيان دي چي يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلم دحجري نه راووتلو او زمونږ طرف ته راغي او ويې فرمائيل الله تعالي ستاسو دپاره ديو داسې مونځ اضافه کړي ده کوم چي ستاسو دپاره دسرو اوښانو نه بهتر دي او هغه وتر دي. الله تعالي ددي وخت ستاسو دپاره دماخوستن نه واخله دسحر دراختلو پوري اوږد کړي دي

امام ترمذي وائي دخارجه بن خزافه حديث غريب دي مونږ يې صرف ديزيد بن ابي حبيب په روايت پيژنو بعضي محدثينو په دي کي وهم کړي دي هغوئ عبدالله بن راشد زرقي ونيلي دي دا وهم دي (صحيح ذوفي دي) په دي باب کي د ابوهريره، عبدالله بن عمرو، بريده، او ابو بصره غفاري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابو بصره غفاري نوم جميل بن بصره دي او بعضي خلقو حميل بن بصره ونيلي دي ليکن دا درست نه دي اوابو بصره غفاري يو بل کس دي څوك چي دابوذر رضي الله عنه نه روايت کوي او هغه دابوذر وراره دي

**تشريح** : سردار دوجهان فرمائيلي دي:

---

١ ـ سنن ابي داود في الصلاة ٣٣٦ (١٤١٨)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١١٣ (١١٦٨)، (تحفة الأشراف: ٣٤٥٠)، سنن الدارمي في الصلاة ٢٠٨ (١٦١٧)

(الوتر حق واجب فمن لم يوتر فليس منا) يعنی وتر حق واجب دی.چا چی وتر اونکړو.نو هغه زمونږ نه نه دي (ابوداود)
په مسلم شريف کي د ابوسعيد خدری(رضي الله عنه) حديث دي:
(أن النبي صلي الله عليه وسلم قال أوتروا قبل أن تصبحوا) يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی.د سحر راختو نه وړاندې وړاندې وتر کوئ.په دی حديث کي (اوتروا) د امر صيغه ده.او په وجوب باندې دلالت کوی.
د صاحبينو دطرفه د عقلی دليل جواب دا دې چی د وترو منکر خکه کافر نه دې چی د وترو ثبوت په سنت غير متواتره سره دې.او دا چی د امام ابو حنيفه رحمه الله نه روايت شوې دې چی وتر سنت دی. ددی معنی هم دا ده چی د وترو ثبوت په سنت سره شوي دې.او چونکه د وترو مونځ د ماسخوتن په وخت کي ادا کولی شی.نو خکه د ماسخوتن په اذان او اقامت باندې اکتفاء کړې شوې ده.د وترو دپاره د خانله اذان او اقامت ضرورت نشته. د صاحبينو د طرفه پيش کړې شوې حديث اعرابی جواب دا دې چی دا حديث د وجوب وتر نه وړاندې دې.

***************

## ٢ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ الْوِتْرَ لَيْسَ بِحَتْمٍ

### دوترودفرض نه کیدوبیان

٤٥٣ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: الْوِتْرُ لَيْسَ بِحَتْمٍ كَصَلَاتِكُمُ الْمَكْتُوبَةِ، وَلَكِنْ سَنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: " إِنَّ اللَّهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ فَأَوْتِرُوا يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه** : امير المومنين علي رضي الله عنه نه روايت دی چي هغه فرمائيلي دي وتر لکه دپنځو فرضو مونځونو په شان قطعي فرض نه دي ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم مقرركري ، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، الله جل جلاله يو دی ( طاق دی ) او طاق خوښوي نو ای اهل قران (ای مسلمانانو) طاق مونځ وتر کوئ. دا حديث امام ترمذي

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٣٣٦ (١٤١٦) . (الشطر الأخير فحسب) . سنن النسائي في قيام الليل ٢٧ (١٦٧٧) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١١٤ (١١٦٩) . (تحفة الأشراف : ١٠١٣٥) . مسند احمد (١ في ٨٦، ٩٨، ١٠٠، ١٠٧، ١١٥، ١٤٤، ١٤٥، ١٤٨) . سنن الدارمي في الصلاة ٢٠٨ (١٦٢١)

روایت کړی دی او حدیث حسن یی ورته ونیلی دی. اوپه دي باب کي د ابن عمر او ابن مسعود او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي.

**لغات**: الوتر: وتر یتر وترا وترة معني جفت لره طاق کول، الوتر معني جوړ، طاق، بدله.

**تشریح**: وتر واجب دي که سنت په دي باره کي یو څو اقوال دي دامام ابو حنیفه په نزد واجب دي او دائمه ثلاثه په نزد سنت دي امام ابو حنیفه دوجوب دپاره ددي روایت نه استدلال کوي "الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا، الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا. الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا".

وتر حق دي او څوك چي وتر ونکړي هغه زمونږ نه نه دی همدارنګي دپورتني حدیث په اخر کي راغلي دي فأوتروا یاأهل القران، ای اهل قران مومنانو وتر اوکړئ دامر صیغه ده په وجوب دلالت کوي همدارنګي په احادیثو کي په ډیرو مقاماتو کي ددي اهمیت واضح کړی شوی دی خو ددي بالمقابل دصاحبین او ائمه ثلاثه په نزد وتر مونځ سنت مؤکد دی او سنت مؤکده هم واجب ته نزدي وي.

***************

٤٥٤ـ وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَغَيْرُهُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "الْوِتْرُ لَيْسَ بِحَتْمٍ كَهَيْئَةِ الصَّلاَةِ الْمَكْتُوبَةِ وَلَكِنْ سُنَّةٌ سَنَّهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، وَقَدْ رَوَاهُ مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ نَحْوَ رِوَايَةِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ. [1]

**ترجمه**: امیر المومنین علي رضي الله عنه نه روایت دی چي هغه فرمائیلي دي وتر لکه دپنځو فرضو مونځونو په شان قطعي فرض نه دي لیکن رسول الله صلي الله علیه وسلم مقرر کړي، رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي، دا روایت محمد بن بشار هم پخپل

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٣٣٦ (١٤١٦). (الشطر الأخير فحسب). سنن النسائي في قيام الليل ٢٧ (١٦٧٧). سنن ابن ماجه في الإقامة ١١٤ (١١٦٩). (تحفة الأشراف: ١٠١٣٥). مسند احمد (١ في ٨٦. ٩٨. ١٠٠. ١٠٧. ١١٥. ١٤٤. ١٤٥. ١٤٨). سنن الدارمي في الصلاة ٢٠٨ (١٦٢١)

سند د ماقبل پشان بیان کړی دي مګر د ابو بکر بن عیاش د روایت نه زیات صحیح دی .
دارنګي منصور بن معتمر د ابو بکر بن عیاش د روایت پشان نقل کړی دی

****************

## ۳ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ النَّوْمِ قَبْلَ الْوِتْرِ

### دوتر کولو نه مخکي د اوده کیدو دکراهت بیان

٤٥٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ عِيسَى بْنِ أَبِي عَزَّةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ أَبِي ثَوْرٍ الأَزْدِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أُوتِرَ قَبْلَ أَنْ أَنَامَ ". قَالَ عِيسَى بْنُ أَبِي عَزَّةَ: وَكَانَ الشَّعْبِيُّ يُوتِرُ أَوَّلَ اللَّيْلِ ثُمَّ يَنَامُ. قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي ذَرٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَأَبُو ثَوْرٍ الأَزْدِيُّ اسْمُهُ: حَبِيبُ بْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ. وَقَدِ اخْتَارَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ أَنْ لَا يَنَامَ الرَّجُلُ حَتَّى يُوتِرَ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته حکم اوکړو چي زه به وتر داوده کیدو نه مخکي کوم.
امام ترمذي وائي دابوهريره حديث په دي سند حسن غريب دي او په دي باب کي دابوذرغفاري رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي. اود ابو ثور ازدي نوم حبيب بن ابي مليکه دی، بعضي صحابه کرامو او تابعينو اهل علمو دا قول اختيار کړی دی چي د وتر کولو نه مخکي اوده کيدل ممنوع دي.

**تخريج** : تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٤٨٤٧)

**تشريح** : په دي حديث کي دوتر نه مراد څه دي دامام ترمذي په خيال دوتر نه مراد حقيقي وتر دي او دبعضو په خيال ددينه دوتر او دصلاة الليل مجموعه مراد ده.

****************

[1] ـ صحيح مسلم في المسافرين ٢١ (٧٥٥) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢٠ (١١٨٧) . (تحفة الأشراف : ٢٢٩٧) . مسند احمد (٣ في ٣١٥، ٣٣٧)

٤٥٦_ وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: " مَنْ خَشِيَ مِنْكُمْ أَنْ لَا يَسْتَيْقِظَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَلْيُوتِرْ مِنْ أَوَّلِهِ، وَمَنْ طَمِعَ مِنْكُمْ أَنْ يَقُومَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَلْيُوتِرْ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ، فَإِنَّ قِرَاءَةَ الْقُرْآنِ فِي آخِرِ اللَّيْلِ مَحْضُورَةٌ وَهِيَ أَفْضَلُ ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ هَنَّادٌ حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ. [1]

**ترجمه** نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په تاسو کي چي دچا سره دا ويره وي چي دشپي په اخري حصه کي نشي پاځيدي نو هغوئ دي دشپي په اوله حصه کي وتر کوي او څوک چي دشپي اخري حصه کي دپورته کيدو اميد لري هغوئ دي دشپي په اخري حصه کي هم وتر کوي ځکه چي دشپي په اخري حصه کي دقران په لوستلو فرښتي حاضريږي او دا افضل وخت دي.

****************

## ٤_ باب مَا جَاءَ فِي الْوِتْرِ مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ وَآخِرِهِ

### دشپي په اوله او اخري دواړو وختونو کي وتر کيدي شي

٤٥٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا أَبُو حَصِينٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ وَثَّابٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ عَنْ وِتْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: " مِنْ كُلِّ اللَّيْلِ قَدْ أَوْتَرَ أَوَّلَهُ وَأَوْسَطَهُ وَآخِرَهُ فَانْتَهَى وِتْرُهُ حِينَ مَاتَ إِلَى السَّحَرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: أَبُو حَصِينٍ اسْمُهُ: عُثْمَانُ بْنُ عَاصِمٍ الأَسَدِيُّ، قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وجَابِرٍ، وَأَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ، وَأَبِي قَتَادَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الْوِتْرُ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ. [1]

**ترجمه** دمسروق نه روايت دي چي هغوئ دعائشه رضي الله عنها نه درسول الله صلي الله عليه وسلم دوترو باره کي تپوس اوکړو ام المؤمنين اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم به دشپي په هره حصه کي وتر اداء کول اوله حصه کي هم او په اخري حصه کي هم او کله چي

---

[1] _ صحيح البخاري في الوتر ٢ (٩٩٢). صحيح مسلم في المسافرين ١٧ (٧٤٥). سنن ابي داود في الصلاة ٣٤٣ (١٤٣٥). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢١ (١١٨٦). (تحفة الأشراف: ١٧٦٥٣). مسند احمد (٦ في ٤٦، ١٠٠، ١٠٧، ١٢٩، ٢٠٣، ٢٠٥). سنن الدارمي في الصلاة ٢١١ (١٦٢٨)

2

رسول الله صلي الله عليه وسلم وفات شو نو دغه وخت دهغوئ وتر دسحر وخت پوري رسيدلي وو.
امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د علي، جابر، ابومسعود انصاري، او ابوقتاده رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دبعضي اهل علمو په نزد همدا بهتره طريقه ده چي وتر دشپي اخري حصه کي اداء کړي شي.

***************

## ٥_ باب مَا جَاءَ فِي الوِتْرِ بِسَبْعٍ

### داوه رکعاته وتر کولو بيان

٤٥٨_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ. عَنِ الأَعْمَشِ. عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ. عَنْ يَحْيَى بْنِ الجَزَّارِ. عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَتْ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً فَلَمَّا كَبِرَ وَضَعُفَ أَوْتَرَ بِسَبْعٍ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُمِّ سَلَمَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "الوَتْرُ بِثَلَاثَ عَشْرَةَ وَإِحْدَى عَشْرَةَ وَتِسْعٍ وَسَبْعٍ وَخَمْسٍ وَثَلَاثٍ وَوَاحِدَةٍ" قَالَ: إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ مَعْنَى مَا رُوِيَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُوتِرُ بِثَلَاثَ عَشْرَةَ" قَالَ: إِنَّمَا مَعْنَاهُ أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً مَعَ الوِتْرِ فَنُسِبَتْ صَلَاةُ اللَّيْلِ إِلَى الوِتْرِ. وَرَوَى فِي ذَلِكَ حَدِيثًا عَنْ عَائِشَةَ. وَاحْتَجَّ بِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ قَالَ: "أَوْتِرُوا يَا أَهْلَ القُرْآنِ" قَالَ: إِنَّمَا عَنَى بِهِ قِيَامَ اللَّيْلِ. يَقُولُ: "إِنَّمَا قِيَامُ اللَّيْلِ عَلَى أَصْحَابِ القُرْآنِ".(١)

**ترجمه**: دام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به وتر ديارلس رکعاته کول ليکن کله چي دهغوئ عمر پوخ شو او کمزوري شو نو اوه رکعاته وتر کول يي شروع کړل

امام ترمذي وائي دام سلمه حديث حسن دي. او په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها نه هم حديث مروي دي. رسول الله صلي الله عليه وسلم نه ديارلس. يولس. نهه. اوه. پنځه. او دري رکعاته وتر تول مروي دي. داسحاق بن ابراهيم قول دي درسول الله صلي الله عليه وسلم باره کي چي د ديارلس رکعاته وتر کولو روايت مروي دي ددي مطلب دادي چي تهجد به يي دوترو

---

١ سنن النسائي في قيام الليل ٣٩ (١٧٠٩). و٣٥ (١٧٢٨). (تحفة الأشراف: ١٨٢٢٥). مسند احمد (٦ في ٣٢٢)

سره دیارلس رکعاته کول په دي کي قیام اللیل ته هم دوترو نوم ورکړي شوي دي او هغوئ په دي سلسله کي دعائشه رضي الله عنها یو حدیث هم نقل کړي دي او دا ارشاد نبوي یي هم نقل کړي دي چي اي اهل قران وتر به کوئ ددي حدیث نه یي هم استدلال کړي دي اسحاق بن راهویه واني چي رسول الله صلي الله علیه وسلم ددینه قیام اللیل مراد کړي دي او قیام اللیل صرف په قران منونکو باندي دي.

****************

## ٦_ باب مَا جَاءَ فِي الْوِتْرِ بِخَمْسٍ

## دپنځه رکعاته دوترو کولو بیان

٤٥٩_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ الْكَوْسَجُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ. حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَتْ صَلَاةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً يُوتِرُ مِنْ ذَلِكَ بِخَمْسٍ لَا يَجْلِسُ فِي شَيْءٍ مِنْهُنَّ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ. فَإِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ قَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمُ الْوِتْرَ بِخَمْسٍ. وَقَالُوا: لَا يَجْلِسُ فِي شَيْءٍ مِنْهُنَّ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَأَلْتُ أَبَا مُصْعَبٍ الْمَدِينِيَّ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ. كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُوتِرُ بِالتِّسْعِ وَالسَّبْعِ" قُلْتُ: كَيْفَ يُوتِرُ بِالتِّسْعِ وَالسَّبْعِ. قَالَ: "يُصَلِّي مَثْنَى مَثْنَى وَيُسَلِّمُ وَيُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ".[1]

**ترجمه** . دام المؤمنین عائشه رضي الله عنها بیان دي چي د رسول الله صلي الله علیه وسلم قیام اللیل به دیارلس رکعاته وو په دي کي به پنځه رکعاته وتر وو او په دي پنځه رکعاتونو کي به هغوئ صرف په اخري رکعات کي قعده کوله او بیاچه به کله مؤذن اذان اوکړو نو رسول الله به اودریدو او دوه مختصر رکعاتونه به یي اوکړل

امام ترمذي واني دعائشه رضي الله عنهاحدیث حسن صحیح دي، او په دي باب کي د ابوایوب انصاري رضي الله عنه نه هم حدیث وارد دي، په صحابه کرامو کي داهل علمو دا خیال دي چي وتر پنځه رکعاتونه دي او په دي کي هغوئ صرف په اخري رکعات کي قعده کوله راوي وایي ما ددي حدیث باره کي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم نهه او اوه رکعاتونه

[1] ـ صحیح مسلم في المسافرین ١٧(٧٣٤). (تحفة الأشراف: ١٦٩٨١)

کول دابومصعب مديني نه تپوس اوکړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به نهه او اوه رکعاتونه څنګه کول؟ نو هغوئ اووئيل دوه دوه رکعاتونه به يي کول او سلام به يي ګرځولو او بيا به يي يو رکعات وتر اوکړو

## دعروه بن زبير رضي الله عنه حالات:

نوم عروه کنيه ابوعبدالله دپلار نوم زبير بن عوام دمور نوم اسماء بنت ابي بکر . دعروه ولادت عمر فاروق دخلافت په اخر يا دعثمان دخلافت په ابتداء کې شوی وو (تهذيب التهذيب)

دده دوروز عبدالله بن زبير دده په وينا عبدالملك دعبدالله بن زبير د دفن کولو حکم اوکړو عروه دعلم او عمل مجمع البحرين وو خکه چي دده پلار زبير بن عوام حواري رسول وو او دده نيکه ابوبکر صديق رضي الله عنه او دده ترور ام المومنين عائشه رضي الله عنها وه او دده موز اسماء ذات النطاقين وه دده ورور عبدالله هم داهل علمو صحابه کرامو نه وو . په ده کي يو څو خصوصيات وو مثلا صبر او استقامت ، عبادت او رياضت، صبر او شکر . ددنيا نه بي رغبتي او سخاوت وغيره دده ضرب المثل وو.

داحاديثو سره يي ډيره مينه وه چي دعائشه رضي الله عنها نه يي اکثر اوريدلي وو او هغه اعلم الناس وه (تهذيب التهذيب).

دام المومنين تمام علمي ذخيره يي محفوظ کړي وه پخپله فرمائي چي زما دترور دوفات نه خلور پنځه کاله مخکې ما دهغي ټول علم حاصل کړی وو که چرې دا په دي وخت کې مړه وی نو ما به دهغي دکوم حديث په باقي پاتي کيدو افسوس نه وو کړی (تهذيب التهذيب).

په کال ۹۴هجري کې په مدينه کې وفات شو (طبقات ابن سعد).

دده مزيد حالاتو دپاره لانديني کتابونه مفيد دي ابن اسير، طبقات ابن سعد . تهذيب الاسماء ، تذکرة الحفاظ ابن خلکان

***************

## ٧_باب مَا جَاءَ فِي الْوِتْرِ بِثَلاَثٍ

## دري رکعاته وتر کولوبيان

٤٦٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلاَثٍ يَقْرَأُ فِيهِنَّ بِتِسْعِ سُوَرٍ مِنَ المُفَصَّلِ يَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ بِثَلاَثِ سُوَرٍ آخِرُهُنَّ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ" قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَيُرْوَى أَيْضًا عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. هَكَذَا رَوَى بَعْضُهُمْ فَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ. عَنْ أُبَيٍّ، وَذَكَرَ بَعْضُهُمْ عَنْ عَبْدِ

الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أُبَيٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ ذَهَبَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ إِلَى هَذَا، وَرَأَوْا أَنْ يُوتِرَ الرَّجُلُ بِثَلَاثٍ. قَالَ سُفْيَانُ: إِنْ شِئْتَ أَوْتَرْتَ بِخَمْسٍ، وَإِنْ شِئْتَ أَوْتَرْتَ بِثَلَاثٍ، وَإِنْ شِئْتَ أَوْتَرْتَ بِرَكْعَةٍ. قَالَ سُفْيَانُ: وَالَّذِي أَسْتَحِبُّ أَنْ أُوتِرَ بِثَلَاثِ رَكَعَاتٍ، وَهُوَ قَوْلُ: ابْنِ الْمُبَارَكِ وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَعْقُوبَ الطَّالَقَانِيُّ. حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ قَالَ: كَانُوا يُوتِرُونَ بِخَمْسٍ وَبِثَلَاثٍ وَبِرَكْعَةٍ وَيَرَوْنَ كُلَّ ذَلِكَ حَسَنًا. (1)

**ترجمه**: دعلي رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دري رکعاته وتر کول او په دي رکعاتونو کي به يي په مفصل صورتونو کي نهه سورتونه لوستل په هر رکعات کي به يي دري دري سورتونه لوستل او دتولو په اخر کي به يي قل هوالله احد لوستلو

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعمران بن حصين، عائشه، ابن عباس، ابوايوب انصاري، او عبدالرحمن بن ابزي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، عبدالرحمن بن ابزي دا روايت دابي بن کعب نه نقل کړي دي، دا رنګي دا هم مروي دي چي عبدالرحمن بن ابزي دا روايت دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه بغير دواسطي نقل کړي دي، دارنګي بعضي خلقو روايت نقل کړي دي او په دي کي هغوئ "ابي" واسطه نه ده ذکر او بعضو دابي واسطه ذکر کړي ده په صحابه کرام وغيره اهل علمو کي ديو جماعت همدا خيال دي چي وتر دري رکعاته کول پکار دي. دسفيان ثوري قول دي که چري تاسو غواړئ او خوښه مو وي نو وتر پنځه رکعاته اوکړئ او که خوښه مو وي نو دري رکعاته وکړئ، او که خوښه مو وي صرف يو رکعات اوکړئ مګر زه دري رکعاته کول مستحب ګنړم، دابن مبارك او اهل کوفه هم دا قول دي. محمد بن سيرين وائي چي وتر به خلقو پنځه رکعاتونه کول او کله دري او کله يو او هر يو به يي مستحسن ګنړلو.

**تشريح**: د وترو په مسئله کي دري قسمه اختلاف دی

(۱) د وترو د رکعتونو په تعداد کي.

(۲) په سلام کي اختلاف دې يعني په دی خبره کي هم اختلاف دې چی وتر به په يو سلام سره کوی.اوکه په دوو سلامونو سره.

1 - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۱۹۳۰۱)

(۱)د احنافو په نزد د وترو درې رکعتونه په يو سلام سره واجب دي.په مينځ کي به په سلام گرځولو سره فصل نه کوي.

(۲) د امام شافعي دوه اقوال دي.يو قول خو د احنافو د قول مطابق دې ، دويم قول دا دې چې د وترو درې رکعتونه به په دوو سلامونو سره کوي.هم دا قول د امام مالك دې

(۳)او بعضو وئيلي دي چې وتر يو رکعت دې.

**د يو رکعت د قائلينو دلائل**: د يو رکعت قائلين د ابن عمر رضی الله عهما په حديث سره استدلال کوي.حديث دا دې:

(۱) (أن رجلاً سأل النبي صلي الله عليه وسلم عن صلاة الليل فقال مثنى مثنى فإذا خشيت الصبح فصل ركعة توتر لك ما صليت)

يعنی د رسول پاك صلي الله عليه وسلم نه يو کس د صلاة الليل په باره کي تپوس اوکړو.نو وې اوفرمائيل.دوه رکعتونه دی.اوچی تاسره د سحر راختو ويره شی.نو يو رکعت کوه.دا به ستا دپاره د شوی مونځ وتر شي.

(۲) دغه شان په مسلم شريف کي د ابن عمر(رضي الله عنه) نه مرفوعاً روايت دې چې :

(الوتر ركعة من آخر الليل)

يعنی وتر د شپې په آخر کي يو رکعت دې.

(۳)دغه شان د نبیﷺ نه روايت دې:

(قال من أحب أن يوتر بخمس فليفعل ومن أحب أن يوتر بواحدة فليفعل)

يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي.څوك چې د وترو پنځه رکعته خوښوي.نو دادی کوي.اوڅوك چې يو رکعت خوښوي.نو دادی کوي.د وترو د اووه، نهه، اود يوولس رکعتونو تعداد هم مروی دې(عنايه)

**داحنافو دلائل**:د عائشه رضی الله عنها نه نقل دی:

(۱) (أن النبي صلي الله عليه وسلم كان يوتر بثلاث ركعات)

حسن بصری په يو سلام د وترو د درې رکعتونو اجماع نقل کړې ده.دحسن بصری( نه مروی دی:

(۲) (قال أجمع المسلمون على أن الوتر ثلاث لايسلم الا في آخرهن)

يعنی فرمائی چې مسلمانانو په دی خبره باندې اجماع کړې ه چې وتر درې رکعتونه دی.صرف ددی په آخر کي به سلام گرځوی

(۳) (عن عائشة رضى الله عنها قال كان رسول الله صلي الله عليه وسلم لا يسلم في الركعتين الأوليين من الوتر)

يعنی عائشه رضی الله عنها فرمائی چی رسول الله به د وترو په اولنو دوو رکعتون کي سلام نه گرځولو.
(۴)د ابن مسعود (رضي الله عنه) نه نقل دی
(وتر الليل ثلاث كوتر النهار)
يعنی د شپی وتر دری رکعتونه دی.لکه د ورځ وتر چی دری رکعته دی.د ورځې د وترو نه مراد د مابنام مونځ دې(فتح القدير)
ابوخالد بيان کړې دې چی ما د جليل القدر تابعی ابوالعاليه نه د وترو په باره کي تپوس اوکړو.نو ويې فرمائيل:
(علمنا أصحاب رسول الله صلي الله عليه وسلم أن الوتر مثل صلاة المغرب هذا وتر الليل وها وتر النهار)
يعنی مونږ ته د رسول پاك صلي الله عليه وسلم صحابه كرامو تعليم ركړې دې چی وتر د مابنام د مونځ پشان دی.دا د شپي وتر دی.او دا يعنی مابنام د ورځې وتر دی.دی نه هم معلومه شوه چی د مابنام پشان وتر هم دری رکعتونه دی.
(٦)عن عائشة رضی الله عنها أن النبي صلي الله عليه وسلم كان يوتر بثلاث يقرأ في الركعة الأولى سبح اسم ربك الاعلي وفي الثانية قل يا ايها الكافرون وفي الثالثة قل هو الله أحد .والمعوذتين)
يعنی نبیﷺ به دری رکعته وتر کول.په اولنی رکعت کي به يی:سبح اسم ربك الاعلي او په دويم رکعت کي به ئي قل يا ايها الكافرون او په دريم رکعت کي به ئې قل هو الله أحد او معوذتين وئيل.
(۷) مشهور اثر دې.
(نهى رسول الله صلي الله عليه وسلم عن البتيراء)
يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم د صلاة بتيراء يعنی د يو رکعت کولو نه منع فرمائيلی دد.
خوك چی د وترو د يو رکعت قائلين دی.د هغوی د طرف د پيش کړی ابن عمر(رضي الله عنه) د حديث جواب د امام طحاوی د قول مطابق دا ې چی د رسول پاك صلي الله عليه وسلم قول (فصل ركعة) معنی دا ده چی (صل ركعة مع ثنتين قبلها) يعنی نبی ﷺ اوفرمائيل چی ددی نه وړاندې دوه رکعتونو سره يو رکعت ضم کړه.نو وس دری رکعتونه شول. يو رکعت نشو.
دويم جواب دا دې چی د يو رکعت يا پنځه رکعتونه يا اوه يا نهه يا د يوولسو رکعتو روايت د وترو د استقرار نه وړاندې دې.خو چی كله دری رکعته مقرر شو نو باقی روايتونه منسوخ شول.
*****************

# ٨ـ باب مَا جَاءَ فِي الْوِتْرِ بِرَكْعَةٍ

## دیو رکعات وترکولو بیان

٤٦١ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ سِيرِينَ، قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ، فَقُلْتُ: أُطِيلُ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، فَقَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى وَيُوتِرُ بِرَكْعَةٍ، وَكَانَ يُصَلِّي الرَّكْعَتَيْنِ وَالأَذَانُ فِي أُذُنِهِ يَعْنِي يُخَفِّفُ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَجَابِرٍ، وَالْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالتَّابِعِينَ رَأَوْا أَنْ يَفْصِلَ الرَّجُلُ بَيْنَ الرَّكْعَتَيْنِ، وَالثَّالِثَةِ يُوتِرُ بِرَكْعَةٍ، وَبِهِ يَقُولُ: مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. (١)

**ترجمه**: دانس بن سيرين بيان دي چي دابن عمر رضي الله عنهما نه مي تپوس اوکړو چي ايا زه به دسحر دوه رکعاته سنت اوږده رکعاتونه کوم، نو هغوی اووئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم به تهجد دوه دوه رکعاته کول او وتر به يي يو رکعات کول او دسحر دوه رکعاته سنت به يي کول داسي به ښکاريده لکه تکبير دده په غوږونو کي کيږي.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعائشه، جابر، فضل بن عباس او ابو ايوب انصاري او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي په صحابه کرامو او تابعينو کي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي ددوی خيال دي چي بنده به د دوه رکعاتونو او دريم رکعات په مينځ کي دسلام په ذريعه فصل کوي او يو رکعات وتر به کوي امام مالك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه هم دا طريقه اختيار کړي ده

### دانس بن سيرين رضي الله عنه حالات:

نوم انس دپلار نوم سيرين دده په کنيه کي اختلاف دی ځوك وائي ابو حمزه دی او ځوك وائي ابو عبدالله دی دبصري اوسيدونکی دی دمحمد ورور دی او د متوسطي درجي دتابعينو نه دی په صحاح سته کي دده نه روايات موجود دي١١٨يا ١٢٠هجري کي وفات شوی دی.

***************

١ صحيح البخاري في الوتر ٢ (٩٩٥)، صحيح مسلم في المسافرين ٢٠ (١٥٧ في ٧٤٩)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٠١ (١١٤٢)، (مختصرا) (تحفة الأشراف: ٦٦٥٢)، مسند احمد (٢ في ٢١، ٤٩، ٧٨، ٨٨، ١٢٦)

## ٩_ باب مَا جَاءَ فِيمَا يُقْرَأُ بِهِ فِي الْوِتْرِ

### په وترو کي کوم کوم صورتونه لوستل پکار دي

٤٦٢_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْوِتْرِ بِ: سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى، وقُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ، وقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ فِي رَكْعَةٍ رَكْعَةٍ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَيُرْوَى عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَنَّهُ قَرَأَ فِي الْوِتْرِ فِي الرَّكْعَةِ الثَّالِثَةِ بِ: الْمُعَوِّذَتَيْنِ، وَقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ، وَالَّذِي اخْتَارَهُ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ أَنْ يَقْرَأَ بِ: سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى، وقُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ، وَقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ يَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ مِنْ ذَلِكَ بِسُورَةٍ. (١)

**ترجمه**: دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په وترو کي "سبح اسم ربك الاعلي" او "قل يا ايهالكافرون" او "قل هوالله احد" دري وارړه په يو رکعات کي لوستل.

امام ترمذي وائي په دي باب کي د علي ، عائشه، او عبدالرحمن بن افزي رضي الله عنهم نه چاچه دابي بن کعب نه روايت نقل کړي دي هم احاديث مروي دي او دا روايت عبدالرحمن بن ابزي نه بغير دواسطي نه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه هم منقول دي. او درسول الله نه دا هم مروي دي چي هغوی به په وترو کي په دريم رکعات کي معوذتين او سورة اخلاص لوستل په صحابه کرامو او ددوی نه پس په اهل علمو کي اکثر اهل علمو چي کومه خبره اختيار کړي ده هغه داده چي سورة الاعلي سورة ا الکافرون او سورة اخلاص، دري وارړو سورتونو کي يو يو به هر رکعات کي لوستل پکار دي.

****************

٤٦٣_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْحَرَّانِيُّ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: سَأَلْنَا عَائِشَةَ بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ " يُوتِرُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَتْ: كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولَى بِ: سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَفِي الثَّانِيَةِ بِ: قُلْ يَا

---

١ ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ١١٥ (١١٧٢). (تحفة الأشراف: ٥٥٨٤)

أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَفِي الثَّالِثَةِ بِ: قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ، وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. قَالَ: وَعَبْدُ الْعَزِيزِ هَذَا هُوَ وَالِدُ ابْنِ جُرَيْجٍ صَاحِبِ عَطَاءٍ، وَابْنُ جُرَيْجٍ اسْمُهُ: عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ جُرَيْجٍ، وَقَدْ رَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ. عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** دعبدالعزيز بن جريج بيان دي فرمائي چي مونږ دعائشه رضي الله عنها نه درسول الله صلي الله عليه وسلم دوترو باره کي تپوس ارکړو چي په وترو کي به يي څه لوستل نو هغوي اووئيل په اولني رکعات کي به يي سبح اسم ربك الاعلي، او په دويم رکعات کي به يي قل يا ايهاالکافرون، او په دريم رکعات کي به يي قل هو الله احد. او معوذتين لوستل

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دئ، او عبدالعزيز راوي دعطاء دشاګرد ابن جريج پلاردي او دابن جريج نوم عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج دي.او يحي بن سعيد انصاري دا حديث په سند د عمرة عن عائشة عن النبي صلي الله عليه وسلم نقل کړي دي

***************

## ١٠_ باب مَا جَاءَ فِي الْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ

### په وترو کې د دعاء قنوت لوستلو بيان

٤٦٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَبِي الْحَوْرَاءِ السَّعْدِيِّ، قَالَ: قَالَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: عَلَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَلِمَاتٍ أَقُولُهُنَّ فِي الْوِتْرِ " اللَّهُمَّ اهْدِنِي فِيمَنْ هَدَيْتَ، وَعَافِنِي فِيمَنْ عَافَيْتَ، وَتَوَلَّنِي فِيمَنْ تَوَلَّيْتَ، وَبَارِكْ لِي فِيمَا أَعْطَيْتَ، وَقِنِي شَرَّ مَا قَضَيْتَ، فَإِنَّكَ تَقْضِي وَلَا يُقْضَى عَلَيْكَ، وَإِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ، تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ أَبِي الْحَوْرَاءِ السَّعْدِيِّ وَاسْمُهُ: رَبِيعَةُ بْنُ شَيْبَانَ، وَلَا نَعْرِفُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ شَيْئًا أَحْسَنَ مِنْ هَذَا، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ. فَرَأَى عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ الْقُنُوتَ فِي الْوِتْرِ فِي السَّنَةِ كُلِّهَا، وَاخْتَارَ الْقُنُوتَ قَبْلَ الرُّكُوعِ، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ: سفيان الثوري، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَإِسْحَاقُ وَأَهْلُ

---

[1] _ سنن ابي داود في الصلاة ٣٣٩ (١٤٢٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١١٥ (١١٧٣)

الْكُوفَةِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّهُ كَانَ "لَا يَقْنُتُ إِلَّا فِي النِّصْفِ الآخِرِ مِنْ رَمَضَانَ، وَكَانَ يَقْنُتُ بَعْدَ الرُّكُوعِ" وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ إِلَى هَذَا، وَبِهِ يَقُولُ: الشافعي وَأَحْمَدُ. [1]

**ترجمه** : دحسن بن علي رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه كلمات خودلي دي كوم چي زه په وترو كي وايم او هغه كلمات دادي

"اللَّهُمَّ اهْدِنِي فِيمَنْ هَدَيْتَ، وَعَافِنِي فِيمَنْ عَافَيْتَ، وَتَوَلَّنِي فِيمَنْ تَوَلَّيْتَ. وَبَارِكْ لِي فِيمَا أَعْطَيْتَ. وَقِنِي شَرَّ مَا قَضَيْتَ. فَإِنَّكَ تَقْضِي وَلَا يُقْضَى عَلَيْكَ. وَإِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ. تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ"

يعني اي الله ماته هدايت اوكړي او دهغه خلقو په ډله كي مي شامل كړي چاته چي تا هدايت كړي دي، ماته عافيت راكړي او په هغه خلقو كي مي شامل كړي چاته چي تا عافيت وركړي دي، او زما سرپرستي اوكړي او په هغه خلقو كي مي شامل كړي دچاچه تا سرپرستي كړي ده او څه چي تا ماته راكړي دي په هغي كي زما دپاره بركت واچوي، او دكوم شر چي تا فيصله كړي ده دهغي نه مي محفوظ اوساتي او يقينا تمامي فيصلي صرف ته كوي او ستا دفيصلي خلاف هيڅ فيصله نشي كيدي او دچاچه ته والي يي هغه هيڅ كله ذليل او خوار كيدي نشي اي زمونږ ربه ته ډير لوي بركت والا يي او لوي شان والا يي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي او دا مونږ صرف په دي سند يعني دابو الحوراء په سند سره پيژنو او دابو الحوراء نوم ربيعه بن شيبان دي، زما دعلم مطابق په وترو كي د دعاء قنوت په سلسله كي ددينه بهتر كوم بل څيز دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي نه ښكاري ، او په دي باب كي علي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي داهل علمو په وترو كي دقنوت ونيلو باره كي اختلاف دي، دابن مسعود رضي الله عنه خيال دي چي په وترو كي دعاء قنوت په پوره كال كي يو خل ونيل پكار دي او هغوئ دركوع نه مخكي دعاء قنوت ونيل خوښ كړي دي او همدا دبعضي اهل علمو قول دي او دسفيان ثوري، ابن مبارك، اسحاق او اهل كوفه همدا قول دي، دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي هغه به صرف درمضان په اخري نصف كي دعاء قنوت لوستلو او دركوع نه پس به يي لوستلو بعضي اهل علمو هم دا قول اختيار كړي دي او دامام شافعي او امام احمد هم دا قول دي.

**تشريح** : په دي باب كي دري مسائل معلومول ضروري دي.

[1] - سنن ابى داود في الصلاة ٣٤٠ (١٤٢٥) . سنن النسائي في قيام الليل ٥١ (١٧٤٦) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١١٧ (١١٧٨) . (تحفة الأشراف : ٣٤٠٤) . مسند احمد (١/ ١٩٩، ٢٠٠) . سنن الدارمي في الصلاة ٢١٤ (١٦٣٢)

(۱) په دي مسئله کي اختلاف دي چي دعاء قنوت په وترو کي په کال کي يو خل وئيل دي او کنه.

دامام ابو حنيفه په نزد په وترو کي دعاء قنوت(قنوت نازله) په کال کي يو خل دي او دامام مالك په نزد صرف په رمضان کي او دامام شافعي او احمد په نزد درمضان په نصف اخر کي حاصل دا شو چي دائمه ثلاثه په نزد قنوت په وترو کي صرف په رمضان کي دي.
(۲) دويمه مسئله داده: چي قنوت په وترو کي قبل الرکوع دي او که بعد الرکوع دي په دي کي دوه مذاهب دي.
(۱) دامام ابو حنيفه او امام مالك په نزد په وترو کي قنوت قبل الرکوع دي.
(۲) دامام شافعي او امام احمد په نزد قنوت په وترو کي بعد الرکوع لوستلي شي.
ددي تولو مسائلو دلائل په فتح القدير دابن همام او دهدايه په نورو شروحو کي کتلي شي.

****************

## ١١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَنَامُ عَنِ الْوِتْرِ أَوْ يَنْسَاهُ

### دوتر کولو نه بغير داوده کيدلو يا دوتر دهيرېدو بيان

٤٦٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ نَامَ عَنِ الْوِتْرِ أَوْ نَسِيَهُ فَلْيُصَلِّ إِذَا ذَكَرَ وَإِذَا اسْتَيْقَظَ".[1]

**ترجمه** ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دوتر کولو نه بغير اوده شي او يا ورنه ددي اداء کول هير شي هر کله چي ورته دا راياد شي هم هغه وخت دي دا اداء کړي.

****************

٤٦٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهِ فَلْيُصَلِّ إِذَا أَصْبَحَ" قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنَ الْحَدِيثِ الْأَوَّلِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْت أَبَا دَاوُدَ السِّجْزِيَّ يَعْنِي سُلَيْمَانَ بْنَ الْأَشْعَثِ، يَقُولُ: سَأَلْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، عَنْ

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٣٣١ (١٤٣١). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢٢ (١١٨٨). (تحفة الأشراف: ٤١٩٨). مسند احمد (٣ /٣١)

عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ. فَقَالَ أَخُوهُ عَبْدُ اللَّهِ: لَا بَأْسَ بِهِ. قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا يَذْكُرُ عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. أَنَّهُ ضَعَّفَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ. وَقَالَ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ ثِقَةٌ. قَالَ: وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ بِالْكُوفَةِ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ. فَقَالُوا: يُوتِرُ الرَّجُلُ إِذَا ذَكَرَ وَإِنْ كَانَ بَعْدَ مَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ. وَبِهِ يَقُولُ: سفيان الثوري. (1)

**ترجمه**: دزيد بن اسلم نه مرسلا مروي دي چي نبي كريم صلي الله علي وسلم فرمانيلي دي څوك چي دوتر كولو نه بغير اوده شي نو چي كله سحر پاځي دا دي اداء كړي.

امام ترمذي وائي داحديث دسابقه حديث نه زيات صحيح دي ما دابوداود سجزي يعني سليمان بن اشعث نه اوريدلي دي فرمانيلي يي چي ما دامام احمد بن حنبل نه دعبدالرحمن بن زيد بن اسلم باره كي تپوس اوكړو نو ويي فرمائيل دهغه په ورور عبدالله كي هيڅ قباحت نشته، ما د محمد بن اسماعيل بخاري نه اوريدلي دي چي د علي بن عبدالله (ابن المديني) نه يي روايت كولو چي هغوئ دعبدالرحمن بن زيد بن اسلم تضعيف كړي دي او دا يي ونيلي دي چي دهغه ورور عبدالله بن زيد بن اسلم ثقه دي. دكوفي بعضي اهل علم په دي حديث عمل اختيار كړي دي هغوئ وائي چي كله سړي دوترو نه اوده پاتي شي او نمر راختلي وي نو همدغه وخت دي وتر اوكړي او دا دسفيان ثوري قول هم دي.

******************

## ١٢_ باب مَا جَاءَ فِي مُبَادَرَةِ الصُّبْحِ بِالْوِتْرِ

### دسبا كيدو نه مخكي دوتر كولو بيان

٤٦٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ. حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: "بَادِرُوا الصُّبْحَ بِالْوِتْرِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دسبا كيدو نه به مخكي وتر كوئ امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

---

1 _ تفرد به المؤلف

2 _ صحيح مسلم في المسافرين ٢٠ (٧٥٠). سنن ابي داود في الصلاة ٣٤٣ (١٤٣٦). (تحفة الأشراف: ٨١٣٢). مسند احمد (٢ في ٣٧، ٣٨)

**تشريح** : دا باب دائمه ثلاثه دمسلك دپاره مستدل دي.
دلته دسبا كيدو نه څه مراد دي دائمه ثلاثه په نزد دسحر مونځ مراد دي او دهغوی په نزد ددي حديث مطلب دادي چي دسحر دمونځ نه مخکي وتر اداء كول پكار دي او چي دسحر مونځ اوكړي نو بيا خو دوترو وخت تير شو او گناه لازمه شوه.
دامام ابو حنيفه قول دي چي دسباكيدو نه دسحر مونځ مراد نه دي بلكه صبح صادق مراد دي او په حديث كي دوترو د اداء دوخت بيان دي يعني دصبح صادق نه مخكي وتر اوكړئ او دا ددي د اداء وخت دي چي صبح صادق داخل شي نو د وترو اداء كولو وخت ختم شو.

******************

٤٦٨ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَوْتِرُوا قَبْلَ أَنْ تُصْبِحُوا".[1]

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دسبا كيدو نه به مخكي وتر اداء كوئ.

**تشريح** : په دي حديث كي هم احناف دسبا كيدو نه صبح صادق مراد كوي او ائمه ثلاثه ورنه دسحر مونځ مراد كوي؛

******************

٤٦٩ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ فَقَدْ ذَهَبَ كُلُّ صَلَاةِ اللَّيْلِ وَالْوِتْرُ، فَأَوْتِرُوا قَبْلَ طُلُوعِ الْفَجْرِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى قَدْ تَفَرَّدَ بِهِ عَلَى هَذَا اللَّفْظِ، وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا وِتْرَ بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ" وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ وَبِهِ يَقُولُ: الشافعي، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، لَا يَرَوْنَ الْوِتْرَ بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ.[2]

---

1 ـ صحيح مسلم في المسافرين ٢٠ (٧٥٣). سنن النسائي في قيام الليل ٣١ (١٦٨٤، ١٦٨٥). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢٢ (١١٨٩). (تحفة الأشراف: ٤٣٨٣). مسند احمد (٣ في ١٣، ٣٥، ٣٧، ٧١). سنن الدارمي في الصلاة ٢١١ (١٦٢٩)

2 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٧٦٤٣)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي سبا راوخيژي نو دقيام الليل او وترو تمام وخت ختم شي لهذا دسبا راختلو نه مخكي وتر اداء كوئ
امام ترمذي وائي سليمان بن موسي ددي الفاظو په نقل كي منفرد دي، دا رنګي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي فرمائيل يي دسحر دمونځ نه پس وتر كول نشته او دډيرو او اكثرو اهل علمو همداقول دي. امام شافعي احمد او اسحاق بن راهويه همدا وائي او دوئ دسحر دمونځ نه پس وتر كول درست نه ګڼري

***************

## ۱۳_ بَابُ مَا جَاءَ لاَ وِتْرَانِ فِي لَيْلَةٍ

### په يوه شپه كي دوباره وتر كول نشته.

٤٧٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللهِ بْنُ بَدْرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا وِتْرَانِ فِي لَيْلَةٍ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي الَّذِي يُوتِرُ مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ، ثُمَّ يَقُومُ مِنْ آخِرِهِ، فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ نَقْضَ الوِتْرِ، وَقَالُوا: يُضِيفُ إِلَيْهَا رَكْعَةً وَيُصَلِّي مَا بَدَا لَهُ، ثُمَّ يُوتِرُ فِي آخِرِ صَلَاتِهِ لِأَنَّهُ لَا وِتْرَانِ فِي لَيْلَةٍ، وَهُوَ الَّذِي ذَهَبَ إِلَيْهِ إِسْحَاقُ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: إِذَا أَوْتَرَ مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ ثُمَّ نَامَ ثُمَّ قَامَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَإِنَّهُ يُصَلِّي مَا بَدَا لَهُ وَلَا يَنْقُضُ وِتْرَهُ وَيَدَعُ وِتْرَهُ عَلَى مَا كَانَ، وَهُوَ قَوْلُ: سفيان الثوري، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَابْنِ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ وَأَهْلِ الكُوفَةِ وَأَحْمَدَ، وَهَذَا أَصَحُّ، لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَدْ صَلَّى بَعْدَ الوِتْرِ".[1]

**ترجمه** دطلق بن علي رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي په يوه شپه كي دوباره وتر كول پكار نه دي.
امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي، د هغه چا باره كي داهل علمو اختيار دي څوك چي دشپي په اوله حصه كي وتر كوي او بيا دشپي په اخري حصه كي دقيام الليل دپاره پاڅي

---

[1] - سنن ابي داود في الصلاة ٣٢٢ (١٤٣٩). سنن النسائي في قيام الليل ٢٩ (١٦٨٠). (تحفة الأشراف: ٥٠٢٢). مسند احمد (٤/ ٢٣)

نو په صحابه کرامو او ددوئ نه پس په خلقو کي دبعضي اهل علمو په قول وتر ماتول پکار دي هغوئ وائي چي دي سره به يو رکعات بل يوځاي کوي تردي چي جفت شي او بيا يي چي څومره خوښه وي دومره مونځ دي اوکړي او دمونځ په اخر کي دي وتر اوکړي ځکه چي په يوه شپه کي دوباره وتر کول نشته. اسحاق بن راهويه هم دا قول اختيار کړي دي. په صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو دا قول دي چي يو کس دشپي په اوله حصه کي وتر اوکړل او بيا اوده شو او بيا دشپي په اخري حصه کي بيدار شو نو دي چي څومره مونځ کول غواړي دومره دي اوکړي او وتر دي نه ماتوي بلکه وتر دي پخپل حال پريږدي سفيان ثوري، مالك بن انس، ابن مبارك. شافعي، او اهل کوفه او داحمد همدا قول دي او دا زيات صحيح قول دي ځکه چي په نورو روايتونو کي مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دوترو نه پس مونځ کړي دي

**دطلق بن علي رضي الله عنه حالات**

نوم طلق دپلار نوم علي کنيه ابو علي حنفي يمامي طلق بن ثمامه ورته ونيلى شي دمسلمانيدو دپاره ديمامي دوفد سره راغلى وو څوارلس روايات ورنه منقول دي چي په دوئ کي يو هم په صحيحينو کي نشته.

****************

٤٧١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ مَسْعَدَةَ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ مُوسَى الْمَرَئِيِّ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُصَلِّي بَعْدَ الْوِتْرِ رَكْعَتَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ نَحْوُ هَذَا عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، وَعَائِشَةَ وَغَيْرِ وَاحِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.(١)

**ترجمه**: دام سلمه رضي الله عنها نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دوترو نه پس دوه رکعاتونه کول.

امام ترمذي وائي دابو امامه، عائشه رضي الله عنهما او بعضي نورو خلقو نه هم دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايتونه مروي دي.

****************

## ١٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْوِتْرِ عَلَى الرَّاحِلَةِ

**په سورلئ دپاره دوترو کولو بيان**

١ _ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢٥ (١١٩٥). (تحفة الأشراف: ١٨٢٥٥)

٤٧٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ: كُنْتُ أَمْشِي مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِي سَفَرٍ فَتَخَلَّفْتُ عَنْهُ، فَقَالَ: أَيْنَ كُنْتَ ؟ فَقُلْتُ: أَوْتَرْتُ، فَقَالَ: أَلَيْسَ لَكَ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ، " رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ عَلَى رَاحِلَتِهِ ".

قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ إِلَى هَذَا، وَرَأَوْا أَنْ يُوتِرَ الرَّجُلُ عَلَى رَاحِلَتِهِ، وَبِهِ يَقُولُ الشافعي، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا يُوتِرُ الرَّجُلُ عَلَى الرَّاحِلَةِ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يُوتِرَ نَزَلَ فَأَوْتَرَ عَلَى الْأَرْضِ، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْكُوفَةِ. (1)

**ترجمه**: دسعيد بن يسار قول دي چي زه په يو سفر کي دابن عمر رضي الله عنهما سره روان رم او زه ورنه روستو پاتي شوم هغه رانه تپوس اوکړو ته چرته پاتي شوي وې؟ ما عرض اوکړو چي وتر مي کول هغوئ اوفرمائيل ايا درسول الله صلي الله عليه وسلم په ذات کي ستا دپاره اسوه حسنه نشته؟ ماخورسول الله صلي الله عليه وسلم لره پخپلي سورلئ باندي دپاسه دوترو کولو په حال کي ليدلي دي.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عباس نه هم روايت وارد دي په صحابه کرامو کي دبعضي اهل علمو دا قول دي چي په سورلئ باندي وتر کول جائز دي او همدا دامام شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه قول هم دي مګر بعضي اهل علم وائي چي په سورلئ باندي وتر کول پکار نه دي کله چي څوك دوترو اراده اوکړي نو دسورلئ نه دي کوز شي او دا دي اداء کړي او دا دبعضي اهل کوفه قول هم دي.

***************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي صَلَاةِ الضُّحَى

## دڅابنت مونځ

ايا دڅابنت او اشراق مونځ يو دي او که نه؟ دفقهاء او محدثينو په نزد دواړه يو شي دي که دنمر ختلو نه پس په تعجيل سره اوکړي شي نو اشراق دي او که په تاخير سره اوکړي شي نو

1 _ صحيح البخاري في الوتر ٥ (٩٩٩)، وتقصير الصلاة ٧ (١٠٩٥) و ٩ (١٠٩٨)، و ١٢ (١١٠٥). صحيح مسلم في المسافرين ٤ (٧٠٠) سنن النسائي في قيام الليل ٣٣ (١٦٨٩، ١٦٨٧). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢٧ (١٢٠٠). (تحفة الأشراف: ٧٠٨٥). موطا امام مالک في صلاة الليل ٣ (١٥). مسند احمد (٢ في ٥٧، ١٣٨). سنن الدارمي في الصلاة ٢١٣)

ځابت دي چنانچه امام ترمذي او امام احمد په دي باندي باب قائم کړي دي او ددي لاندي يې تمام روايتونه راوړي دي.
مګر صوفيان وائي چي دا دواړه جدا جدا مونځونه دي داشراق مونځ کم از کم دوه رکعاته دي اوزيات نه زيات څلور رکعاته دي او دڅاښت مونځ کم از کم اته رکعاته دي او زيات نه زيات دولس رکعاته دي ظاهره ده چي په دي مسئله کي د صوفيانو قول څه زيات اهميت نه لري ځکه چي سفيان دشريعت په اسرارو خبردار نه وي دشريعت په رموسو خبردار خلق او په نصوصو پوهيدونکي خلق فقهاء او محدثين دي پس ددوئ چي کومه رائي وي هغه صحيح ده.(احسن الهدايه).

****************

٤٧٣ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ. حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ. عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ. قَالَ: حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ فُلَانِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عَمِّهِ ثُمَامَةَ بْنِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى الضُّحَى ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً بَنَى اللَّهُ لَهُ قَصْرًا مِنْ ذَهَبٍ فِي الْجَنَّةِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُمِّ هَانِئٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. وَنُعَيْمِ بْنِ هَمَّارٍ، وَأَبِي ذَرٍّ. وَعَائِشَةَ. وَأَبِي أُمَامَةَ. وَعُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ السُّلَمِيِّ. وَابْنِ أَبِي أَوْفَى. وَأَبِي سَعِيدٍ. وَزَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (١)

**ترجمه** : انس رضي الله عنه وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه دڅاښت دولس رکعاتونه اوکړل الله تعالي به دهغه دپاره په جنت کي دسرو زرو يو محل تيار کړي
امام ترمذي وائي دانس حديث غريب دي مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي. او په دي باب کي د ام هاني، ابوهريره، نعيم بن حمار، ازابوذر عائشه ، ابو امامه، عتبه بن عبد سلمي. ابن ابي اوفي، ابوسعيد خدري، زيد بن ارقم او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : **دڅاښت دمونځ فضيلت**

وَيُجْزِىءُ مِنْ ذٰلِكَ رَكْعَتَانِ يَرْكَعُهُمَا مِنَ الضُّحَى )) رواه مسلم . يعني د مذکوره تسبيحاتو او اذکارو په بدل کي په بدل کي دڅاښت دوه رکعاتونه کافي دي ځکه چي په مونځ کي دبدن تمام اعضاء مصروف کيږي اوشکريه ادا کوي.

١ _ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨٧(١٣٨٠). (تحفة الأشراف : ٥٠٥)

دڅاښت مونځ دوه رکعاتونو نه تردولسو پوري دی مګر په دي کي درسول الله صلي الله عليه وسلم عمومي عادت څلور رکعاته دی محمد ابن جرير ، طبري فرمائي چي دڅاښت مونځ په باره کي ځومره روايات مروي دي هغه دتواتر درجي ته رسيدلي دي.
قاضي ابوبکر فرمائي چي دڅاښت مونځ دسابقه انبياؤ او رسولانو مونځ دی.
علامه سيوطي دابوهريره رضي الله عنه نه دا روايت نقل کړی دی چي داود عليه السلام به څاښت مونځ په کثرت سره کولو.
ابن نجار دثوبان رضي الله عنه نه روايت نقل کړی دی چي دڅاښت مونځ به ادم ، نوح، ابراهيم، موسي، عيسي، عليهم السلام کولو
په يو روايت کي دي ځوك چي دڅاښت د دوه رکعاته مونځ اهتمام کوي نو که ګناهونه يي دسمندر د زګ برابر وي نو هم به ورته معاف شي.
دڅاخت مونځ کم از کم څلور رکعاته دي او زيات نه زيات دولس رکعاته دي ددولسو نه دزياتو رکعاتونو تعداد په هيڅ يو حديث کي منقول نه دی.
قاضي ابوبکر وائي دا مونځ دسابقه انبياؤ سنت هم دی. ابن نجار دثوبان رضي الله عنه نه روايت نقل کړی دی چي ادم ، نوح، ابراهيم، موسي، او عيسي عليهم السلام به هم ددي مونځ اهتمام کولو، ابن جرير طبري وائي چي دڅاښت مونځ په احاديثو کي معنا متواتر دی ، ابن حجر وائي تقريبا دا دشلو صحابه کرامو نه منقول دي او دعيني په نزد د درويش صحابه کرامو نه ثابت دي. (روضة الصالحين)

***************

٤٧٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: مَا أَخْبَرَنِي أَحَدٌ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحَى إِلَّا أُمَّ هَانِئٍ، فَإِنَّهَا حَدَّثَتْ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " دَخَلَ بَيْتَهَا يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ، فَاغْتَسَلَ فَسَبَّحَ ثَمَانَ رَكَعَاتٍ مَا رَأَيْتُهُ صَلَّى صَلَاةً قَطُّ أَخَفَّ مِنْهَا، غَيْرَ أَنَّهُ كَانَ يُتِمُّ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَكَأَنَّ أَحْمَدَ رَأَى أَصَحَّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثَ أُمِّ هَانِئٍ وَاخْتَلَفُوا فِي نُعَيْمٍ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: نُعَيْمُ بْنُ خَمَّارٍ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: ابْنُ هَمَّارٍ، وَيُقَالُ: ابْنُ هَبَّارٍ وَيُقَالُ: ابْنُ هَمَّامٍ، وَالصَّحِيحُ ابْنُ هَمَّارٍ، وَأَبُو نُعَيْمٍ وَهِمَ فِيهِ، فَقَالَ: ابْنُ حِمَازٍ

وَأَخْطَأَ فِيهِ ثُمَّ تَرَكَ. فَقَالَ نُعَيْمٌ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَخْبَرَنِي بِذَلِكَ عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ أَبِي نُعَيْمٍ. [1]

**ترجمه** : دعبدالرحمن بن ابي ليلي بيان دي چي ماته ام هاني خبر راكړي دي چي هغوئ رسول الله صلي الله عليه وسلم لره دڅاښت په مونځ كولو ليدلي وو. دام هاني بيان دي چي دفتح مكه په ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم زما كور ته داخل شو او غسل يي اوكړو او اته ركعاتونه يي اوكړل او ما كله رسول الله صلي الله عليه وسلم نور كله ددي مونځ نه په زيات مختصر مونځ كولو نه دي ليدلي البته ركوع او سجدي به ي پوره پوره كولي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دامام احمد بن حنبل په نظر كي دا حديث په دي باب كي دټولو نه زيات صحيح حديث دي.

## دام هاني فاخته بنت ابي طالب رضي الله عنها حالات

نوم فاخته كنيه ام هاني دپلار نوم ابو طالب دمور نوم فاطمه بنت اسد ده، دا دعلي رضي الله عنه حقيقي خور ده دهبيره بن عمرو مخزومي سره يي نكاح شوي وه دفتح مكي په ورځ مسلمانه شوه ليكن ددي خاوند هبيره نجران ته اوتختيدو دام هاني درسول الله سره ډير محبت وو رسول الله چي دفتح مكي په ورځ ددوئ كور ته راغي نو شربت يي اوڅكلو او بيا يي ددينه هغي ته هم وركړو ام هاني اووئيل زما روژه ده ليكن درسول الله صلي الله عليه وسلم جوټه يي واپس كول نه غوښتل (مسند احمد).
يوځل نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي ام هاني چيلئ اوساته دا ډير خير او بركت والاخيز دي دامير معاويه رضي الله عنه په زمانه كي وفات شوه او دمروياتو شمير يي ۴۶دي.

***************

---

[1] ـ صحيح البخارى في تقصير الصلاة ١٢ (١١٠٣) . والتهجد ٣١ (١١٧٦) . والمغازى ٥٠ (٤٢٩٢) . صحيح مسلم في المسافرين ١٣ (٨٠ في ٣٣٦) . سنن ابي داود في الصلاة ٣٠١ (١٢٩١) . (تحفة الأشراف : ١٨٠٠٧) . مسند احمد (٦ في ٣٤٢٣٤٢) . سنن الدارمى في الصلاة ١٥١ (١٤٩٣) . وانظر أيضا: صحيح البخارى في الغسل ٢١ (٢٨٠) . والصلاة ٤ (٣٥٧) . الجزية ٩ (٣١٧١) . والأدب ٩٣ (٦١٥٨) . وسنن النسائى في الطهارة ١٤٣ (٢٢٦) . والغسل ١١ (٤١٥) . وسنن ابن ماجه في الطهارة ٥٩ (٤٦٥) . والإقامة ١٨٧ (١٣٢٣) . والموطاء في قصر الصلاة ٨ (٢٨) . ومسند احمد (٦ في ٣٤١. ٣٤٢. ٣٤٣. ٣٢٥)

٤٧٥_ حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ السِّمْنَانِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُسْهِرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَوْ أَبِي ذَرٍّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، أَنَّهُ قَالَ: " ابْنَ آدَمَ ارْكَعْ لِي مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ أَكْفِكَ آخِرَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (١)

**ترجمه** دابوالدرداء يا ابو ذر رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي فرمائي اي بني ادم ته د ورخي په شروع كي زما درضا دپاره څلور ركعاتونه كوه زه به تمامه ورخ ستا دپاره كافي يم ، امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي.

*****************

٤٧٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ نَهَّاسِ بْنِ قَهْمٍ، عَنْ شَدَّادٍ أَبِي عَمَّارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ حَافَظَ عَلَى شُفْعَةِ الضُّحَى غُفِرَ لَهُ ذُنُوبُهُ وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى وَكِيعٌ، وَالنَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ نَهَّاسِ بْنِ قَهْمٍ وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِهِ. (٢)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه دڅاښت د دوه ركعاتونو محافظت اوكړو دهغه ګناهونه به اوبخلي شي اګر چي دا دسمندر دزګ براب وي.
امام ترمذي وائي وكيع، نضر بن شميل، او نورو اهل علمو دا حديث د نهاس بن قهم په سند مروي دي او مونږ نهاس صرف دده په همدي حديث پيژنو

*****************

٤٧٧_ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنْ فُضَيْلِ بْنِ مَرْزُوقٍ، عَنْ عَطِيَّةَ الْعَوْفِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: " كَانَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحَى حَتَّى نَقُولَ: لَا يَدَعُ وَيَدَعُهَا حَتَّى نَقُولَ: لَا يُصَلِّي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (٣)

---

1 - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠٩٢٤، و١١٩٠٣)

2 - سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨٧ (١٣٨٢) . (تحفة الأشراف : ١٣٤٩١)

3 - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٢٢٤)

**ترجمه**: دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دڅانښت مونځ کولو تردي پوري چي مونږ به گمان اوکړو چي دي دي لره نه پرېږدي او هغه به پرېخودل تردي پوري چي مونږ به گمان اوکړو چي ددينه پس به دا نه کوي. امام ترمذي واني دا حديث حسن غريب دي

***************

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ عِنْدَ الزَّوَالِ

### دزوال وخت کي مونځ کول

٤٧٨_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمِ بْنِ أَبِي الْوَضَّاحِ هُوَ: أَبُو سَعِيدٍ الْمُؤَدِّبُ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ الْجَزَرِيِّ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُصَلِّي أَرْبَعًا بَعْدَ أَنْ تَزُولَ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ، وَقَالَ: إِنَّهَا سَاعَةٌ تُفْتَحُ فِيهَا أَبْوَابُ السَّمَاءِ، وَأُحِبُّ أَنْ يَصْعَدَ لِي فِيهَا عَمَلٌ صَالِحٌ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ وَأَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ "يُصَلِّي أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ بَعْدَ الزَّوَالِ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ"(١).

**ترجمه**: دعبدالله بن سائب رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دزوال نه پس او ماسپخين فرضونه مخکي څلور رکعته کول اوفرمائيل به يی داداسی وخت دی چي پدي کي داسمان دروازي پرانستی وي زه دا غوارم چي په دی وخت کي مي نيك عمل بره وخيژي.

امام ترمذي وايي په دي باب کي د علي او ابو ايوب رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي. اود عبد الله بن السائب حديث حسن غريب دی، اود رسول الله نه دا هم مروي دي چي د زوال نه پس به يي څلور رکعتونه کول او سلام به يي نه گرځولو مگر ددي په اخير کي.

**لغات**: الساعة: گنټه. جمع يي ساعات راځي. صعد يصعد صعدا په معني دختلو. دمزيدو نه هم مستعمل دي.

---

١ _ أخرجه: الترمذي. والنسائي في "الكبرى". وقال: ((حديث حسن غريب)) ومسند احمد (٣ في ٤١١)

**تشريح** : كان يصلي اربعا بعد ان تزول الشمس قبل الظهر: يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم به دماسپخين نه مخكې دزوال نه پس څلور ركعاتونه كول دا كوم څلور ركعاتونه دي؟ په دي كې دعلماو اختلاف دى دبعضو په نزد دا هغه څلور سنت مؤكد ركعاتونه دي كوم چي دماسپخين نه مخكې ادا كولى شي ليكن دبعضو په نزد دا دسنت مؤكده نه علاوه دي كوم چي دزوال نه پس ادا كولى شي اكثرو علماؤ دويم قول ته ترجيح وركړى دى چي دزوال نه پس څوك څلور ركعاته اوكړي الله تعالي به دده دپاره داسمان تمامي دروازي پرانيخي كه دچا نه دماسپخين څلور ركعاته سنت پاتي شي يعني دسنت ادا كولو نه بغير فرض اوكړي نو ددي په روستو ادا كولو كې داحنافو دوه اقوال دي اولنى قول دامام محمد بن حسن دى دده په نزد به اول څلور ركعاتونه كوي او بيابه وروسته دوه ركعاته كوي ليكن دويم قول دادى چي اول به دوه ركعاته كوي او روستو به څلور كوي او همدا مفتي به قول دى او همدا دعائشه رضي الله عنها دروايت نه معلوميږي.

**دعبدالله بن سائب رضي الله عنه حالات**

نوم عبدالله كنيه ابو عبدالرحمان دده نه مكي والاقرائت زده كړى دى علامه ذهبي ليكلي دي چي دده دنبي كريم صلي الله عليه وسلم صحبت حاصل دى دابي بن كعب رضي الله عنه نه يي قران ياد كړى وو او دعبدالله بن زبير په زمانه كې وفات شوى دى تيوتل ورنه اوه روايات مروي دي چي يو ددينه په مسلم كې دى او باقي په نورو كتابونو كې دي

****************

## ١٧ـ باب مَا جَاءَ فِي صَلَاةِ الحَاجَةِ

٤٧٩ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عِيسَى بْنِ يَزِيدَ البَغْدَادِيُّ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَكْرٍ السَّهْمِيُّ، وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَكْرٍ. عَنْ فَائِدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ كَانَتْ لَهُ إِلَى اللَّهِ حَاجَةٌ أَوْ إِلَى أَحَدٍ مِنْ بَنِي آدَمَ فَلْيَتَوَضَّأْ فَلْيُحْسِنِ الوُضُوءَ. ثُمَّ لِيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ. ثُمَّ لِيُثْنِ عَلَى اللَّهِ وَلْيُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ثُمَّ لِيَقُلْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ الحَلِيمُ الكَرِيمُ. سُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ العَرْشِ العَظِيمِ. الحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ العَالَمِينَ. أَسْأَلُكَ مُوجِبَاتِ رَحْمَتِكَ. وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ. وَالغَنِيمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ. وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ إِثْمٍ. لَا تَدَعْ لِي ذَنْبًا إِلَّا غَفَرْتَهُ. وَلَا هَمًّا إِلَّا فَرَّجْتَهُ. وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا إِلَّا قَضَيْتَهَا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ ". قَالَ أَبُو

عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَفِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ فَائِدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، وَفَائِدٌ هُوَ أَبُو الْوَرْقَاءِ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: د چا چي الله تعالي ته يا په انسانانو کي چاته څه حاجت وي نو اودس دي وکړي اوپه ښه شان سره دي اودس وکړي، بيا دي دوه رکعاته مونځ وکړي. بيا دي د الله تعالي ثناء اووايي او بيا دي په رسول الله درود اووايي او بيا دي دا دعاء اووايي:

لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ. سُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ. الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ. أَسْأَلُكَ مُوجِبَاتِ رَحْمَتِكَ. وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ. وَالْغَنِيمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ. وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ إِثْمٍ. لَا تَدَعْ لِي ذَنْبًا إِلَّا غَفَرْتَهُ. وَلَا هَمًّا إِلَّا فَرَّجْتَهُ. وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا إِلَّا قَضَيْتَهَا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ".

نشته لائق دبندګئ مګر صرف الله تعالي دی، چي صبرناك او مهربان ذات دي. پاکي ده الله تعالي لره چي پيدا کونکي د عرش عظيم دی، اوثناء ده هغه ذات لره چي پالونکي دمخلوقاتو دی، اي الله زه تانه ستا درحمت اسباب غواړم (يعني دداسی کارونو توفيق راکړی دکومو په برکت چي په بندګانو رحم کوی)، او يا الله تانه ستا دمغفرت اسباب غواړم اودهری نيکئ توفيق غواړم اودهری ګناه نه بچ کيدل غواړم اي الله دمغفرت نه بغير مي هيڅ يوه ګناه پري نږدي، او هيڅ يو حاجت مي د پوره کيدو نه بغير پري نږدی او هيڅ يو داسي حاجت مي د پوره کيدو نه بغير پري نږدي کوم چي ستا خوښ وي مګر چي پوره يي کړي، اي د ټولو رحم کونکو نه زيات رحم کونکيه

امام ترمذي وايي دا حديث غريب دي او په سند يي کلام شوي دي او فائد بن عبد الرحمن په باب د حديث کي ضعيف دی اود فائد اسم کنيه ابو الورقاء ده.

**لغات:** موجبات: واجبونکي لازمونکي، وجب وجوبا واجبول. عزائم جمع دعزم معني پخه اراده. الغنيمة جمع دغنائم معني مفت حاصلول، غنم دسمع نه غنما وغنيمة وغناما. مفت حاصلول. الفوز: فاز يفوز فوزا کاميابيدل.

**تشريح:** موجبات رحمتك يعني ای الله دداسي خبرو يا داسي عمل يا داسي عادت توفيق راکړي دکوم په وجه چي جنت واجبيږي.

ديته نږدي معني علامه سيوطي کړي ده چي په کوم عمل دجنت وعده ده دهغي دکولو دي الله

---

1 _ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨٩ (١٣٨٤). (تحفة الأشراف: ٥١٨٨)

توفيق ورکړي کله چي عمل پوره شي نو بيا الله تعالي هم خپله وعده پوره کوي

وعزائم مغفرتك: او لازمونکي ستا دمغفرت، عزائم دعزيمة جمع ده مطلب دادی چي الله تعالي پخپل فضل اوکرم سره دخپلو نيکانو بندګانو سره عزم کړی دی چي مغفرت به ورته کوم ورنه په الله تعالي هيڅ څيز واجب نه دی.

والسلامة من كل اثم : ابن حجر هيثمي ددي جملي دا مطلب بيان کړی دی چي ای دعا قبلونکيه الله په ما کي دګناهونو او رزائلو مادي بالکل ختم کړي

سوال: دا خو دمعصوم کيدو دعا ده کومه چي جائز نه ده؟

جواب: اګر چي معصوم صرف انبياء دي او فرشتي ليکن داسي دعا کول چي ای الله دګناهونو او رزائلو نه زما داخلاقو حفاظت اوکړي جائز ده.

***************

## ١٨_ باب مَا جَاءَ فِي صَلاَةِ الاِسْتِخَارَةِ

### داستخاري دمونځ بيان

٤٨٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الْمَوَالِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا الاِسْتِخَارَةَ فِي الأُمُورِ كُلِّهَا كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ. يَقُولُ: "إِذَا هَمَّ أَحَدُكُمْ بِالأَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيضَةِ. ثُمَّ لِيَقُلِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ. فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلاَ أَقْدِرُ، وَتَعْلَمُ وَلاَ أَعْلَمُ. وَأَنْتَ عَلاَّمُ الْغُيُوبِ. اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ خَيْرٌ لِي فِي دِينِي وَمَعِيشَتِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي. أَوْ قَالَ: فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ. فَيَسِّرْهُ لِي ثُمَّ بَارِكْ لِي فِيهِ. وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ شَرٌّ لِي فِي دِينِي وَمَعِيشَتِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي. أَوْ قَالَ: فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ فَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاصْرِفْنِي عَنْهُ. وَاقْدُرْ لِي الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ. ثُمَّ أَرْضِنِي بِهِ. قَالَ: وَيُسَمِّي حَاجَتَهُ" قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. لا

نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي الْمَوَالِي، وَهُوَ شَيْخٌ مَدِينِيٌّ ثِقَةٌ، رَوَى عَنْهُ سُفْيَانُ حَدِيثًا، وَقَدْ رَوَى عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ. وَهُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الْمَوَالِي.[1]

**ترجمه** جابر رضي الله عنه وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ ته په تمامو كارونو كي استخاره داسي ښودله څنګه چي به يې راته دقران شريف يو سورت ښودلو اوفرمائيل به يې چي كله تاسو ته څه اهم كار پيښ شي نو د فرضو نه علاوه دي دوه ركعته مونځ اوكړي او دا دعا اولولي:

اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ. فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا أَقْدِرُ. وَتَعْلَمُ وَلَا أَعْلَمُ. وَأَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ. اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ خَيْرٌ لِي فِي دِينِي وَمَعِيشَتِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي. أَوْ قَالَ: فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ. فَيَسِّرْهُ لِي ثُمَّ بَارِكْ لِي فِيهِ. وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ شَرٌّ لِي فِي دِينِي وَمَعِيشَتِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي. أَوْ قَالَ: فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ فَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاصْرِفْنِي عَنْهُ. وَاقْدُرْ لِي الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ. ثُمَّ أَرْضِنِي بِهِ. قَالَ: وَيُسَمِّي حَاجَتَهُ"

يعني اى الله زه ستا دعلم په ذريعه خيريدل اوستا دقدرت په ذريعه ددى په عمل كي دراوستلو طاقت غواړم او ستا نه ستالويى فضل غواړم څكه چي ته قادر يى او زه قدرت نه لرم ته ټول هر څه باندي عالم يى او زه نه پوهيږم ستا ذات علام الغيوب دى اى الله كه چري ستا په علم كي دا كار ديني، معاشي او په اعتبار دانجام څما دپاره بهتروي (يا ددى الفاظو په ځايى رسول الله صلي الله عليه وسلم دارنګى اوفرمائيل چه) داكار دنيا او اخرت كي بهتر وي نو دى باندي ماته قدرت راكړي او دا زما دپاره اسان كړي، بيا دي كي بركت واچوي او كه چرى ستا په علم كي دا كار مادپاره ديني، معاشي او دانجام په اعتبار سره بد وي (يايى دا اوفرمائيل چه) دا كار دنيا او اخرت كي بد وي نو ددى خيال څما دزړه نه اوباسى او ددى دكولو نه مي منعه كړى او ما دپاره هغه اسان كړى چرته چي مي خيروي ماپه هغى باندي راضي كړى.

دهذا الامرپه ځايى دي دخپل كار نوم واخلي يادي په نيت كي راولي.

**لغات** : استخارة استخار استخارة: معني خير طلب كول، عاجل : دعجل نه عجلا و عجلة په

---

[1] ـ صحيح البخارى في التهجد ٢٥ (١١٦٢) . والدعوات ٤٨ (٦٣٨٢) . التوحيد ١٠ (٧٣٩٠) . سنن ابي داود في الصلاة ٣٦٦ (١٥٣٨) . سنن النسائي في النكاح ٢٧ (٣٢٥٥) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٨٨ (١٣٨٣) . (تحفة الأشراف : ٣٠٥٥) . مسند احمد (٣ في ٣٤٤) وابن ماجه وابن حبان والبيهقي

معني دجلتئ کولو دي ، عاجل معني زر ورکونکي، اجل معني وروسته پاتيي کيدونکي او تاخير کونکي صفت يي اجل او اجيل راځي ، اجل دمرگ نيټي ته ونيلي شي. جمع يي اجال ده.

**تشريح : رسول الله به دقران دسورتونو پشان داستخاري تعليم ورکولو**

استخاره دهغه کارونو دپاره ضروري ده دکومو تعلق چي دمباحاتو سره وي چي انسان ته پکي دخير اوشر پته نه لگي اوددينه علاوه دفرائضو او واجباتو او سنن اومستحباتو ادا کول خوپه هر حال کي ضروري دي او چي کوم محرمات اومکروهات دي دهغي نه ځان ساتل ضروري دي په هغي کي هم استخاره صحيح نه وي.

علماء وائي دا اصول ياقاعده کليه نه ده چي څوك استخاره کوي ضرور به ورته غيبي اشاره کيږي اوپه همدي وجه غيبي اشاري ته انتظار کول نه دي پکار بلکه داستخاري نه پس اودسوچ کولو نه پس دظاهري اسبابو مطابق چي ورته کومه خبره بنه بنکاره شي هغه دي اختيار کړي.

اشرف علي تهانوي ليکلي دي په استخاره کي ضروري څيز دوه رکعاته مونځ او داستخاري دعا لوستل دي باقي اوده کيدل اوخوب ليدل هرگز شرط نه دي دا هر څه عوامو دځان نه جوړکړي دي مگر په بعضي وختونو کي ممکن ده چي ددي اثر دخوب په شکل کي ظاهر شي لکن داددي دپاره شرط نه دی.(روضة الصالحين، دليل الفالحين)

استخاره په فرضي اوپه ناروا کارونو ندي کول پکار ،داپه مباح کارونوکي دکوم کاردکولويانه کولودپاره کيږي،يادنورودعاگانوپشان يوه دعاده که قبوله شي نوددي کارطرف ته به زړه مائله شي اواسباب به ئي مهياشي،خوهرچه په خلقوکي مشهوره ده چي داستخاري نه پس اوده کيدل ضروري دي څکه چي پدي دخوب په ذريعه رهنمائي کيږي داخبره بالکل غلطه اوبي بنياده ده ،که الله تعالي اوغواړي خوب به ورله راولي ورنه داخوځه ضروري خبره نده.

همدارنگي دغلاوغيره په صورت کي دخلقونه دځان دپاره داستخاري مطالبه کول چي گني پدي غلامعلوميږي ،ياکومه بله غيبي خبره پدي سرگنديږي بهرحال په خپله يادبل چاپه ذريعه دمغيباتوداظهاردپاره استخاره کول اوداعقيده لرل چي هرقسم معلومات پدي حاصليږي دا سراسر شرك دي اواجتناب ورنه لازم دي (فضائل اعمال لابي عبد الله مغربي)

***************

## ۱۹_ باب مَا جَاءَ فِي صَلاَةِ التَّسْبِيحِ

### د صلاة تسبيح بيان

٤٨١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ أُمَّ سُلَيْمٍ غَدَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: عَلِّمْنِي كَلِمَاتٍ أَقُولُهُنَّ فِي صَلَاتِي، فَقَالَ: "كَبِّرِي اللهَ عَشْرًا، وَسَبِّحِي اللهَ عَشْرًا، وَاحْمَدِيهِ عَشْرًا، ثُمَّ سَلِي مَا شِئْتِ، يَقُولُ: نَعَمْ نَعَمْ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَالْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي رَافِعٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ حَدِيثٍ فِي صَلَاةِ التَّسْبِيحِ وَلَا يَصِحُّ مِنْهُ كَبِيرُ شَيْءٍ. وَقَدْ رَأَى ابْنُ الْمُبَارَكِ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ صَلَاةَ التَّسْبِيحِ وَذَكَرُوا الْفَضْلَ فِيهِ. حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو وَهْبٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ الْمُبَارَكِ عَنِ الصَّلَاةِ الَّتِي يُسَبَّحُ فِيهَا، فَقَالَ: "يُكَبِّرُ، ثُمَّ يَقُولُ: سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ، ثُمَّ يَقُولُ: خَمْسَ عَشْرَةَ مَرَّةً سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ يَتَعَوَّذُ وَيَقْرَأُ: بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ سورة وَفَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً، ثُمَّ يَقُولُ: عَشْرَ مَرَّاتٍ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ يَرْكَعُ فَيَقُولُهَا عَشْرًا، ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَيَقُولُهَا عَشْرًا، ثُمَّ يَسْجُدُ فَيَقُولُهَا عَشْرًا، ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ فَيَقُولُهَا عَشْرًا، ثُمَّ يَسْجُدُ الثَّانِيَةَ فَيَقُولُهَا عَشْرًا، يُصَلِّي أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ عَلَى هَذَا، فَذَلِكَ خَمْسٌ وَسَبْعُونَ تَسْبِيحَةً فِي كُلِّ رَكْعَةٍ، يَبْدَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ بِخَمْسَ عَشْرَةَ تَسْبِيحَةً، ثُمَّ يَقْرَأُ ثُمَّ يُسَبِّحُ عَشْرًا، فَإِنْ صَلَّى لَيْلًا فَأَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يُسَلِّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، وَإِنْ صَلَّى نَهَارًا فَإِنْ شَاءَ سَلَّمَ وَإِنْ شَاءَ لَمْ يُسَلِّمْ" قَالَ أَبُو وَهْبٍ: وَأَخْبَرَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي رِزْمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ، أَنَّهُ قَالَ: يَبْدَأُ فِي الرُّكُوعِ بِـ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ وَفِي السُّجُودِ بِـ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثًا، ثُمَّ يُسَبِّحُ التَّسْبِيحَاتِ، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ: وَحَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ زَمْعَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ وَهُوَ ابْنُ أَبِي رِزْمَةَ، قَالَ: قُلْتُ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُبَارَكِ: إِنْ سَهَا فِيهَا يُسَبِّحُ فِي سَجْدَتَيِ السَّهْوِ عَشْرًا عَشْرًا، قَالَ: لَا إِنَّمَا هِيَ ثَلَاثُ مِائَةِ تَسْبِيحَةٍ. (١)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي ام سليم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضره شوه او عرض يي اوكرو اي دالله رسوله ماته داسي كلمات اوښايه چي زه يي په مونځ كي وايم رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل لس پيري

---

١ ـ سنن النسائي في السهو ٥٧ (١٣٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٨٥)، مسند احمد (٣ في ١٢٠)

الله اکبر وايه او لس پيري سبحان الله وايه او لس پيري الحمد لله وايه او بيا چي دي څه خوبنه وي هغه غواړه او الله تعالي په هريو څيز هو هو وائي (يعني قبلوي يي)
امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن غريب دي او په دي باب کي د ابن عباس. عبدالله بن عمرو، فضل بن عباس، او او رافع رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. دصلاة تسبيح په سلسله کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نور احاديث هم مروي دي ليکن زيات صحيح نه دي، ابن مبارك او بعضي نور اهل علم دصلاة تسبيح قائل دي او هغوئ ددي کيفيت ذکر کړي دي، ابو وهب محمد بن مزاحم العامري وائي چي دعبدالله بن مبارك نه مي دصلاة تسبيح باره کي تپوس اوکړو په کوم کي چي تسبيح ونيلي شي هغوئ اوونيل اول تکبير تحريمه دي بيا "سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالي جدك والا اله غيرك" دي يعني اي الله ستا ذات پاك دي او ته دهر عيب او نقصان نه پاك يي او ټول تعريفونه ستادپاره دي او برکت والادي نوم ستا او لوي دي شان ستا او ستا نه علاوه بل هيڅوك لائق دبندګئ نشته. او بيا د پنځلس پيري دا کلمات اووائي سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ. او بيا دي اعوذ بالله من الشيطان الرجيم" او بيا دي" بسم الله الرحمن الرحيم" اووائي او بيا دي سورة فاتحه او کوم سورة ورسره اووائي ، بيا دي لس پيري سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ. او بيا دي رکوع ته لاړ شي او لس پيري دي دا کلمات اووائي ، بيا دي سر پورته کړي او لس پيري دي دا کلمات اووائي ،بيا دي سجدي ته لاړ شي او لس پيري دي دا کلمات اووائي ، بيا دي دسجدي نه سر پورته کړي او لس پيري دي دا کلمات اووائي ، بيا دي دويمه سجده اوکړي او لس پيري دي دا کلمات اووائي، په دي طريقه به څلور رکعاتونه پوره کړي او په هر رکعات کي به ټول پنځه اويا پيري تسبيحات اوونيلي شي. دهر رکعات په شروع کي پنځلس او بيا لس لس او که چري دشپي مونځ کوي نو زما په نزد مستحب داده چي دهر رکعات نه پس به سلام ګرځوي او که دورځي مونځ کوي نو که خوښه يي وي د دوه دوه رکعاتونو نه پس دي سلام اوګرځوي او که خوښه يي وي نو سلام دي نه ګرځوي دابو وهب بن زمعه نه روايت دي چي عبدالعزيز بن ابي رزمه وائي چي عبدالله بن مبارك وائي په رکوع کي اول "سبحان ربي العظيم" او په سجده کي اول "سبحان ربي الاعلي" دري دري پيري ونيل پکار دي او بيا تسبيحات ونيل پکار دي او ابن ابي رزمه دعبدالعزيز نوم دي دي وائي چي دعبدالله بن مبارك نه مي تپوس اوکړو که يو کس په دي مونځ کي سهو شي نو ايا دي به په سجده سهو کي لس لس تسبيحات وائي هغوئ اوونيل نه دا صرف دري سوه تسبيحات دي.

**تشريح** : صلاة التسبيح په جمع سره دکولوپه خاي باندي دي يواخي وکړي شي.خکه چي دصلاة تسبيح خپل ثبوت دکثرت طرق باوجودزيات نه زيات دحسن درجي ته رسيږي په جمع سره کول خويوه ياتي خبره ده دکومي ثبوت چي بالکل دسره نشته.نوپدي وجه په جمع سره دکولونه اجتناب ضروري اوبهتردي.

## دصلاة التسبيح طريقه

دصلاة تسبيح طريقه مندرجه ذيل ده: دابن عباس﷛ نه روايت دي چي نبي کريمﷺ خپل تره عباس﷛ ته اوفرمائيل:چه څلور رکعته مونځ وکړه الله تعالي به دي ټول ګناهونه معاف کړي .په هررکعت کي سورت فاتحه اويويل سورت ورسره هم وايه اوپنځلس کرته داتسبيح وايه: (سُبْحَانَ اللهِ وَ الْحَمْدُ للهِ وَلَاإِلٰهَ إِلَّااللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ) الله تعالي پاك دي .الله تعالي دټولوتعريفونو لائق دي اودالله تعالي نه علاوه بل دبندګۍ حق دارنشته.اوالله تعالي ډيرلوي دي.بياپه رکوع اوقومه کي ،په دواړوسجدوکښي، اوددوي په مينځنۍ قومه کي ،اوپه جلسه استراحت کي لس لس کرته همداکلمات وايه نوپدي شان سره به په هررکعت کي پنځه اويا تسبيحات شي.څلور رکعته پدي طريقي سره وکړه،مناسب خوداده چي دامونځ هره ورځ يوځل وکړي شي اوکه هره ورځ نه وي نوپه جمعه کي يوځل اوکه په جمعه کي يوځل نه وي نوپه کال کي يوځل اوپه کال کي هم يوځل ونکړي شي نوپه ټول عمرکي خويوځل ضرور ادا کول پکاردي.

*****************

٤٨٢_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ الْعُكْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُبَيْدَةَ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ مَوْلَى أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْعَبَّاسِ: "يَا عَمِّ أَلَا أَصِلُكَ أَلَا أَحْبُوكَ أَلَا أَنْفَعُكَ" قَالَ: بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ: "يَا عَمِّ صَلِّ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ تَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ، فَإِذَا انْقَضَتِ الْقِرَاءَةُ فَقُلْ: اللهُ أَكْبَرُ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسُبْحَانَ اللهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ خَمْسَ عَشْرَةَ مَرَّةً قَبْلَ أَنْ تَرْكَعَ، ثُمَّ ارْكَعْ فَقُلْهَا عَشْرًا، ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ فَقُلْهَا عَشْرًا ثُمَّ اسْجُدْ فَقُلْهَا عَشْرًا ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ فَقُلْهَا عَشْرًا، ثُمَّ اسْجُدِ الثَّانِيَةَ فَقُلْهَا عَشْرًا، ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ فَقُلْهَا عَشْرًا قَبْلَ أَنْ تَقُومَ، فَتِلْكَ خَمْسٌ وَسَبْعُونَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ هِيَ ثَلَاثُ مِائَةٍ فِي أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ، فَلَوْ كَانَتْ ذُنُوبُكَ مِثْلَ رَمْلِ عَالِجٍ لَغَفَرَهَا اللهُ لَكَ" قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ وَمَنْ يَسْتَطِيعُ أَنْ يَقُولَهَا فِي كُلِّ يَوْمٍ، قَالَ: "فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ أَنْ تَقُولَهَا فِي كُلِّ يَوْمٍ فَقُلْهَا فِي

جُمُعَةٍ، فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ أَنْ تَقُولَهَا فِي جُمُعَةٍ فَقُلْهَا فِي شَهْرٍ. فَلَمْ يَزَلْ يَقُولُ لَهُ حَتَّى قَالَ: فَقُلْهَا فِي سَنَةٍ
* قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي رَافِعٍ. (1)

**ترجمه** : دابورافع رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل تره عباس رضي الله عنه ته اوفرمائيل اي تره ايا زه ستا سره صله رحمي اونكړم او ايا زه تاته دڅه څيز دركول اونكړم او ايا زه تاته څه فائده اونه رسوم؟ هغوی اووئيل ولي نه اي دالله رسوله؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څلور ركعاته مونځ اوكړه او په هر ركعات كي سورة فاتحه او كوم سورة اولوله كله چي قرائت پوره شي نو الله اكبر، الحمدلله، سبحان الله، او لااله الاالله پنځلس پيري دركوع نه مخكي وايه، بيا چي ركوع ته لاړ شي نو لس پيري همدا كلمات په ركوع كي وايه بيا چي سر پورته كړي نو لس پيري همدا كلمات په ركوع كي وايه ، بيا چي سجدي ته لاړ شي نو لس پيري همدا كلمات په ركوع كي وايه بيا چي دسجدي نه سر پورته كړي نو لس پيري همدا كلمات په ركوع كي وايه. بيا چي دويمي سجدي ته لاړ شي، نو لس پيري همدا كلمات په ركوع كي وايه بيا چي دسجدي نه خپل سر پورته كړي نو د اودريدو نه مخكي لس پيري دا كلمات اووايه دا رنګي په هر ركعات كي به پنځه اويا پيري دا كلمات اووئيلي شي او په څلور ركعاتونو كي به دري سوه شي نو كه چري ستا ګناهونه دډيرو زياتو شګو دتعداد برابر هم وي نو الله تعالي به يي معاف كړي هغوی عرض اوكړو اي دالله رسوله روزانه ددي كلمات وئيلو طاقت په چا كي دي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه روزانه دا كلمات نشي وئيلي نو په جمعه كي يو ځل او كه هره جمعه يي نشئ وئيلي نو په مياشت كي يو ځل دا خبره يي مسلسل همداسي كوله تردي چي ويي فرمائيل كه داسي نه وي نو په كال كي يو ځل دا عمل كوه.

امام ترمذي وائي دا حديث دابو رافع په روايت غريب دي.

**تشريح** : صاحب دتعليمات محمدي شرح ترمذي دصلاة تسبيح مونځ دوه طريقي ذكر كړي دي يوه طريقه دابن عباس دروايت ده او دويمه طريقه دعبدالله بن مبارك نه منقول ده كه څوك زيات وضاحت غواړي تعليمات محمدي شرح ترمذي ته رجوع كولي شي.

***************

## ٢٠ـ باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ الصَّلاَةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

1 ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٩٠ (١٣٨٦) . (تحفة الأشراف : ٣٠١٥)

## په رسول الله با ندې د درود ونيلو د کيفيت بيان

٤٨٣ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ مِسْعَرٍ، وَالأَجْلَحِ، وَمَالِكِ بْنِ مِغْوَلٍ، عَنِ الحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، قَالَ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا السَّلَامُ عَلَيْكَ قَدْ عَلِمْنَا، فَكَيْفَ الصَّلَاةُ عَلَيْكَ؟ قَالَ: "قُولُوا اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ، وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ". قَالَ مَحْمُودٌ: قَالَ أَبُو أُسَامَةَ، وَزَادَنِي زَائِدَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنِ الحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: وَنَحْنُ نَقُولُ: وَعَلَيْنَا مَعَهُمْ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي حُمَيْدٍ، وَأَبِي مَسْعُودٍ، وَطَلْحَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَبُرَيْدَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَارِجَةَ، وَيُقَالُ: ابْنُ جَارِيَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي لَيْلَى كُنْيَتُهُ أَبُو عِيسَى، وَأَبُو لَيْلَى اسْمُهُ: يَسَارٌ. (1)

**ترجمه** دکعب بن عجره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چي اي دالله رسوله مونږ خو په تا باندي سلام ونيل زده کړي دي ليکن په تا باندي د درود ونيلو طريقه څه ده؟ رسول الله اوفرمائيل داسي وائي.

اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ. وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ"

يعني اي الله په محمد (ص) او په ال د محمد (ص) رحمتونه نازل کړي لکه چي تا په ابراهيم عليه السلام رحمتونه نازل کړي وو يقينا ته ستائيلي شوي او لوي يې او په محمد (ص) او په ال د محمد (ص) برکتونه نازل کړي لکه چي تا په ابراهيم عليه السلام برکتونه نازل کړي دي يقينا ته لائق د تعريف او لوي ذات يې . زائده په سند داعمش عن الحکم عن عبدالرحمن بن ابي ليلي يو اضافي لفظ نقل کړي دي هغوئ اووائي چي هغوئ په درود کي "وعلينا معهم" يعني دهغوئ سره په مونږ باندي هم رحمت او برکت نازل شو

1 صحيح البخاري في أحاديث الأنبياء ١٠ (٣٣٧٠)، وتفسير الأحزاب ١٠ (٤٧٩٧)، والدعوات ٣٢ (٦٣٥٧)، صحيح مسلم في الصلاة ١٧ (٤٠٦)، سنن ابي داود في الصلاة ١٨٣ (٩٧٦)، سنن النسائي في السهو ٥١ (١٢٨٨)، سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٥ (٩٠٤)، (تحفة الأشراف ١١١١٣)، مسند احمد (٤/ ٢٤١، ٢٤٤)، سنن الدارمي في الصلاة ٨٥ (١٣٨١)

امام ترمذي وائي دكعب بن عجره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دې باب کي دعلي، ابوحميد، ابو مسعود، طلحه، ابو سعيد، بريده، زيد بن خارجه او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

امام ترمذي وايي چي د كعب بن عجره حديث حسن صحيح دی، عبد الرحمن بن ابي ليلي اسم كنيه ابو عيسي ده، اود ابو ليلي نوم يسار دی.

**دابومحمد كعب بن عجره رضي الله عنه حالات**

نوم كعب كنيه ابو محمد په يوه غزوه كې يې لاس كټ شوی وو او دسر ويخته يې ګڼ وو (طبقات ابن سعد)

دهجرت نه پس مسلمان شوی وو او دمسلمانيدو نه پس يې په تمامو غزواتو كې شركت كړی دی په غزوه حديبيه كې هم درسول الله صلي سره موجود وو دويختو دګنړوالي په وجه يې په سر كې دومره ډيرې سپږې شوي وې چې په مخ به يې راروانې وې نو رسول الله ورته دويختو كټ كولو مشوره وركړه نو بيا يې ددينه پس كټ كړل دده په سيرت كې دحق حمايت او حب رسول سر فهرست دي دكعب رضي الله عنه په اخلاقو كې دا دوه څيزونه ډير روښانه دي چې يو ځل درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو چې درسول الله رنګ دلوږې په وجه تغير شوی وو نو دی فورا پوهه شو او ديهودي اوښ يې اوبه كولو ده به اوښ ته يوه بوكه اوبه په يوه كجوره اچولې كله چې يو څو كجورې ورسره جمع شوې نو هغه يې درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضرې كړې (الاصابه)

دهجرت په ۵۱ كال كې كله چې دده عمر ۷۵ كلونه وو په مدينه كې وفات شو او دروايتونو تعداد يې ۴۷ دی.

****************

## ۲۱_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الصَّلاَةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**په رسول الله باندې د درود وئيلو فضيلت**

**۴۸۱_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ بُنْدَارٌ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ ابْنُ عَثْمَةَ. حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ يَعْقُوبَ الزَّمْعِيُّ. حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ كَيْسَانَ. أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ شَدَّادٍ أَخْبَرَهُ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ. أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " أَوْلَى النَّاسِ بِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَكْثَرُهُمْ عَلَيَّ صَلاَةً " قَالَ أَبُو**

عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ قَالَ: " مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ بِهَا عَشْرًا وَكَتَبَ لَهُ بِهَا عَشْرَ حَسَنَاتٍ ".([1])

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقيامت په ورځ به ماته په ټولو خلقو کي زيات نزدي هغه څوك وي چاچه په ما باندي ځومره زيات درود ويلي وي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، رسول الله نه دا هم مروي دي چي فرمائيلي دي څوك چي په ما باندي يو ځل درود اووائي الله تعالي په ده باندي ددي په بدل کي لس رحمتونه نازلوي او دده دپاره لس نيکئ ليکلي کيږي (همداحديث وروسته هم راروان دي).

**لغات**: صلي: دنصر نه دعا کول، درود ويل. ددي لفظ څلور معاني دي، دعا، مونځ، تسبيح، رحمت، جمع يي صلوات راځي.

**تشريح**: د درود فضائل په قران او سنت کي په کثرت سره وارد دي الله تعالي فرمائي:

قَالَ اللهُ تَعَالَى: ﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيماً﴾ [الأحزاب: ٥٦].

الله تعالي فرمائي: بيشکه الله اودهغه فرشتي په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندي درود وائي اى مومنانو تاسو هم په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندى درود اوسلام اووائي.

دصلاة لفظ يو ځومعني دي که ددي نسبت فرشتو ته اوشي نو دعا ورنه مراد وي مطلب دا شو چي فرشتو هر وخت درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره دعا غوښتله نو په ايت کي مسلمانانو ته خطاب دى چي تاسو همورباندي درود اووائي لکه چي الله تعاليورباندي خاص رحمتونه نازل کړي دي دامت محمديه دطرف نه چي څوك درود وائي دا دالله تعالي داحساناتو بدله نشي کيدى کوم چي دهغه په امت باندي دي دا يوه فقيرانه هديه ده کومه چي په شان درسالت کي پيش کولى شي.

ابن همام وائي دلته دامر صيغه استعمال شوي ده کومه چي تکرار نه قبلوي په همدي وجه احناف او امام مالك وائي که په ژوند کي څوك صرف يو ځل درود هم اووائي نو په دي ايت به عمل راشي ليکن دا خبره ده چي هر وخت درسول الله نوم ياديږي نو هر ځل به ورباندي درود ونيل پکار وي (قرطبي).

علامه سخاوي دعامر بن ربيعه نه دا ارشاد نبوي نقل کړى دى چي څوك په ماباندي يوځل

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٢٢)

درود واني الله تعالي ورباندي لس خل درود واني اوس ستاسو اختيار دی چي کم درود واني او که زيات دا مضمون په متعددو رواياتو کي دمتعددو صحابه کرامو نه منقول دی.

سوال. دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما په روايت کي راځي چي څوك رسول الله صلي الله عليه وسلم يو خل درود اووائي نو الله تعالي او دهغه فرشتي په هغه باندي اويا پيري درود يعني رحمتونه ليږي او په دي حديث کي خو لس پيري راغلي دي.

جواب: دالله تعالي رحمت په دي امت باندي ورځ په ورځ زياتيږي په کومو روايتونو کي چي دلسو وعده ده هغه اولنئ وعده وه بيا چي کله يي اضافه اوشوه نو داويا وعده اوشوه.

دويم جواب: بعضي علماؤ دا په اشخاصو او حالاتو او وختونو پوري مخصوص کړي دي.

دريم جواب: داويا وعدي والا حديث تعلق دجمعي دورځو سره دی او دلسو والا تعلق دعامو ورځو سره دی بعضي روايتونو نه معلوميږي چي دجمعي په ورځ دنيکئ ثواب دنورو ورځو په نسبت اويا چنده زيات وي.

## دجمعي په ورځ د درود وئيلو فضيلت وجه

حافظ ابن قيم ليکلي دي دجمعي په ورځ د درود وئيلو زيات فضيلت په دي وجه دی چي دجمعي ورځ د تمامو ورځو سرداره ده او بل طرف ته رسول الله صلي الله عليه وسلم هم دتمام مخلوق سردار دی. انس رضي الله عنه فرمائي دجمعي په ورځ او دجمعي په شپه به درود زيات واني که څوك داسي کوي نو زه دهغه دپاره شهادت ورکوم او دقيامت په ورځ به يي شفاعت کوم.

****************

٤٨٥ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ بِهَا عَشْرًا» قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَعَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، وَعَمَّارٍ، وَأَبِي طَلْحَةَ، وَأَنَسٍ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرُوِيَ عَنْ سفيان الثوري وَغَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: صَلَاةُ الرَّبِّ الرَّحْمَةُ وَصَلَاةُ الْمَلَائِكَةِ الِاسْتِغْفَارُ. [1]

---

[1] - صحيح مسلم في الصلاة ١٧ (٤٠٨) . سنن ابي داود في الصلاة ٣٦١ (١٥٣٠) . سنن النسائي في السهو ٥٥ (١٢٩٧) . (تحفة الأشراف: ١٣٩٧٤) . مسند احمد (٢ في ٣٧٢، ٣٧٥، ٤٨٥) . سنن الدارمي في الرقاق ٥٨ (٢٨١٤)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي په ما باندي يو ځل درود اووائي الله تعالي ددي په بدل کي په هغه باندي لس پيري رحمت نازلوي.

امام ترمذي واني دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د عبدالرحمن بن عوف. عامر بن ربيعه. عمار. ابوطلحه. انس. او ابي بن کعب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. دسفيان ثوري او نورو بعضي اهل علمو نه مروي دي چي درب دصلاة نه مراد دهغه رحمت دي او دفرشتو دصلاة نه مراد استغفار دي.

****************

٤٨٦ـ حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ سُلَيْمَانُ بْنُ سَلْمٍ الْمَصَاحِفِيُّ الْبَلْخِيُّ، أَخْبَرَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ، عَنْ أَبِي قُرَّةَ الأَسَدِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: " إِنَّ الدُّعَاءَ مَوْقُوفٌ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ لاَ يَصْعَدُ مِنْهُ شَيْءٌ حَتَّى تُصَلِّيَ عَلَى نَبِيِّكَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ".[1]

**ترجمه** : دعمرفاروق رضي الله عنه نه مروي دي دعا دزمکي او اسمان مينځ کي ولاړه وي او په دي کي يوه ذره هم هغه وخته پوري پورته نه خيژي ترڅو چي تاسو پخپل رسول صلي الله عليه وسلم باندي درود ونيلي نه وي.

**تشريح**: بعضي علماؤ ونيلي دي چي دصلاة نه مراد دعا ده او ددعا مسنونه طريقه داده چي اول دي هم دالله تعالي ثنا بيان کړي شي او په اخر کي دي هم بيان کړي ، دفضاله رضي الله عنه قول دي يو کس په داسي وخت کي راغي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم موجود وو او مونځ يي اوکړو او بيايي داخري قاعدي نه پس اوونيل اي پروردګاره ماته بخشش اوکړي او رحم راباندي اوکړي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل دي دعا کونکي خو دعجلت نه کار واخستلو ، کله چي مونځ اوکړي او په اخره قعده کي کيني نو اول به هغه اوصاف بيان کړي او دالله تعالي حمد به اووائي دکومو اوصافو چي الله تعالي مستحق دي بيابه په ما درود اووائي او بيا دعا کوه.

دراوي بيان دي چي بيا يو بل کس راغي او مونځ يي اوکړو او په قعده کي يي دالله تعالي حمد او په رسول الله صلي الله عليه وسلم درود اولوستلو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي مونځ کونکيه دعا کوه ستا دعا به ضرور قبليږي (رواه الترمذي وابو داود) او

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٤٢٩)

نسائي هم ددي پشان روايت دابن مسعود رضي الله عنه نه نقل كړي دي فرمائيل يي چي ما مونځ كولو او رسول الله صلي الله عليه وسلم او ابوبكر اوعمر رضي الله عنهما هم د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وو كله چي زه كيناستم نو ما دالله تعالي ثنا شروع كړه بيا مي د رسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره دعا اوكړه او بيامي دخان دپاره دعا اوغوښتله رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل غواړه ستا سوال به پوره كيږي او غواړه څه چي غواړي تاته به دركولي كيږي ،رواه الترمذي،

****************

٤٨٧_ حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْقُوبَ، عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: "لَا يَبِعْ فِي سُوقِنَا إِلَّا مَنْ قَدْ تَفَقَّهَ فِي الدِّينِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. عَبَّاسٌ هُوَ ابْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: يعقوب وهو مولى الحرقة. والعلاء هو من التابعين. سَمِعَ مِنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَغَيْرِهِ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ يَعْقُوبَ وَالِدُ الْعَلَاءِ، وَهُوَ أَيْضًا مِنَ التَّابِعِينَ، سَمِعَ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَيَعْقُوبَ جَدُّ الْعَلَاءِ هُوَ مِنْ كِبَارِ التَّابِعِينَ أَيْضًا، قَدْ أَدْرَكَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ وَرَوَى عَنْهُ. [1]

**ترجمه** دامير المؤمنين عمرفاروق بيان دي هيڅوك دي زمونږ په بازارونو كي هغه وخته پوري اخستل خرڅول نه كوي ترڅو چي هغه په دين كي ښه پوهه حاصل كړي نه وي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، او عباس د عبد العظيم ځوي دی، امام ترمذي وائي يعقوب د حرقة مولي دي، او علاء يو جليل القدر تابعي دي،چي د انس بن مالك نه يي اوريدل كړي دي، علاء بن عبدالرحمن بن يعقوب پلار او ځوي او نيكه دري واړه تابعين دي دعلاء نيكه او يعقوب په مشرانو تابعينو كي دي هغوی عمر رضي الله عنه ليدلي وو او روايت يي هم ورنه نقل كړي دي

**تخريج** : تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠٦٥٨)

****************

[1] صحيح مسلم في الجمعة ٥ (٨٥٣) . (تحفة الأشراف : ١٣٨٨٢) . مسند احمد (٢ في ٢٠١، ١٢٨، ٢٥١، ٢٨٦، ٥٠١، ٥٢٠) .
وانظر أيضا ما يأتي برقم ٢٩١

# كتاب الجمعة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## ١ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ يَوْمِ الْجُمُعَةِ

### دجمعي دورځي دفضيلت بيان

٤٨٨ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "خَيْرُ يَوْمٍ طَلَعَتْ فِيهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، فِيهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيهِ أُدْخِلَ الْجَنَّةَ، وَفِيهِ أُخْرِجَ مِنْهَا، وَلاَ تَقُومُ السَّاعَةُ إِلاَّ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ" قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي لُبَابَةَ، وَسَلْمَانَ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَسَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، وَأَوْسِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه**: ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي په هغه ورځو کي چي نمر پکي راخيژي بهترينه ورځ دجمعی ده، په دی ورځ ادم عليه السلام پيدا شوی دی ، په دی ورځ جنت ته ننوتی دی او په دی ورځ جنت نه ويستی شوی دی (يعني زمکی ته راکوز شوی دی). او قيامت به نه قائميږي مګر دجمعي په ورځ.

امام ترمذي وايي په دي باب کي دابو لبابه، سلمان، ابو ذر، سعد بن عباده، او اوس بن اوس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، اود ابو هريره حديث حسن صحيح دی.

**لغات:** طلعت: دطلوع نه ماخوذ دي معني ختل دي.

**تشريح**: په پورتني روايت کي دجمعي ورځ دتمامو ورځو سرداره ګڼرلی شي ده او په همدي ورځ ادم عليه السلام پيدا شوی دی ګويا کي په دي ورځ دانساني نسل ابتداء شوي ده. علامه طيبي وائي چي بعضي خلقو دعرفي ورځ افضله ګڼرلي ده تطبيق داسي کيدی شي چي په هفته کي بهترينه ورځ دجمعي ده او په کال کي بهترينه ورځ دعرفي ده.

اخرج منها: يعني په همدي ورځ يي دجنت نه وويستلو.

سوال: دجنت نه وتل دکوم فضيلت خبره ده؟

جواب: دجنت نه وتل خو سبب جوړ شو دتمامو انبياؤ او اولياؤ دموجود کيدو

---

١ _ صحيح مسلم في الجمعة ٥ (٨٥٤) . (تحفة الأشراف : ١٣٨٨٤) . مسند احمد (٢ في ٢٠١، ١٢٨، ٢٥١، ٢٨٦، ٥٠١، ٥٤٠) .

وانظر أيضا ما يأتي برقم ٤٩١

مسئله: ښار که هر څومره لوي وي خو دجمعي مونځ به يکي صرف يو ځل کيږي ديو نه زيات کول جائز نه دي، دا قول دامام ابو حنيفه او امام احمد رحمة الله عليهما دي، طحاوي ليکلي دي چي همدا قول دامام مالك هم دي او دا دامام شافعي قديم قول هم دي صاحب داملا دامام ابو يوسف قول نقل کړي دي چي په يو ښار کي په دوه ځايونو کي دجمعي مونځ جائز نه دي مګر که دښار په مينځ کي يو لوي درياب بهيږي دکوم په وجه چي ښار په دوه حصو تقسيم شوي وي نو پداسي صورت کي په دوه ځايونو کي دجمعي مونځ کيدي شي همدا وجه ده چي امام ابو يوسف به فرمائيل چي پول دي مات کړي شي ددي دپاره چي په دواړه ځايونو کي دجمعي مونځ جائز شي که پول مات شوي نه وي او ښار هم يو وي نو په کوم ځاي کي چي جمعه مخکي ادا کړي شي هغه به درسته وي او چي وروسته په دويم ځاي کي ادا کيږي او يا په دواړه ځايونو کي په يو وخت کي ادا کړي شي په دواړو ځايونو کي به دجمعي مونځ فاسد وي.

دامام ابو يوسف دويم قول په يو روايت کي دا هم راغلي دي چي په لوي ښار کي په دوه ځايونو کي دجمعي مونځ کيدي شي او ددينه په زياتو مساجدو کي نشي کيدي.

دامام احمد بيان دي که چري ښار ډير لوي وي لکه بغداد او ابادي هم زياته وي او ضرورت هم موجود وي نو په دوه ځايونو کي دجمعي مونځ کيدي شي او که ضرورت نه وي نو بيا دي صرف په يو ځاي کي ادا کړي شي او تعدد ناجائز دي ، په بعضو روايتونو کي راغلي دي چي بغداد په اصل کي ښار نه وو بلکه جدا جدا او متفرق کلي وو ليکن بيا ابادي دومره زياته شوه چي ټولي اباديانی يو دبل سره پيوست شوي او يو ښار ورنه جوړ شو ليکن جمعه به حسب سابق په متعددو ځايونو کي کيدله.

دامام شافعي په متعددو اقوالو کي راجح قول دادي که ابادي دومره زياته شي چي ټول خلق يو ځاي ته راجمع شي او مونځ کول ورته ګران شي نو په دوه ځايونو کي بلکه حسب ضرورت په متعددو مساجدو کي ددوئ دپاره دجمعي مونځ جائز دي.

دمحمد بن حسن شيباني قول دي چي تعدد دجمعي مطلقا جائز دي برابره خبره ده چي ښار لوي وي او که وړوکي امام محمد دي قول نسبت امام ابو حنيفه ته کړي دي، سرخسي قول دي چي دامام ابو حنيفه رحمة الله عليه صحيح قول دادي چي په دوه مسجدونو کي بلکه په متعددو مسجدونو کي اقامت دجمعي جائز دي ابن همام ليکلي دي زمونږ په نزد مفتي به قول همدا دي ځکه چي دجمعي داقامت دپاره ښار کيدل شرط دي او دښار هريو ګوټ ښار وي لهذا په متعددو ګوټونو او مختلفو مسجدونو کي اقامت دجمعي جائز دي.

په يو ښار کې په متعددو مقاماتو کې دجمعې داقامت ممانعت پدې وجه دی چې دجمعې لفظ دا تقاضا کوي چې دښار تمام جماعتونه دې په يو ځاى کې جمع شي او دجمعې مونځ دې ادا کړي او دجمعې وجه دتسميه هم داده.

مروي دي چې اثرم امام احمد ته اووئيل ايا په يو ښار کې په دوه ځايونو کې دجمعې مونځ کېدې شي؟ امام احمد اووئيل ماته معلومه نه ده چې چا داسې کړي وي. دابن المنذر قول دې پدې خبره دتمامو اهل علمو اتفاق دی چې درسول الله په مبارکه زمانه کې او دخلفاء راشدينو په دور کې هميشه جمعه په مسجد نبوي کې ادا کېدله. دجمعې په ورځ تمام مساجد پرېخودل او په يو مسجد کې دجمعې د ادا کولونه معلومېږي چې د جمعې حکم دنورو جماعتنو دحکم نه مختلف دی دجمعې مونځ به صرف په يو ځاى کې ادا کېږي او باقي مونځونه خو په جداجدا مساجدو کې ادا کېدې شي، او دتعدد قول صرف دعطاء دی بل هيچا پدې قول نه دی کړی.

خطيب په تاريخ بغداد کې ليکلي دي چې په يو ښار کې په قديم مسجد کې دجمعې کېدو باوجود په نورو ځايونو کې هم دجمعې اقامت دمعتصم په زمانه کې په ٢٨٠ هجري کې کېدو معتصم په سلطاني قصر کې دجمعې مونځ اوکړو ځکه چې په عام هجوم کې به خلفاء دشريکېدو نه وېرېدل ليکن دجمعې دپاره کوم بل جومات مقرر کړې شوي نه وو. بيا دمکتفي په زمانه کې دجمعې دپاره يو دويم جومات هم تعمير کړې شو او خلق به په هغې کې هم جمع کېدل.

ابن عساکر په تاريخ دمشق کې ليکلي دي چې عمر رضي الله عنه ابو موسي اشعري او عمرو بن وقاص او سعد بن ابي وقاص رضي الله عنهم ته وليکل چې پخپل ښار کې يو جامع مسجد تعمير کړئ چې جمعه پکې قائمېږي او دمختلفو قبائلو دپاره جدا جدا مساجد جوړ کړئ (تاريخ دمشق په حواله دمظهري)

****************

## ٢ـ باب مَا جَاءَ فِي السَّاعَةِ الَّتِي تُرْجَى فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ

**دجمعې په ورځ دهغه ساعت بيان په کوم کې چې د دعا دقبوليت اميد کېدې شي**

٤٨٩ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الصَّبَّاحِ الْهَاشِمِيُّ الْبَصْرِيُّ الْعَطَّارُ. حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ الْحَنَفِيُّ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي حُمَيْدٍ. حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ وَرْدَانَ. عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ قَالَ: " الْتَمِسُوا السَّاعَةَ الَّتِي تُرْجَى فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ بَعْدَ الْعَصْرِ إِلَى غَيْبُوبَةِ الشَّمْسِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ أَنَسٍ.

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ. وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبِي حُمَيْدٍ يُضَعَّفُ ضَعَّفَهُ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. وَيُقَالُ لَهُ: حَمَّادُ بْنُ أَبِي حُمَيْدٍ. وَيُقَالُ: هُوَ أَبُو إِبْرَاهِيمَ الأَنْصَارِيُّ وَهُوَ مُنْكَرُ الحَدِيثِ، وَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَنَّ السَّاعَةَ الَّتِي تُرْجَى فِيهَا بَعْدَ العَصْرِ إِلَى أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ. وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ. وَإِسْحَاق. وقَالَ أَحْمَدُ: أَكْثَرُ الأَحَادِيثِ فِي السَّاعَةِ الَّتِي تُرْجَى فِيهَا إِجَابَةُ الدَّعْوَةِ أَنَّهَا بَعْدَ صَلاَةِ العَصْرِ وَتُرْجَى بَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ.
([1])

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دجمعي په ورځ هغه ساعت په كوم كي چي ددعا دقبوليت اميد كيدي شي دمازيگر نه واخله تر دنمر پريوتو پوري وخت كي تلاش كړئ.

امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند غريب دي او دا حديث دانس رضي الله عنه نه هم په يو ځو سندونو مروي دي . محمد بن ابي حميد ضعيف دي بعضي اهل علمو دحفظ په اعتبار دهغه تضعيف كړي دي او ده ته حماد بن ابي حميد هم وئيلي شي دارنگي وئيلي كيږي چي همدي ابو ابراهيم انصاري دي او دا منكر الحديث راوي دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو خيال دي چي په كوم ساعت كي د دعا دقبوليت اميد كيږي دا وخت دمازيگر نه پس دنمر پريوتو پوري درمياني وخت دي او همدا د اسحاق بن راهويه قول هم دي. امام احمد بن حنبل وائي دكوم ساعت متعلق چي ددعا دقبوليت اميد دي اكثر احاديث داسي راغلي دي چي داوخت دمازيگر نه پس دنمر پريوتو پوري دوخت په مينځ كي دي او همدارنگي دنمر پريوتو نه پس هم ددي وخت دكيدو اميد كيدي شي.

**تشريح** : ددې وخت متعلق مختلفو احاديثو كي مختلف وختونه راغلي دي په دې وجه په دي كي دعالمانو هم ډير اقوال دي دامام ابو حنيفه او امام احمد په نزد دا وخت دجمعې دورځې دمازيگر مانځه نه ترمابنام پورې دی . ددي وختو تفصيل د علماؤ داقوالو په رنړا كي په مابعد صفحاتو كي راروان دی.

تفسير مظهري په دي مسئله متعدد احاديث را جمع كړي دي او اعلي ترين تحقيق يي كړی دی او د مسئلي حق يي ادا كړی دی.

**دجمعي دبهترين ساعت اودجمعي دسنتو نو متعلق احاديث**

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦٩١)

دجمعي په ورځ غسل کول سنت دي ، دامام مالك او داود ظاهري دجمعي غسل واجب دي ،
دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيلي دي دجمعي په ورځ په هر بالغ باندي غسل کول واجب دي (متفق عليه)
دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) اوفرمائيل څوك چي جمعي مونځ ته راځي نو دده دپاره غسل کول پکار دي (متفق عليه).
دا حديث مشهور بلکه متواتر دي ابو القاسم بن منده دنافع نه ددي دنقل کونکو شمير اوکړو نو د دري سوو نه زيات کسان يي اوشميرل او دنافع نه علاوه دارك دابن عمر نه ددي نقل کونکي څوارلس صحابه اوشميرل شول.
ددي جواب دادي چي په مذکوره حديث کي امر دوجوب دپاره نه دي داستحباب دپاره دي او دواجب لفظ نه دلته مراد هغه واجب دي کوم چي په طريقه دسنت وي يعني لازم خکه چي په بل حديث کي ورسره دداسي امورو ذکر هم شوي دي کوم چي دهيچا په نزد واجب نه دي.
امام احمد دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم)اوفرمائيل دجمعي په ورځ په هر بالغ باندي غسل کول ، مسواك وهل، او هره خوشبو چي ميسره وي دهغي لګول لازم دي.
په صحيحينو کي دي چي ام المومنين عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل خلقو به خپل کاروبارونه (زميندارې باغباني اوبه خور وغيره) کول او دکار نه پس به په همدغه هينت کي دمونځ دپاره راتلل دکوم په وجه چي به د بد بوئ په وجه خلقو ته تکليف وو او دجامو نه به يي دخولو بدبويي خوريدله، نو پدي وجه دوئ ته اووئيلي شول که چري تاسو غسل کړي وي نو بهتره به وه
دجمعي دغسل دعدم وجوب دليل هغه حديث دي کوم چي دقتاده په روايت سره حسن مرسل منقول دي او دابو هريره نه هم مرفوعا مروي دي چي څوك په ښه شان سره اودس اوکړي او دجمعي دمونځ دپاره راشي او خطبه واوري نو دده ددي جمعي نه دبلي جمعي پوري ګناهونه معاف کيږي او دهغتي نه د دري ورځو زياتي هم (رواه مسلم).
دا خبره دشك قابل ده چي دغسل دعدم وجوب احاديث دوجوب داحاديثو نه کمزوري دي ليکن دصحابه کرامو تعامل او اجماع په عدم وجوب دلالت کوي چي دغسل دوجوب احاديث يامنسوخ دي او يا قابل دتاويل دي
بخاري او مسلم دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت بيان کړي دي چي عمر فاروق رضي الله عنه دجمعي په ورځ د خطبي ورکولو دپاره اودريدلي وو چي په اولنو مهاجرينو کي يو کس مسجد ته داخل شو اميرالمومنين اوفرمائيل دا کوم ساعت دي نو راتلونکي جواب ورکړو زه په کار کي مشغول وم خو چي څنګه مي د اذان اواز واوريدو نو کورته هم لاړم بس دومره

تاخير مي اوكړو چي اودس پکي اوشو او راروان شوم عمر رضي الله عنه اوفرمائيل او اودس هم «يعني غسل دي اونكړل او صرف اودس دي اوكړو دا دويمه غلطي ده» باوجود ددي چي ته خبردار يي چي رسول الله «صلي الله عليه وسلم» به دجمعي دمونځ دپاره دغسل كولو حكم كولو.

دابن جوزي قول دي چي دا كس عثمان رضي الله عنه وو چي غسل يي نه وو كړي ليكن نه عمر رضي الله عنه دده كار ممنوع اوګنړلو او نه بل چا ددينه انكار وكړو نو معلومه شوه چي غسل سنت دي واجب نه دي. هغه تمام احاديث په كومو چي دغسل دوجوب دپاره استدلال كيږي قابل دتاويل دي منسوخ نه دي كه چرې منسوخ وي نو عمر رضي الله عنه به دا نه فرمائيل چي رسول الله «صلي الله عليه وسلم» به دغسل كولو حكم وركولو ددينه ثابته شوه چي غسل مستحب او مسنون دي او امر په استحباب محمول دي.

مسئله: دامام ابو حنيفه په نزد دجمعي دمونځ نه مخكي څلور ركعاتونه او دجمعي نه پس څلور ركعاتونه كول سنت دي امام ابو يوسف شپږ ركعاتونه سنت ګنړلي دي يعني دجمعي دمونځ نه پس ، او په بعضي روايتونو كي راغلي دي چي دامام محمد قول دامام ابو يوسف دقول سره موافق دي چي دجمعي دمونځ نه مخكي دڅلورو ركعاتونو كولو كوم دليل نشته علاوه ددينه چي رسول الله «صلي الله عليه وسلم» به دزوال نه پس دماسپخين دمونځ نه مخكي عموما څلور ركعتونه كول او فرمائيل به يي چي پدي وخت كي داسمانونو دروازي پرانيستلي كيږي ، زه غواړم چي زما كوم نيك عمل پدي وخت كي اسمان ته اوخيژولي «روا اه بن ماجه عن ابي يوسف باسناد حسن» لهذا په ماسپخن باندي په قياس كولو سره امام ابو حنيفه دجمعي نه مخكي هم څلور ركعاتونه سنت ګرخولي دي خكه چي دا خبره منلي شوي ده چي رسول الله «صلي الله عليه وسلم» دماسپخين نه مخكي څلور ركعاته او دسحر دمونځ نه مخكي دوه ركعاتونه هيڅ كله نه ترك كول «رواه البخاري وابو داود والنسائي عن عائشه».

باتي شو دجمعي دمونځ نه پس دوه ركعتونه نود ابن عمر په روايت كي راغلي دي چي رسول الله به دجمعي دمونځ نه پس هيڅ قسم مونځ نه كولو «رواه البخاري ومسلم وابو داود والنسائي».

امام ابوداود په خپل سنن كي روايت نقل كړي دي چي ابن عمر به كله په مكه كي وو نو دجمعي دمونځ نه پس به يي څلور ركعتونه كول ليكن كله چي به په مدينه كي وو نو دوه ركعتونه به يي كول نو كله چي ورنه ددي دوجي تپوس وكړي شو نو ويي فرمائيل چي رسول الله «صلي الله عليه وسلم» به هم داسي كول.

دابن همام قول دي ظاهره داده چي سنت شپږ رکعته دي ليکن په مکه کي چي به رسول الله (صلي الله عليه وسلم) څه کول هغه تول ابن عمر ته معلوم نه وو . مګر کله چي به يي سفر کولو نو په مسجد کي به يي سنت ادا کول اوابن عمر به ورنه خبريدو
امام ابوحنيفه او امام ابويوسف دجمعي نه پس دشپږو رکعتونو قائل دي ځکه چي ابن مسعود رضي الله عنه به هم داسي کول . ترمذي په خپل جامع کي دابن مسعود رضي الله عنه په همدي باندي تعامل ذکر کړي دي
دابن مبارك اوثوري هم دا قول دي ، مسلم د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل کړي دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيل دي په تاسو کي چي څوك دجمعي مونځ ادا کړي نو دجمعي دادا کولو نه پس دي څلور رکعتونه وکړي
مسئله:ابوداود او بغوي د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل کړي دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيل دي من اغتسل يوم الجمعة واستن ومس من طيب ان كان عنده ولبس من احسن ثيابه ثم خرج حتى يأتي المسجد فلم يتخط رقاب الناس ثم ركع ما شاء الله ان يركع فانصت إذا خرج الامام كانت كفارة لما بينها وبين الجمعة التي قبلها
چا چي دجمعي په ورځ غسل وکړل او مسواك ي ووهلو اوخوشبو يي هم استعمال کړه خو په دي شرط چي ورته ميسره وي اوخپلي پاکي اوښي کپړي يي واغوستلي اوبيا روان شو تردي چي مسجد ته ورسيدو اوبيا يي دخلقو په څټونو اوړيدل ونکړل او بيا يي مونځ هم وکړو څومره چي يي خوښه وي اود خطبي داوريدو دپاره خاموشي هم وکړه نو دده داعمل ديوي جمعي نه دبلي جمعي پوري دده دګناهونو کفاره شوه.
بغوي ليکلي دي چي ابوهريره رضي الله عنه دا هم فرمائيلي دي اوددري نورو ورځو ګناهونه هم ځکه چي الله تعالي فرمائيلي دي "من جاء بالحسنة فله عشر أمثالها"
بخاري هم دا روايت دسلمان رضي الله عنه نه نقل کړي دي چي ليکن ددري ورځو لفظ يي نه دي ذکر کړي
بغوي د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل کړي دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيل دي کله چي دجمعي ورځ راشي نودمسجد په هره دروازه کي فرښتي ودريږي او مسجد ته دداخليدونکو نومونه په نمبر نمبر سره ليکي . بيا چي کله امام را اوځي نو کاغذ ونغښتلي شي اوخطبه بيانيدل شروع شي ، دمونځ دپاره دتولو نه مخکي راتلونکي داسي دي لکه داوبښ قرباني کونکي . دده نه پس راتلونکي داسي دي لکه دغوا قرباني کونکي . دده نه پس راتلونکي داسي دي لکه دګډ قرباني کونکي . تردي چي رسول الله دچرګي ذکر هم وکړو . ددي هم معني روايت په صحيحينو کي هم راغلي دي.

مسلم د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل کړي دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيل دي په هغه تمامو ورځو کي چي نمر پکي راخيژي بهتره ورځ دجمعي ده . په همدي ورځ ادم عليه السلام پيدا کړي شوي دي اوپه همدي ورځ جنت ته داخل کړي شوي وو اوپه همدي ورځ دجنت نه وبښکلي شوي وو اوپه همدي ورځ به قيامت قائميږي(رواه مسلم).

د ابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيل دي چي دجمعي په ورځ يو ساعت داسي دي چي که کوم مسلمان ددي موافق دخير دعا اوغواړي نو الله تعالي يي ضرور قبلوي (بخاري ومسلم) ليکن دمسلم په روايت کي دومره اضافه ده چي هغه ساعت خفيف(يعني مختصر وي).

دبخاري او مسلم په دويم روايت کي ددي الفاظو اضافه ده چي پدغه ساعت کي کوم مسلمان ولاړ وي او مونځ کوي او دالله تعالي نه دخير طلب کوي نو الله تعالي دده دعا قبلوي ليکن دمسلم په روايت کي دومره اضافه ده چي هغه ساعت خفيف(يعني مختصر وي)

دابو موسي اشعري رضي الله عنه نه مروي دي چي پخپله مي درسول الله (صلي الله عليه وسلم) نه اوريدلي دي چي دجمعي دساعت متعلق يي فرمائيل چي دغه ساعت دامام دناستي او دمونځ دختمولو په مينځ کي دي (رواه مسلم).

د ابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي زه طور ته لاړم او دکعب اخبار سره مي ملاقات اوشو زه چي ورسره کيناستم نو ماته يي دتورات څه خبري بيان کړي او ما ورته درسول الله (صلي الله عليه وسلم) څه احاديث بيان کړل کوم احاديث چي ما هغه ته بيان کړي وو په هغو کي يو دا هم وو چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيل دي په کومو ورځو کي چي نمر راخيژي په هغو ټولو کي دجمعي ورځ افضله ده . په همدي ورځ ادم عليه السلام پيدا کړي شوي دي اوپه همدي ورځ جنت ته داخل کړي شوي وو اوپه همدي ورځ دجنت نه وبښکلي شوي وو اوپه همدي ورځ به قيامت قائميږي دجن او انس نه علاوه هر زنده سر دجمعي په ورځ د طلوع فجر نه پس دنمر پريوتو پوري دقيامت دويري په وجه چغي وهي او خاص دجمعي په ورځ کي يو ساعت داسي دي که چري پدي کي کوم مسلمان بنده په مونځ کي دالله تعالي نه کومه دعا اوغواړي نو الله تعالي يي قبلوي . کعب اخبار اوونيل ايا دا ساعت هر کال په يوه ورځ کي وي ؟ ما اوونيل نه بلکه هره جمعه وي ددي په اوريدو سره کعب تورات اولوستلو او بيايي اوونيل رسول الله رښتيا ونيلي دي

د ابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي بيا زه دعبدالله بن سلام سره روان شوم او پدغه مجلس کي مي چي دکعب اخبار سره کومي خبري شوي وي هغه مي بيان کړي او کوم حديث چي مي ورته بيان کړي وو هغه مي ورته هم بيان کړو نو عبدالله بن سلام اوونيل کعب غلطه خبره کړيده ليکن کله چي ما اوونيل چي کعب دتورات لوستلو نه پس داسي ونيلي دي چي

دهري جمعي په ورځ دا ساعت وي نو عبدالله اوونيل كعب صحيح ونيلي دي ايا تاته معلومه ده چي دغه ساعت كوم يو دي؟ ابوهريره اوونيل بخل مه كوه راته يي بيان كړه عبدالله بن سلام اوونيل دا دجمعي اخري ساعت دي دابو هريره رضي الله عنه بيان دي دجمعي اخري ساعت څنګه وي رسول الله خو فرمائيلي دي چي پدي ساعت كي كوم مسلمان بنده په مونځ كي دعا اوغواړي . الخ . اوپدي ساعت كي خو مونځ نه كيږي عبدالله بن سلام اوونيل ايا رسول الله دا نه دي فرمائيلي دي چي څوك دمونځ په انتظار كي ناست وي نو هغه دمونځ كولو پوري دمونځ په حكم كي دي ما اوونيل يقينا يي فرمائيلي وو نو عبدالله اوونيل بس همدا مراد دي (رواه مالك وابو داود والترمذي)

داوس بن اوس نه مروي دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيل دي چي ستاسو په بهترينو ورځو كي دجمعي ورځ هم ده په همدي ورځ ادم عليه السلام پيدا شوي دي او په همدي ورځ وفات شوي دي او په همدي ورځ به شپيلۍ پوكلي شي او په همدي ورځ به بيهوشي راځي نو پدي وجه په ما باندي درود زيات وائي او ستاسو درود به ماته پيش كولي شي صحابه كرامو عرض اوكړو اي دالله رسوله زمونږ درود تاته څنګه پيش كولي شي ستا جسم خو به پناه شوي وي نو وبي فرمائيل په زمكه باندي دانبياؤ اجسام خوړل حرام كړي شوي دي (رواه ابو داود والنسائي وابن ماجه والدارمي والبيهقي)

ابن المنذر دابو لبابه په سند سره روايت بيان كړي دي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمائيل دي دجمعي ورځ په ټولو ورځو سرداره ده او دالله تعالي په نزد په تمامو ورځو كي زيات عظمت والاده او دلوي او واړه اختر نه يي هم عزمت زيات دي ځكه چي پدي كي پنځه خصوصيات دي په همدي ورځ ادم عليه السلام پيدا كړي شوي دي او په همدي رځ زمكي ته راكوز كړي شوي دي او په همدي ورځ وفات كړي شوي دي پدي كي يو داسي ساعت دي كه مومن بنده پدي كي دالله تعالي نه څه اوغواړي نو الله تعالي يي ورته وركوي خو پدي شرط چي ده حرام نه وي غوښتلي. اوپه همدي ورځ به قيامت قائميږي . هره مقربه فرشته اسمان او زمكه هواګاني او غرونه اوسمندر دجمعي په ورځ ويريږي (ځكه چي دجمعي په ورځ به قيامت قائميږي) رواه ابن ماجه

دسعد بن معاذ رضي الله نه په سند سره امام احمد روايت بيان كړي دي چي يو انصاري په دربار رسالت كي حاضر شو او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله دجمعي په ورځ كومي كومي فائدي دي مونږ ورته خبر كړه نو وبي فرمائيل پدي كي پنځه خصوصيات دي ...الحديث

د ابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي عرض اوكړي شو چي جمعي ته جمعه په څه وجه وئيلي شي نو وبي فرمائيل ستاسو دپلار ادم عليه السلام خمير په همدي ورځ اوار كړي شوي وو او په همدي ورځ به خلق بيهوشه كيږي او په همدي ورځ به مړي دقبرونو نه پورته كولي

شي او په همدي ورځ به نيول کيږي ددي په اخري دري ساعتونو کي يو ساعت داسي دي چي که څوك پدي کي دالله تعالي نه دعا وغواړي نو قبلوي يي «رواه احمد»
دابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله «صلي الله عليه وسلم» فرمائيلي دي دجمعي په ورځ په مابانديي درود زيات وائي ځکه چي دا ورځ مشهوره ده او فرشتي هم پدي ورځ موجودي دي څوك چي په مابانديي درود وائي نو دهغه درود ماته پيش کولي شي ما عرض اوکړو ايا ستاسو دوفات نه پس هم ؟ «ځکه چي ستاسو جسم به خاوري شوي وي» نو ويي فرمائيل په زمکه باندي دانبياؤ دجسمونو خوړل حرام کړي شوي دي دالله نبي ژوندي وي «ابن ماجه»
دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کوم مسلمان چي دجمعي په ورځ ياشپه مړ شي نو الله تعالي دده قبر لره دفتني نه محفوظ ساتي «رواه احمد والترمذي» ترمذي دا حديث غريب ګڼړلي دي چي ددي اسناد متصل نه دي
دانس رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله به فرمائيل دجمعي ورځ روښانه تندي والا ده يعني ممتازه ده او دجمعي شپه ډيره سپينه او پرقيدونکي شپه ده «رواه البيهقي في الدعوات الکبير»
فائده: حافظ ابن حجر په فتح الباري کي دجمعي دمقبول ساعت متعلق دځلويښتو نه زيات احاديث نقل کړي دي په کومو کي چي دحصن حصين مؤلف دمسلم مروي احاديث منتخب کړي دي چي دجمعي دساعت نه هغه ساعت مراد دي کوم چي دخطبي دپاره دامام دراوتلو نه دختميدو پوري وي «رواه ابو موسي»
اکثرو علماؤ دابوهريره رضي الله عنه هغه حديث اختيار کړي دي کوم چي دعبدالله بن سلام په حواله مروي دي يعني د جمعي دورځي اخري ساعت په حديث کي مراد دي
همدا رنګي نسائي وغيره دجابر رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چي دا وخت دمازيګرنه پس په اخري لمحاتو کي اولتوي . بيهقي ليکلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دليلة القدر پشان دا ساعت په معين طور پيژندلي ليکن بيا چي يي څنګه دليلة القدر تعين هير کړو نو همدا رنګي يي دا ساعت هم هير کړو
ابن خزيمه پخپل صحيح کي دابو سعيد خدري رضي الله عنه مروي روايت ذکر کړي دي فرمائيل يي چي مونږ د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه ددي ساعت دتعين په باره کي تپوس اوکړو نو ويي فرمائيل ماته معلوم خو وو خو بيا رانه هير شوي دي لکه چي دليلة القدر تعين رانه هير شوي دي. داثرم په قول په دوه صورتونو کي ديو صورت منل ضروري ګرځيدلي دي يا خو به بعضي احاديثو ته په بعضو نورو دصحت په لحاظ ترجيح ورکولي شي يادي داسي اووئيلي شي چي دجمعي دمخصوص ساعت مقبوليت منتقل کيږي کله يو

وخت ته منتقل شي اوكله بل وخت ته لكه چي دشب قدر دمخصوص قدر منتقل كيږي چي كله درمضان داخري عشري په يو تاريخ كيږي او كله په بل كښي

دابو موسي او عبدالله بن سلام رضي الله عنهما درواياتونو تطبيق داسي كيدي شي چي عبدالله به دجمعي اخري ساعت مقبول ګڼرلي وي او هغه دا د تورات نه نقل كړي دي ځكه چي دموسي عليه السلام په شريعت كي دجمعي مونځ نه وو بني اسرائيلو به دخالي دورځي تعظيم كولو او خاص دخالي ورځ ددوي د عبادت خصوصي ورځ وه . نو بيا چي په كوم كلي يا صحراء كي دجمعي مونځ نه كيږي نو ددغه ځاي داوسيدونكو دپاره به دجمعي اخري ساعت دمقبوليت ساعت وي او چرته اوكله چي جمعه كيږي دهغه ځاي دخلقو دپاره به دمقبوليت ساعت دجمعي دمونځ پشان وي لكه چي دابو موسي اشعري په روايت كي راغلي دي.

دجمعي دمخصوص ساعت دتعين متعلق ددي دوه اقوالو نه علاوه بل هيڅ يو قول قابل داعتماد نه دي.

****************

٤٩٠ـ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ فِي الْجُمُعَةِ سَاعَةً لَا يَسْأَلُ اللَّهَ الْعَبْدُ فِيهَا شَيْئًا إِلَّا آتَاهُ اللَّهُ إِيَّاهُ" قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيَّةُ سَاعَةٍ هِيَ؟ قَالَ: "حِينَ تُقَامُ الصَّلَاةُ إِلَى الِانْصِرَافِ مِنْهَا" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي مُوسَى، وَأَبِي ذَرٍّ، وَسَلْمَانَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، وَأَبِي لُبَابَةَ، وَسَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (١)

**ترجمه** دعمرو بن عوف مزني رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دجمعي په ورځ يو ساعت داسي دي چي بنده پكي دالله تعالي نه هر څه اوغواړي ورته يي وركوي خلقو عرض او كړو اي دالله رسوله دا كوم وخت دي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل دجمعي دمونځ دوخت داخليدو نه واخله دمونځ ختميدو پوري.

امام ترمذي واني دعمرو بن عوف حديث حسن غريب دي او په دي باب كي دابو موسي، ابوذر، سلمان، عبدالله بن سلام، ابو لبابه، سعد بن عباده او ابو امامه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دعوف بن عمرو حديث حسن صحيح دي.

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ٩٩ (١١٣٨) (تحفة الأشراف: ١٠٧٧٣)

## د عمرو بن عوف انصاري رضي الله عنه حالات

نوم عمرو كنيه ابوعبدالله چي داسلام په ابتداء كې مسلمان شوى وو او بيايي ددينه پس مديني ته هجرت هم كړى وو (استيعاب).

كله چي په عزوه تبوك كې سخت قحط وو نو رسول الله ددي دپاره تياري شروع كړو او عمرو بن عوف په دربارنبوت كې حاضر شو او عرض يې اوكړو كه زمونږ دپاره هم څه انتظام اوكړى شي نو مونږ به ددي جهاد نه محروم پاتي نشو غرض داچه ددي دپاره څه انتظام اونه شو ليكن الله تعالى دداسي خلقو په باره كې دا ايت كريمه :

ولا على الذين اذا ما اتوك لتحملهم قلت لا اجد ما احملكم عليه تولوا واعينهم تفيض من الدمع حزنا الا يجدوا ماينفقون (توبه) نازل كړو.

يعني او نه په هغه خلقو الزام شته كرم چي تاته دسورلۍ غوښتلو دپاره راغلل او تا ورته اووئيل زما سره خو هيڅ څيز نشته چي تاسو پري سواره كړم نو ددي وينا په اوريدو سره دغم په وجه دهغوى دسترګو نه اوښكي بهيدلي

وفات: دامير معاويه رضي الله عنه په زمانه كې په دمينه كې وفات شو (استيعاب) دده دمروياتو شمير اوو ته رسيږي.

****************

٤٩١ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَيْرُ يَوْمٍ طَلَعَتْ فِيهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، فِيهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيهِ أُدْخِلَ الْجَنَّةَ، وَفِيهِ أُهْبِطَ مِنْهَا، وَفِيهِ سَاعَةٌ لاَ يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ يُصَلِّي، فَيَسْأَلُ اللَّهَ فِيهَا شَيْئًا إِلاَّ أَعْطَاهُ إِيَّاهُ " قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَلَقِيتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَلاَمٍ فَذَكَرْتُ لَهُ هَذَا الْحَدِيثَ، فَقَالَ: أَنَا أَعْلَمُ بِتِلْكَ السَّاعَةِ فَقُلْتُ أَخْبِرْنِي بِهَا وَلاَ تَضْنَنْ بِهَا عَلَيَّ، قَالَ: هِيَ بَعْدَ الْعَصْرِ إِلَى أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ، فَقُلْتُ كَيْفَ تَكُونُ بَعْدَ الْعَصْرِ، وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لاَ يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ يُصَلِّي " وَتِلْكَ السَّاعَةُ لاَ يُصَلَّى فِيهَا، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلاَمٍ: أَلَيْسَ قَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا يَنْتَظِرُ الصَّلاَةَ فَهُوَ فِي صَلاَةٍ " قُلْتُ: بَلَى، قَالَ: فَهُوَ ذَاكَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي

الْحَدِيثِ قِصَّةٌ طَوِيلَةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَمَعْنَى قَوْلِهِ أَخْبِرْنِي بِهَا وَلَا تَضْنَنْ بِهَا عَلَيَّ لَا تَبْخَلْ بِهَا عَلَيَّ. وَالضَّنُّ الْبُخْلُ. وَالظَّنِينُ الْمُتَّهَمُ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په تولو ورځو كي بهتره ورځ چي نمر پكي ختلي دي دجمعي ورځ ده او په همدي ورځ ادم عليه السلام پيدا شوي دي او په همدي ورځ جنت ته داخل كړي شوي دي او په همدي ورځ دجنت نه زمكي ته راكوز كړي شوي دي په دي ورځ كي داسي يو ساعت دي كوم لره چي مسلمان بنده دمونځ په حالت كي بيامومي او دالله تعالي نه دي وخت كي څه اوغواړي نو الله تعالي يي ورته ضرور وركوي دابوهريره بيان دي بيازه عبدالله بن سلام ته ورغلم او ددي حديث ذكر مي ورته اوكړو هغه اووئيل ماته دا ساعت ډير ښه معلوم دي ما ورته اووئيل ماته يي هم اوښايه او په دي سلسله كي ماسره بخل مه كوه هغه اووئيل دا وخت دمازيگر نه واخله دنمر پريوتلو پوري په مينځ كي وخت دي ما اووئيل دا دمازيگر نه پس څنگه كيدي شي او حال دادي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دا چي يو مسلمان بنده دمونځ په حالت كي بياموهي او دغه وخت خو داسي دي په كوم كي چي مونځ نه كيږي؟عبدالله بن سلام اووئيل ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم دا نه دي فرمائيلي چي څوك دمونځ په انتظار كي په يو ځاي كي ناست وي نو داسي ده لكه دي چي په مونځ كي مشغول وي ما ورته اووئيل ولي نه دا يي ضرور فرمائيلي دي نو عبدالله بن سلام اووئيل همدا مطلب دي.

امام ترمذي وائي په دي حديث كي يوه اوږده قصه ده او دا حديث حسن صحيح دي او دابوهريره قول "اخبرني بها ولاتضنن بها علي" معني داده چي ماته ددي په خودلو كي بخل مه كوه او ضن په معني دبخل دي اوظنين په معني د متهم دي.

**تشريح** : ددي وخت متعلق مختلفو احاديثو كي مختلف وختونه راغلي دي په دی وجه په دي كي دعالمانو هم ډير اقوال دي دامام ابو حنيفه او امام احمد په نزد دا وخت دجمعي دورځي دمازيگر مانځه نه ترمابنام پوري دی

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٠٤ (١٠٣٦) . سنن النسائي في الجمعة ٤٥ (١٤٣٣) . (تحفة الأشراف : ١٥٠٠٠) . موطا امام مالك في الجمعة ٧ (١٦) صحيح البخاری في الجمعة ٣٧ (٩٣٥) . والطلاق ٢٣ (٥٢٩٤) . والدعوات ٦١ (٦٤٠٠) . و صحيح مسلم في الجمعة ٤ (٨٥٢) . و سنن النسائي في الجمعة ٤٥ (١٤٣٢ . ١٤٣٣) . و سنن ابن ماجه في الإقامة ٩٩ (١١٣٧) . والمؤطاء في الجمعة ٧ (١٥) و مسند احمد (٢ في ٢٣٠ . ٢٥٥ . ٢٧٢ . ٢٨٠ . ٢٨٤ . ٤٠٣ . ٤٥٧ . ٤٦٩ . ٤٨١ . ٤٨٩) . وسنن الدارمی في الصلاة ٢٠٤ (١٦١٠)

دجمعي په ورځ دقبوليت ساعت کوم يو دی؟ دي باره کي شارح د رياض الصالحين ليکلي دي چي دا مخکي متعين وو خو بيا پټ کړی شو په دي وجه په دي کي دعلماؤ ډير اقوال دي چي تقريبا ۳۵ته رسيږي

۱، دجمعي په ورځ دسحر دمونځ دپاره داذان وخت

۲، دنمر دختو نه دسپوږمۍ دراختو پوري وخت

۳، دمازګر نه دنمر پريوتو پوري وخت

۴، دجمعي دخطبي نه پس دامام دممبر نه دکوزيدو نه پس دتکبير تحريمه ونيلو پوري وخت

۵، دنمر دراختو نه فورا وروسته وخت

۶، دنمر دختو وخت

۷، دساخت وخت

۸، دزوال شروع کيدو نه پس دسوري دنيم لاس خوزيدو پوري

۹، دزوال شروع کيدو نه پس دسوري ديولاس خوزيدو پوري

۱۱، دنمر ديو لاس خوزيدو نه پس ديو لاس اوږيدو دوخته پوري

۱۲، دعين زوال وخت

۱۳، دجمعي دمونځ دپاره چي کله مؤذن اذان کوي

۱۴، دزوال شروع کيدو نه دجمعي په مونځ کي دشامليدو پوري وخت

۱۵، دزوال کيدو نه پس دامام دفارغيدو پوري وخت

۱۶، دنمر دزوال نه پس دسپوږمۍ دپريوتو پوري وخت

۱۷، دخطبي دپاره دامام ممبر ته دختو نه پس دمونځ دشروع کيدو پوري وخت

۱۸، داذان نه پس دمونځ ختميدو پوري وخت

۱۹، ممبر ته دامام دختو نه پس دمونځ د ادا کيدو پوري وخت

۲۰، داذان نه پس دمونځ ادا کولو پوري وخت

۲۱، په ممبر دامام دکيناستو نه پس دمونځ پوره کيدو پوري وخت

۲۲، دخريد او فروخت حراميدو نه پس دحلاليدو پوري وخت

۲۳، اذان ته نژدي وخت

۲۴، دامام دخطبي دشروع کولو نه دخطبي ختمولو پوري وخت

۲۵، دخطبي دپاره په منبر دکيناستو نه پس دخطبي درمياني وخت

۲۶، د دوه خطبو په مينځ کي دامام دکيناستو وخت

۲۷، دخطبي نه دفارغيدو نه پس دمنبر نه دامام دکوزيدو وخت

۲۸، دمونځ دپاره دتکبير دشروع کيدو نه پس په مسئله باندي دامام داودريدو پوري وخت

۲۹، دتکبیر دشروع کیدو نه داختتام پوري وخت
۳۰، دجمعي دمونځ نه دفارغیدو نه فورا پس وخت
۳۱، دمازیگر دمونځ نه دنمر پریوتو پوري وخت
۳۲، دمازیگر درمیاني وخت
۳۳، دمازیگردمونځ نه پس دنمر پریوتو نه مخکي دمونځ مستحب وخت
۳۴، مطلقا دمازیگر نه پس وخت
۳۵، دنمر دپریوتو وخت

***************

## ٣_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الاِغْتِسَالِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### دجمعي په ورځ دغسل کولو بیان

٤٩٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ سَالِمٍ. عَنْ أَبِيهِ. أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: "مَنْ أَتَى الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ. وَأَبِي سَعِيدٍ. وَجَابِرٍ. وَالْبَرَاءِ. وَعَائِشَةَ وَأَبِي الدَّرْدَاءِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(۱)

**ترجمه** د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي څوك چي دجمعې مانځه ته خي نو غسل دي اوکړي.
امام ترمذي واني د ابن عمر حدیث حسن صحیح دي او په دي باب کي دعمر. ابوسعید خدري، جابر. براء. عائشه. او ابو الدرداء رضي الله عنهم نه هم احادیث مروي دي

**تشریح** : دجمعي په ورځ دغسل کولو څه حکم دی؟ په دي باره کي دامام ابو حنیفه. امام شافعي. امام احمد. او جمهورو علماؤ مسلك دادی چي دجمعي دورځي غسل سنت دی لیکن امام مالك په یو قول کي او داصحاب ظواهرو په نزد واجب دی ځکه چي صیغه دامر ده او امر تقاضا دوجوب کوي جمهورو ددي دا جواب کړی دی چي امر کله کله داستحباب دپاره هم راخي.

**لغات** : فلیغتسل اغتسل یغتسل اغتسالا معني غسل کول . غسل یغسل غسلا وینځل مغتسل معني غسل خانه . غسیل وینځلي شوي . غاسل معني دوبي

---

۱ صحیح مسلم في الجمعة (۸۴۴). (تحفة الأشراف: ۶۸۴۴). مسند احمد (۲ في ۴۱. ۴۲. ۵۳. ۵۵. ۱۰۱. ۱۱۵. ۱۲۱. ۱۲۵)

## دسالم بن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات

نوم سالم كنيه ابو عمر. واقعه داسي وه چي دعمر رضي الله عنه په زمانه كې دايران دشاهنشاه كومي جينكۍ ګرفتار شوي وې په هغي كې يوه عبدالله رضي الله عنه ته وركړى شوه او سالم دهغي نه پيدا شو (تهذيب التهذيب).

په فقه حديث او تفسير كې يي مثال نه وو دامام مالك قول دى چي دسالم په زمانه كې دده نه زيات تقوي دار بل څوك نه وو او نه دسلفو سره دده نه زيات مشابه بل څوك وو (تذكرة الحفاظ).

علامه ذهبي وائي سالم فقيه او حجت دى او دهغه مخصوصو علماؤ نه دى دچا ذات چي علم او عمل لره جمع كونكي دي (تذكرة الحفاظ).

امام نووي وائي چي دسالم په امامت او جلالت زهد او ورع دټولو اتفاق دى (تهذيب الاسماء).

دانتهائي ساده ژوند مالك وو دتكلف او تصنع خلاف وو حافظ ذهبي ليكلي دي چي دوړى لباس به يي استعمالولو چي دټولو لباس قيمت به يي د دوه درهمو نه زيات نه وو او دخوراك دپاره به يي صرف ډوډۍ او زيتون استعمالول.

۱۰۷ هجري ذي الحجه كې په مدينه كې وفات شو هشام بن عبدالملك چي دحج نه فارغ شو او مدينه ته راغى نو په ده باندي يي جنازه اوكړه په جنازه كې دخلقو ډير هجوم وو نو په دي وجه په دوه باندي په جنة البقيع كې جنازه اوشوه (طبقات ابن سعد).

ابن خلكان وغيره دده مزيد تفصيلات ليكلي دي.

****************

٤٩٣ـ وَرُوِيَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الْحَدِيثُ أَيْضًا. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. وقَالَ مُحَمَّدٌ: وَحَدِيثُ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَحَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ كِلَا الْحَدِيثَيْنِ صَحِيحٌ. وقَالَ بَعْضُ أَصْحَابِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي آلُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَيْضًا، وَهُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

---

1 ـ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ٢٤)

**ترجمه** : دا رنګي دا حديث په سند دزهري عن عبدالله بن عبدالله بن عمر عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره هم مروي دي، امام بخاري واني دزهري کوم حديث چي په سند دسالم عن ابيه عبدالله بن عمر مروي دي او چي کوم حديث په سند د عبدالله بن عمر عن ابيه عبدالله بن عمر مروي دي دواړه صحيح دي او دزهري بعضي شاګردانو دا په سند د زهري عن ال عبدالله بن عمر عن عبدالله بن عمر نه نقل کړي دي او کوم حديث چي هغوئ عن ال عبدالله بن عمر عن عبدالله بن عمر نقل کړي دي، امام ترمذي واني دجمعي دورځي دغسل په سلسله کي په سند دابن عمر عن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرفوعا مروي دي چي وروسته به راشي او دا حديث حسن صحيح دي

*****************

٤٩٤ـ وَرَوَاهُ يُونُسُ، وَمَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، بَيْنَمَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، إِذْ دَخَلَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: أَيَّةُ سَاعَةٍ هَذِهِ؟ فَقَالَ: مَا هُوَ إِلَّا أَنْ سَمِعْتُ النِّدَاءَ وَمَا زِدْتُ عَلَى أَنْ تَوَضَّأْتُ، قَالَ: "وَالْوُضُوءُ أَيْضًا، وَقَدْ عَلِمْتَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِالْغُسْلِ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ،([1])

**ترجمه** : دابن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي عمر رضي الله عنه دجمعي په ورځ خطبه ورکوله چي په دي دوران کي په صحابه کرامو کي يو کس مسجد ته داخل شو عمر رضي الله عنه ورنه تپوس اوکړو چي دا دراتلو کوم يو وخت دي هغوئ اووئيل ما خو صرف دومره ناوخته کړو او اذان مي واوريدو او بس اودس مي اوکړو او راغلم عمر رضي الله عنه اووئيل تا صرف په اودس باندي اکتفاء کړي ده او حال دادي تاته معلومه ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دغسل حکم هم کړي دي

*****************

٤٩٥ـ قَالَ: وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا أَبُو صَالِحٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَرَوَى مَالِكٌ هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ

[1] ـ صحيح البخاري في الجمعة ٢ (٨٧٨)، صحيح مسلم في الجمعة (٨٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٥١٩) صحيح البخاري في الجمعة ٢ (٨٧٨)، صحيح مسلم في الجمعة (٨٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٥١٩)

سَالِمٍ، قَالَ: بَيْنَمَا عُمَرُ بْنُ الخَطَّابِ يَخْطُبُ يَوْمَ الجُمُعَةِ فَذَكَرَ هَذَا الحَدِيثَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا، فَقَالَ: الصَّحِيحُ حَدِيثُ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مَالِكٍ أَيْضًا، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ نَحْوَ هَذَا الحَدِيثِ. [1]

**ترجمه**: په دي سند سره هم دا حديث مروي دي او ابو مالك هم دا حديث په سند دزهري عن سالم نقل كړي دي سالم بن عمر وائي چي عمر فاروق رضي الله عنه دجمعي په ورځ خطبه وركوله او بيا يي پوره حديث ذكر كړو.

امام ترمذي وائي ما په دي سلسله كي دامام بخاري نه تپوس اوكړو نو هغوئ اوونيل صحيح حديث دزهري دي كوم چي هغه په سند دسالم عن ابيه نه نقل كړي دي امام بخاري وائي چي دمالك نه هم داسي حديث مروي دي هغوئ په سند دزهري عن سالم عن ابيه نقل كړي دي.

****************

## ٤_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

## دجمعي په ورځ دغسل كولو فضيلت

٤٩٦_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، وَأَبُو جَنَابٍ يَحْيَى بْنُ أَبِي حَيَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عِيسَى، عَنْ يَحْيَى بْنِ الحَارِثِ، عَنْ أَبِي الأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الجُمُعَةِ وَغَسَّلَ وَبَكَّرَ وَابْتَكَرَ وَدَنَا وَاسْتَمَعَ وَأَنْصَتَ كَانَ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ يَخْطُوهَا أَجْرُ سَنَةٍ صِيَامُهَا وَقِيَامُهَا ". قَالَ مَحْمُودٌ: قَالَ وَكِيعٌ: اغْتَسَلَ هُوَ وَغَسَّلَ امْرَأَتَهُ. قَالَ: وَيُرْوَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ المُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ فِي هَذَا الحَدِيثِ: مَنْ غَسَّلَ وَاغْتَسَلَ، يَعْنِي غَسَلَ رَأْسَهُ وَاغْتَسَلَ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَسَلْمَانَ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَأَبُو الأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيُّ اسْمُهُ شَرَاحِيلُ بْنُ آدَةَ. وَأَبُو جَنَابٍ يَحْيَى بْنُ حَبِيبٍ القَصَّابُ الكُوفِيُّ. [2]

---

1 صحيح البخاري في الجمعة ٢ (٨٧٨) . صحيح مسلم في الجمعة (٨٤٥) . (تحفة الأشراف : ١٠٥١٩)

2 سنن ابي داود في الطهارة ١٢٩ (٣٤٥) . سنن النسائي في الجمعة ١٠ (١٣٨٢) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٠ (١٠٨٧) (تحفة الأشراف : ١٧٣٥) . مسند احمد ٤ في ٨، ٩، ١٠) . والدارمي في سننه.

**ترجمه** : داوس بن اوس رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه دجمعي په ورځ غسل اوکړو او غسل يي ورکړو او وختي ورسيدو او دشروع نه په خطبه کي شريك شو امام سره نزدي کيناستو او په غور سره يي خطبه واوريدله او خاموش ناست وو نو ده ته به دده دهر قدم په بدل کي ديو کال دروژو او دشپو دقيام ثواب ملاويږي، دوکيع قول دي او ددي معني داده چي ښځېله يي غسل اوکړو او خپلي ښځي ته يي هم دغسل کولو حکم اوکړو.

امام ترمذي وائي داوس بن اوس حديث حسن دي عبدالله بن مبارك ددي حديث په سلسله کي وئيلي دي د "من غَسَّلَ واغتسل" معني داده چي خپل سر يي اووينځلو او غسل يي اوکړو. په دي باب کي دابوبکر، عمران بن حصين، سلمان، ابوذر، ابوسعيد، ابن عمر او ابو ايوب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. اود ابو الاشعث صنعاني نوم شراحيل بن اداة دي. او ابو جناب يحي بن حبيب قصاب د کوفي اوسيدونکي دي.

**تشريح** : په دي حديث کي څلور امور ذکر شول چاچه ددي لحاظ اوساتلو دهغه دپاره په هر قدم دسل کالو دروژو او ديو کال دنفلو ثواب ملاويږي دا په هغه صورت کي دي چي کله دڅلورو کارونو پابندي کوي.

(۱) دامام سره نزدي کيناستل (۲) تازه غسل کول او پاکي جامي اغوستل (۳) سحر وختي تلل (۴) دخطبي اوريدو دپاره خاموش کيناستل او په يوه جمعه دوو کي ددي عمل په کولو دا ثواب نه ملاويږي په دائمي کولو ملاويږي.

**داوس بن اوس رضي الله عنه حالات:**

نوم اوس دقبيله بني ثقيف سره يي تعلق دي په دمشق (بيروت) کي يي رهائش کولو او هلته يي يوکور اويو مسجد جوړ کړی وو ۲۴ روايات ورنه مروي دي په بخاري او مسلم کي ورنه کوم روايت نشته ترمذي او ابن ماجه وغيره ورنه روايت نقل کړی دی

***************

## ٥ـ باب مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

**دجمعي په ورځ داودس کولو بيان**

**٤٩٧ـ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُفْيَانَ الْجَحْدَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ تَوَضَّأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَنِعْمَتْ، وَمَنِ اغْتَسَلَ فَالْغُسْلُ أَفْضَلُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ: أَبِي هُرَيْرَةَ،**

وَعَائِشَةَ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُ أَصْحَابِ قَتَادَةَ. عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ. وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ. اخْتَارُوا الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَرَأَوْا أَنْ يُجْزِئَ الْوُضُوءُ مِنَ الْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَمِمَّا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ أَمْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَنَّهُ عَلَى الِاخْتِيَارِ لَا عَلَى الْوُجُوبِ: حَدِيثُ عُمَرَ حَيْثُ قَالَ لِعُثْمَانَ: وَالْوُضُوءُ أَيْضًا. وَقَدْ عَلِمْتَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِالْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَلَوْ عَلِمَا أَنَّ أَمْرَهُ عَلَى الْوُجُوبِ لَا عَلَى الِاخْتِيَارِ لَمْ يَتْرُكْ عُمَرُ. عُثْمَانَ حَتَّى يَرُدَّهُ، وَيَقُولَ لَهُ: ارْجِعْ فَاغْتَسِلْ. وَلَمَا خَفِيَ عَلَى عُثْمَانَ ذَلِكَ مَعَ عِلْمِهِ. وَلَكِنْ دَلَّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ أَنَّ الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِيهِ فَضْلٌ مِنْ غَيْرِ وُجُوبٍ يَجِبُ عَلَى الْمَرْءِ فِي ذَلِكَ. (1)

**ترجمه**: دسمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه دجمعي په ورځ جمعي مانخه ته اودس اوكړو هم ښه دى اوچاچه غسل اوكړو نو دا ډير بهتر دى.

امام ترمذي وائي دسمره حديث حسن دي، دقتاده بعضي شاګردانو دا حديث دقتاده نه او قتاده دحسن بصري نه او حسن بصري دسمره نه مرفوعا نقل كړي دي او دده نورو شاګردانو دقتاده نه او قتاده دحسن نه او حسن درسول الله نه مرسلا نقل كړي دي. او په دي باب كي د ابوهريره، عائشه، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دصحابه كرامو او ددوئ نه پس داهل علمو په همدي باندي عمل دي او هغوئ دجمعي په ورځ غسل كول خوښ كړي دي دهغوئ دا خيال دي چي دغسل په بدل كي اودس هم پاتي كيږي. امام شافعي وائي دجمعي په ورځ درسول الله صلي الله عليه وسلم دغسل دحكم وجوبي كيدو په ځاي په اختياري كيدو باندي چي كوم څيزونه دلالت كوي يو په هغوئ كي دعمر رضي الله عنه حديث هم دي په كوم كي چي هغوئ عثمان رضي الله عنه ته اووئيل چي تا خو صرف په اودس باندي اكتفاء كړي ده او حال دادي تاته معلومه ده چي رسول الله دجمعي په ورځ دغسل كولو حكم كړي دي. كه هغوئ ته دا معلومه وي چي دا حكم واجبي دي او اختياري نه دي نو عمر رضي الله عنه به عثمان لره دواپس كولو نه بغير نه پريخودلو او ورته به يي وئيلي وو چي ورشه او غسل اوكړه

---

1 - سنن ابي داود في الطهارة ۱۳۰(۳۵۴). سنن النسائي في الجمعة ۹(۱۳۸۱). (تحفة الأشراف: ۴۵۸۷). مسند احمد (۵/ ۱۵، ۱۶، ۲۲)

او نه به دعثمان رضي الله عنه نه په دي باندي دپوهيدوباوجود دجمعي دغسل وجوب مخفي پاتي كيدو بلكه په دي حديث كي په وضاحت سره په دي خبره دلالت دي چي دجمعي غسل افضل دي او واجب نه دي.

**لغات** : نعمت. نعم دافعال مدحه نه دي او غير منصرف دي لكه نعم رجل زيد او نعم رجلا زيد دتثنيه او جمع استعمال يي نادر دي، نعما نعموا نعمتا او نعمن اوكله كله ى په اخر كي ما لاحق كيږي او پدغه وخت كي دصلي نه مستغني وي.

اغتسل: اغتسل يغتسل اغتسالا معني غسل كول ، غسل يغسل غسلا وينخل مغتسل معني غسل خانه ، غسيل وينخلي شوي ، غاسل معني دوبي.

**تشريح** : پورتني حديث نه معلومه شوه چي دجمعي په ورځ اودس كول جائز دي او غسل كول بهتردي همدادجمهور علماؤ مذهب دى دپورتني حديث مضمون په ډيرو رواياتو كي راغلى دى دابوهريره په روايت كي داسي دى "من توضا فاحسن الوضوء ثم اتي الجمعة فدنا واستمع وانصت غفر له مابينه وبين الجمعة وزيادة ثلاثة الايام.

***************

٤٩٨ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَدَنَا وَاسْتَمَعَ وَأَنْصَتَ غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ وَزِيَادَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ، وَمَنْ مَسَّ الْحَصَى فَقَدْ لَغَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچه اودس اوكړو او په ښه شان سره يي اودس اوكړو او بيا دجمعي دپاره روان شو او امام ته نزدي كيناستو او په غور سره يي په خاموشئ كي خطبه واوريده نو دده ددي جمعي نه واخله تر بلي جمعي پوري او ددينه علاوه مزيد د دريو ورځو ګناهونه به دده اوبخلي شي او چاچه ګيټئ دخاي نه لري كړي نو هغه لغو يعني بي فائدي كار اوكړو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**لغات**: مس: مس مسا دنصر او ضرب نه په معني دمسه كولو دي.

---

[1] ـ صحيح مسلم في الجمعة ٨ (٨٥٧) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٠٩ (١٠٥٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٢ (١٠٢٥) . و٨١ (١٠٩٠) . (تحفة الأشراف : ١٢٢٠٥) . مسند احمد (٢ في ٤٢٢)

الحصي: حصي حصيا د ضرب نه په معني دګيتئ ويشتلو دي

**تشريح** : داحديث داعلي درجي صحت والا دي او دلالت يي هم واضح دي چي دجمعي غسل واجب نه دي او په دي حديث کي دمواظبت شرط هم نشته يعني په کومه جمعه کي چي دا ټول خبري جمع شي نو دا ثواب به ورته ملاويږي او دا ثواب د "الحسنة بعشرة امثالها "دقانون مطابق دي

"فاحسن الوضوء" يعني ښائسته اودس دي اوکړي په دي حديث کي داسي اودس کولو ته ترغيب ورکړی شوی دی په کوم کي چي دسنن او ادابو خيال ساتلی شوی وي

"اتي الجمعة" يعني چي دجمعي دمونځ دپاره مسجد ته لاړ شي ددينه معلومه شوه چي دجمعي دجماعت اهميت دنورو مونځونو په نسبت زيات دی او هغه داچه نور مونځونه خو په انفرادي طور هم ادا کيدی شي مګر جمعه دجماعت نه بغير نشي ادا کيدی

"فاستمع وانصت" يعني په خاموشئ دامام خطبه اوريدل دامام ابو حنيفه په نزد ضروري دي ددينې ضرورت په بنا امام په قدر دضرورت خبري کولی شي مګر اوريدونکو ته ددي اجازه نشته لکه چي په يو روايت کي راغلي دي من قال يوم الجمعة والامام يخطب انصت فقد لغا. يعني دجمعي په ورځ چي کله امام خطبه ورکوي اوڅوك چاته اووائي چپ شه نو هم ګنهګار شو

غفر له مابينه وبين الجمعة وزيادة ثلاثة ايام. يعني هغه ته ديوي جمعي نه دبلي جمعي پوري دګناهونو مغفرت اوشو او د درېو ورځو نورو ځکه چي دشريعت قاعده داده "من جاء بالحسنة فله عشر امثاله" يعني څوك چي يوه نيکي اوکړي نو الله تعالي دهغي لس چنده اجر ورکوي

ومن مس الحصا فقد لغا. يعني که چا په لاس دسجدي په ځاي نه ګيتئ لري کړړ نو هم يي لغوه کار اوکړو. رسول الله په مبارکه زمانه کي په مسجد کي کانړي خواره کړی شوي وو ليکن په دي حديث کي اوفرمائيلی شول چي دا کانړي به هم دخطبي په دوران کي نه لري کوی

*****************

## ٦_ باب مَا جَاءَ فِي التَّبْكِيرِ إِلَى الْجُمُعَةِ

### د جمعي مونځ دپاره په اول وخت کي مسجد ته دتلو فضيلت

٤٩٩_حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ غُسْلَ الْجَنَابَةِ ثُمَّ رَاحَ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَدَنَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّانِيَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَقَرَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ

الثَّالِثَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ كَبْشًا أَقْرَنَ، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الرَّابِعَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ دَجَاجَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الخَامِسَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَيْضَةً. فَإِذَا خَرَجَ الإِمَامُ حَضَرَتِ المَلَائِكَةُ يَسْتَمِعُونَ الذِّكْرَ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَسَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچه دجمعی په ورځ غسل اوکړو، لکه دجنابت دغسل په شان بيا په اول ساعت کي جامع مسجد ته لاړو، نو ‹دومره ثواب يی دی› لکه يو اوبښ چي دالله په رضا خيرات کړي. څوك چي دويم ساعت کي لاړو، داسی دی لکه چي غوايی خيرات کړي. او څوك چي دريم ساعت کي لاړو داسی دی لکه چي دغټو ښکرو والا ګډ خيرات کړي، او څوك چي څلورم ساعت کي لاړو داسی دی لکه چرګ چي خيرات کړي او څوك چي پنځم ساعت کي لاړو داسی دی لکه دچرګی هګۍ چي خيرات کړي ، اوچه امام خطبی ته اودريږي نو فرشتی د نوم ليکلو رجستر بند کړي اوخطبی اوريدو ته کيني.

امام ترمذي واني دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعبدالله بن عمر او سمره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : قرّب: قرباني دي وکړي

**تشريح** : ثم راح في الساعة الاولي: يعني بياد ورځي په اول وخت کي روان شي. ددينه علاوه په دي روايت کي دجمعي دمونځ دپاره په جلتۍ سره تلو ته ترغيب ورکړی شوی دی چي که څوك په ځومره جلتۍ سره ځان ورسوي نو ددومره زيات اجر مستحق به وي چي داجر تناسب يي ذکر کړي دی.

يستمعون الذکر: دذکر نه مراد خطبه ده ځکه چي فرشتي هم خطبه اوري نو نورو خلقو ته هم ترغيب دي چي دوئ دي هم خطبه په توجه سره واوري.

***************

1 صحيح البخاری في الجمعة ٣ (٨٨١)، و٣١ (٩٢٩)، وبدء الخلق ٦ (٣٢١١). صحيح مسلم في الجمعة ٤ (٨٥٠). سنن ابی داود في الطهارة ١٢٩ (٣٥١). سنن النسائي في الإمامة ٥٩ (٨٦٥)، والجمعة ١٣ (١٣٨٦)، و١٤ (١٣٨٩). سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٢ (١٠٩٢). (تحفة الأشراف: ١٢٥٦٩). موطا امام مالک في الجمعة ١ (١). مسند احمد (٢ في ٢٣٩، ٢٥٩، ٢٨٠، ٥٠٥، ٥١٢) سنن الدارمی في الصلاة ١٩٣ (١٥٨٤)

## ٧ـ باب مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الْجُمُعَةِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ

### بغير د عذر نه د جمعي تركولو وعيد بيان

٥٠٠ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَبِيدَةَ بْنِ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الجَعْدِ يَعْنِي الضَّمْرِيَّ، وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ فِيمَا زَعَمَ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ تَهَاوُنًا بِهَا طَبَعَ اللَّهُ عَلَى قَلْبِهِ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَسَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي الْجَعْدِ حَدِيثٌ حَسَنٌ. قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنِ اسْمِ أَبِي الجَعْدِ الضَّمْرِيِّ، فَلَمْ يَعْرِفْ اسْمَهُ، وَقَالَ: لَا أَعْرِفُ لَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا هَذَا الحَدِيثَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَا نَعْرِفُ هَذَا الحَدِيثَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو. [1]

**ترجمه** : د ابو الجعد ضمري رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي جمعي لره دري پيري دسستئ په وجه او دسپك ګڼړلو په وجه پريږدي نو الله تعالي دده په زړه مهر لګوي.

امام ترمذي وائي دابو الجعد حديث حسن دي ، دمحمد بن اسماعيل بخاري نه مي دابو الجعد ضمري دنوم تپوس اوکړو نو هغه ته معلوم نه وو. ددي حديث نه علاوه ماته دده کوم بل حديث معلوم نه دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يي نقل کړي وي او موږ ته دا حديث صرف دمحمد بن عمرو په سند معلوم دي.

**تشريح** : جُمعه د اجتماع نه ده. لکه څنګه چي فرقت د افتراق نه دی . لفظ د جُمعي په ضمه د ميم دی . او په سکون سره هم وئيلي شوی دی . بعضي حضراتو د ميم په فتحه سره هم نقل کړی دی . جُمعي ته جُمعه ځکه وائي، چي خلق په دی ورځ کي راجمع کيږی

دجمعي دمونځ فرضيت په کتاب، سنت، اجماع او په دليل عقلي ځلوزو واړو سره ثابت دی .

(١) دکتاب الله نه خوځکه ثابت دی چي الله تعالی فرمائيلی دی

يا ايها الذين امنوا اذا لودي للصلاة من يوم الجمعة فاسعوا الي ذكر الله وذروا البيع.

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢١٠ (١٠٥٢) . سنن النسائي في الجمعة ١ (١٣٦٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٩٣ (١١٢٥) . (تحفة الأشراف : ١١٨٨٤) . مسند احمد (٣ في ٤٢٤) . سنن الدارمي في الصلاة ٢٠٥ (١٦١٢)

د ذکر نه څه مراد دي په دي کي دري اقوال دي (١) د مشهورقول مطابق د ذکرالله نه مراد خطبه ده، او د " فاسعوا "دامرصیغه د وجوب دپاره ده، نود ایت نه خطبي ته دسعی وجوب ثابت شو، اود خطبي ته سعی دجمعي د مونځ په شرائطوکي ده، نوهرکله چی د جوازجمعه شرط یعنی د خطبي ته د سعی وجوب ثابت شو، نو د جمعي مونځ چی مقصود دی . په درجه اولی سره به واجب (فرض) وی، ددی وجوب موکد کولو دپاره ئی اوفرمائیل [وذروا البیع] یعنی دجمعي د اذان نه پس اخستل خرڅول حرام کړی شو، حالانکه اخستل خرڅول مباح دی، اودا اُصول دی چی الله تعالی امرمباح د یو امرواجب په وجه حراموی، نو ثابته شوه، چی جمعه (چی ددی په وجه اذان نه پس بیع حرام کړی شوه) واجب (فرض)ده. (٢) علامه ابن الهمام رحمه الله فرمانیلی دی ظاهره داده ، چی د ذکرالله نه مونځ مراد دی . په دی صورت کي براه راست دجمعي مونځ فرض کیدل ثابتیږی ، دریم مفسرینوذکرالله تفسیر په مونځ اوخطبی دواړو سره کړی دی ، علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائیلی دی، چی دا زیاته مناسب ده. ځکه چی په دی صورت کي ایت په مونځ اوخطبه دواړو باندی صادق راځی ،

(١)حدیث چی تري د جمعي دمونځ فضیلت ثابتیږی دادی:

[اعلموا ان الله کتب علیکم الجمعة فی یومی هذا فی شهری هذا فی مقامی هذا]

پوهه شئ . چی الله تعالی په تاسو باندی جمعه فرض کړی ده زما په دی ورځ کي زما په دی میاشت کي زما په دی مقام کښي.

(٢) دویم حدیث:

[الجمعة حق واجب علی کل مسلم فی جماعة الا اربعة مملوك اوامرأة اوصبی اومریض] (رواه ابوداؤد)

دجمعي مونځ په هرمسلمان باندی په جماعت سره کول حق واجب یعنی فرض دی خوپه څلورو کسانو باندی په غلام، ښځه نا بالغ ماشوم او په مریض باندي.

(٣) دریم حدیث

[قال رسول الله ﷺ من ترك ثلاث جماعات من غیر عذر کتب من المنافقین]

رسول الله ﷺ فرمانیلی دی، چا چی دري جمعي بغیر د عذر نه پریخودی ، په منافقانوکي به شمار شی.

(٤) څلورم حدیث

[من ترك الجمعة ثلاث جمع متوالیات فقد نبذ الاسلام وراء ظهره]

چاچي مسلسل دري جُمعي پريخودلي ده اسلام شاته اوغورخولو، په دی دوارو حديثونو کي په ترك جمعه باندی سخت وعيد بيان شوی دي، او ظاهره ده چي وعيد د فرضو په پريخودلو باندی راځی، نوددی دوارو حديثونو نه هم د جُمعي فرضيت ثابت شو،

## ثبوت الجمعة بالاجماع

چونکه پوره امت مسلمه د جُمعي په فرضيت باندی متفق دی، خکه په اجماع سره هم دجُمعي د مونځ فرضيت ثابت شو، د جُمعي په فرضيت باندی عقلی دليل دادی چي مونږ ته دجمعي قائمولو دپاره د ماسپخين دمونځ پريخودلو امرکړی شوی دی، او د ماسپخين مونځ په يقين سره فرض دی.

## د جمعي دفرضيت تاريخ

کله چي نبی ﷺ د مکي نه هجرت اوکړلو، او مديني منوري طرف ته ئی تشريف يوړلو، نو هغوی په قباء کي دننه د عمرو بن عوف رضي الله عنه په محله کي څوارلس شپي قيام کړی وو، هم په دی دوران کي هغوی ﷺ ديو جومات بنياد کيخودو، چي ورته په اسلام کي د ټولونه اولنی جومات ونيلي شی، چي قران حکيم ترې نه په لمسجد اسس علي التقوي الاية سره تعبير کړی دی، بيا کله چي نبی ﷺ د قباء نه د مديني په طرف دجُمعي په ورځ روان شو، نو په لاره کي د سالم بن عوف په محله کي د جُمعي د مانځه وخت راغی، نو نبی کريم صلي الله عليه وسلم د سورلئ نه راکوز شو، په دی جومات کي ئی دجُمعي مونځ ادا کړو، او دا د خوږ په مينځ کي وو، دا په اسلام کي د ټولونه اولنئ ادا کړی شوی جُمعه وه، په دی جُمعه کي په سوونو مسلمانان شريك شول، په اسلام کي د ټولونه د اولنئ جُمعي، اوخطبي پوره تفصيل اصح السير، سيرت مصطفی شرح سيرکبير کي اوګورئ

## دجمعي د مونځ شرائط

دجُمعي د فرضيت دولس شرطونه دی، شپږ شرطونه خو داسی دی، چي د هغی په ذات د مونځ ګذار کي وجود ضروری دی

(۱) ازاد وی، په غلام جُمعه فرض نه ده

(۲) سړی وی، په ښځه فرض نه ده

(۳) مقيم وی، په مسافر فرض نه ده.

(۴) تندرست وی، يعنی داسی بيمارنه وی چي په جُمعه کي شرکت د تکليف سبب وی.

(۵) د پښو سلامتيا په شل فرض نه ده

(۶) د سترګو سلامتيا، نابينا باندی فرض نه ده،

شپږ شرطونه داسی دی، چي د هغی تعلق د مونځ کونکی د ذات سره نه وی.

(۱) ښار . په بانډه كي فرض نه ده
(۲) جومات، په كورونو كي فرض نه ده.
(۳)بادشاه . يعني د باد شاه يا قاضي يادشاه د مقرر كړي كس د اجازت نه بغير جمعه نشي قائميدي.
(۴) وخت. يعني د وخت نه مخكي يا وروسته جمعه نشي قائميدي
(۵) خطبه يعني د خطبي نه بغير د جمعي مونځ درست نه دى
(٦) عام اجازت. يعني په داسي طريقه جمعه نشي قائميدي چي عامو خلقو ته د راتلو اجازت نه وي. (معراج الصالحين شرح رياج الصالحين. فتح القدير ابن همام)

*****************

## ٨ـ باب مَا جَاءَ مِنْ كَمْ تُؤْتَى الْجُمُعَةُ

## د څومره مسافي نه جمعي ته حاضريدل ضروري دي

٥٠١ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَدُّوَيْهِ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ ثُوَيْرٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ قُبَاءَ، عَنْ أَبِيهِ، وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَشْهَدَ الْجُمُعَةَ مِنْ قُبَاءَ". وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا وَلَا يَصِحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَلَا يَصِحُّ فِي هَذَا الْبَابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "الْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلَى أَهْلِهِ". وَهَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ، إِنَّمَا يُرْوَى مِنْ حَدِيثِ مُعَارِكِ بْنِ عَبَّادٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، وَضَعَّفَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيَّ فِي الْحَدِيثِ. فَقَالَ: وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ عَلَى مَنْ تَجِبُ الْجُمُعَةُ، قَالَ بَعْضُهُمْ: تَجِبُ الْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلَى مَنْزِلِهِ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا تَجِبُ الْجُمُعَةُ إِلَّا عَلَى مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** : اهل قباء والانه يو كس دخپل پلار نه روايت كوي او دده پلار دصحابه كرامو دجملي. نه دي دي وائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم مونږ ته حكم اوكړو چي تاسو به دقباء نه مسجد نبوي ته دجمعي دمونځ دپاره راځئ، په دي سلسله كي دابوهريره رضي الله عنه نه هم

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٦٩)

يو روايت منقول دي او هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي ليكن دا روايت صحيح نه دي.
امام ترمذي وائي دا حديث مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي او په دي باب كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په مروي روايتونو كي يو هم صحيح نه دي، دابوهريره نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جمعه په هر هغه چا باندي فرض ده څوك چي دمونځ نه پس خپل كور ته شپه رسولي شي ددي حديث سند ضعيف دي دا حديث دمعارك بن عباد نه نقل دي او معارك دسعيد مقبري نه روايت.كوي يحي بن سعيد القطان دعبدالله بن سعيد مقبري دحديث تضعيف كړي دي ، داهل علمو په دي كي اختلاف دي چي جمعه په چا باندي واجب ده دبعضو قول دي جمعه په هغه چا واجب ده څوك چي دشپي دپاره كور ته رسيدي شي او بعضي وائي جمعه صرف په هغه چا واجب ده چي اذان يي اوريدلي وي دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي.

***************

٥٠٢ـ سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ الْحَسَنِ، يَقُولُ: كُنَّا عِنْدَ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ فَذَكَرُوا عَلَى مَنْ تَجِبُ الْجُمُعَةُ، فَلَمْ يَذْكُرْ أَحْمَدُ فِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا. قَالَ أَحْمَدُ بْنُ الْحَسَنِ: فَقُلْتُ لِأَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ فِيهِ: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ أَحْمَدُ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ أَحْمَدُ بْنُ الْحَسَنِ: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ نُصَيْرٍ، حَدَّثَنَا مُعَارِكُ بْنُ عَبَّادٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " الْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلَى أَهْلِهِ ". قَالَ: فَغَضِبَ عَلَيَّ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَقَالَ لِي: اسْتَغْفِرْ رَبَّكَ، اسْتَغْفِرْ رَبَّكَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: إِنَّمَا فَعَلَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ هَذَا لِأَنَّهُ لَمْ يَعُدَّ هَذَا الْحَدِيثَ شَيْئًا، وَضَعَّفَهُ لِحَالِ إِسْنَادِهِ. [1]

**ترجمه** داحمد بن حسن نه مي اوريدلي دي فرمائي چي مونږ داحمد بن حنبل سره موجود وو او چا ددي خبري ذكر اوكړو چي جمعه په چا باندي واجب ده نو امام احمد په دي سلسله كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه هيڅ ذكر نكړل احمد بن حسن وائي ما احمد بن حنبل ته اوونيل په دي سلسله كي دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي كوم چي هغه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي نو امام احمد تپوس اوكړو ايا درسول الله صلي الله عليه وسلم

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٢٩٦٥)

نه يې نقل کړي دي؟ ما اوونيل هو. او بيا احمد بن حسن دحجاج بن نصير نه حديث بيان کړو حدثنا معارك بن عباد عن عبدالله بن سعيد المقبري عن ابيه عن ابي هريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم چې رسول الله فرمائيلي دي جمعه په هغه چا واجب ده څوك چې د مونځ نه پس شپه خپل کور ته رسولې شي احمد بن حسن وائي چې احمد بن حنبل ماته غصه شو او ماته يې اوونيل دخپل رب نه بخنه اوغواړه او دخپل رب نه بخنه اوغواړه.

امام ترمذي وائي احمد بن حنبل داسې خکه اوکړل چې هغه دې حديث ته هيڅ حيثيت ورنکړو او دسند په وجه يې ضعيف اوکنړلو.

***************

## ٩ـ باب مَا جَاءَ فِي وَقْتِ الْجُمُعَةِ

### د جمعې مونځ د وخت بيان

٥٠٣ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُرَيْجُ بْنُ النُّعْمَانِ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُصَلِّي الْجُمُعَةَ حِينَ تَمِيلُ الشَّمْسُ".[1]

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به دجمعې مونځ هغه وخت کولو کله چې به نمر ستون شو.

***************

٥٠٤ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ، وَجَابِرٍ، وَالزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ الَّذِي أَجْمَعَ عَلَيْهِ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ: أَنَّ وَقْتَ الْجُمُعَةِ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ كَوَقْتِ الظُّهْرِ، وَهُوَ قَوْلُ:

---

[1] ـ صحيح البخاري في الجمعة ١٦ (٩٠٢). سنن ابي داود في الصلاة ٢٢٤ (١٠٨٤). (تحفة الأشراف: ١٠٨٩). مسند احمد (٣/ ١٢٨، ٢٢٨)

الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. وَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنَّ صَلاَةَ الْجُمُعَةِ إِذَا صُلِّيَتْ قَبْلَ الزَّوَالِ أَنَّهَا تَجُوزُ أَيْضًا. وَقَالَ أَحْمَدُ: وَمَنْ صَلاَّهَا قَبْلَ الزَّوَالِ فَإِنَّهُ لَمْ يَرَ عَلَيْهِ إِعَادَةً. (1)

**ترجمه** : په دي سند سره هم دانس رضي الله عنه نه په سابقه روايت هم معني حديث مروي دي.

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د سلمه بن الاکوع ، جابر، او زبير بن عوام رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او په همدي داکثرو اهل علمو اتفاق دی چي دجمعي وخت دماسپخين دوخت پشان هغه وخت شروع کيږي کله چي دنمر سوري واوړي او همدا دامام شافعي، احمد، او اسحاق قول دي دبعضو قول دادي چي چه دجمعي مونځ که دزوال نه مخکي اوکړي شي نو دا هم جائز دي. دامام احمد قول دي چاچه دجمعي مونځ دزوال نه مخکي اوکړو نو په هغه باندي ددي راګرځول ضروري نه دي

**تشريح** : تمام اهل علم په دي متفق دي چي دماسپخين پشان دجمعي وخت هم دزوال تيريدو نه پس شروع کيږي مګر امام احمد ددي قائل دي چي دزوال نه مخکي هم که په هغه وخت کي دجمعي مونځ اوکړي شي څه وخت چي داختر مونځ کيږي يعني تقريبا لس بجي نو دا هم جائزدي ليکن دزوال نه وروسته دجمعي مونځ کول افضل دي، او دجمهور اهل علمو په نزد دجمعي مونځ د ماسپخين په وخت کي صحيح دی ، دليل دادی چی نبی ﷺ مصعب بن عمير رضي الله عنه کله مدينی منوري ته اوليګلو نوفرمائيلی ئی وو:

[اذا مالت الشمس فصل بالناس الجمعة]

يعنی هرکله چی نمر زائله شی نوخلقو ته دجُمعي مونځ اوکړه، د بخاری روايت دی

[عن انس كان النبي ﷺ يصلي الجمعة حين تميل الشمس]

د انس رضي الله عنه نه مروی دی چی رسول الله ﷺ چی به کله نمر زوال اوکړو دجُمعي مونځ به ئی کولو

دويم ۲، په مسلم کي دی

[عن سلمة بن الا كوع رضي الله عنه كنا لجمع مع رسول الله ﷺ اذا زالت الشمس]

يعنی مونږ خلقو به دجُمعي مونځ کولو کله چی به نمرزائله شو

1 - صحيح البخاري في الجمعة ١٦ (٩٠٤) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٢٤ (١٠٨٤) . (تحفة الأشراف : ١٠٨٩) . مسند احمد (٣/ ١٢٨، ٢٢٨)

که د ماسپخین د مونځ وخت په دی حال کي اووتلو چی امام دجُمعي په مانځه کي مشغول وو، نو د جمعي مونځ فاسد شو، اوس به د سر نه د ماسپخین مونځ کوی، په جُمعي باندی د ماسپخین د مونځ بناء کول جائز نه دی،

،۲، د امام شافعی اود امام زفر په نزد بناء کول جائزدی، ددی حضراتو دلیل دادی چی جُمعه د ماسپخین قصر مونځ دی ، نوکوم وخت چی د ماسپخین وو ، هم هغه وخت دجُمعي دی . پس جُمعه هم ماسپخین دی . نو د جمعي په مونځ باندی د ماسپخین بناء کول درست دي

زمونږ دلیل دادی چی د جُمعي او ماسپخین په مینځ کي اسمًا . کمًا . کیفًا . اودشرائطوپه اعتبارسره اختلاف او تغایردی:

،۱، اسمًا خوځکه چی د یو نوم جُمعه ده اود دویم نوم ماسپخین دی.

،۲، کمًا ځکه چی د ماسپخین څلور رکعته دی، او دجُمعي دوه رکعته دی:

،۳، کیفًا ځکه چی په جُمعه کي قرات جهری دی ، او په ماسپخین کي سری، اودشرائطو په اعتبارسره ځکه اختلاف دی ، چی دجُمعي ادا کولو دپاره څه شرائط مخصوص دی. کوم چی په ماسپخین کي نشته ، بهر حال د جُمعي او ماسپخین په مینځ کي مغایرت اواختلاف دی . اوتغایر بناء منع کوی، لکه څنګه چی اقتداء منع کوی. په دی وجه مونږ وایو، چی د ماسپخین بناء په جُمعه باندی کول درست نه دی.

****************

## ۱۰ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْخُطْبَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ

### د جمعي خطبه په منبرونيل مسنون دي

۵۰۵ـ حَدَّثَنَا أَبُو حَفْصٍ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ الْفَلَّاسُ الصَّيْرَفِيُّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، وَيَحْيَى بْنُ كَثِيرٍ أَبُو غسان العنبري، قَالَا: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ الْعَلَاءِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يَخْطُبُ إِلَى جِذْعٍ فَلَمَّا اتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِنْبَرَ حَنَّ الْجِذْعُ حَتَّى أَتَاهُ فَالْتَزَمَهُ فَسَكَنَ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَنَسٍ، وَجَابِرٍ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَمُعَاذُ بْنُ الْعَلَاءِ هُوَ بَصْرِيٌّ، وَهُوَ أَخُو أَبِي عَمْرِو بْنِ الْعَلَاءِ. (۱)

---

[1] ـ صحيح البخاری في المناقب ۲۵ (۳۵۸۳) . (تحفة الأشراف: ۸۳۴۹)

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دکجوري په يوي تني اودريدو او خطبه به يي ورکوله مګر چي کله يي منبر جوړ کړو نو تني دومره اوژړل چي ددي خواته رسول الله راغلو او خان پوري يي راجوخته کړو نو هغه خاموش شوه.
امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح غريب دي. او په دي باب کي دانس، جابر، سهل بن سعد، ابي بن کعب، ابن عباس، او ام سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.
**تشريح**: په دي خبره هم تمام اهل علم متفق دي چي په منبر خطبه ورکول سنت دي او که منبر نه وي نو لاتدي اودريدلو په حالت کي خطبه ورکول هم جائز دي په مسجد نبوي کي به اول رسول الله صلي الله عليه وسلم لاتدي دولاړي په حالت کي خطبه ورکوله او دمنبر نه مراد هر لوړ ځيز دي لکه کرسئ يا ميز وغيره پشان که په هر لوړ ځيز خطبه ورکړي شي نو سنت اداء کيږي او مقصد سامعينو ته اواز رسول دي چونکه جمعه کي ګڼړه زياته وي نو په دي وجه که په لوړ خاي خطبه ورکړي شي نو هر چاته به اواز اورسيږي او ټول خلق به خطيب هم ليدلي شي او د مقرر حالات او اشارات به هم ملاحظه کولي شي.

***************

## ١١ـ باب مَا جَاءَ فِي الْجُلُوسِ بَيْنَ الْخُطْبَتَيْنِ
### د دوه خطبو مينځ کي د کيناستو بيان

٥٠٦ـ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ ثُمَّ يَجْلِسُ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ". قَالَ: مِثْلَ مَا تَفْعَلُونَ الْيَوْمَ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ الَّذِي رَآهُ أَهْلُ الْعِلْمِ أَنْ يَفْصِلَ بَيْنَ الْخُطْبَتَيْنِ بِجُلُوسٍ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دجمعي په ورځ خطبه ورکوله او بيا به کيناستلو او بيا به دوباره اودريدو او خطبه به يي ورکوله راوي وائي لکه ځنګه چي نن سبا تاسو کوئ.

---

[1] ـ صحيح البخاري في الجمعة ٢٧(٩٢٠)، و٣٠(٩٢٨)، صحيح مسلم في الجمعة ١٠(٨٦١)، (تحفة الأشراف: ٧٨٤٩)

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د ابن عباس، جابر بن عبدالله، او جابر بن سمره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي چي په دوارو خطبو كي به په جلسي جدائي راولي

**تشريح** : په دي كي هم داهل علمو اختلاف دي چي د دوه خطبو مينځ كي دكيناستلو څه حكم دي دامام شافعي او امام احمد مشهور روايت دادي چي دخطبو په مينځ كي كيناستل فرض دي او كه چا دا پريخودل نو مونځ يي نه كيږي.

مګر دامام ابو حنيفه او امام مالك په نزد دخطبو مينځ كي كيناستل سنت دي يعني ددوی په نزد دجمعي دصحت دپاره صرف خطبه ونيل شرط دي او دوه خطبي ضروري نه دي

*****************

## ١٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي قَصْدِ الْخُطْبَةِ

### په خطبي كي داعتدال اختيارولو بيان

٥٠٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "كُنْتُ أُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَتْ صَلَاتُهُ قَصْدًا وَخُطْبَتُهُ قَصْدًا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، وَابْنِ أَبِي أَوْفَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دجابر بن سمره رضي الله عنه نه مروي دي چي ما به دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره مونځ كولو او دهغه مونځ به متوسط يعني درميانه حالت والا وو او خطبه به يي هم درميانه وه.

امام ترمذي وائي دجابر بن سمره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعمار بن ياسر، او ابن ابي اوفي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : **دخطبي مقدار**

دخطبي په مقدار كي په خپله د احنافو عالمان مختلف دي:

---

[1] _ صحيح مسلم في الجمعة ١٣ (٨٦٦) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٢٩ (١١٠١) . سنن النسائي في العيدين ٢٦ (١٥٨٥) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٥ (١١٠٦) . (تحفة الأشراف : ٢١٦٤) . مسند احمد (٥ في ٩١. ٩٣٩٥. ٩٨. ١٠٠. ١٠٢) . سنن الدارمي في الصلاة ١٩٩ (١٥٩٨)

(۱) د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد که دخطبي په اراده صرف "الحمدلله" اووائی یا "سبحان الله" اووائی، یا "لا اله الا الله" اووائی، نو جائز ده، او که د پرنجي په وجه خطیب "الحمدلله" اووائی یا د تعجب په وجه "سبحان الله" اووائی، نو په اتفاق سره خطبه جائز نه ده.
(۲) صاحبین فرمائی چی دومره قدري اوږدوالي ضروري دی چی عادةً عرفًا ورته خطبه ونیلی شي متعارفه خطبه داده چی خطیب د الله حمد بیان کړی، په رسول ﷺ باندی درود اووائی، او دټولو مسلمانانو دپاره دخیر دعا اوکړی.
(۳) د امام کرخی رحمه الله په نزد د متعارف خطبي مقدار دري ایاتونه دی
(۴) او د بعضو په نزد د تشهد مقدار دی ، یعني د "التحیات" نه د "عبده ورسوله" پوری.
دصاحبینو دلیل دادی چی واجب خو هغه دی ، چی ورته خطبه اوونیلي شي او "الحمدلله" ونیل یا "سبحان الله" ونیل یا "لااله الاالله" ونیلو نوم خطبه نه دی ، که خطیب صرف دا کلمه اووائی ، نوواجب خطبه ادا نشوه.
امام شافعی رحمه الله فرمائی، چی دوه خطبي واجب دی، ورومبی خطبه د الله حمد ، صلوة علی النبیﷺ، د تقوی وصیت، او کم نه کم چی په یو ایت باندی مشتمل وی، او په دویمه خطبه کي د ایت په ځای د مسلمانانو سرو او ښځو دپاره دعا وی
**د امام شافعی رحمه الله دلیل:** عرف او دخلقو عادت دی ، یعني ددی نه کم ته د خلقو په عادت اوعرف کي خطبه نشی ونیلی ، او عام طور خطیبان صاحبان ددی نه کمه خطبه نه وائی.
**د احنافو مستدل:** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل د باری تعالی قول: فاسعوا الي ذکر الله الآیة،دی . په دی طریقه چی دټولومفسرینوپه نزد د ذکرالله نه خطبه مراد ده، او په دی کي دقلیل اوکثیر څه تفصیل هم نشته، دا ثابته نشوه، چی مطلقاً به په ذکرالله سره خواه که قلیل وی اوکه کثیر واجبه خطبه ادا شی
**دامام صاحب دمسلک دتائید دپاره مندرجه ذیل دلائل دي:**
(۱) د عثمان رضي الله عنه حال مروی دی ، دخلیفه جوړیدلو نه پس چی کله په ورومبی ځل دجُمعي ادا کولو دپاره منبر ته اوختلو اوالحمدلله ئی اوونیله، نو ددوی ژبه بنده شوه، دوی د منبر نه راکوز شو، اوخلقو ته ئی دجُمعي مونځ ورکړو، په دغه وخت صحابه عالمان هم موجود وو، خو چا هم د عثمان رضي الله عنه په دی فعل باندی نکیر او نه اوکړلو ، نو د صحابو د سکوتی اجماع نه هم ثابت شو، چی د الله په ذکر باندی اکتفاء کولوسره خطبه جائز ده ، پاتي شوه دصاحبینو دا قول چی لفظ د "الحمدلله" ته عرفًا خطبه نشی ونیلی ، بیشکه دی ته عرفًا خطبه نشی ونیلی ، خولغة ورته خطبه ونیلي شی.

(۲) هم دغه وجه ده، چی نبیﷺ هغه سړی ته چاچی من يطع الله ورسوله فقد رشد ومن يعصهما فقد غوى] اونيل. [بئس الخطيب انت فرمائيلی وو. اوګوری په دومره مقدار کلام کولوسره نی ده ته خطيب وئيلی . دی نه معلومه شوه، چی دخطبی دپاره طويل ذکر ضروری نه دی

***************

## ۱۳ــ بَاب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ

## په منبر دقراءت کولو بيان

٥٠٨ــ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ وَنَادَوْا يَا مَالِكُ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ حَدِيثُ ابْنِ عُيَيْنَةَ، وَقَدِ اخْتَارَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يَقْرَأَ الْإِمَامُ فِي الْخُطْبَةِ آيًا مِنَ الْقُرْآنِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَإِذَا خَطَبَ الْإِمَامُ فَلَمْ يَقْرَأْ فِي خُطْبَتِهِ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ أَعَادَ الْخُطْبَةَ. (1)

**ترجمه** . ديعلي بن اميه نه مروي دي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په منبر باندي دا اوريدلي دي "ونادوا يا مالك" .يعني مالك فرشته يي راوبلله.

امام ترمذي واني ديعلي بن اميه حديث حسن غريب دي او همدا دابن عيينه حديث دي.او په دي باب كي دابوهريره او جابر بن سمره رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي. داهل علمو يو جماعت امام دپاره په خطبه كي څه ايتونه لوستل خوښ كړي دي. امام شافعي واني كه امام خطبه وركوي او په دي كي دقران څه حصه اونه لولي نو خطبه دي راوګرځوي.

***************

## ١٤ــ بَاب مَا جَاءَ فِي اسْتِقْبَالِ الْإِمَامِ إِذَا خَطَبَ

## دخطبي وخت كي امام ته دمخامخ كيناستو بيان

1 ـ صحيح البخارى في بدء الخلق ٧ (٣٢٣٠) ، و١٠ (٣٢٦٦) ، وتفسير الزخرف ١ (٤٨١٩) . صحيح مسلم في الجمعة ١٣ (٨٧١) . (تحفة الأشراف : ١١٨٣٨)

٥٠٩_ حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ يَعْقُوبَ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَوَى عَلَى الْمِنْبَرِ اسْتَقْبَلْنَاهُ بِوُجُوهِنَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عُمَرَ. وَحَدِيثُ مَنْصُورٍ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ الْفَضْلِ بْنِ عَطِيَّةَ. وَمُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ بْنِ عَطِيَّةَ ضَعِيفٌ ذَاهِبُ الْحَدِيثِ عِنْدَ أَصْحَابِنَا. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ يَسْتَحِبُّونَ اسْتِقْبَالَ الْإِمَامِ إِذَا خَطَبَ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَا يَصِحُّ فِي هَذَا الْبَاب عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به كله په منبر كيناستو نو مونږ به خپل مخونه هغه ته مخامخ كړل

امام ترمذي وائي دمنصور حديث مونږ صرف دمحمد بن فضل بن عطيه په سند پيژنو. محمد بن فضل بن عطيه زمونږ دعلماؤ په نزد ضعيف دي او هغه ذاهب الحديث دي. په دي باب كي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه څومره روايات نقل كړي شوي دي په هغي كي هيڅ يو روايت درست نه دي دصحابه كرامو اهل علمو عمل هم په دي باندي دي چي هغوئ دخطبي په وخت كي امام ته مخامخ كيناستل خوښوي او مستحب يې ګڼړي او همدا دسفيان ثوري، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه قول هم دي او په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي.

***************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ إِذَا جَاءَ الرَّجُلُ وَالإِمَامُ يَخْطُبُ

### د خطبي وخت كي ددوه ركعتونو كولو بيان

٥١٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، إِذْ جَاءَ رَجُلٌ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "

---

[1] - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٣٥٨)

أَصَلَّيْتَ؟ " قَالَ: لَا. قَالَ: " قُمْ فَارْكَعْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ. [1]

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه مروي دي چي يو خل نبي كريم صلي الله عليه وسلم دجمعي په ورځ خطبه وركوله او په دي دوران كي يو كس راغي رسول الله ورنه تپوس اوكړو چي ايا تا مونځ كړي دي هغه اوونيل نه، ورته يي اوفرمائيل پاځه مونځ اوكړه.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او ددي باب په وارد شوو رواياتو كي دټولو نه زيات صحيح دي.

* * * * * * * * * * * * * *

٥١١ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي سَرْحٍ، أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ دَخَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَمَرْوَانُ يَخْطُبُ، فَقَامَ يُصَلِّي، فَجَاءَ الْحَرَسُ لِيُجْلِسُوهُ فَأَبَى حَتَّى صَلَّى، فَلَمَّا انْصَرَفَ أَتَيْنَاهُ، فَقُلْنَا: رَحِمَكَ اللَّهُ إِنْ كَادُوا لَيَقَعُوا بِكَ، فَقَالَ: مَا كُنْتُ لِأَتْرُكَهُمَا بَعْدَ شَيْءٍ رَأَيْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ثُمَّ ذَكَرَ أَنَّ رَجُلًا جَاءَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي هَيْئَةٍ بَذَّةٍ، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، " فَأَمَرَهُ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ ". قَالَ ابْنُ أَبِي عُمَرَ: كَانَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ إِذَا جَاءَ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، وَكَانَ يَأْمُرُ بِهِ، وَكَانَ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُقْرِئُ يَرَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت ابْنَ أَبِي عُمَرَ، يَقُولُ: قَالَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ: كَانَ مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ ثِقَةً مَأْمُونًا فِي الْحَدِيثِ. قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا دَخَلَ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، فَإِنَّهُ يَجْلِسُ وَلَا يُصَلِّي، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ. حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ خَالِدٍ الْقُرَشِيُّ، قَالَ: رَأَيْتُ الْحَسَنَ الْبَصْرِيَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ جَلَسَ، إِنَّمَا

---

[1] ـ صحيح البخارى في التهجد ٢٥ (١١٣٦)، والجمعة ٣٢ (٩٣٠)، و٣٣ (٩٣١). صحيح مسلم في الجمعة ١٤ (٨٧٥). سنن النسائي في الجمعة ٢١ (١٤٠١). سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٧ (١١١٢). (تحفة الأشراف: ٢٥١١). مسند احمد (٣ في ٢٩٧، ٣٠٨، ٣٦٩). سنن الدارمى في الصلاة ١٩٦ (١٥٠٦)

فَعَلَ الْحَسَنُ اتِّبَاعًا لِلْحَدِيثِ. وَهُوَ رَوَى عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الْحَدِيثَ.

([1])

**ترجمه** دعياض بن عبدالله بن ابي سرح نه روايت دي چي ابو سعيد خدري رضي الله عنه دجمعي په ورځ مسجد ته داخل شو او مروان بن حكم خطبه وركوله دي پاڅيدو او مونځ يي شروع كړو پيره دار ددي دپاره راغلو چي دي كينوي ليكن هغه نه منل او مونځ يي اوكړو هر كله چي دمونځ نه فارغ شو نو مونږ ورته ورغلو او ورته مو اوونيل الله دي درباندي رحم اوكړي نږدي وه چي دي خلقو وهلي وي هغه اوونيل زه خو هيڅ كله ددي دوه ركعاتونو پريخودونكي نه يم پس دهغه نه چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي په كولو ليدلي دي او بيا يي اوفرمائيل چي يو كس دجمعي په ورځ په ګډ وډ حالت كي راغي او رسول الله صلي الله عليه وسلم دجمعي خطبه وركوله نو رسول الله ورته د دوه ركعاته كولو حكم اوكړو او هغه دوه ركعاتونه شروع كړل او رسول الله صلي الله عليه وسلم خطبه وركوله. دابن ابي عمر رضي الله عنه بيان دي سفيان بن عيينه به مسجد ته راتلو او امام به خطبه وركوله او هغه به دوه ركعاته مونځ كولو او خلقو ته به يي ددي حكم هم كولو او ابو عبدالرحمن المقري به هم دا عمل درست ګڼرلو.

امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري حديث حسن صحيح دي مادابن ابي عمر نه اوريدلي دي سفيان بن عيينه به ونيل چي محمد بن عجلان ثقه دي او دحديث په باب كي معتبر دي، او په دي باب كي دجابر، ابوهريره، او سهل بن سعد رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي، امام شافعي، احمد او اسحاق هم ددي قائل دي. او بعضي اهل علم وائي چي كله څوك مسجد ته داخل شي او امام خطبه وركوي نو دي دي په ناسته مونځ نه كوي همدا دسفيان ثوري او اهل كوفه قول دي، اولني قول زيات صحيح دي. علاء بن خالد قريشي وائي ما حسن بصري ليدلي وو چي دجمعي په ورځ مسجد ته داخل شو او امام خطبه وركوله او هغه دوه ركعاته مونځ اوكړو بيا كيناستو او حسن بصري دا عمل دحديث په اتباع كي اوكړو دا حديث هغه دجابر نه او جابر دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي

[1] ـ سنن ابي داود في الزكاة ٢٩ (١٦٧٥) . (مختصرا) . سنن النسائي في الجمعة ٢٦ (١٤٠٩) . والزكاة ٥٥ (٢٥٣٤) . (تحفة الأشراف: ٢٢٤٢). مسند احمد (٣/٢٥)

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي دخطبي په دوران کي تحية المسجد پکار دي او کنه په دي کي دوه مذاهب دي دامام ابو حنيفه او امام مالك په نزد دخطبي په دوران کي هيڅ قسم مونځ کول جائز نه دي تحية المسجد وي او که ددينه علاوه وي
مګر دامام شافعي او امام احمد په نزد دخطبي په دوران کي تحية المسجد مونځ کول جائز او مندوب دي

****************

## ١٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْكَلَامِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ

### دخطبي دوران کي دخبرو کولو دکراهت بيان

٥١٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " مَنْ قَالَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ: أَنْصِتْ فَقَدْ لَغَا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ: كَرِهُوا لِلرَّجُلِ أَنْ يَتَكَلَّمَ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، وَقَالُوا: إِنْ تَكَلَّمَ غَيْرُهُ فَلَا يُنْكِرْ عَلَيْهِ إِلَّا بِالْإِشَارَةِ. وَاخْتَلَفُوا فِي رَدِّ السَّلَامِ وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ. فَرَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي رَدِّ السَّلَامِ وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَكَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ وَغَيْرِهِمْ ذَلِكَ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که چا دجمعي په ورځ دامام دخطبي په دوران کي بل چاته اووئيل چي چپ شه نو ده هم لغو کار اوکړو او يا يي خپله جمعه لغو کړه.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي . او په دي باب کي د ابن ابي اوفي، او جابر بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي علماؤ دبنده دپاره دخطبي په دوران کي خبري کول مکروه ګڼړلي دي او دا قول يي کړي دي که بل

---

[1] _ صحيح البخاري في الجمعة ٣٦ (٩٣٤). صحيح مسلم في الجمعة ٣ (٨٥١). سنن ابي داود في الصلاة ٢٣٥ (١١١٢). سنن النسائي في الجمعة ٢٢ (١٤٠٢). والعيدين ٢١ (١٥٧٨). سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٦ (١١١٠). (تحفة الأشراف : ١٣٢٠٦). موطا امام مالک في الجمعة ٢ (٦). مسند احمد (٢ في ٢٤٤. ٢٧٢. ٢٨٠. ٣٩٣. ٣٩٦. ٤٨٥. ٥١٨. ٥٣٢). سنن الدارمي في الصلاة ١٩٥ (١٥٨٩)

څوك خبري كوي نو هغه لره په اشاري سره منع كول پكار دي البته د خطبي په دوران كي دسلام جواب وركول او دپرنجي والا په جواب كي يرحمك الله وئيلو كي اختلاف دي بعضي اهل علمو اجازت وركړي دي دامام احمد او اسحاق هم دا قول دي او بعضي تابعينو مكروه كنړلي دي دامام شافعي رحمهم الله هم دا قول دي.

***************

## ١٧ــ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ التَّخَطِّي يَوْمَ الْجُمُعَةِ

## د جمعي په ورځ د خلقو په څټونو د تيريدو د كراهت بيان

٥١٣ــ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَبَّانَ بْنِ فَائِدٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اتَّخَذَ جِسْرًا إِلَى جَهَنَّمَ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ رِشْدِينَ بْنِ سَعْدٍ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا أَنْ يَتَخَطَّى الرَّجُلُ رِقَابَ النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَشَدَّدُوا فِي ذَلِكَ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي رِشْدِينَ بْنِ سَعْدٍ وَضَعَّفَهُ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ.[1]

**ترجمه** دمعاذ بن انس جهني رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجمعي په ورځ كه چا دخلقو په څټونو توپونه اووهل او تيريدل يي اوكړل نو هغه جهنم ته درسيدلو دپاره خان دپاره پل جوړ كړو.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دجابر نه هم روايت وارد دي، او دسهل بن معاذ بن انس حديث غريب دي مونږ يي صرف درشدين بن سعد په روايت پيژنو البته داهل علمو عمل په دي باندي دي هغوئ دا مكروه ګنړي چي څوك دجمعي په ورځ دخلقو دڅټونو دپاسه تير شي او هغوئ په دي كار كي دسختئ نه كار اخستلي دي او دحفظ په اعتبار يي دده تضعيف كړي دي بعضي اهل علمو په رشدين بن سعد كلام كړي دي

***************

## ١٨ــ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الِاحْتِبَاءِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ

## د خطبي وخت د احتباء هليت جوړولو د كراهت بيان

[1] ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٨ (١١١٦)، (تحفة الأشراف: ١١٢٩٢)، مسند احمد (٣/ ٤٣٧)

٥١٤_ حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدُّورِيُّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُقْرِئُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي أَبُو مَرْحُومٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " نَهَى عَنِ الحِبْوَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالإِمَامُ يَخْطُبُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو مَرْحُومٍ اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ مَيْمُونٍ، وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ الْحِبْوَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالإِمَامُ يَخْطُبُ، وَرَخَّصَ فِي ذَلِكَ بَعْضُهُمْ مِنْهُمْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ وَغَيْرُهُ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: لَا يَرَيَانِ بِالْحِبْوَةِ وَالإِمَامُ يَخْطُبُ بَأْسًا. [1]

**ترجمه** : دمعاذ بن انس رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجمعي په ورځ کله چي امام خطبه ورکوي نو د زنگنونه په خيتي پوري جوختولوبه حالت کي يي کيناستو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي عامو اهل علمو دجمعي په ورځ احتباء مکروه گڼلي ده او بعضو اجازت ورکړي دي چي يو دهغوئ نه عبدالله بن عمرو هم دي، امام احمد او اسحاق هم په دي باندي قول کړي دي دوئ دواړه دامام دخطبي په وخت کي په احتباء کي څه حرج نه گڼري.

**تخريج** : سنن ابي داود في الصلاة ٢٣٤ (١١١٠) . (تحفة الأشراف : ١١٢٩٩) . مسند احمد (٣ في ٤٣٩)

**دمعاذ بن انس رضي الله عنه حالات**

نوم معاذ دپلار نوم انس قبيله جهينه سره تعلق لري، دي په مصريانو کي شميرلي شي چي مرويات يي دير مونډلي شي اکثر ورنه دده خوي سهل نقل دروايت کوي.

***************

## ١٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ رَفْعِ الأَيْدِي عَلَى الْمِنْبَرِ

### په منبر د لاسونو پورته کولو بيان

٥١٥_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَارَةَ بْنَ رُوَيْبَةَ الثَّقَفِيَّ، وَبِشْرُ بْنُ مَرْوَانَ يَخْطُبُ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ، فَقَالَ عُمَارَةُ: " قَبَّحَ اللَّهُ هَاتَيْنِ الْيُدَيَّتَيْنِ

---

[1] _ سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٨ (١١٣٦) . (تحفة الأشراف : ١١٢٩٣). مسند احمد (٣ ف/٤٣٤)

الْمِنْبَرَيْنِ، لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَا يَزِيدُ عَلَى أَنْ يَقُولَ هَكَذَا، وَأَشَارَ هُشَيْمٌ بِالسَّبَّابَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دحصين بيان دي چي بشر بن مروان خطبه وركوله او ددعا دپاره يي لاسونه پورته كړي وو دي وخت كي ما دعماره بن رويبه نه دا واوريدل چي الله تعالي دي دده دا دواړه لندي لاسونه برباد كړي مارسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي هغه به صرف داسي كول او ددينه يي زيات نور هيڅ نه كول او هشيم راوي په دي وخت كي دخپلي شهادت په ګوتي اشاره اوكره.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**دابو زهير عماره بن رويبه رضي الله عنه حالات:**

نوم عماره كنيه ابو زهير دپلار نوم رويبه دقبيله ثقيف سره تعلق لري او دكوفي اوسيدونكى دى دده نه دده تمام خامن ابوبكر او ابو اسحاق روايت نقل كوي ټول ورنه نهه احاديث مروي دي چي دوه په مسلم كي هم موجود دي.

****************

## ٢٠_بَاب مَا جَاءَ فِي أَذَانِ الْجُمُعَةِ

**دجمعي دپاره داذان كولو دوخت بيان**

٥١٦_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ الْخَيَّاطُ، عَنْ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: "كَانَ الأَذَانُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ إِذَا خَرَجَ الإِمَامُ وَإِذَا أُقِيمَتِ الصَّلاَةُ، فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، زَادَ النِّدَاءَ الثَّالِثَ عَلَى الزَّوْرَاءِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دسائب بن يزيد رضي الله عنه نه مروي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم او ابوبكر او عمر رضي الله عنه په زمانه كي به اولني اذان هغه وخت كيدو كله چي به امام خطبي

---

[1] ـ صحيح مسلم في الجمعة ١٣ (٨٤٢) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٣٠ (١١٠٢) . سنن النسائي في الجمعة ٢٩ (١٤١٣) . (تحفة الأشراف: ١٠٣٧٧) . مسند احمد (٤/ ١٣٥، ١٣٦، ٢٦١) . سنن الدارمي في الصلاة ٢٠١ (١٦٠١)

[2] ـ صحيح البخاري في الجمعة ٢١ (٩١٢) ، و٢٢ (٩١٣) ، و٢٤ (٩١٥) ، و٢٥ (٩١٦) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٢٥ (١٠٨٧) . سنن النسائي في الجمعة ١٥ (١٣٩٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٩٧ (١١٣٥) . (تحفة الأشراف: ٣٧٩٩) . مسند احمد (٣/ ٤٥٠)

ته راووتلو او دويم اذان به هغه وخت كيدو كله چي به مونځ اودريدو مګر كله چي عثمان رضي الله عنه خليفه شو نو هغوئ په زوراء كي د دريم اذان اضافه اوكړه امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : " زوراء " مسجد نبوي ته متصل په بازار كي ديو لوړ ځاي نوم دي. دا اذان به دلته كيدو ددي دپاره چي خلق خبر شي او راشي او بيا به د لړ شان وقفي نه پس عثمان رضي الله عنه راوتلو او دويم اذان به دمنبر په مخامخ په مسجد كي كيدو.

**دسائب بن يزيد رضي الله عنه حالات**

نوم سائب دپلار نوم يزيد بن سعيد بن ثمامه كندي. امام زهري وائي چي كندي په يمن كي د ازد قبيلي يو شاخ دی مګر په بنوكنانه كي شميرلی شي سائب دعمر كندي خوريی دی. دهجرت په شلم كال پيدا شوی دی او داوه كالو په عمر كي دخپل پلار سره په حجة الوداع كي شريك شوی دی دده نه عموما زهري او محمد بن يوسف نقل دروايت كوي چي كنړ شمير روايات ورنه منقول دي او دهجرت په ۸۰ كال وفات شوی دی.

****************

## ٢١ـ باب مَا جَاءَ فِي الْكَلَامِ بَعْدَ نُزُولِ الإِمَامِ مِنَ الْمِنْبَرِ

**دمنبر نه دامام دكوزيدو وخت كي دخبرو كولو بيان**

٥١٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَلِّمُ بِالحَاجَةِ إِذَا نَزَلَ عَنِ الْمِنْبَرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ جَرِيرِ بْنِ حَازِمٍ. قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا، يَقُولُ: وَهِمَ جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ فِي هَذَا الحَدِيثِ، وَالصَّحِيحُ مَا رُوِيَ عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: " أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَأَخَذَ رَجُلٌ بِيَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَمَا زَالَ يُكَلِّمُهُ حَتَّى نَعَسَ بَعْضُ القَوْمِ ". قَالَ مُحَمَّدٌ: وَالحَدِيثُ هُوَ هَذَا. وَجَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ رُبَّمَا يَهِمُ فِي الشَّيْءِ، وَهُوَ صَدُوقٌ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَهِمَ جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ فِي حَدِيثِ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي ". قَالَ مُحَمَّدٌ: وَيُرْوَى عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ ثَابِتٍ البُنَانِيِّ فَحَدَّثَ حَجَّاجٌ الصَّوَّافُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي" فَوَهِمَ جَرِيرٌ فَظَنَّ أَنَّ ثَابِتًا حَدَّثَهُمْ عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به د ضرورت خبري هغه وخت كولي كله چي به دمنبر نه راكوز شو

امام ترمذي وائي مونږ دا حديث صرف دجرير بن حازم په سند پيژنو او ما د امام بخاري نه اوريدلي وو چي جرير بن حازن په دي حديث كي په وهم كي مبتلا شوي وو او صحيح هغه روايت دي كوم چي په سند دثابت دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چي مونځ قائم شو او يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم لاس اونيولو او هغه ورسره برابر خبري شروع كړي تردي پوري چي بعضي خلقو پيرشاني راغله امام بخاري وائي دا هم هغه حديث دي خو جرير كله كله په وهم كي مبتلا كيږي او حال دادي چي دا صدوق دي. امام بخاري وائي جرير بن حازم دثابت په حديث كي كوم چي هغه دانس نه نقل كړي دي او انس درسول الله نه نقل كړي دي په وهم كي واقع شوي دي چي انس رضي الله عنه فرمائيل كله چي مونځ قائم شي نو تاسو هغه وخته پوري مه اودريږئ تر څو چي مو زه ليدلي نه يم، امام بخاري وائي همدا رنګي دحماد بن زيد نه مروي دي چي مونږ دثابت بناني سره موجود وو او حجاج صواف ديحي بن ابي كثير په واسطه حديث بيان كړو كوم چي يحي دعبدالله بن ابي قتاده نه او عبدالله دخپل پلار ابوقتاده نه او ابوقتاده دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كله چي مونځ اودريږي نو تر هغه وخته پوري مه اودريږئ څو پوري چي مو زه ليدلي نه يم چنانچه جرير په وهم كي واقع شو او دا ګمان يي اوكړو چي ثابت دانس رضي الله عنه نه بيان كړي دي او انس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي

***************

٥١٨_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: لَقَدْ "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا تُقَامُ الصَّلَاةُ يُكَلِّمُهُ الرَّجُلُ يَقُومُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ

1 _ سنن ابي داود في الصلاة ٢٤٠ (١١٢٠) . سنن النسائي في الجمعة ٣٦ (١٤٢٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٩ (١١١٧) . (تحفة الأشراف : ٢٦٠) . مسند احمد (٣ في ١٢٧)

الْقِبْلَةِ، فَمَا يَزَالُ يُكَلِّمُهُ، فَلَقَدْ رَأَيْتُ بَعْضَنَا يَنْعَسُ مِنْ طُولِ قِيَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ.
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي چي دمونځ اودريدو نه پس ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي يو كس ورسره خبري كولي او رسول الله دهغه او دقبلي په مينځ كي ولاړ وو چي ګفتګو برابر جاري وه ما اوليدل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د طول قيام په وجه د بعضي خلقو ستركي پټي پټي كيدلي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي. او دا حديث سفيان ثوري او شعبه وغيره دمخول نه هم نقل كړى دى.

***************

## ٢٢_باب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ فِي صَلَاةِ الْجُمُعَةِ

### د جمعي مونځ كوم كوم سورتونه لوستل پكار دي

٥١٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيل، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ مَوْلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: اسْتَخْلَفَ مَرْوَانُ، أَبَا هُرَيْرَةَ عَلَى الْمَدِينَةِ وَخَرَجَ إِلَى مَكَّةَ فَصَلَّى بِنَا أَبُو هُرَيْرَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقَرَأَ سُورَةَ الْجُمُعَةِ، وَفِي السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ، قَالَ عُبَيْدُ اللهِ: فَأَدْرَكْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، فَقُلْتُ لَهُ: تَقْرَأُ بِسُورَتَيْنِ كَانَ عَلِيٌّ يَقْرَأُ بِهِمَا بِالْكُوفَةِ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهِمَا. قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَالنُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، وَأَبِي عِنَبَةَ الْخَوْلَانِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرُوِي عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ "يَقْرَأُ فِي صَلَاةِ الْجُمُعَةِ بِ: سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَ هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ. عُبَيْدُ اللهِ بْنُ أَبِي رَافِعٍ: كَاتِبُ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. (2)

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٨٨)

2 صحيح مسلم في الجمعة ١٦ (٨٧٧). سنن ابي داود في الصلاة ٢٤٢ (١١٢٤). سنن ابن ماجه في الإقامة ٩٠ (١١١٨). (تحفة الأشراف: ١٤١٠٢)

**ترجمه** : دعبيدالله بن ابي رافع بيان دي چي مروان ابوهريره رضي الله عنه لره په مدينه کي خپل نائب مقرر کړو او دي پخپله مکي ته لاړو ابو هريره رضي الله عنه مونږ ته دجمعي په ورځ مونځ راکړو او په اولني رکعات کي يي سورة الجمعه اولوستله او په دويم کي يي سورة المنافقون اولوستلو، عبيدالله وائي زه دابوهريره رضي الله عنه سره ملاؤ شوم او ورته مي اووئيل تاخو داسي دوه سورتونه اولوستل کوم چي به علي رضي الله عنه په کوفه کي لوستل دي وخت کي ابوهريره رضي الله عنه اووئيل ما دا دوه سورتونه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دجمعي په مونځ کي د لوستلو په حال کي اوريدلي دي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، په دي باب کي دابن عباس، نعمان بن بشير، او ابو عنبه خولاني رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي ، درسول الله نه دا هم مروي دي چي دجمعي په مونځ کي به يي "سبح اسم ربك الاعلي" او "هل اتاك حديث الغاشيه" لوستل.او عبيد الله بن ابي رافع د د علي رضي الله عنه کاتب وو.

***************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِيمَا يَقْرَأُ بِهِ فِي صَلاَةِ الصُّبْحِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### د جمعي په ورځ دسحر په مونځ څه لوستل پکار دي

٥٢٠_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ مُخَوَّلِ بْنِ رَاشِدٍ، عَنْ مُسْلِمٍ الْبَطِينِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ: الم تَنْزِيلُ السَّجْدَةَ وَ هَلْ أَتَى عَلَى الإِنْسَانِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ سَعْدٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَاهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَشُعْبَةُ وَغَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ مُخَوَّلٍ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دجمعي په ورځ دسحر په مونځ کي "الم تنزيل السجده " او "هل اتي علي الانسان" لوستل.

---

1 _ صحيح مسلم في الجمعة ١٦ (٨٧٩) . سنن ابي داود في الصلاة ٢١٨ (١٠٤٢) . سنن النسائي في الافتتاح ٤٧ (٩٥٤) . والجمعة ٣٨ (١٣٢٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٦ (٨٢١) . (تحفة الأشراف : ٥٦١٣) . مسند احمد (١/ في٢٢٦ . ٢٠٤ . ٣١٦ . ٣٢٨ . ٣٣٤ . ٣٥٤)

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د سعد، ابن مسعود او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، سفيان ثوري او شعبه اوبعضي نورو محدثينو هم داحديث د مخول بن راشد نه نقل كړي دي.

****************

## ٢٤_باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ قَبْلَ الْجُمُعَةِ وَبَعْدَهَا

### د جمعي د مونځ نه مخكي د (نفلي او سنت) مونځ كولو بيان

٥٢١_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ سَالِمٍ. عَنْ أَبِيهِ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَيْضًا. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ. وَأَحْمَدُ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به د جمعي د مونځ نه پس دوه ركعاته سنت كول.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي، دا حديث په سند دنافع عن ابن عمر مروي دي او په همدي باندي دبعضي اهل علمو عمل دي او په همدي باندي امام شافعي او امام احمد هم قول كړي دي.

**دسالم بن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات**

نوم سالم كنيه ابو عمر، واقعه داسي وه چي دعمر رضي الله عنه په زمانه كي دايران دشاهنشاه كومي جينكئ گرفتار شوي وي په هغي كي يوه عبدالله رضي الله عنه ته وركړى شوه او سالم دهغي نه پيدا شو (تهذيب التهذيب).

په فقه حديث او تفسير كي بي مثال نه وو دامام مالك قول دى چي دسالم په زمانه كي دده نه زيات تقوي دار بل څوك نه وو او نه دسلفو سره دده نه زيات مشابه بل څوك وو (تذكرة الحفاظ).

علامه ذهبي وائي سالم فقيه او حجت دى او دهغه مخصوصو علماؤ نه دى دچا ذات چي علم او عمل لره جمع كونكي دي (تذكرة الحفاظ).

---

[1] ـ صحيح مسلم في الجمعة ١٨ (٨٨٢). سنن ابي داود في الصلاة ٢٤٤ (١١٣٢). سنن النسائي في الجمعة ٤٣ (١٤٢٨). سنن ابن ماجه في الإقامة ٩٥ (١١٣١). (تحفة الأشراف: ٦٩٠١). وكذا (٦٩٢٨). مسند احمد (٢ في ١١. ٣٥. ٧٥. ٧٧)

امام نووي وائي چي دسالم په امامت او جلالت زهد او ورع دټولو اتفاق دی (تهذيب الاسماء).
دانتهائي ساده ژوند مالك وو دتكلف او تصنع خلاف وو حافظ ذهبي ليكلي دي چي دوړئ لباس به يي استعمالولو چي دټولو لباس قيمت به يي د دوه درهمو نه زيات نه وو او دخوراك دپاره به يي صرف ډوډئ او زيتون استعمالول.
۱۰۲ هجري ذي الحجه كي په مدينه كي وفات شو هشام بن عبدالملك چي دحج نه فارغ شو او مدينه ته راغی نو په ده باندي يي جنازه اوكړه په جنازه كي دخلقو ډير هجوم وو نو په دي وجه په ده باندي په جنة البقيع كي جنازه اوشوه (طبقات ابن سعد).
ابن خلكان وغيره دده مزيد تفصيلات ليكلي دي.

****************

٥٢٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ كَانَ إِذَا صَلَّى الْجُمُعَةَ انْصَرَفَ فَصَلَّى سَجْدَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ، ثُمَّ قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ ذَلِكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دنافع نه روايت دي چي ابن عمر رضي الله عنهما به كله دجمعي مونځ كولو نو كور ته به واپس راغلو او دوه ركعاته به يي په كور كي كول او بيا به يي وئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم به همداسي كول.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

٥٢٣ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ، قَالَ: كُنَّا نَعُدُّ سُهَيْلَ بْنَ أَبِي صَالِحٍ ثَبْتًا فِي الْحَدِيثِ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ أَمَرَ أَنْ يُصَلَّى بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ أَرْبَعًا. وَذَهَبَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ إِلَى قَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ. وَقَالَ إِسْحَاقُ: إِنْ صَلَّى فِي الْمَسْجِدِ يَوْمَ

---

[1] ـ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ٨٢٤٦)

الْجُمُعَةِ صَلَّى أَرْبَعًا، وَإِنْ صَلَّى فِي بَيْتِهِ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، وَاحْتَجَّ بِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ، وَحَدِيثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَابْنُ عُمَرَ هُوَ الَّذِي رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ كَانَ "يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ" وَابْنُ عُمَرَ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى فِي الْمَسْجِدِ بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ، وَصَلَّى بَعْدَ الرَّكْعَتَيْنِ أَرْبَعًا. (1)

حَدَّثَنَا بِذَلِكَ ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ صَلَّى بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى بَعْدَ ذَلِكَ أَرْبَعًا.

حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، قَالَ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَنَصَّ لِلْحَدِيثِ مِنَ الزُّهْرِيِّ، وَمَا رَأَيْتُ أَحَدًا الدَّنَانِيرُ وَالدَّرَاهِمُ أَهْوَنُ عَلَيْهِ مِنْهُ. إِنْ كَانَتِ الدَّنَانِيرُ وَالدَّرَاهِمُ عِنْدَهُ بِمَنْزِلَةِ الْبَعْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ سُفْيَانَ بْنَ عُيَيْنَةَ. يَقُولُ: كَانَ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ أَسَنَّ مِنَ الزُّهْرِيِّ.

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي په تاسو کي دجمعي دمونځ نه پس مونځ کوي نو پکار ده چي څلور رکعاته اوکړي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او بعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي.

دا رنګي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه هم مروي دي چي هغه به دجمعي دمونځ نه مخکي څلور رکعاتونه او ددينه پس هم څور رکعاتونه کول، او دعلي رضي الله عنه نه هم مروي دي چي هغه حکم کړي دي چي دجمعي دمونځ نه مخکي دوه رکعاتونه دي او روسته څلور رکعاتونه کول پکار دي، سفيان ثوري او ابن مبارك هم دابن مسعود قول اختيار کړي دي، اسحاق بن راهويه وائي که څوك دجمعي په ورځ په مسجد کي مونځ کوي نو څلور رکعاتونه دي اوکړي او که په کور کي يي کوي نو دوه دي اوکړي، دهغوئ دليل دادي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم د جمعي دمونځ نه پس دوه رکعاتونه پخپل کور کي کول. او درسول الله نه دا هم مروي دي چي په تاسو کي که څوك دجمعي نه پس مونځ کوي نو څلور رکعاته دي کوي، دابن عمر نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دجمعي دمونځ نه پس دوه

1 ـ صحيح مسلم في الجمعة ١٨ (٨٨١) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٢ (١١٣١) . سنن النسائي في الجمعة ٤٢ (١٤٢٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٩٥ (١١٣٢) . (تحفة الأشراف : ١٢٦٦٧) . (وكذا: ١٢٦٦٣)

رکعاتونه پخپل کور کي کول او ابن عمر پخپله دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په مسجد کي د جمعي دمونځ نه پس دوه رکعاتونه اوکړل او د دوه رکعاتونو نه پس يي څلور رکعاتونه اوکړل، دعطاء نه روايت دي فرمائي چي ما ابن عمر رضي الله عنهما اوليدلو چي دجمعي دمونځ نه پس يي دوه رکعاتونه اوکړل او بيا يي وروسته څلور رکعاتونه اوکړل.
امام ترمذي وائي ابن ابي عمر پخپل سند دعطاء نه روايت نقل کړي دي چي وئيل يي ما ابن عمر رضي الله عنهما ليدلي وو چي دجمعي دمونځ نه پس يي دوه رکعتونه وکړل او بيا يي وروسته څلور رکعاتونه اوکړل.
امام ترمذي وائي د عمرو بن دينار قول دي ما د زهري نه زيات يادونکي د حديث بل څوك ندي ليدلي اوما دهغه زيات پيسي لره سپك ګڼونکي نه دي ليدلي پيسي به هغه ته د پچو پشان ښکاريدلي ، سفيان بن عيينه به وئيل عمرو بن دينار د زهري نه مشر وو.
**تشريح** : په دي کي اختلاف دي چي د جمعي دمونځ نه مخکي او روسته څومره څومره سنت کول پکار دي په دي مسئله کي دعلماؤ دري مذاهب دي.
(۱) دجمعي دمونځ نه مخکي داحنافو په نزد بالاتفاق څلور رکعاته سنت دي او په دي باندي دزير بحث حديث نه استدلال کوي او دويم دليل يي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه عمل دي "انه کان يصلي قبل الجمعة اربعا وبعدها اربعا".
(۲) دصاحبينو په نزد دجمعي نه مخکي څلور سنت دي او دجمعي نه پس شپږ سنت دي او دامام ابوحنيفه په نزد دجمعي نه پس څلور سنت دي.
(۳) دامام شافعي او امام احمد په نزد دجمعي مخکي او روسته سنت دوه دوه رکعاته دي.

****************

## ۲۵_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ أَدْرَكَ مِنَ الْجُمُعَةِ رَكْعَةً
### بيان دهغه چا چي د جمعي د مونځ يو رکعت ورسوي

٥٢٤_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَسَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ أَدْرَكَ مِنَ الصَّلَاةِ رَكْعَةً فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، قَالُوا: مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ

الْجُمُعَةِ صَلَّى إِلَيْهَا أُخْرَى، وَمَنْ أَدْرَكَهُمْ جُلُوسًا صَلَّى أَرْبَعًا. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه په مونځ كي يو ركعات اوموندلو نو هغه ګويا كي پوره مونځ اوموندلو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، صحابه كرامو او اهل علمو كي داكثرو په دي باندي عمل دي دوئ وائي چاچه دجمعي يو ركعات اوموندلو نو هغه دي دويم ركعات پخپله اوكړي او چاچه خلق په سجده كي اوموندل نو هغه دي څلور ركعاته (دماسپخين مونځ) اوكړي او همدا دسفيان ثوري او ابن مبارك او شافعي او احمد او اسحاق قول دي.

**تشريح** :

**دجمعي مسبوق**

كه چا دجُمعي په ورځ امام دجُمعي په مانځه كي بياموندلو اوددويم ركعت په ركوع كي امام سره شريك شو، نو په اتفاق سره دي سړی د امام سره دجُمعي مونځ ادا كړو، او يو ركعت كوم چې فوت شو، دادی د امام دسلام ګرځولونه پس پوره كړی، دده دا مونځ به دجُمعي مونځ شمارلي شی، د ماسپخين نشی شمارلی.

دليل دادی چې نبی ﷺ فرمائی [ما ادركتم فصلوا وما فاتكم فاقضوا] په حديث كي دننه دصاحب حديث مراددادی: [مافاتكم من صلوة الامام] څكه چې د [ما ادركتم فصلوا] معنی ده [من صلوة الامام] يعنی د امام دمونځ چې كومه حصه بيامومئ هغه كویٔ، اوچی كومه حصه فوت شوه دهغي قضاء راوړیٔ، يعنی د امام دسلام اړولو نه پس نی كویٔ، دا خبره ښكاره ده چې د امام د مونځ كومه حصه فوت شوی ده. هغه جمعه ده، نو مقتدی به هم جُمعه كوی، بل مونځ به نه كوی. (هدايه)

****************

## ٢٦ـ بَابِ مَا جَاءَ فِي الْقَائِلَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

**د جمعي په ورځ د قيلولي كولو بيان**

---

[1] ـ صحيح البخاري في المواقيت ٢٩ (٥٨٠) . صحيح مسلم في المساجد ٣٠ (٦٠٧) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٢١ (١١٢١) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٩١ (١١٢٢) . مسند احمد (٢ في ٢٤١، ٢٦٥، ٢٧١، ٢٨٠، ٣٧٥، ٣٧٦) . سنن الدارمی في الصلاة ٢٢

٥٢٥ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: "مَا كُنَّا نَتَغَدَّى فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا نَقِيلُ إِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه**: دسهل بن سعد رضي الله عنه بيان دي چي مونږ به درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي دجمعي دمونځ نه پس خوراك كول او قيلوله به مو كوله.

امام ترمذي وائي دسهل بن سعد حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دانس رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

**دسهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه حالات**

نوم سهل كنيه ابو العباس ، ابو مالك، ابو يحيي، دهجرت نبوي نه پنځه كاله مخكي پيدا شوي وو پلار ورله حزن نوم ايخودلى وو ليكن رسول الله صلي الله عليه وسلم ورباندي نوم بدل كړو او سهل نوم يي ورباندي كيخودو، دده پلارغزوه بدر ته دتلو اراده كړي وه ليكن دتلو نه مخكي وفات شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دتمامو مجاهدينو پشان دده دپاره هم حصه مقرره كړه سهل داكابر صحابه كرامو دوفات كيدو نه پس دخلقو مرجع اوګرځيدو دلري لري علاقو خلق به دده د درس حلقي ته راتلل سهل يو ځل دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دپاره دبديني دمشهور كوهي بير بضاعه نه دڅكلو دپاره اوبه هم راويستلي وي (مسند امام احمد بن حنبل).

وفات: دهجرت په ٩١كي دشپږ نوي كالو په عمر كي وفات شو او دده دمرواياتو شمير ١٨٨دى چي ٢٨متفق عليه دي.

*****************

## ٢٧ـ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ نَعَسَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَنَّهُ يَتَحَوَّلُ مِنْ مَجْلِسِهِ

**د جمعي په ورځ د پركالى په وجه جوتي وهونكو نكي دپاره د ځاي بدلولو بيان**

---

١ - صحيح البخاري في الجمعة ٤٠ (٩٣٩) . والحرث ٢١ (٢٣٤٩) . والاطعمة ١٧ (٥٤٠٣) . والاستئذان ١٦ (٦٢٤٨) . و٣٩ (٦٢٧٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٨٤ (١٠٩٩) . (تحفة الأشراف: ٤٦٩٨) . مسند احمد (٥ في ٣٣٦)

٥٢٦ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْأَشَجُّ. حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، وَأَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَلْيَتَحَوَّلْ مِنْ مَجْلِسِهِ ذَلِكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي په چا دجمعي په ورځ دخوب جوتې راشي نو هغه دي خپل خاي بدل كړي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٢٨ـ باب مَا جَاءَ فِي السَّفَرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### د جمعي په ورځ د سفر كولو بيان

٥٢٧ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَوَاحَةَ فِي سَرِيَّةٍ، فَوَافَقَ ذَلِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَغَدَا أَصْحَابُهُ، فَقَالَ: أَتَخَلَّفُ فَأُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ أَلْحَقُهُمْ فَلَمَّا صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَآهُ، فَقَالَ: " مَا مَنَعَكَ أَنْ تَغْدُوَ مَعَ أَصْحَابِكَ ". فَقَالَ: أَرَدْتُ أَنْ أُصَلِّيَ مَعَكَ ثُمَّ أَلْحَقَهُمْ، قَالَ: " لَوْ أَنْفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَا أَدْرَكْتَ فَضْلَ غَدْوَتِهِمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: وَقَالَ شُعْبَةُ: لَمْ يَسْمَعْ الْحَكَمُ مِنْ مِقْسَمٍ إِلَّا خَمْسَةَ أَحَادِيثَ، وَعَدَّهَا شُعْبَةُ، وَلَيْسَ هَذَا الْحَدِيثُ فِيمَا عَدَّ شُعْبَةُ، فَكَأَنَّ هَذَا الْحَدِيثَ لَمْ يَسْمَعْهُ الْحَكَمُ مِنْ مِقْسَمٍ. وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي السَّفَرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَلَمْ يَرَ بَعْضُهُمْ بَأْسًا بِأَنْ يَخْرُجَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي السَّفَرِ مَا لَمْ تَحْضُرِ الصَّلَاةُ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا أَصْبَحَ فَلَا يَخْرُجْ حَتَّى يُصَلِّيَ الْجُمُعَةَ. [2]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم عبدالله بن رواحه رضي الله عنه په يوه سريه كي ليږلو او اتفاقا هغه ورځ دجمعي وي، دهغه

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ۲۲۹ (۱۱۱۹)، (تحفة الأشراف: ۸۳۰۶). مسند احمد (۲ في ۲۲، ۱۳۵)

[2] ـ تفرد به المؤلف. وانظر مسند احمد (۱ في ۲۸۲، ۲۸۳)(تحفة الأشراف: ۶۴۸۷)

ملګري سحر وختي روان شول او هغه پخپل زړه کي اوونيل چي زه به ددوئ نه پاتي شم او درسول الله سره به مونځ اوکړم او بيا به په دوئ پسي خان اورسوم چنانچه کله هغه درسول الله سره مونځ اوکړو نو چي کله رسول الله اوليدلو ورته يي اوفرمائيل ته کوم ځيز خپلو ملګرو سره دتلو نه حصار کړي يي؟ ابن رواحه عرض اوکړو ما غوښتل چي تاسو سره به مونځ اوکړم او بيا به په دوئ پسي خان اورسوم رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هر څه چي په زمکه کي دي که ته دا ټول خرچ هم کړي خو دهغوئ دسحر وخت کي دتلو ثواب نشي موندلي

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي مونږ يي صرف په همدي سند پيژنو، ديحي بن سعيد قول دي چي شعبه به وئيل چي حکم صرف دمقسم نه پنځه احاديث اوريدلي دي او شعبه هغه احاديث په شمير ذکر شو نو دا حديث په شميرلي شوو احاديثو کي نه وو ګويا کي حکم دا حديث دمقسم نه اوريدلي نه دي، دجمعي په ورځ دسفر په سلسله کي داهل علمو اختلاف دي دبعضي خلقو په نزد دجمعي په ورځ په سفر کولو کي څه حرج نشته مګر چي د مونځ وخت رارسيدلي وي، او دبعضو قول دي کله چي دجمعي ورځ سحر راوخيژي نو دجمعي دمونځ کولو نه بغير په سفر تلل پکار نه دي.

**تخريج**: تفرد به المؤلف وانظر: مسند احمد (١ في ٢٢٤)، (تحفة الأشراف: ٦٣٤١)

***************

## ٢٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي السِّوَاكِ وَالطِّيبِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### د جمعي په ورځ د مسواک او خوشبو داستعمال بيان

٥٢٨_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ الْكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا أَبُو يَحْيَى إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيُّ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَقٌّ عَلَى الْمُسْلِمِينَ أَنْ يَغْتَسِلُوا يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَلْيَمَسَّ أَحَدُهُمْ مِنْ طِيبِ أَهْلِهِ، فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَالْمَاءُ لَهُ طِيبٌ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَشَيْخٍ مِنَ الأَنْصَارِ.[1]

**ترجمه**: دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په مسلمان باندي لازم دي چي دجمعي په ورځ غسل اوکړي او هر کس دخپل کور په خوشبويانو کي کومه خوشبو اولګوي او که خوشبو ورسره نه وي نو اوبه دده دپاره خوشبو ده په دي باب کي دابوسعيد خدري رضي الله عنه او ديو انصاري شيخ نه هم روايتونه مروي دي.

---

[1] _ تفرد به المؤلف، وانظر مسند احمد (٤ في ٢٨٢، ٢٨٣) (تحفة الأشراف: ١٧٨٤)

****************

٥٢٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْبَرَاءِ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَرِوَايَةُ هُشَيْمٍ أَحْسَنُ مِنْ رِوَايَةِ إِسْمَاعِيل بْنِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، وَإِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيُّ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ. (١)

**ترجمه** : په همدي سند همدا مضمون مروي دي امام ترمذي وائي دبراء رضي الله عنه حديث حصن دي، او دهشيم روايت (رقم ٥٢٩) داسماعيل بن ابراهيم تيمي دروايت نه زيات بهتر دي اسماعيل بن ابراهيم تيمي دحديث په سلسله كي ضعيف گڼلي شوي دي.

****************

# أبواب العيدين عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## د ورو کي او لوي اختر د احکامو بيان

دجُمعى اوداخترونوپه مونځ كښې.په دواړو كي جهري قرات كولى شي. اوهم هغه شان چى كوم شرطونه په جُمعه كي دى.هم هغه شرطونه داخترونو دى.علاوه دخطبى نه.څكه چى خطبه دجُمعى دمونځ دپاره شرط ده.خود اخترونو دپاره شرط نه ده.او په چاچى جُمعه واجب وى .په هغه باندې د اخترونو مونځ هم واجب دې.

## وجوهات دتقديم دجمعي په اخترونو

(١) چونكه جُمعه د فرضيت په وجي قوى ده.او د اخترونو مونځ د عدم فرضيت په وجه ددى په مقابله كي اضعف دې نوپه دى وجه دجُمعى احكام مخكي ذكرشول.اود اخترونو احكام روسته.

(٢) يا دا چى جُمعه كثيرالوقوع ده.په دى وجه جُمعه د اخترونو د باب نه مقدم كړې شوې ده.

## وجوهات دتسمية العيد بالعيد

(١) داختر نوم عيد په دى وجه كيخودى شو.چى په دى كي الله تعالى په خپلو بنده گانو باندې د احسان اعاده فرمائى.

---

١ ـ تفرد به المؤلف. وانظر مسند احمد (٤ في ٢٨٢، ٢٨٣) (تحفة الأشراف: ١٧٨٤)

(۲) دویمه وجه داچی دعاد یعود معنی عود کول او واپس کیدل دی.چونکه دا مقدسه ورځ هرکال عود کوی او راواپس کیږی.په دی وجه ددی نوم "عید" کیخودی شو
دوړوکی اخترمونځ د ټولونه اول په اوله هجرئ کي شوې دې.(شرح نقایه) داخترونو دمونځ په مشروعیت کي دلیل د ابوداؤد روایت دی
" عن انس رضي الله عنه قال قدم رسول الله ﷺ المدينة ولهم يومان يلعبون فيهما فقال ما هذان اليومان قالوا كنا نلعب فيهما في الجاهلية فقال رسول الله ﷺ ان الله قد ابدلكم بهما خيرا منهما يوم الأضحى ويوم الفطر"
انس رضي الله عنه فرمائی چی دمدینی خلقو دپاره دوه ورځې دلوبو وې. چی کله رسول الله ﷺ مدینی منوری ته تشریف راوړلو.نو وئې فرمائیل الله تعالی ستاسو دپاره ددی دواړو نه بهتری دوه ورځې په بدل کي درکړې. یو لوی اختر او بل وړوکی اختر.په هر قوم کي یوه نه یوه ورځ داسي ضرور وي چی په هغي کي عموما خوشحالي کولي شي . ځائسته جامي اغوستلي شي .او ښه خوراکونه خوړلی شی.لکه چی په حدیث کي دی "لكل قوم عيد وهذا عيدنا" د هرقوم یو اختر وی او دا زمونږ اختر دې.
دویم داهغه ورځ ده چی کله خلق دخپلو روژو نه فارغ شی او یو قسم زكاة إدا کوی.نو په دغه ورځ دوی دپاره دوه قسمه خوشحالئ جمع کیږی.طبعی او عقلی،طبعی خوشحالی خوځکه حاصلیږی.چی د روژی دسخت عبادت نه فارغ شی.اومحتاجو ته صدقه ملاویږی.اوعقلی خوشحالی داده.چی الله تعالی دفرض عبادت اداکولو دوی ته توفیق ورکړو.او ددوی اهل وعیال لره کاله پورې د باقی ساتلو په دوی باندې انعام اوکړو.په دی وجه ددی خوشحالیانو د اظهار حکم دی.
د عباداتو په وختونو مقررکولوکي دا حکمت هم دی چی په هغه وخت کي انبیاء علیهم السلام دالله تعالی کوم طاعت اوعبادت کړی وی.او الله تعالی هغه قبول کړی وی.د هغی وخت په راتلوسره د هغوی د قربانئ یاد تازه کولو دپاره د هغی عبادت طرف ته رغبت او شوق وی.
دلوی اختر ورځ هغه ورځ ده.چی ابراهیم خپل ځوی اسماعیل علیه السلام د الله تعالی په حکم د الله تعالی په دربارکي د ذبح کولو او د پیش کولو اراده کړې وه.اوالله تعالی د اسماعیل د وجود په بدله کي یوه عظیمه ذبیحه ورکړله.په دی وجه په لوی اخترکي قربانی کول ددی مصلحت په بناء مقررکړې شوه.چی په دی کي د ملت ابراهیمی د دپیشوایانو ( ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام) حالات اوددوی جان ومال د الله تعالی په فرمانبردارئ کي خرچ کولو او دهغوی د انتهائی درجی صبرکولو یاد تازه کولو خلقو ته تلقین ورکړې

شوې دي.اودغه شان د حاجيانو سره تشبيه او ددوی عظمت پيدا شي.اوپه کوم کار کي چی حاجيان مصروف وی.هغه طرف ته نورو خلقو ته ترغيب ورکړې شي.

## ٣٠_ باب مَا جَاءَ فِي الْمَشْيِ يَوْمَ الْعِيدِ

## داختر په ورځ عيدګاه ته پيدل تلل مسنون دي

٥٣٠_ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ مُوسَى الْفَزَارِيُّ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الحَارِثِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: "مِنَ السُّنَّةِ أَنْ تَخْرُجَ إِلَى العِيدِ مَاشِيًا وَأَنْ تَأْكُلَ شَيْئًا قَبْلَ أَنْ تَخْرُجَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ أَنْ يَخْرُجَ الرَّجُلُ إِلَى العِيدِ مَاشِيًا وَأَنْ يَأْكُلَ شَيْئًا قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ لِصَلَاةِ الْفِطْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَيُسْتَحَبُّ أَنْ لَا يَرْكَبَ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ. (1)

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي داختر مونځ دپاره عيدګاه ته پياده تلل او دوتلو نه مخکي دخوراك کوم څيز خوړل سنت دي امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي او داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي هغوئ داختر دمونځ دپاره پيدل تلل مستحب ګڼړي او دوتلو نه مخکي دخوراك څه څيز خوړل هم مستحب ګڼړي پس انسان لره بغير دعذر نه سور تلل پکار نه دي.

**تشريح** : **داختر د مونځ طريقه**

امام به خلقو ته دوه رکعته مونځ داسي ورکړی.چی ړومبی دی تکبيرتحريمه اووائی.بيا دی ثنا اووائی.اود دريو نه زيات تکبيرونه اووائی.بيا دی قرات د فاتحی او ضم دسورت اوکړی.بياد رکوع تکبير اووائی.او رکوع دی اوکړی.اوسجده دی اوکړی.دغه شان به اولنی رکعت پوره شی.په دويم رکعت کي دی اول قرات فاتحه او ضم د سورت اوکړی.بيا دی زياتی تکبيرونه اووائی.اود رکوع تکبيردی اووائی.اورکوع دی اوکړی. ددی تفصيل مطابق په دوارو رکعتوکي نهه تکبيرونه شول.شپږ زوائد دوه د رکوع تکبيرونه او يو تکبير تحريمه،

دلائل: (١) د ابن مسعود(رضي الله عنه) قول دي.ګويا چی د ابن مسعود(رضي الله عنه) په نزدد اختر په دوارو رکعتونو کي ټول نهه تکبيرونه دی.هم دغه د احنافو علماوذهب دې.د ابن مسعود(رضي الله عنه) قول ښکه دې.چی په روايت کي راغلي دې:

---

1 _ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٦١(الشق الأول فقط)(تحفة الأشراف: ١٠٠٤٢)

"كان ابن مسعود(رضي الله عنه) جالساً وعنده حذيفة وابو موسى الأشعري رضى الله عنهما فسألهم سعيد بن العاص (رضي الله عنه) عن التكبير فى صلوة العيد فقال حذيفة (رضي الله عنه) سل الأشعري (رضي الله عنه) فقال الأشعري (رضي الله عنه) سل عبدالله (رضي الله عنه) فانه أقدمنا وأعلمنا فسأله فقال ابن مسعود(رضي الله عنه) يكبر أربعاً ثم يقرأ ثم يكبر فيركع ثم يقوم فى الثانية فيقرأ ثم يكبر أربعاً بعد القراءة"

يعنى ابن مسعود ،حذيفه او ابوموسى اشعرى (رضي الله عنه) تشريف فرما وُو.چى ددوى نه سعيد ابن العاص (رضي الله عنه) د اختردمونځ دتكبيرونو په باره كي تپوس اوكړو.حذيفه (رضي الله عنه) اووئيل.داشعرى (رضي الله عنه) نه تپوس اوكړه.اشعرى (رضي الله عنه) اووئيل.د عبدالله (رضي الله عنه) نه تپوس اوكړه.ځكه چى عبدالله(رضي الله عنه) په مونږكي قديم العهد هم دي.او صاحب دعلم هم.نوهغه د ابن مسعود (رضي الله عنه) نه تپوس اوكړو.نو ابن مسعود(رضي الله عنه) اوفرمائيل.ځلور تكبيرونه اووايه.په ړومبى ركعت كي چى دكومو ځلورو تكبيرونو ذكر شوې دې.په دى كي يو تكبير تحريمه اودرى زوائد دى او په دويم ركعت كي په ځلورو تكبيرونو كي يو تكبير د ركوع او درى زوائد دى.بهرحال د ابن مسعود (رضي الله عنه) ددى قول نه د نهو تكبيرونو ثبوت مستفاد ي كيږي .

(۲) دليل: اودمسروق نه مروى دى:

"كان عبدالله بن مسعود يعلمنا التكبير فى العيدين تسع تكبيرات خمس فى الاولى و أربع فى الأخيرة ويوالى بين القرأتين"

يعنى ابن مسعود ﷺ به مونږ ته په اخترونوكي د نهو تكبيرونو تعليم راكولو.پنځه په ړومبى ركعت كي اوځلورپه دويم ركعت كښي.اود دواړو روايتونو په مينځ كي به ئې وصل كولو.په روايت كي د پنځو تكبيرونو نه مراد تكبير تحريمه ،تكبير د ركوع او درى زوائد دى.اودځلورو نه مراد درى زوائد اويو د ركوع تكبيردې.دد ى اثر نه هم د اختر تكبيرونه نهه ثابتيږى.شپږ زوائد او درى تكبيرات دمونځ (شرح نقايه).

حاصل دا چى د احنافو دمذهب بنياد دعبدالله بن مسعود ﷺ په قول بنا دې. ابن مسعودﷺ فرمائى.چى په ړومبى ركعت كي دى تكبيرتحريمه اووائى.او پنځه تكبيرونه ددى نه پس اووائى.او په دويم ركعت كي دى پنځه تكبيرونه اووائى.بيا دى قرات اوكړى.او په يو روايت كي دى.چى په دويم ركعت كي دى ځلور تكبيرونه اووائى.

دابن مسعود او ابن عباس (رضي الله عنه) دقول په مينځ كي دوه ځايه اختلاف دې.يود تكبيرات زواندو په تعداد كي دويم ددى په محل كښې.دابن مسعود (رضي الله عنه) په

نزدتکبیرات زوائد شپږدی.دری په اولنی رکعت کي او دری په دویم رکعت کي . اوداېن عباس رضی الله عنهما په نزدیو روایت مطابق لس زوائد تکبیرونه دی.پنځه په اولنی رکعت کي او پنځه په دویم رکعت کښي.اود بل روایت مطابق تکبیرات زوائد نهه دی.پنځه په اولنی رکعت کي اوڅلور په دویم رکعت کي . ددویمی خبری په باره کي اختلاف دا دي.چی دابن مسعود (رضي الله عنه) په نزدپه دویم رکعت کي دزوائد تکبیرونو محل د قرات نه د فراغت نه پس دي. اود ابن عباس رضی الله عنهما په نزد قرات نه مخکي دي.

امام شافعی رحمه الله د عبدالله ابن عباس (رضي الله عنهما) قول اختیار کړي دي.او د ابن عباس رضی الله عنهما په قول کي چی د تکبیرنو کوم تعداد نقل کړي شوي دي.دا په زوائد باندي محمول دي.دغه شان د امام شافعی رحمه الله په نزدتکبیرات ټول پنځلس دي یا شپاړس دی.

امام مالك او امام احمد فرمائی. چی دولس یا دیارلس د اصل تکبیرنو سره په جمع کیدو جوړیږی.یعنی تکبیر تحریمه او په دواړو رکعتوکي د رکوع تکبیر سره چی پیوست شی.نودولس یا دیارلس دی.په دی طریقه چی په اولنی او دویم رکعت کي پنځه پنځه زوائد تکبیرونه او تکبیر تحریمه شو.او د دواړو رکعتونو د رکوع دوه تکبیرونه. دغه شان ټول تکبیرونه دیارلس شول.

اود دویم روایت مطابق په اولنی رکعت کي پنځه زوائد اوپه دویم رکعت کي څلور زوائد.او دری اصلی تکبیرونه دی.نواوس ټول تکبیرونه دولس شول.د ابن عباس رضی الله عنهما هم په دی روایتونو باندي په دغه زمانه کي د عامو خلقو عمل وو.

امام شافعی رحمه الله فرمائی چی دا دولس یا دیارلس ټول زوائد تکبیرونه دی.اوس ښکاره ده.چی هرکله ددی سره دری اصلی تکبیرونه یعنی تکبیرتحریمه او د دواړو رکعتونو د رکوع دوه تکبیرونه جمع شی. نود دولس تکبیرونو روایت په صورت کي به ټول تکبیرونه پنځلس شی.او د دیارلس تکبیرونو د روایت په صورت کي به ټول تکبیرونه شپاړس شی.نود مروی نه مراد هغه دي.چی کوم د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل شوي دي.

حاصل دمذاهب ثلاثه دا شو.

(۱) چی د احنافو په نزدد اختر په دواړو رکعتونو کي تکبیرات زوائد شپږ دی.

(۲) او د امام مالك او امام احمد په نزدلس دی.

(۳) او د امام شافعی په نزددولس یا دیارلس دی.(شرح نقایه)

دمذاهب ثلاثه بنیاد

(۱) د احنافو دمذهب بنیاد د ابن مسعود(رضي الله عنه) په قول دي.

(۲) اود امام مالك او امام احمد دمذهب بنياد د ابن عباس رضى الله عنهما د ديارلسو تكبيرونو په روايت دي.خکه چې لس تکبيرونه زوائد دی.او دری اصلی دی.
(۳) اود امام شافعی رحمه الله دمذهب بنياد د ابن عباس رضى الله عنهما په دواړه روايتونو (دولس يا ديارلس) باندې دي.خو دوی دا ټول زوائد ګرخوی.اصلی دری ددی نه علاوه دی.والله اعلم(عين الهدايه)

*****************

## ۳۱_ بَاب مَا جَاءَ فِي صَلاَةِ الْعِيدَيْنِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ

### ددواړو اخترونو مونځونه د خطبي نه مخکي کول پکار دي

۵۳۱_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ هُوَ ابْنُ عُمَرَ بْنِ حَفْصِ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ. وَعُمَرُ يُصَلُّونَ فِي الْعِيدَيْنِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ ثُمَّ يَخْطُبُونَ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ أَنَّ صَلَاةَ الْعِيدَيْنِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ. وَيُقَالُ: إِنَّ أَوَّلَ مَنْ خَطَبَ قَبْلَ الصَّلَاةِ مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوبكر او عمر رضي الله عنهما به داخترونو مونخونه دخطبي نه مخكي اداء كول او روسته به ئي ورپسي خطبه ونيله.

امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دجابر او ابن عباس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي چي داخترونو مونخونه به دخطبي نه مخكي وي، او ونيلي شوي دي چي دټولو نه مخكي چاچه د اختر دمونځ نه مخكي خطبه ونيلي وه مروان بن حكم دي.

[1] _ صحيح البخاري في العيدين ۸ (۹۶۳). صحيح مسلم في العيدين (۸۸۸). سنن النسائي في العيدين ۹ (۱۵۶۵). سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۵۵ (۱۲۷۶). (تحفة الأشراف: ۷۸۲۳). (مسند احمد (۲/ ۱۲، ۳۸)

**تشريح** : اصل مسنون طريقه داده چي خطبه داختر دمونځ نه وروسته وي او همدا دخلفاء راشدينو او ائمه اربعه او دجمهور امت مذهب دي. او داختر دمونځ نه مخکي خطبه ورکول مع الكراهت دجواز په درجه کي دي

*****************

## ٣٢_ باب مَا جَاءَ أَنَّ صَلاَةَ الْعِيدَيْنِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلاَ إِقَامَةٍ

### داخترونو په مونځونو کي اقامت او اذان نشته

٥٣٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ العِيدَيْنِ غَيْرَ مَرَّةٍ وَلاَ مَرَّتَيْنِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلاَ إِقَامَةٍ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّهُ لاَ يُؤَذَّنُ لِصَلاَةِ العِيدَيْنِ وَلاَ لِشَيْءٍ مِنَ النَّوَافِلِ. (١)

**ترجمه** : دجابر بن سمره رضي الله عنه بيان دي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره داخترونو مونځونه ديو او دوه ځل نه زيات کړي دي يعني ډيري پيري بغير د اذان او اقامت نه کړي دي.

امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجابر بن عبدالله او ابن عباس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو په دي باندي عمل دي چي داخترونو دمونځونو دپاره اذان نشته او نه په نوافلو کي دکوم نفل دپاره.

*****************

## ٣٣_ باب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ فِي الْعِيدَيْنِ

### داخترونو په مونځونو کي دکومو سورتونو قرائت کول پکار دي

---

[1] _ صحيح مسلم في العيدين (٨٨٧) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٥٠ (١١٤٨) . (تحفة الأشراف : ٢١٦٦) . مسند احمد (٥/

٥٣٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْعِيدَيْنِ وَفِي الْجُمُعَةِ بِ: سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَ هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ وَرُبَّمَا اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ فَيَقْرَأُ بِهِمَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي وَاقِدٍ، وَسَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهَكَذَا رَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَمِسْعَرٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ نَحْوَ حَدِيثِ أَبِي عَوَانَةَ. وَأَمَّا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ فَيُخْتَلَفُ عَلَيْهِ فِي الرِّوَايَةِ، يُرْوَى عَنْهُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ وَلَا نَعْرِفُ لِحَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ رِوَايَةً عَنْ أَبِيهِ. وَحَبِيبُ بْنُ سَالِمٍ هُوَ مَوْلَى النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ. وَرَوَى عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ أَحَادِيثَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ نَحْوُ رِوَايَةِ هَؤُلَاءِ. وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ فِي صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ بِ قَافٍ، وَاقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ" وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ. (١)

**ترجمه**: دنعمان بن بشير رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به په عيدينو او جمعه كي "سبح اسم ربك الاعلي" او "هل اتاك حديث الغاشيه" لوستل، اوچه كله به دواړه په يوه ورځ كي پيښ شول نو همدا دواړه سورتونه به يي لوستل.

امام ترمذي وائي دنعمان بن بشير حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د ابو واقد، سمره بن جندب، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا رنګي سفيان ثوري او مصعر هم دابراهيم بن محمد بن منتشر نه دابوعوانه دحديث هم معني روايت نقل كړي دي، او دسفيان بن عيينه نه په روايت كي اختلاف دي دهغه سند داسي دي "عن محمد بن ابراهيم بن المنتشر عن ابيه عن حبيب بن سالم عن ابيه عن النعمان بن بشير" مونږ ته دحبيب بن سالم كوم داسي روايت نه دي معلوم چي هغه دخپل پلار نه نقل كړي وي، حبيب بن سالم د نعمان بن بشير ازاد كړي غلام وو او هغه دنعمان بن بشير نه ډير روايات نقل كړي دي او دابن عيينه نه دابراهيم بن محمد بن منتشر په واسطه د هغه خلقو پشان روايت هم نقل شوي دي، او

(١) ـ صحيح مسلم في الجمعة ١٦ (٨٧٨). سنن ابي داود في الصلاة ٢٤٢ (١١٢٢). سنن النسائي في الجمعة ٤٠ (١٤٢٥). سنن ابن ماجه في الإقامة ٩٠ (١١٢٠)، و١٥٧ (١٢٨١). موطا امام مالك في الجمعة ٩ (١٩). (تحفة الأشراف: ١١٦١٢). مسند احمد (٢٤٠/٤، ٢٧١، ٢٧٧). سنن الدارمي في الصلاة ٢٠٣ (١٦٠٩)

درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي داخترونو په مونځونو کي به يي سورة ق او "اقتربت الساعة" لوستل او همدا دامام شافعي قول هم دي

**د نعمان بن بشير رضي الله عنه حالات:**

نوم نعمان كنيه ابو عبدالله او دپلار نوم يي بشير وو نعمان بلند پايه صحابي وو دده مور دعبدالله بن رواحه خور وه دهجرت نه پس په انصارو كي دټولو نه مخكي دده پيدائش شوى وو او بيا شپږمياشتي پس عبدالله بن زبير پيدا شو چي لږ هوښيار شو نو دمنبر نبوي سره به نږدي كيناستو او وعظ نصيحت به يي اوريدلو (مسند احمد).

دهجرت په ۵۹ كال كي امير معايه دكوفي حاكم مقرر كړو او بيا دحمص امير مقرر شو دده په باره كي صاحب د استيعاب ليكلي دي كان حليما ناسكا يحب العافية. يعني دى ډير صبرناك عابد او عافيت پسند انسان وو.

وفات: دهجرت په ۶۵ كال دحمص علاقه بيران نومي كلي كي وفات شو او پدغه وخت كي دابن زبير او مروان جنګ جاري وو په كوم كي چي ده دزبير ملګرتياكړي وه نو په دي وجه دمروان كسانو دى قتل كړو او دده سر يي كټ كړو دده ښځي دده سر پخپله غيږ كي كيخودو او پدغه وخت كي دده عمر ۶۴ كلونه وو (استيعاب).

دده دمروياتو شمير ۱۲۴ دى چي پنځه متفق عليه دي يو په بخاري كي او څلور په مسلم كښي.

***************

٥٣٤ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ ضَمْرَةَ بْنِ سَعِيدٍ الْمَازِنِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ سَأَلَ أَبَا وَاقِدٍ اللَّيْثِيَّ: "مَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهِ فِي الْفِطْرِ وَالأَضْحَى؟ قَالَ: كَانَ يَقْرَأُ بِ ق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ وَاقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: دعبيدالله بن عبدالله بن عتبه نه روايت دي چي عمر فاروق رضي الله عنه دابوواقد ليسي حارث بن عمرو رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چي په وړوكي او لوي اختر مونځ كي به

[1] صحيح مسلم في العيدين ۳ (۸۹۱). سنن ابي داود في الصلاة ۲۵۲ (۱۱۵۴). سنن النسائي في العيدين ۱۲ (۱۵۶۸). سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۵۷ (۱۲۸۲). (تحفة الأشراف: ۱۵۵۱۳). مسند احمد (۵ في ۲۱۸، ۲۱۹)

رسول الله صلي الله عليه وسلم څه څه لوستل نو هغه اوونيل "ق والقران المجيد" او "اقتربت الساعة وانشق القمر" به يي لوستل

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

٥٣٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ ضَمْرَةَ بْنِ سَعِيدٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَبُو وَاقِدٍ اللَّيْثِيُّ بن عوف. [1]

**ترجمه** ماقبل حديث په دي سند باندي هم مروي دي امام ترمذي وائي دابو واقد ليثي دپلار نوم عوف دي.

***************

## ٣٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي التَّكْبِيرِ فِي الْعِيدَيْنِ

### داخترونو مونځونو كي دتكبيراتو ونيلو بيان

٥٣٦_ حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ عَمْرٍو أَبُو عَمْرٍو الْحَذَّاءُ الْمَدِينِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ الصَّائِغُ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَبَّرَ فِي الْعِيدَيْنِ فِي الأُولَى سَبْعًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ، وَفِي الآخِرَةِ خَمْسًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَائِشَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَدِّ كَثِيرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَهُوَ أَحْسَنُ شَيْءٍ رُوِيَ فِي هَذَا الْبَابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَاسْمُهُ عَمْرُو بْنُ عَوْفٍ الْمُزَنِيُّ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ صَلَّى بِالْمَدِينَةِ نَحْوَ هَذِهِ الصَّلاَةِ، وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ قَالَ فِي التَّكْبِيرِ فِي الْعِيدَيْنِ: تِسْعَ تَكْبِيرَاتٍ، فِي الرَّكْعَةِ الأُولَى خَمْسًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ، وَفِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ يَبْدَأُ بِالْقِرَاءَةِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا مَعَ تَكْبِيرَةِ

[1] _ صحيح مسلم في العيدين ٣ (٨٩١). سنن ابي داود في الصلاة ٢٥٢ (١١٥٣). سنن النسائي في العيدين ١٢ (١٥٦٨). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥٤ (١٢٨٢). (تحفة الأشراف: ١٥٥١٣). مسند احمد (٥ في ٢١٨، ٢١٩)

الرُّكُوعِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هَذَا. وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ الْكُوفَةِ. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ. (۱)

**ترجمه** : دعمرو بن عوف مزني بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په اخترونو كي په اول ركعات كي دقرائت نه مخكي اوه تكبيرونه وئيل او په دويم ركعات كي دقرائت نه پس پنځه تكبيرات وئيل.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د عائشه، ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي. د كثير دنيكه حديث حسن دي ، او دا دټولو نه ښه روايت دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باب كي نقل كړي شوي دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي، او دابوهريره رضي الله عنه نه هم ددي هم معني روايت مروي دي چي هغوئ په مدينه كي په دي طريقه دا مونځ وركړي وو او دا داهل مدينه قول هم دي او همدا دمالك بن انس،شافعي، احمد ، او اسحاق بن راهويه قول هم دي، دعبدالله بن مسعود نه مروي دي د عيدين دتكبيراتو باره كي يي وئيل چي دا نهه دي ، پنځه په اولني ركعت كي دقراءت نه مخكي دي اوپه دويم ركعت كي قراءت مقدم كول دي او بيا څلور تكبيرات ويل دي د ركوع دتكبير سره ، د متعددو صحابه كرامو نه هم دا مضمون مروي دي او تمام اهل كوفه او سفيان ثوري هم په دي باندي قول كړی دی.

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي په اخترونو كي تكبيرات زوائد څومره دي په دي كي دوه مذاهب دي.

(۱) دامام ابو حنيفه په نزد تكبيرات زوائد شپږ دي دري په اول ركعات كي دي قبل القرائت او دري په دويم ركعات كي دي بعدالقرائت قبل الركوع.

(۲) دائمه ثلاثه په نزد تكبيرات زوائد دولس دي ، اوه په اولني ركعات كي قبل القرائت دي، او پنځه په دويم ركعات كي قبل القرائت كي (تعليمات محمدي).

## دعمرو بن عوف انصاري رضي الله عنه حالات

نوم عمرو كنيه ابوعبدالله چي داسلام په ابتداء كي مسلمان شوی وو او بيايي ددينه پس مديني ته هجرت هم كړی وو (استيعاب).

كله چي په عزوه تبوك كي سخت قحط وو نو رسول الله ددي دپاره تياری شروع كړو او عمرو بن عوف په دربارنبوت كي حاضر شو او عرض يي اوكړو كه زمونږ دپاره هم څه انتظام اوكړی شي

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥٦ (١٢٧٩) . (تحفة الأشراف : ١٠٧٧٤)

نو مونږ به ددي جهاد نه محروم پاتي نشو غرض داچه ددي دپاره څه انتظام اونه شو ليکن الله تعالي دداسي خلقو په باره کي دا ايت کريمه

ولا علي الذين اذا ما اتوك لتحملهم قلت لا اجد ما احملکم عليه تولوا واعينهم تفيض من الدمع حزنا الا يجدوا ماينفقون (توبه) نازل کړو.

يعني او نه په هغه خلقو الزام شته کوم چي تاته دسورلۍ غوښتلو دپاره راغلل او تا ورته اووئيل زما سره خو هيڅ څيز نشته چي تاسو پري سواره کړم نو ددي وينا په اوريدو سره دغم په وجه دهغوئ دسترګو نه اوښکي بهيدلي

وفات: دامير معاويه رضي الله عنه په زمانه کي په مدينه کي وفات شو (استيعاب) دده دمروياتو شمير اوو ته رسيږي.

*****************

## ٣٥_ بَابُ مَا جَاءَ لاَ صَلاَةَ قَبْلَ الْعِيدِ وَلاَ بَعْدَهَا

## داختر دمونځ نه مخکي او روسته نفل کول نشته

**٥٣٧_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " خَرَجَ يَوْمَ الْفِطْرِ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. وَقَدْ رَأَى طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ الصَّلَاةَ بَعْدَ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ، وَقَبْلَهَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ.** [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داختر په ورځ راووتلو او دوه رکعاته مونځ يي اوکړو او بيا يي نه ددينه مخکي کوم مونځ اوکړو او نه ددينه پس.

---

[1] ـ صحيح البخاری في العيدين ٨ (٩٦٣)، و٢٦ (٩٨٩)، والزكاة ٢١ (٣٢١)، واللباس ٥٧ (٥٨٨١)، و٥٩ (٥٨٨٣). صحيح مسلم في العيدين ٢ (١٣ في ٨٨٣). سنن ابي داود في الصلاة ٢٥٦ (١١٥٩). سنن النسائي في العيدين ٢٩ (١٥٨٨). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٦٠ (١٢٩١). (تحفة الأشراف: ٥٥٥٨). مسند احمد (١ في ٣٥٥). سنن الدارمي في الصلاة ٢١٩ (١٦٢٦)

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعبدالله بن عمر، عبدالله بن عمرو او ابوسعيد نه هم احاديث مروي دي، دبعضي صحابه کرامو او اهل علمو په دي باندي عمل دي. او همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي ديو جماعت خيال چي داختر دمونځ نه مخکي او داختر دمونځ نه پس که څوك مونځ كول غواري نو كولي يي شي ليكن اولني قول زيات صحيح دي.

**په عيدګاه کې دمونځ نه مخکې ياوروسته متصل د نفلو کولو حکم**

داخترد مونځ نه مخکي نفل کول مکروه دی په عيدګاه کي هم اود عيدګاه نه علاوه په نوروځايونوکي هم. دامام دپاره هم مکروه دی.اودمقتدی دپارد هم.دليل ددي دابن عباس رضی الله عنهما قول دی:

"ان رسول الله ﷺ خرج فصلى بهم العيد لم يصل قبلها ولا بعدها"

يعنی نبیﷺ د کور نه رابهرشو.خلقو ته ني د اختر مونځ ورکړو.نه ني د اختر نه مخکي مونځ اوکړو.او نه د اختر نه پس.حالانکه نبیﷺ مونځ ته بيحده ليوال وو.که د اختر نه مخکي يا روستو د نفلوکولو اجازت وی نو د الله رسول به ضرور کړی وو.صاحب دهدايه فرمائی د بعضی مشائخو په نزدپه عيدګاه او کور دواړه ځايونو کي کراهت عام دي اوبعضو فرمائيلی دی چی داختردمونځ نه پس په عيدګاه کي دننه بی شکه چی مونځ کول مکروه دی.خو د راتلونه پس په کورکي نفل کول بغير دکراهته جائزدی.دابوسعيد خدری (رضي الله عنه) نه مروي دي.

"قال كان رسول الله ﷺ لا يصلي قبل العيد شيئاً فاذا رجع الى منزله صلى ركعتين"

يعنی رسول الله ﷺ د اختر نه مخکي هيڅ مونځ نه کولو.خو کله به چی خپل کورته واپس راغلو.نو دوه رکعته نفل به ني کول.

*****************

٥٣٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ أَبَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْبَجَلِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ حَفْصٍ وَهُوَ ابْنُ عُمَرَ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ "أَنَّهُ خَرَجَ فِي يَوْمِ عِيدٍ فَلَمْ يُصَلِّ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا، وَذَكَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٥٤٦)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي هغه داختر په ورځ راووتلو او نه يې داختر دمونځ نه مخکې کوم مونځ اوکړو او نه ددينه پس او ذکر يې کړل چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به هم داسي کول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي داختر دمونځ نه مخکې او روسته نوافل جائز دي او که نه په دي کي څلور مذاهب دي

(۱) دامام ابو حنيفه په نزد داختر دمونځ نه مخکې نوافل مطلقا ناجائز دي، په عيدګاه کي وي او که په کور کي وي او داختر دمونځ نه پس په عيدګاه کي ناجائز دي او په کور کي جائز دي.

(۲) دامام مالك په نزد دمونځ نه مخکې نوافل مطلقا ناجائز دي په عيدګاه کي وي او که په کور کي وي او دمونځ نه پس مطلقا جائز دي چي په مسجد کي وي او که په کور کي وي.

(۳) دامام احمد په نزد داختر دمونځ نه مخکې او روسته مطلقا نوافل ناجائز دي چي په کور کي وي او که په مسجد کي وي.

(۴) دامام شافعي په نزد داختر دمونځ نه مخکې مطلقا جائز دي په مسجد کي وي او که په کور کي وي. (تعليمات محمدي).

***************

## ٣٦ـ باب مَا جَاءَ فِي خُرُوجِ النِّسَاءِ فِي الْعِيدَيْنِ

### داخترونو په مونځونو کي دښځو دپاره عيدګاه ته دتلو بيان

٥٣٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا مَنْصُورٌ هُوَ ابْنُ زَاذَانَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُخْرِجُ الأَبْكَارَ وَالْعَوَاتِقَ وَذَوَاتِ الْخُدُورِ وَالْحُيَّضَ فِي الْعِيدَيْنِ، فَأَمَّا الْحُيَّضُ فَيَعْتَزِلْنَ الْمُصَلَّى وَيَشْهَدْنَ دَعْوَةَ الْمُسْلِمِينَ. قَالَتْ إِحْدَاهُنَّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهَا جِلْبَابٌ؟ قَالَ: "فَلْتُعِرْهَا أُخْتُهَا مِنْ جَلاَبِيبِهَا".[1]

---

[1] ـ صحيح البخاري في الحيض ٢٣ (٣٢٤)، والصلاة ٢ (٣٥١)، والعيدين ١٥ (٩٨٠)، و٢١ (٩٨١)، والحج ٨١ (١٦٥٢). صحيح مسلم في العيدين ١ (٨٩٠)، والجهاد ٤٨ (١٨١٢). سنن ابي داود في الصلاة ٢٤٧ (١١٣٦). سنن النسائي في الحيض ٢٢ (٣٩٠). والعيدين ٣ (١٥٥٩). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٦٥ (١٣٠٧). (تحفة الأشراف: ١٨١٠٨). مسند احمد (٥ في ٨٤، ٨٥). سنن الدارمي في الصلاة ٢٢٣ (١٦٥٠)

**ترجمه** دام عطيه رضي الله عنها بيان دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په اخترونو كي پيغلي جينكۍ او واده شوي ښځي او پرده نشيني ښځي او بالغي ښځي دمونځ دپاره بوتللي البته بيماري ښځي به دعيدګاه نه لري وي مګر دمسلمانانو په دعا كي به شريكيدي، يوي ښځي عرض اوكړو اي دالله رسوله كه ديوي ښځي سره پروني نه وي نو څه به كوي رسول الله اوفرمائيل دهغي مسلماني خور لره پكار دي چي ديته پخپلو څادرونو كي يو څادر په طور دعاريت وركړي.

**تخريج**:

### دام عطيه رضي الله عنها دژوندكۍ مختصر حالات:

نوم نسيبه دپلار نوم حارث دهجرت نه مخكي مسلمانه شوي وه او كله چي رسول الله مديني ته راغى نو دانصاري ښځو نه يي بيعت واخستلو او په دوۍ كي دا هم شامله وه ام عطيه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په جنګونو كي هم شريكه شوي وه چي خوراك به يي تيارولو او دسامانونو حفاظت به يي كولو او دزخميانو دمرهم پټۍ كاربه يي كولو (مسلم).
دهجرت په اتم كال چي درسول الله صلي الله عليه وسلم زينب لور وفات شوه نو ام عطيه ديو څو ښځو په ملګرتيا كي هغي ته غسل وركړل ددي يو خويى هم وو چي په كومه غزوه كي شريك شوى وو او دبيماريدو نه پس بصري ته تلى وو په دي وخت كي ام عطيه په مدينه كي وه ځنګه چي خبر شوه نوسم دست بصري ته روانه شوه ليكن ددي درسيدو نه دوه ورځي مخكي هغه وفات شوى وو په دريمه ورځ يي خوشبو راوغوښتله او استعمال يي كړه او وئيل يي چي دخاوند نه علاوه دهيچا په مرګ د دري ورځو نه زيات ماتم كول جائز نه دي (بخاري).
ددي دوفات تعريف معلوم نه دى داحاديثو شمير يي څلويښت دى چي نهه په دي كي متفق عليه دي.

*****************

٥٤٠ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ. عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ بِنَحْوِهِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أُمِّ عَطِيَّةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ، وَرَخَّصَ لِلنِّسَاءِ فِي الْخُرُوجِ إِلَى الْعِيدَيْنِ وَكَرِهَهُ بَعْضُهُمْ. وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ: أَكْرَهُ الْيَوْمَ الْخُرُوجَ لِلنِّسَاءِ فِي الْعِيدَيْنِ، فَإِنْ أَبَتِ الْمَرْأَةُ إِلَّا أَنْ تَخْرُجَ فَلْيَأْذَنْ لَهَا زَوْجُهَا أَنْ تَخْرُجَ فِي أَطْمَارِهَا الْخُلْقَانِ وَلَا تَتَزَيَّنْ، فَإِنْ أَبَتْ أَنْ تَخْرُجَ كَذَلِكَ فَلِلزَّوْجِ أَنْ يَمْنَعَهَا عَنِ الْخُرُوجِ. وَيُرْوَى عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: لَوْ رَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ الْمَسْجِدَ كَمَا

مُنِعَتْ نِسَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ. وَيُرْوَى عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ أَنَّهُ كَرِهَ الْيَوْمَ الْخُرُوجَ لِلنِّسَاءِ إِلَى الْعِيدِ.
([1])

**ترجمه** : په دي سند باندي هم د ام عطيه رضي الله عنها نه ددي هم معني روايت مروي دي.
امام ترمذي وائي دام عطيه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عباس او جابر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي بعضي اهل علم همدي حديث طرف ته مائل شوي دي او په اخترونو كي يي ښځو ته دوتلو اجازت وركړي دي او بعضي اهل علمو دا مكروه ګڼړلي دي دعبدالله بن مبارك بيان دي چي نن سبا په اخترونو كي دښځو وتل مكروه ګڼړم او كه كومه ښځه نه مني او په وتلو ضد كوي نوبكار ده چي ددي خاوند ديته په زړو او خيرنو جامو كي دوتلو اجازت وركړي او زينت به نه كوي او كه دا په داسي وتلو نه راضي كيږي نو بيا خاوند لره حق دي چي دا دتلو نه منع كړي، دعائشه رضي الله عنها نه منقول دي فرمائي كه رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه څيزونه ليدلي وي كوم چي نن سبا ښځو پيدا كړي دي نو دوئ به يي مسجدونو ته دتلو نه منع كړي وي لكه څنګه چي دبني اسرائيلو ښځي منع كړي شوي وي. سفيان ثوري نه هم منقول دي چي په نن سبادور كي هغوئ هم عيدګاه ته دښځو وتل مكروه ګرځولي دي.

***************

## ٣٧ـ باب مَا جَاءَ فِي خُرُوجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْعِيدِ فِي طَرِيقٍ وَرُجُوعِهِ مِنْ طَرِيقٍ آخَرَ

### دا خترد مونځ دپاره د رسول الله د تګ راتګ دپاره د لاري بدلول

٥٤١ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى بْنُ وَاصِلِ بْنِ عَبْدِ الأَعْلَى الْكُوفِيُّ، وَأَبُو زُرْعَةَ. قَالاَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّلْتِ، عَنْ فُلَيْحِ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْعِيدِ فِي طَرِيقٍ رَجَعَ فِي غَيْرِهِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ،

---

[1] ـ صحيح البخاري في الحيض ٢٣ (٣٢٤) . والصلاة ٢ (٣٥١) . والعيدين ١٥ (٩٨٠) . و٢١ (٩٨١) . والحج ٨١ (١٦٥٢) . صحيح مسلم في العيدين ١ (٨٩٠) . والجهاد ٢٨ (١٨١٢) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٤٧ (١١٣٦) . سنن النسائي في الحيض ٢٢ (٣٩٠) . والعيدين ٣ (١٥٥٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٦٥ (١٣٠٧) . (تحفة الأشراف : ١٨١٠٨) . مسند احمد (٥ في ٨٤ . ٨٥) . سنن الدارمي في الصلاة ٢٢٣ (١٦٥٠)

وَأَبِي رَافِعٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَرَوَى أَبُو تُمَيْلَةَ، وَيُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ فُلَيْحِ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الحَارِثِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: وَقَدِ اسْتَحَبَّ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ لِلإِمَامِ إِذَا خَرَجَ فِي طَرِيقٍ أَنْ يَرْجِعَ فِي غَيْرِهِ اتِّبَاعًا لِهَذَا الحَدِيثِ. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَحَدِيثُ جَابِرٍ كَأَنَّهُ أَصَحُّ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم داختر دمونځ دپاره په يوه لاره لاړو واپس به په بله لار راتلو.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن غريب دي او په دي باب كي دعبدالله بن عمر. او ابورافع رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، ابوتميله او يونس دا حديث په سند د فليح بن سليمان عن سعيد بن الحارث عن جابر بن عبدالله نقل كړي دي او بعضي اهل علمو ددې حديث په متابعت كي دامام دپاره دلاري بدلول مستحب ګڼرلي دي چي امام كله په يوه لاره لاړ شي نو په بله لار به واپس راځي دامام شافعي هم دا قول دي او دجابر حديث دابوهريره دحديث په نسبت زيات صحيح دي. يعني دلاري بدلول صرف د امام دپاره ضروري دي.

***************

## ٣٨ـ باب مَا جَاءَ فِي الأَكْلِ يَوْمَ الفِطْرِ قَبْلَ الخُرُوجِ

## عيدګاه ته دتلو نه مخكي داختر په ورځ د څه څيز دخوړلو بيان

٥٤٢ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ البَزَّارُ البَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الوَارِثِ، عَنْ ثَوَابِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الفِطْرِ حَتَّى يَطْعَمَ وَلَا يَطْعَمُ يَوْمَ الأَضْحَى حَتَّى يُصَلِّيَ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بُرَيْدَةَ بْنِ حُصَيْبٍ الأَسْلَمِيِّ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا أَعْرِفُ لِثَوَابِ بْنِ عُتْبَةَ غَيْرَ هَذَا الحَدِيثِ، وَقَدِ اسْتَحَبَّ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ أَنْ لَا يَخْرُجَ يَوْمَ الفِطْرِ حَتَّى يَطْعَمَ شَيْئًا وَيُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يُفْطِرَ عَلَى تَمْرٍ، وَلَا يَطْعَمَ يَوْمَ الأَضْحَى حَتَّى يَرْجِعَ. (2)

---

1 ـ تفرد به المؤلف من حديث ابي هريرة واخرجه في العيدين ٢٤ (٩٨٦) بنفس الطريق لكنه من حديث جابر. وقال حديث جابر أصح (تحفة الأشراف: ١٢٩٢٤)

2 ـ سنن ابن ماجه في الصيام ٤٩ (١٧٥٦). (تحفة الأشراف: ١٧٥٣)

**ترجمه** : دبريده رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به كله دوړوكي اختر په ورځ دكور نه وتلو نو چي څو پوري به يي خوراك نه وو كړي ترهغي پوري به نه وتلو او دلوي اختر په ورځ به يي چي څو پوري مونځ نه وو كړي خوراك به يي نه كولو.

امام ترمذي وائي دبريده بن حصيب اسلمي رضي الله عنه حديث غريب دي، امام بخاري وائي دثواب بن عتبه ددينه علاوه كوم بل حديث مونږ ته معلوم نه دي چي دده نه مروي وي، او په دي باب كي دانس او علي رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي بعضي اهل علمو مستحب ګڼلي دي چي بنده به دوړوكي اختر مونځ ته دتلو دپاره دخوراك كولو نه مخكي نه روانيږي او دهغه دپاره مستحب دي چي كجوري وغيره يا ناشته اوكړي او دلوي اختر په ورځ دواپس راتلو نه مخكي خوراك كول پكار نه دي.

***************

٥٤٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، عَنْ حَفْصِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُفْطِرُ عَلَى تَمَرَاتٍ يَوْمَ الْفِطْرِ قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ إِلَى الْمُصَلَّى". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ.(١)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دوړوكي اختر په ورځ مونځ ته دوتلو نه مخكي يو څو كجوري اوخوړلي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب صحيح دي.

### داخترونو مسنون اعمال

(١)د اختر د ورځي په مستحباتوكي يو دادی چی عيدګاه ته د تلو نه مخكي څه خوږ څيز وخوري.امام بخاری د انس(رضي الله عنه) نه روايت كړي دي:

"قال كان رسول الله ﷺ لا يغدو يوم الفطر حتى يأكل تمرات و يأكلهن وترا"

انس (رضي الله عنه) فرمائی چی رسول الله ﷺ به د وړوكی اختريه ورځ (داختر مانځه) دپاره تشريف نه اوړلو.تردی چی طاق شمير كجوري به ئې نه وی خوړلی .

---

١ تفرد به المؤلف وانظر صحيح البخاري في العيدين ٤ (٩٥٣) . وسنن ابن ماجه في الصوم ٤٩ (١٧٥٣) . (تحفة الأشراف: ٥٢٨)

او په ترمذی اوابن ماجه کي دی "ان رسول الله ﷺ کان لایخرج یوم الفطر حتی یأکل وکان لا یأ کل یوم النحر حتی یصلی"یعنی د وړوکی اختر په ورځ به بغیر دڅه خوراك نه نۀ وتلو.او د لوی اختر په ورځ به بغیردمونځ کولو نه څه نه خوړل.

(۲) دویم مستحب عمل غسل دې: ددي دلیل حدیث د ابن ماجه د فاکه ابن سعد حدیث نقل کړې دې.

"ان رسول الله ﷺ کان یغتسل یوم الفطر و یوم النحر و یوم العرفة"

یعنی رسول الله ﷺ د وړوکی اختر په ورځ، د لوی اختریه ورځ اودعرفی په ورځ غسل کول.(۲) عقلی دلیل دادې.چی د اخترونو ورځ دخلقو د راجمع کیدو ورځ وی.په دی وجه دی کي غسل کول.او خوشبو لګول مسنون دی.لکه څنګه چی دجُمعی په ورځ دا دواړه اعمال مسنون دی.

(۳)دریم مستحب عمل دادې.چی په خپلو موجوده جامو کي چی کومی ښی او نوی وی.هغه دی واغوندی.څکه چی د نبی کریم ﷺ د فنك یا وړێ چوغه وه، اختر وغیره موقع باندې به دا اغوستله.فنك یو ښاور دې.چی دده د څرمنی پوستکی ډیر ښه وی.په یو بل روایت کي دی.

"عن جابر بن عبدالله (رضي الله عنه) قال کان للنبی ﷺ برد احمر یلبسه فی الجمعة والعید"

جابر بن عبدالله (رضي الله عنه) فرمائی.چی دنبیﷺ دکرخو والا سُور یمنی څادر وو.چی دا به نبیﷺ په جُمعه اواختر وغیره کي اغوستلو.

## د اخترونو په تکبیرونو کې د رفع یدین حکم

رفع الیدین زمونږ په نزدد اخترونو په تکبیرونوکي د غوږونو پورې لاسونه اوچتولی شی.هم دا د امام شافعی او امام احمد مذهب دې.او دلیل یي دنبیﷺ قول "لاترفع الأیدی إلا فی سبع مواطن" دې.په دی اوه ځایونوکي د اخترونو زوائد تکبیرونه هم دی.عدم رفع الدین دامام ابویوسف نه مروی دی.چی د اخترونو په تکبیرونوکي به لاسونه نه اوچتوی.دلیل یي دا دې.چی د لاسونو اوچتول د افتتاح سنت دی.چونکه په زوائد تکبیرونو کي دمونځ افتتاح نشته،ددی وجه به رفع یدین هم نه کیږی.لکه چی د رکوع په تکبیرکي رفع یدین نشته.

دامام ابویوسف رحمه الله خلاف حدیث "لاترفع الأیدی" حجت دی پاتې شوه دا خبره چی په زوائدو تکبیرونو کي هیڅ مسنون نه دی.

د امام ابوحنیفه رحمه الله نه مروی دی.چی په هر دوه تکبیرونوکي به د دری تسبیحاتو په مقدار سکوت کوی.څکه چی د اختر مونځ د جم غفیر سره اداکولی شی.که په تکبیرونو کي موالات او وصل اوکړې شی.نوکوم خلق چی د امام نه لری وي په دوی به د امام حال مشتبه

شي.چي امام كوم يو تكبير وائي.البته په دومره مقدار اودريدلوسره اشتباه لرې كيږي.ددې وجې په تكبيرونوكي ددرې تسبيحاتو په مقدار د خاموش پاتې كيدو حكم وركړې شوې دې.

***************

# أبواب السفر

## دسفر داحكامو بيان

### ٣٩_باب مَا جَاءَ فِي التَّقْصِيرِ فِي السَّفَرِ

### د سفر كي په مونځ كي دقصر كولو بيان

٥٤٤_ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الْحَكَمِ الْوَرَّاقُ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَافَرْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ "فَكَانُوا يُصَلُّونَ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ لَا يُصَلُّونَ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا". وقَالَ عَبْدُ اللَّهِ: لَوْ كُنْتُ مُصَلِّيًا قَبْلَهَا أَوْ بَعْدَهَا لَأَتْمَمْتُهَا. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَنَسٍ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سُلَيْمٍ مِثْلَ هَذَا. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ آلِ سُرَاقَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَطِيَّةَ الْعَوْفِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَتَطَوَّعُ فِي السَّفَرِ قَبْلَ الصَّلَاةِ وَبَعْدَهَا" وَقَدْ صَحَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ "يَقْصُرُ فِي السَّفَرِ" وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ صَدْرًا مِنْ خِلَافَتِهِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ "أَنَّهَا كَانَتْ تُتِمُّ الصَّلَاةَ فِي السَّفَرِ" وَالْعَمَلُ عَلَى مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابِهِ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، إِلَّا أَنَّ الشَّافِعِيَّ يَقُولُ: التَّقْصِيرُ رُخْصَةٌ لَهُ فِي السَّفَرِ فَإِنْ أَتَمَّ الصَّلَاةَ أَجْزَأَ عَنْهُ.[1]

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٢٢٣)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم او ابوبكر او عمر او عثمان رضي الله عنه سره سفرونه كړي دي دوئ به دماسپخين او ماژيگر مونځونه دوه دوه ركعاته كول نه به يي ددينه مخكي كوم مونځ كولو او نه ددينه وروسته عبدالله بن عمر رضي الله عنه وائي كه چري ما ددينه مخكي يا روسته سنت اداء كولي نو بيا به مي همدا فرائض اداء كړي وو.
امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن غريب دي اوموږ يي صرف ديحي بن سليم په روايت پيژنو، امام بخاري وائي دا حديث په سند د عبدالله بن عمر عن رجل من ال سراقه عن عبدالله بن عمر هم مروي دي او عطيبه عوفي دابن عمر نه روايت كوي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به په سفر كي دفرضو نه مخكي او روسته نفل كول. په دي باب كي دعمر، علي، دابن عباس، انس، عمران بن حصين. او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي درسول الله نه دا هم ثابت دي چي هغه او ابوبكر به په سفر كي قصر كولو او عثمان رضي الله عنه هم دخپل خلافت په شروع كي قصر كولو په صحابه كرامو او اهل علمو كي داكثرو په دي باندي عمل دي او دعائشه رضي الله عنها باره كي مروي دي چي هغي به په سفر كي پوره مونځ كولو او عمل په هغه باندي دي كوم چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دصحابه كرامو نه مروي دي او همدا دامام شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه قول دي البته شافعي وائي په سفر كي قصر كول رخصت دي او كه څوك پوره مونځ اوكړي نو جائز دي.

**تشريح** : په پورتنۍ مسئله كي اختلاف دمذاهبو:

**(۱) زموږ په نزد** دمسافر په حق كي قصر اسقاط افضل دى او اتمام رخصت دى، يعنى په څلور ركعته مونځ كي دوه ركعته ساقط شوى دى، اودوه ركعته باقي پاتى دى

**(۲) امام شافعى رحمه الله په نزد:** دمسافرپه حق كي قصر، رخصت دى، او پوره كول افضل دى يعنى دمسافر دسهولت پيش نظرده ته ددوور كعتونو كولواجازت وركړى شوى دى، ګنى په څلور ركعته مونځ كي په ده څلور ركعته فرض دى، اوهم څلورركعته كول افضل دى، د دى قائل امام محمد رحمه الله هم دى، او داد امام مالك رحمه الله هم يوقول دى.

**دلائل دشافعى رحمه الله:**

(۱) د امام شافعى رحمه الله دليل په روژه قياس دى، يعنى څنګه چى مسافردپاره په رمضان المبارك كي د افطار اجازت دى، اوروژه نيول افضل دى، هم دغه شان په څلور ركعته مونځ كي د قصراجازت وركړى شوى دى، ګنى تول كول افضل دى.

(۲) دویم دلیل دادی چی الله تعالیٰ فرمائیلی دی واذا ضربتم في الارض فليس عليكم جناح ان تقصروا من الصلاة يعنی دمونځ په قصر کولو کي په تاسوهیڅ حرج نشته. د ايت نه به استدلال داسی وی، الله تعالی قصر په لفظ "لاجناح" سره مشروع کړی دی . اودا لفظ اباحت دپاره ذکرکولی شی، دوجوب دپاره نه. لکه څنګه چی په بل ایت کي دی

﴿ليس عليكم جناح ان طلقتم النساء﴾

نوثابته شود چی قصرمباح دی . واجب نه دی . اوچی د قصر اباحت ثابت شو. نود نورو مباحاتو په شان به قصرکي هم مسافر ته اختیاروی. که قصرکوی اوکه اتمام

(۳) دریم دلیل دعمر رحمه الله نه نقل دی . فرمائی چی دی ایت په ما مشتبه شو. نوما د درسول الله نه تپوس اوکړو. ایا مونږقصراوکړو؟ حالانکه مونږ په امن کي یو. د هیڅ څیز ویره نشته. اوالله تعالیٰ﴿ ان خفتم﴾ فرمائیلی دی. یعنی قصرئی دویري سره مشروط کړی دی رسول پاك ﷺ اوفرمائیل، دا د الله تعالی دطرفه صدقه ده، د الله تعالی صدقه قبوله کړه. په حدیث پاك کي قصر دقبول سره معلق شوی دی . اود قصرنوم صدقه ده. اوقاعده داده په چاچی صدقه کولی شي . هغه ته په صدقه کي اختیار وی قبلول لازم نه وی (فتح القدير)

**(۱) زمونږ د احنافو دلیل دادی** : که مسافرقصراوکړی، اواخری دري رکعته پاتي شي. نود اقامت نه پس نه ددی قضا شته، اونه ددی په پریخودوګناهګاریږی. اود قضا نه واجبیدل. اونه ګناهګاریدل د دویمي شفع د نفلیت علامت دی ، نو ثابته شوه، چی په مسافرپه څلور رکعته مونځ کي صرف دوه رکعته واجب دی

۲ دویم نقلی دلیل:

[عن عائشة رضی الله عنها قالت فرضت أی الصلوة ركعتين ركعتين فأقرت صلوة السفر و زيدت فی الحضر] (بخاری ومسلم)

عائشة رضی الله عنها فرمائی. مونځ دوه دوه رکعته فرض شوی دی . نودسفرمونځ هم په دی حالت باقی پاتی شو. اودحضر په مانځه کي اضافه اوکړی شوه

۳ـ [عن ابن عباس رضی الله عنهما قال فرض الله الصلوة على لسان نبيكم فی الحضر أربع ركعات وفی السفر ركعتين]

ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی. الله تعالی ستاسود رسول په ژبه په حضرکي څلوررکعته فرض کړل. او په سفر کي دوه رکعته

۴ د طبرانی روایت دی.

[افترض رسول الله ﷺ ركعتين فی السفر كما إفترض فی الحضر أربعا]

رسول الله ﷺ په سفركي دوه ركعته فرض كړی دی، لكه څنګه چې ئی په حضركي څلور ركعته فرض كړی دی.

۵_په نسائی اوابن ماجه كي دی

[عن ابن أبي ليلى عن عمر رضي الله عنه قال صلوة السفر ركعتان وصلوة الأضحى ركعتان وصلوة الفطر ركعتان وصلاة الجمعة ركعتان تمام غير قصر على لسان محمد ﷺ]

عمر رضي الله عنه فرمائی، دسفرمونځ دوه ركعته دی . د لوئی اخترمونځ دوه ركعته دی. د عيد الفطر (وړوكی اختر)مونځ دوه ركعته دی. اودجمعي مونځ دوه ركعته دی. اودا پوره مونځ دی . بغيرد قصر كولو نه د الله تعالی د پيغمبر ﷺ په ژبه

په بخاری شريف كي د ابن عمر رضي الله عنه نه نقل دی.

[صحبت رسول الله ﷺ فی السفر فلم يزد على ركعتين حتى قبضه الله وصحبت عمر رضي الله عنه فلم يزد على ركعتين حتى قبضه الله وصحبت عثمان فلم يزد على ركعتين حتى قبضه الله وقد قال الله تعالى لقد كان لكم فی رسول الله اسوة حسنة]

د ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل دی، چی زه په سفركي د رسول الله ﷺ سره ووم . هغوی ﷺ په دوو ركعتو زيادت نه ووكړی ، تردی چی رسول پاك ﷺ وفات شو، اوخپل پلارمحترم عمر رضي الله عنه سره په سفركي ووم، هغوی هم په دوو ركعتونو اضافه نه وه كړی . تردی چی هغوی رضي الله عنه وفات شو، د عثمان رضي الله عنه سره مي سفركړی وو، هغوی هم دخپل ژونده پوری په دوو ركعتونواضافه نه وه كړی ، اوالله تعالی د رسول پاك ﷺ ژوند مبارك نه اسوة حسنة فرمائيلی دی . خكه به ددی اتباع كولي شی. ددی ټولوحديثونونه دسفردمونځ دوه ركعته ثابتيږی . كه دسفر په مونځ كي څلور ركعته كول افضل وو، لكه څنګه چی د امام شافعی رحمه الله خيال دی . نورسول پاك ﷺ اود هغه صحابه كرامو به هيڅ كله دا فضيلت نه وو پريخودی ،

د امام شافعی رحمه الله د قياس جواب دادی چی د مسافر قصرمونځ دده په روژو قياس كول درست نه دی، په دی وجه بيشكه مسافرته په رمضان كي د افطار اجازت وركړی شوی دی . خو په دواړو كي فرق دادی چی په مسافر په څلور ركعته مونځ كي د قصركولو په صورت كي د اخيرينوقضا واجب نه ده. اود روژو قضا واجب ده. نوپه دی فرق سره يو په بل قياس كول څنګه درست كيدی شی.

د مالم شافعی رحمه الله دطرفه د پيش كړی ايت جواب دادی چی په ايت كي د اوصافو قصرمراد دی ، يعنی د دشمن دويري نه قيام پريخودل، اوقعود اختيارول ، ركوع اوسجدی پريخودل، اشاري سره مونځ كول، اوزمونږ په نزد د ويري په وخت د اوصافو قصر مباح دی .

واجب نه دی . اوچی په ایت کي د اوصافو قصرمراد دی . نوددی نه د رکعتونو په قصراستدلال نشی کیدی

د شافعی رحمه الله دمستدل نه دوه جوابونه دي اول جواب

(۱) د امام شافعي رحمه الله د پیش کړی‌شوی حدیث د عمر رضي الله عنه جواب دادی چی دا حدیث زمونږ دلیل دی . ستاسونه دی ، ځکه چی په حدیث کي "فاقبلوا" د امرصیغه ده. او امرد وجوب دپاره وی، نو قصرچی ورته صدقه ونیلي شوی دي. ددی قبلول واجب شو. مباح نشو

(۲) دویم جواب دادی چی صدقه په دوه قسمه وی یو د تملیکاتو د قبیلي نه وی. لکه د مال صدقه، دویم د اسقاطاتو د قبیلي نه وی، لکه عتاق (ازادول)اوقصاص معاف کول، قاعده داده ، چی کومه صدقه د تملیکاتو د قبیلي څخه وی، که دا رد شی نوهغه به رد شی. البته کوم چی د اسقاطاتو د قبیلي څخه وی، هغه په ردکولو نه ردکیږی ، نوقصرصلاة یوه داسی صدقه ده، چی دادقبیلي د اسقاطاتو نه ده، نو دی په ردکولو نه ردکیږی ، او چی د متصدق علیه په ردکولو نه ردکیږی . نوګویا واجب شو. نو ثابته شوه چی قصر واجب دی

***************

٥٤٥ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ زَيْدِ بْنِ جُدْعَانَ الْقُرَشِيُّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، قَالَ: سُئِلَ عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ عَنْ صَلَاةِ الْمُسَافِرِ، فَقَالَ: " حَجَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، وَحَجَجْتُ مَعَ أَبِي بَكْرٍ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، وَمَعَ عُمَرَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، وَمَعَ عُثْمَانَ سِتَّ سِنِينَ مِنْ خِلَافَتِهِ أَوْ ثَمَانِيَ سِنِينَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دابو نضره نه روایت دي چي دعمران بن حصین رضي الله عنه نه دمسافرو دمونځ باره کي تپوس اوکړي شو نو هغه اوونیل مادرسول الله صلي الله علیه وسلم سره حج کړي دي او هغه به صرف دوه رکعاتونه کول او دابوبکر سره مي هم حج کړي دي هغه به هم دوه رکعاتونه کول او دعمر سره مي هم حج کړي دي نو هغوئ به هم دوه رکعاتونه کول او دعثمان رضي الله عنه سره دهغه دخلافت په شروع کي مي شپږ یااته کلونو کي مونځونه کړي دي او هغوئ هم دوه دوه رکعاتونه کول. امام ترمذي وائي دا حدیث حسن صحیح دي.

[1] ـ تفرد به المؤلف بهذا السياق. وأخرج أبوداود (الصلاة ١٢٢٩ في رقم ١٢٢٩) بهذا السند أيضا لكنه بسياق آخر (تحفة الأشراف: ١٠٨٦٢)

*****************

٥٤٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، وَإِبْرَاهِيمَ بْنِ مَيْسَرَةَ، سمعا أنس بن مالك، قَالَ: صَلَّيْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ بِالْمَدِينَةِ أَرْبَعًا وَبِذِي الْحُلَيْفَةِ الْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه بيان دي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په مدينه كي څلور ركعاتونه اوكړل او په ذي الحليفه مقام كي مو دوه ركعاتونه اوكړل. امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

٥٤٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ زَاذَانَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " خَرَجَ مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ لَا يَخَافُ إِلَّا اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه**: دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم دمديني نه مكي ته تلو نو هغه سره به دالله رب العالمين نه علاوه دبل څيز ويره نه وه او ددي باوجود به يې صرف دوه ركعاته مونځ كولو.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٤٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَمْ تُقْصَرُ الصَّلَاةُ

**څومره ورځو پوري قصر كول درست دي**

---

1 صحيح البخارى في تقصير الصلاة ٥ (١٠٨٩) والحج ٢٢ (١٥٥٦)، و٢٥ (١٥٤٨) و... (١٠١٠)، والجهاد ١٠٢ (٢٩٥١) صحيح مسلم في المسافرين ١ (٦٩٠)، سنن ابى داود في الصلاة ٢٧١ (١٢٠٢)، والحج ٢١ (١٧٧٣)، سنن النسائى في الصلاة ١١ (٤٧٠)، و١٧ (٤٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٣، ٦٦) مسند احمد (٣ في ١١٠، ١١١، ١٧٧، ١٨٦، ٢٣٧، ٢٦٨، ٢٧٨)، سنن الدارمى في الصلاة ١٧٩ (١٥٤٨)

2 سنن النسائى في تقصير الصلاة ١ (١٤٣٦)، (تحفة الأشراف: ٦٤٣٦) مسند احمد (١ في ٢١٥، ٢٢٦، ٢٤٥، ٣٦٢)

٥٤٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ الْحَضْرَمِيُّ. حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ. قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ. قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسٍ: كَمْ أَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ؟ قَالَ: عَشْرًا. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ "أَقَامَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ تِسْعَ عَشْرَةَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ" قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَنَحْنُ إِذَا أَقَمْنَا مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ تِسْعَ عَشْرَةَ صَلَّيْنَا رَكْعَتَيْنِ، وَإِنْ زِدْنَا عَلَى ذَلِكَ أَتْمَمْنَا الصَّلَاةَ. وَرُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ. أَنَّهُ قَالَ: مَنْ أَقَامَ عَشْرَةَ أَيَّامٍ أَتَمَّ الصَّلَاةَ. وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. أَنَّهُ قَالَ: مَنْ أَقَامَ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا أَتَمَّ الصَّلَاةَ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ. وَرُوِيَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ. أَنَّهُ قَالَ: إِذَا أَقَامَ أَرْبَعًا صَلَّى أَرْبَعًا. وَرَوَى عَنْهُ ذَلِكَ قَتَادَةُ. وَعَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ. وَرَوَى عَنْهُ دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ خِلَافَ هَذَا. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ بَعْدُ فِي ذَلِكَ. فَأَمَّا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَأَهْلُ الْكُوفَةِ فَذَهَبُوا إِلَى تَوْقِيتِ خَمْسَ عَشْرَةَ. وَقَالُوا: إِذَا أَجْمَعَ عَلَى إِقَامَةِ خَمْسَ عَشْرَةَ أَتَمَّ الصَّلَاةَ. وقَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: إِذَا أَجْمَعَ عَلَى إِقَامَةِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ أَتَمَّ الصَّلَاةَ. وقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ. وَالشَّافِعِيُّ. وَأَحْمَدُ: إِذَا أَجْمَعَ عَلَى إِقَامَةِ أَرْبَعَةٍ أَتَمَّ الصَّلَاةَ. وَأَمَّا إِسْحَاقُ فَرَأَى أَقْوَى الْمَذَاهِبِ فِيهِ حَدِيثَ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ: لِأَنَّهُ رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ثُمَّ تَأَوَّلَهُ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَجْمَعَ عَلَى إِقَامَةِ تِسْعَ عَشْرَةَ أَتَمَّ الصَّلَاةَ. ثُمَّ أَجْمَعَ أَهْلُ الْعِلْمِ عَلَى أَنَّ الْمُسَافِرَ يَقْصُرُ مَا لَمْ يُجْمِعْ إِقَامَةً وَإِنْ أَتَى عَلَيْهِ سِنُونَ. [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دمديني نه مكي ته روان شو او هغوئ دوه ركعاتونه اوكړل. يحي بن اسحاق وائي ما دانس رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مكه كي څو ورځي تيري كړي وي نو هغوئ اوفرمائيل لس ورځي.

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عباس، او جابر رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي. او ابن عباس رضي الله عنهما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل كړي دي چي رسول الله پخپل سفر كي نولس ورځي تيري كړي دي

[1] ـ صحيح البخارى في تقصير الصلاة ا (١٠٨١) . والمغازي ٥٢ (٤٢٩٩) . صحيح مسلم في المسافرين ا (٦٩٣) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٧٩ (١٢٣٣) . سنن النسائي في تقصير الصلاة ا (١٤٣٩) . و ٢ (١٤٥٢) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٧٦ ا. (تحفة الأشراف ١٦٥٢) مسند احمد (٣ في ١٩٠ ١٨٧) . سنن الدارمي في الصلاة ١٨٠ (١٥٢٠)

او دوه دوه رکعاتونه به يي کول ، ابن عباس وائي کله چي به مونږ نولس ورځي يا ددينه کمي په سفر کي تيرولي نو دوه رکعاتونه به مو کول او که ددينه به مو زياتي ورځي تيرولي بيا به مو پوره مونځ کولو . دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي څوك په سفر کي لس ورځي تيروي هغه دي پوره مونځ کوي دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي څوك په سفر کي پنځلس ورځي قيام کوي دي به پوره مونځ کوي، او دده نه د دولسو ورځو قول هم مروي دي . دسعيد بن مسيب نه مروي دي فرمائيل يي چي کله چي څوك څلور ورځي قيام کوي نو څلور رکعاته دي کوي او دده نه دا روايت قتاده، او عطا خراساني نقل کړي دي، او داود بن ابي هند دهغه نه ددي په خلاف روايت نقل کړي دي.

ددينه پس په دي مسئله کي داهل علمو اختلاف بيانيږي سفيان ثوري او اهل کوفه پنځلس ورځو حد مقرر کړي دي دوی وائي کله چي مسافر دپنځلو ورځو تيرولو نيت اوکړي نو پوره مونځ به کوي، اوزاعي وائي کله چي مسافر د دولسو ورځو تيرولو نيت کړي وي دي به پوره مونځ کوي مالك بن انس شافعي او امام احمد وائي کله چي مسافر دڅلورو ورځو تيرولو نيت اوکړي نو پوره مونځ به کوي، او اسحاق بن راهويه وائي چي په ټولو کي قوي مذهب حديث دابن عباس دي ځکه چي هغوی درسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کړي دي بيا دا چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه پس هغه په دي باندي عمل کړي دي کله چي به هغه نولس ورځي تيرولي نو پوره مونځ به يي کولو بيا داهل علمو په دي اجماع منعقد شوه چي مسافر څو پوري دقيام نيت کړي نه وي ترهغي به قصر کوي اگر که په دي باندي ډير کلونه هم تير شي

**تشريح** : موده دسفر داهل علمو په نزد اختلافي ده .

(۱) په احنافو عالمانو کي امام ابويوسف رحمه الله فرمائی، اقله موده د سفر دوه ورځي پوره اود دريمي ورځي اکثره حصه ده.

(۲) د امام شافعی رحمه الله په نزد د يوقول مطابق يوه ورځ اويوه شپه کم نه کم دسفرموده ده

(۳) امام مالك اوامام احمد فرمائی ، څلور فرسخه اقله موده دسفرده، هم دی يوقول د امام شافعی رحمه الله دی . صاحب دهدايه وائی، زمونږ پيش کړی حديث ددوارومخالفو اقوالو خلاف حجت دی .

***************

۵۴۹_حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " سَافَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَفَرًا فَصَلَّى تِسْعَةَ عَشَرَ يَوْمًا رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ

. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَنَحْنُ نُصَلِّي فِيمَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ تِسْعَ عَشْرَةَ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، فَإِذَا أَقَمْنَا أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ صَلَّيْنَا أَرْبَعًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم سفر اوكړو او دنولسو ورځو پوري يې دوه دوه ركعاتونه اوكړل دابن عباس بيان دي چي مونږ به هم ددينه په كمو ورځو كي په سفر كي دوه ركعاتي مونځونه كول او كله چي به مونږ ددينه زيات قيام كولو نو څلور ركعاته به مو كول امام ترمذي وائي دا حديث غريب حسن صحيح دي

*****************

## ٤١_ باب مَا جَاءَ فِي التَّطَوُّعِ فِي السَّفَرِ

### په سفر كي د نفلو كولو بيان

٥٥٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِي بُسْرَةَ الْغِفَارِيِّ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: " صَحِبْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ شَهْرًا فَمَا رَأَيْتُهُ تَرَكَ الرَّكْعَتَيْنِ إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْبَرَاءِ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْهُ فَلَمْ يَعْرِفْهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، وَلَمْ يَعْرِفْ اسْمَ أَبِي بُسْرَةَ الْغِفَارِيِّ وَرَآهُ حَسَنًا، وَرُوِي عَنْ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " لَا يَتَطَوَّعُ فِي السَّفَرِ قَبْلَ الصَّلَاةِ وَلَا بَعْدَهَا " وَرُوِيَ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ " يَتَطَوَّعُ فِي السَّفَرِ " ثُمَّ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَرَأَى بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَطَوَّعَ الرَّجُلُ فِي السَّفَرِ، وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَلَمْ تَرَ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يُصَلَّى قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا، وَمَعْنَى مَنْ لَمْ يَتَطَوَّعْ فِي السَّفَرِ قَبُولُ الرُّخْصَةِ وَمَنْ تَطَوَّعَ فَلَهُ فِي ذَلِكَ فَضْلٌ كَثِيرٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَخْتَارُونَ التَّطَوُّعَ فِي السَّفَرِ. (2)

---

1 ـ صحيح البخاري في تقصير الصلاة (١٠٨٠)، والمغازي ٥٢ (٤٢٩٨)، سنن ابي داود في الصلاة ٢٧٩ (١٢٣٠)

2 سنن ابي داود في الصلاة ٢٧٦ (١٢٢٢) (تحفة الأشراف : ١٩٢٢)

**ترجمه** . دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره اتلس مياشتي تيري كړي ليكن ما دماسپخين دمونځ نه مخكي دنمر ګرځيدلو نه پس دوخت په دوه ركعاتونو پريخودلو هيڅ كله نه دي ليدلي

امام ترمذي واني دبراء حديث غريب دي ما ددي حديث باره كي دامام بخاري نه تپوس اوكړو نو هغه ته صرف دليث بن سعد په روايت معلوم وو او هغه ته دابو بسره غفاري نوم معلوم نه وو او هغه دا حسن اوګنړلو . په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي. دابن عمر نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په سفر كي نه دمونځ نه مخكي نفل كول او نه وروسته او دا هم دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي چي رسول الله به په سفر كي نفل كول . بيا درسول الله نه پس په اهل علمو كي اختلاف پيدا شو دبعضي صحابه كرامو رائي دا وه چي په سفر كي سړي نفل كولي شي او همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي، او داهل علمو يوي ډلي رائي داده چي په سفر كي نه دمونځ نه مخكي نفل شته او نه روسته په سفر كي چي څوك دنفل كولو قائل نه دي دهغوئ مقصود رخصت قبلول دي او څوك چي دنفل كولو قائل دي ددي ډير لوي فضيلت دي او همدا داكثرو اهل علمو قول دي چي هغوئ په سفر كي نفل كول خوښول

***************

٥٥١ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنِ الحَجَّاجِ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ فِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَاهُ ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَطِيَّةَ، وَنَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره مي په سفر كي دوه ركعاتونه اوكړل او بيا مي ددينه پس دوه ركعاتونه اوكړل.

امام ترمذي واني دا حديث حسن دي او ابن ابي ليلي دا حديث دعطيه نه او دنافع نه نقل كړي دي او هغوئ دواړو دابن عمر نه نقل كړي دي.

***************

٥٥٢ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ المُحَارِبِيُّ يَعْنِي الكُوفِيَّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ هَاشِمٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَطِيَّةَ، وَنَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الحَضَرِ وَالسَّفَرِ،

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٧٣٢٦)

فَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي الْحَضَرِ الظُّهْرَ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ وَلَمْ يُصَلِّ بَعْدَهَا شَيْئًا. وَالْمَغْرِبَ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ سَوَاءٌ ثَلَاثَ رَكَعَاتٍ لَا تَنْقُصُ فِي الْحَضَرِ وَلَا فِي السَّفَرِ هِيَ وِتْرُ النَّهَارِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. سَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: مَا رَوَى ابْنُ أَبِي لَيْلَى حَدِيثًا أَعْجَبَ إِلَيَّ مِنْ هَذَا، وَلَا أَرْوِي عَنْهُ شَيْئًا. (١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي ما په سفر او حضر دواړو کي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم سره مونځونه کړي دي ، ما ورسره په حضر کي دماسپخين څلور رکعاتونه اوکړل او بيا مي ددينه پس دوه رکعاتونه اوکړل او په سفر کي مي ورسره دوه رکعاتونه اوکړل او بيا مي ددينه پس دوه رکعاتونه اوکړل. او په مازيګر کي مي ورسره دوه رکعاتونه اوکړل او ددينه پس مي بيا هيڅ اونکړل او په ماښام کي مي په سفر او حضر دواړو کي دري رکعاتونه اوکړل نه مي په حضر کي کمي اوکړو او نه په سفر کي خکه چي دا دورخي وتر دي او بيا مي ددينه پس دوه رکعاتونه اوکړل.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي ابن ابي ليلي کوم داسي حديث نه دي نقل کړي کوم چي زماپه نزد ددينه زيات په تعجب کي اچونکي وي نو زه دهغه نه هيڅ يو روايت نه اخلم.

**تشريح** : **دوطن اقسام**

عامو مشانخو د وطن دري قسمونه بيان کړی دی(١)، وطن اصلی(٢)، وطن اقامت (٣)، دريم وطن سکني.

(١) وطن اصلی د انسان خپل پيدائشی خاي دی ، يا هغه ښار چی په هغي کي دده اهل وعيال اوسيږی، اوددی نه دمنتقل کيدواراده نه لری

(٢) وطن اقامت هغه ښار ياکلي دی ، چی په هغي کي مسافرد پنځلسو ورځودقيام اراده کړی وی، ددی دويم نوم وطن سفرهم دی.

(٣) دريم وطن سکني هغه ښاردی چی په هغي کي مسافر د پنځلسوورځونه کم قيام اراده کړی وی محققينودوطن دوه قسمونه بيان کړی دی، وطن اصلی اووطن اقامت. دی کسانو وطن سکنی لره اعتبار نه دی ورکړی ، خکه چی په وطن سکنی کي اقامت نه ثابتيږی ، بلکه دسفرحکم باقی پاتی وی

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٣٢٧و ٨٤٢٨)

*****************

## ٤٢_ باب مَا جَاءَ فِي الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّلاتَيْنِ

### دوه مونځونه په يوځاي كول

٥٥٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ هُوَ عَامِرُ بْنُ وَاثِلَةَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ إِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ زَيْغِ الشَّمْسِ أَخَّرَ الظُّهْرَ إِلَى أَنْ يَجْمَعَهَا إِلَى الْعَصْرِ فَيُصَلِّيَهُمَا جَمِيعًا. وَإِذَا ارْتَحَلَ بَعْدَ زَيْغِ الشَّمْسِ عَجَّلَ الْعَصْرَ إِلَى الظُّهْرِ وَصَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ جَمِيعًا ثُمَّ سَارَ. وَكَانَ إِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ الْمَغْرِبِ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتَّى يُصَلِّيَهَا مَعَ الْعِشَاءِ، وَإِذَا ارْتَحَلَ بَعْدَ الْمَغْرِبِ عَجَّلَ الْعِشَاءَ فَصَلَّاهَا مَعَ الْمَغْرِبِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالصَّحِيحُ عَنْ أُسَامَةَ، وَرَوَى عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ، عَنْ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ، عَنْ قُتَيْبَةَ هَذَا الْحَدِيثَ. (١)

**ترجمه** دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به غزوه تبوك كي كله دنمر گرځيدو نه مخكي سفر كولو نو دماسپخين مونځ به يي مؤخر كولو تردي چي دا به يي دمازيگر دمونځ سره يوځاي كړو او دواړه به يي په يوځاي كول او چي كله به يي دنمر گرځيدونه پس سفر كولو مازيگر به يي رامخكي كړو او دماسپخين سره به يي يوځاي كړو دماسپخين او مازيگر مونځونه به يي يوځاي اوكړو او بيا به روان شو او چي كله به يي دماښام نه مخكي سفر شروع كولو دماښام مونځ به يي دخپل وخت نه مؤخر كړو تردي چي دماخوستن سره به يي يوځاي كړو او بيا به يي اداء كړو او چي كله به يي دماښام نه پس سفر كولو نو دماخوستن مونځ به يي رامخكي كړو او دماښام دمونځ سره به يي يوځاي اوكړو.

امام ترمذي وائي صحيح خبره داده چي دا روايت داسامه نه مروي دي، دارنگي داحديث علي بن مديني داحمد بن حنبل نه او احمد دقتيبه نه نقل كړي د او په دي باب كي د علي، ابن

---

١ صحيح مسلم في المسافرين ٦ (٧٠٦) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٧٤ (١٢٠٦. ١٢٢٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٧٤ (١٠٧٠) . (تحفة الأشراف : ١١٣٢٠) . موطا امام مالك في قصر الصلاة ١ (٢) . مسند احمد (٥ في ٢٢٩. ٢٣٠. ٢٣٣. ٢٣٦. ٢٣٧. ٢٤١) . سنن الدارمي في الصلاة ١٨٢ (١٥٥٦)

عمر، انس، عبدالله بن عمرو، عائشه، ابن عباس، اسامه بن زيد، او جابر بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

****************

٥٥٤_ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ سُلَيْمَانَ. حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا اللُّؤْلُؤِيُّ. حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الأَعْيَنُ. حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ. حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ. حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. بِهَذَا الْحَدِيثِ يَعْنِي حَدِيثَ مُعَاذٍ. وَحَدِيثُ مُعَاذٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ تَفَرَّدَ بِهِ قُتَيْبَةُ، لَا نَعْرِفُ أَحَدًا رَوَاهُ، عَنِ اللَّيْثِ غَيْرَهُ وَحَدِيثُ اللَّيْثِ. عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ. عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ. عَنْ مُعَاذٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَالْمَعْرُوفُ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ حَدِيثُ مُعَاذٍ مِنْ حَدِيثِ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ. عَنْ مُعَاذٍ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " جَمَعَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَبَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ ". رَوَاهُ قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ، وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، ومالك، وغير واحد، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ الْمَكِّيِّ. وَبِهَذَا الْحَدِيثِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ. وَأَحْمَدُ. وَإِسْحَاقَ. يقولان: لا بأس أن يجمع بين الصلاتين في السفر في وقت إحداهما. [1]

**ترجمه**: په دي سند سره هم دا حديث يعني دمعاذ رضي الله عنه حديث مروي دي.
امام ترمذي وائي دمعاذ حديث حسن غريب دي، قتيبه ددي په نقل کولو کي منفرد دي مونږ ته دده نه علاوه بل څوک نه دي معلوم چي دليث نه يي نقل کړي دي، او ليث چي کوم حديث ديزيد بن ابي حبيب نه او يزيد دابوطفيل نه او ابوطفيل دمعاذ نه نقل کړي وي هغه غريب دي، داهل علمو په نزد مشهور حديث دمعاذ هغه حديث دي کوم چي هغه دابو الزبير نه او هغه دابوطفيل نه او هغه دمعاذ نه نقل کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په غزوه تبوک کي دماسپخين او مازيګر په يوځاي اوکړل او دماښام او ماخوستن مونځونه يي په يوځاي اوکړل دا مضمون قره بن خالد، سفيان ثوري، مالك، او بعضي نورو محدثينو هم دابو الزبير مکي نه نقل کړي دي او همدي حديث مطابق دامام شافعي قول هم دي امام احمد او اسحاق بن راهويه وائي په سفر کي دوه مونځونه په يو وخت کي جمع کولو او په يوځاي اداء کولو کي هيڅ قباحت نشته.

****************

[1] _ صحيح مسلم في المسافرين ٦ (٧٠٦). سنن ابى داود في الصلاة ٢٧٤ (١٢٠٦. ١٢٢٠). سنن ابن ماجه في الإقامة ٧٤ (١٠٧٠). (تحفة الأشراف: ١١٣٢٠). موطا امام مالک في قصر الصلاة ١ (٢). مسند احمد (٥ في ٢٢٩. ٢٣٠. ٢٣٣. ٢٣٦. ٢٣٧. ٢٤١). سنن الدارمى في الصلاة ١٨٢ (١٥٥٦)

٥٥٥ـ حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ. حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ. عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. أَنَّهُ "اسْتُغِيثَ عَلَى بَعْضِ أَهْلِهِ فَجَدَّ بِهِ السَّيْرُ فَأَخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتَّى غَابَ الشَّفَقُ ثُمَّ نَزَلَ فَجَمَعَ بَيْنَهُمَا ثُمَّ أَخْبَرَهُمْ. أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُ ذَلِكَ إِذَا جَدَّ بِهِ السَّيْرُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَحَدِيثُ اللَّيْثِ. عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي هغه ته د هغه ديوي ښځي دزنكدن شروع كيدو خبر وركړي شو نو هغه باندي په تلو كي توندي جوړه شوه چنانچه دمابنام مونځ يي مؤخر كړو تردي چي شفق غائب شو او دسورلۍ نه راكوز شو دمابنام او ماخوستن مونځونه يي دواړه په يوځاي اوكړل او بيا يي خلقو ته اووئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم چي به كله په تلو كي جلتي وه نو هغوی به هم داسي كول.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي دليث حديث (رقم ۵۵۴) كوم چي هغه ديزيد بن ابي حبيب نه نقل كړي دي حسن صحيح دي.
**تشريح**:

****************

## ٤٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي صَلَاةِ الِاسْتِسْقَاءِ

### دصلاة استسقاء بيان

٥٥٦ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ. أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ. عَنْ عَمِّهِ. أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "خَرَجَ بِالنَّاسِ يَسْتَسْقِي فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ جَهَرَ بِالْقِرَاءَةِ فِيهِمَا وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَاسْتَسْقَى وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. وَأَبِي هُرَيْرَةَ. وَأَنَسٍ. وَآبِي اللَّحْمِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ

---

[1] ـ صحيح البخاري في تقصير الصلاة ٦ (١٠٩١). والعمرة ٢٠ (١٨٠٥). والجهاد ١٣٦ (٣٠٠٠). صحيح مسلم في المسافرين ٥ (٧٠٣). سنن ابي داود في الصلاة ٢٧٤ (١٢٠٧). سنن النسائي في المواقيت ٣٢ (٥٨٩). و٣٥ (٥٩٣. ٥٩٦. ٥٩٧). (تحفة الأشراف: ٨٠٥٦). موطا امام مالک في قصر الصلاة ١ (٣). مسند احمد (٢ في ٨٠٣)

صَحِيحٌ. وَعَلَى هَذَا العَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَعَمُّ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ هُوَ: عَبْدُ اللهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ المَازِنِيُّ.[1]

**ترجمه** : دعباد بن تميم دتره عبدالله بن زيد بن عاصم مازني رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دباران طلب كولو دپاره خلق دخان سره روان كړل او بهر لاړو او دوه ركعاته مونځ يي خلقو ته وركړو چي په جهري اواز يي قرائت اوكړو خپل څادر يي التيه كړو او دواړه لاسونه يي پورته كړل او قبلي ته مخامخ اودريدو او دباران دپاره يي دعا اوغوښتله امام ترمذي وائي دعبدالله بن زيد حديث حسن صحيح دي اوپه دي باب كي دابن عباس، ابوهريره، انس، او ابي اللحم رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي . او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي او امام شافعي، احمد، اواسحاق هم ددي قائل دي.

**تشريح** : **په استسقاء كي دمونځ نه پس مسنون اعمال**

په دعا كي مستحب طريقه دا ده.چې د قبلې په طرف مخ كړى. دليل يي دادى چې دنبىﷺ نه په دعا كي استقبال قبله او د څادر اړول مروى دى.

خپل څادر دى ألټه كړى.اوددى طريقه دا ده.كه څادر څلور كوټه وى.نو پورتنۍ حصه دى لاندې كړى.او لاندينۍ حصه دى پورته كړى .اوكه مدور وى لكه جُبه،نوښۍ حصه دى كس طرف ته كړى.او كسه حصه دى ښى طرف ته كړى.

د قلب رداء حكم د امام محمد رحمه الله مذهب دې.هم ددى قائل امام مالك امام شافعى او امام احمد دى.

د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب ددوى په نزدبه څادر اړول نه كوى.هم دا د امام ابويوسف رحمه الله مذهب دې.

استسقاء كي دى ذميان خلق نه حاضريږى.څكه چې د مسلمانانو وتل د رحمت د نازليدو په غرض د دعا دپاره وى.اود كافرانو په باره كي الله تعالى فرمائى: وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ يعنى د كافرانو دعا ضائع او په تاوان كي .

---

[1] ـ صحيح البخاري في الاستسقاء ١(١٠٠٥)، و٤(١٠١٢)، والدعوات ٢٥(٦٣٤٣)، صحيح مسلم في الاستسقاء ١(٨٩٤)، سنن ابي داود في الصلاة ٢٥٨(١١٦١/١١٦٤)، و٢٥٩(١١٦٦، ١١٦٧)، سنن النسائي في الاستسقاء ٢(١٥٠٦)، و٣(١٥٠٨)، و٥(١٥١٠)، و٦(١٥١١)، و٧(٥١٢)، و٨(١٥١٣)، و١٢(١٥٢١)، و١٤(١٥٢٢)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥٣(١٢٦٧)، (تحفة الأشراف: ٥٢٩٧)، موطا امام مالك في الاستسقاء (١)، مسند احمد (٤/٣٩، ٤٠، ٤١، ٤٢)، سنن الدارمي في الصلاة ١٨٨(١٥٢١)

دامام مالك ،امام شافعي او امام محمد فرمائي.چي ذميانو ته به د استسقاء دپاره د وتلو حکم نشی کولی.اوکه دوی په خپله راوخی.نو منع کولی به هم نشي.

**دعبدالله بن زيد رضي الله عنه حالات:**

نوم عبدالله کنیه ابو محمد قبیله خزرج دپلار نوم یي زید دی او دمور نوم یي ام عماره وو دهجرت نه پس مسلمان شوی وو او دبدر نه علاوه په تمامو غزواتو کي شریك شوی وو او هم ده مسلیمه الکذاب دتوري په وار قتل کړی وو کله چي وحشي وهلی وو.

په ۲۳هجري کي وفات شوی دی چي عمر یي په دغه وخت کي ۷۵کلونه وو په کتابونو کي ددې یو دوه نور نومونه هم راغلي دي اول خلاد . دویم علي یو څو روایات ورنه منقول دي او ددوی نه نقل دروایت کونکي عباد بن تمیم. سعید بن مسیب. یحیي بن عماره. واسع بن حبان. عباده بن حبیب وغیره دي.

***************

۵۵۷ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ، عَنْ آبِي اللَّحْمِ، أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "عِنْدَ أَحْجَارِ الزَّيْتِ يَسْتَسْقِي وَهُوَ مُقْنِعٌ بِكَفَّيْهِ يَدْعُو". قَالَ أَبُو عِيسَى: كَذَا قَالَ قُتَيْبَةُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، عَنْ آبِي اللَّحْمِ وَلَا نَعْرِفُ لَهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا هَذَا الْحَدِيثَ الْوَاحِدَ، وَعُمَيْرٌ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ، قَدْ رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَادِيثَ وَلَهُ صُحْبَةٌ.[1]

**ترجمه**: دابواللحم نه روایت دي فرمائي چي مارسول الله صلي الله علیه وسلم په احجار زیت مقام کي دالله تعال نه دباران غوښتلو په حال کي اولیدو چي دواړه لاسونه یي پورته کړي وو او دعا یي غوښتله.

امام ترمذي وائي قتیبه ددي حدیث په سند کي داسي وئیلي دي "عن ابي اللحم" او مونږ ته ددي حدیث نه علاوه دده کوم بل حدیث معلوم نه دي چي دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه یي نقل کړي وي عمیر دابواللحم مولي(ازاد کړي غلام) دي، او هغوئ درسول الله صلي الله علیه وسلم نه یو څو احادیث نقل کړي دي او پخپله ورته هم شرف دصحابیت حاصل دي.

***************

[1] سنن النسائي في الاستسقاء ۹ (۱۵۱۵) . (وهو عند أبي داود في الصلاة ۲۶۰ (۱۱۶۸)) . واحمد (۵ في ۲۲۳) من حديث عمير نفسه في التحفة: ۱۰۹۰۰) (تحفة الأشراف: ۵)

٥٥٨ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ إِسْحَاقَ وَهُوَ ابْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كِنَانَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَرْسَلَنِي الْوَلِيدُ بْنُ عُقْبَةَ وَهُوَ: أَمِيرُ الْمَدِينَةِ، إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ أَسْأَلُهُ عَنِ اسْتِسْقَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَيْتُهُ، فَقَالَ: " إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مُتَبَذِّلًا مُتَوَاضِعًا مُتَضَرِّعًا حَتَّى أَتَى الْمُصَلَّى فَلَمْ يَخْطُبْ خُطْبَتَكُمْ هَذِهِ وَلَكِنْ لَمْ يَزَلْ فِي الدُّعَاءِ وَالتَّضَرُّعِ وَالتَّكْبِيرِ وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ كَمَا كَانَ يُصَلِّي فِي الْعِيدِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه**: اسحاق بن عبدالله بن كنانه وائي چي زه وليد بن عقبه ابن عباس رضي الله عنهما ته اوليږلم (وليد دمديني امير وو) تردي چي زه دابن عباس نه داستشقاء په باره كي تپوس اوكړم. زه ورغلم او تپوس مي ورنه اوكړو راته يي اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم په زوړ او شليدلي لباس كي دعاجزئ په حال كي اووتلو تردي چي عيدگاه ته راغلو او ستاسو دخطبي پشان خطبه يي ورنكړه بلكه په مسلسل دعا كولو كي او په ژړا كولو كي دالله تعالي په لويي بيانولو كي مشغول وو او بيا يي دوه ركعاته مونځ اوكړو داسي مونځ څنگه چي تاسو په اختر كي كوئ.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

٥٥٩ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كِنَانَةَ، عَنْ أَبِيهِ فَذَكَرَ نَحْوَهُ، وَزَادَ فِيهِ مُتَخَشِّعًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، قَالَ: يُصَلِّي صَلَاةَ الِاسْتِسْقَاءِ نَحْوَ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ، يُكَبِّرُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى سَبْعًا، وَفِي الثَّانِيَةِ خَمْسًا، وَاحْتَجَّ بِحَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرُوِي عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، أَنَّهُ قَالَ: لَا يُكَبِّرُ فِي صَلَاةِ الِاسْتِسْقَاءِ كَمَا يُكَبِّرُ فِي صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ، وقَالَ النُّعْمَانُ أَبُو حَنِيفَةَ: لَا تُصَلَّى صَلَاةُ

1 سنن ابي داود في الصلاة ٢٥١ (١١٦٥)، سنن النسائي في الاستسقاء ٣ (١٥٠٧)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥٣ (١٢٦٦)، (تحفة الأشراف: ٥٣٥٩)، مسند احمد (١/٢٣٠، ٢٦٩، ٣٥٥)

الِاسْتِسْقَاءِ وَلَا آمُرُهُمْ بِتَحْوِيلِ الرِّدَاءِ وَلَكِنْ يَدْعُونَ وَيَرْجِعُونَ بِجُمْلَتِهِمْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: خَالَفَ السُّنَّةَ. [1]

**ترجمه** : داسحاق بن عبدالله بن كنانه نه روايت دي باقي حديث دسابقه حديث پشان دي البته په دي روايت كي د "متخشعا" (عاجزي ظاهرونكي) لفظ اضافه ده.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او همدا دامام شافعي قول دي امام شافعي وائي داستسقاء مونځ به داخترونو دمونځ پشان كولي شي په اولني ركعات كي به اوه تكبيرونه كوي او په دويم كي به پنځه تكبيرونه وي او دابن عباس دحديث نه يي استدلال كړي دي.

دامام مالك نه مروي دي چي هغوئ به په استسقاء كي داخترونو دتكبيرونو پشان تكبيرونه نه وئيل، ابوحنيفه نعمان وائي چي په استسقاء كي هيڅ قسم مونځ كول نشته او نه زه خلقو ته دڅادر التيه كولو حكم كوم بلكه تمام خلق به په يوځاي دعا غواړي او واپس به روانيږي مګر دده دا قول خلاف دسنت دي.

**تشريح** : په صلاة استسقاء كي دعلماؤ دوه مذاهب دي:

(۱) دامام ابو حنيفه رحمه الله قول دادي تحويل د رداء صرف دامام كار دي.

(۲) ائمه ثلاثه وائي تحويل د رداء دامام او مقتديانو ټولو دپاره ضروري دي. دجانبينو دلائل دعلم فقه په مطولاتو كي كتلي شئ.

***************

## ٤٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي صَلَاةِ الْكُسُوفِ

### د نمر دتندر نيولو په وخت كي دمونځ كولو بيان

٥٦٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّهُ صَلَّى فِي كُسُوفٍ فَقَرَأَ ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ قَرَأَ ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ قَرَأَ ثُمَّ رَكَعَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، وَالْأُخْرَى مِثْلُهَا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَالنُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، وَالْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، وَأَبِي مَسْعُودٍ، وَأَبِي بَكْرَةَ، وَسَمُرَةَ، وَأَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، وَابْنِ عُمَرَ،

---

[1] ـ سنن النسائي في الاستسقاء ٩ (١٥١٥) . أبو داود في الصلاة ٢٦٠ (١١٦٨) . واحمد (٥ في ٢٢٣) من حديث عمير نفسه في التحفة: ١٠٩٠٠) (تحفة الأشراف: ٥)

وَقَبِيصَةَ الْهِلَالِيِّ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّهُ صَلَّى فِي كُسُوفٍ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ". وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. قَالَ: وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي القِرَاءَةِ فِي صَلَاةِ الكُسُوفِ، فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ أَنْ يُسِرَّ بِالقِرَاءَةِ فِيهَا بِالنَّهَارِ. وَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنْ يَجْهَرَ بِالقِرَاءَةِ فِيهَا كَنَحْوِ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ وَالْجُمُعَةِ. وَبِهِ يَقُولُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ يَرَوْنَ الجَهْرَ فِيهَا. وقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجْهَرُ فِيهَا. وَقَدْ صَحَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِلْتَا الرِّوَايَتَيْنِ. صَحَّ عَنْهُ أَنَّهُ "صَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ". وَصَحَّ عَنْهُ أَيْضًا أَنَّهُ "صَلَّى سِتَّ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ". وَهَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ جَائِزٌ عَلَى قَدْرِ الكُسُوفِ، إِنْ تَطَاوَلَ الكُسُوفُ فَصَلَّى سِتَّ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ فَهُوَ جَائِزٌ، وَإِنْ صَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ وَأَطَالَ القِرَاءَةَ فَهُوَ جَائِزٌ. وَيَرَى أَصْحَابُنَا أَنْ تُصَلَّى صَلَاةُ الكُسُوفِ فِي جَمَاعَةٍ فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ وَالقَمَرِ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دكسوف مونځ اوكړو او قرائت يي اولوستلو بيا يي ركوع اوكړه او بيا يي قرائت اوكړو او بيا يي ركوع اوكړه، بيا يي قرائت اوكړو او بيا يي ركوع اوكړه غرض دا چي دري پيري يي قرائت اوكړو او دري پيري يي ركوع اوكړه بيا يي دواړه سجدي اوكړي او دويم ركعات يي هم داسي اوكړو.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعلي، عائشه، عبدالله بن عمر، نعمان بن بشير، مغيره بن شعبه، ابو مسعود انصاري، ابوبكره، سمره، ابوموسي اشعري، ابن مسعود، اسماء بنت ابي بكر، ابن عمر، قبيصه هلالي، جابر بن عبدالله، عبدالرحمن بن سمره، او ابي بن كعب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. ابن عباس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دا هم نقل كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په صلاة كسوف كي په څلورو سجدو كي څلور ركوع ګاني اوكړي، امام شافعي، احمد، او اسحاق هم ددي قائل دي په صلاة كسوف كي داهل علمو اختلاف دي دبعضو قول دادي دورځي به قرائت سري كوي او دبعضو قول دادي چي د عيدينو دمونځ پشان به په دي كي هم

---

[1] ـ صحيح مسلم في الكسوف ٣ (٩٠٩)، سنن ابي داود في الصلاة ٢٦٢ (١١٨٣)، سنن النسائي في الكسوف ٨ (١٤٦٨، ١٤٦٩)، (تحفة الأشراف: ٥٦٩٧)، مسند احمد (١/ ٢١٦، ٢٩٨، ٣٤٦، ٣٥٨)، سنن الدارمي في الصلاة ١٨٧ (١٥٢٢)

جهري قرائت كوي او همدا دامام مالك او احمد او اسحاق قول هم دي چي په دي كي به جهري مونځ كوي امام شافعي وائي جهر به نه كوي او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په دواړو قسمونو احاديث مروي او ثابت دي درسول الله نه دا هم ثابت ده چي په څلور سجدو كي يې څلور ركوع ګاني اوكړي، او دا اهل علمو په نزد دكسوف دمقدار مطابق دي كه چرې كسوف اوږد شي نو په څلورو سجدو كي يې شپږ ركوع ګاني اوكړي دا هم جائز دي او كه په څلورو سجدو كي څلور ركوع ګاني اوكړي او قرائت اوږد كړي نو دا هم جائز دي. بعضي محدثين وائي صلاة كسوف به په جماعت سره اداء كولي شئ برابره خبره ده چي خړوالي په سپوږمئ كي راغلي وي او كه په نمر كي.

**تشريح** : ربط دماقبل سره : داخترمونځ،دكسوف مونځ او د استسقاء مونځ په دری واړه مونځونو كي مناسبت ښكاره دې چی دری واړه مونځونه په ورځ كي بغيرد اذان او اقامت نه ادا كولی شی.په دی كي د اختر مونځ چونكه واجب دې.او د كسوف مونځ د جمهورو په نزدمسنون دې.او د استسقاء د مونځ مسنونيت مختلف فيه دې.په دی وجه ددری واړو بابونو مناسب ترتيب واضح شو.

دكسوف معنی ده نمر توريدلو طرف ته مائل كيدل.په دی كي يو لغت خسوف دې.امام منذری رحمه الله فرمائيلی دی چی دكسوف مونځ د١٩ راويانو نه مروی دې.

(١) بعضو په كاف سره كسوف اوبعضو په خاء سره خسوف ذكر كړې دې . معلومه شوه چی دا دواړه لفظونه مترادف دی.

(٢) يا كسوف د نمر سره مخصوص دې.اوخسوف عام دی . نمر اوسپوږمئ دواړوته شامل دې.

(٣) بعضو ونيلی دی.چی د نمرد تندر نيولو دپاره كسوف اود سپوږمئ د تندر نيولو دپاره خسوف استعماليږی.داد فقهاؤ هم دا اصطلاح ده . هم ددی تائيد د الله تعالی قول:(فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ (٧) وَخَسَفَ الْقَمَرُ (٨) وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ) كوی.دكسوف دمونځ سبب كسوف يعنی د نمر تندر نيول دی.اوددی شرطونه هم هغه دی.كوم چی د نورو مونځونو دی.دكسوف د مونځ په مشروعيت باندې د پوره امت اجماع ده.چاهم ددی نه انكار نه دی كړې.

الله تعالي خپلوبندګانوته دوعظ اوتنبيه په غرض علامات اونشاني ښائي دنمر دغه معامله هم ددي نشاناتونه ده ددي په ذريعه الله تعالي خپلوبندګانوته داتنبيه وركول غواړي چي دقيامت په ورځ نمرداسي بې نوره شي نوېدي وخت كي صدقات اوخيراتونه اوتوبه اواستغفار اوذكر اودعاكي مشغوليدوسره سره په جمع سره صلاة كسوف اداكول پكاردي.په كوم كي چي دوه ركعته دي اودصحيح حديث مطابق ددي دوه ركعتونوپه هرركعت كي دوه دوه قيامه

اودوه دوه رکوع کاني دي اودامونځ اوږد کول پکاردي،ترڅوچه دنمر اودسپوږمۍ دغه حالت درست شي اوددي نه پس خطبه ده،چونکه داهل جاهليت په عقيده کي دنمر اوسپوږمۍ دتندر نيولوسبب دچامرګ ياپيدائش وو ،اواتفاقادرسول الله صلي الله عليه وسلم مشرخوي ابراهيم دوفات په ورځ نمرتندرنيولي وونوخلقووئيل چي داشايددرسول الله صلي الله عليه وسلم دخوي دوفات په وجه وي. نوخکه رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي ترديدوکړو اووي فرمائيل چي دانمر اوسپوږمۍ دالله دنښونه دي دادچادمرګ اوژوندپه وجه نه متغيرکيږي،نوکله چي تاسو دا پداسي حالت کي ووينئ په ذکر اودعا اوعبادت کي مشغول اوسئ (فضائل اعمال ابو عبد الله مغربي)

*****************

٥٦١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ. حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ. حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ عُرْوَةَ. عَنْ عَائِشَةَ. أَنَّهَا قَالَتْ: " خَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ. فَأَطَالَ القِرَاءَةَ ثُمَّ رَكَعَ. فَأَطَالَ الرُّكُوعَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ. فَأَطَالَ القِرَاءَةَ هِيَ دُونَ الأُولَى. ثُمَّ رَكَعَ فَأَطَالَ الرُّكُوعَ وَهُوَ دُونَ الأَوَّلِ. ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ فَسَجَدَ. ثُمَّ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَبِهَذَا الحَدِيثِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ. وَإِسْحَاقَ: يَرَوْنَ صَلَاةَ الكُسُوفِ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَةِ الأُولَى بِأُمِّ القُرْآنِ. وَنَحْوًا مِنْ سُورَةِ البَقَرَةِ سِرًّا إِنْ كَانَ بِالنَّهَارِ. ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا نَحْوًا مِنْ قِرَاءَتِهِ. ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ بِتَكْبِيرٍ. وَثَبَتَ قَائِمًا كَمَا هُوَ. وَقَرَأَ أَيْضًا بِأُمِّ القُرْآنِ وَنَحْوًا مِنْ آلِ عِمْرَانَ. ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا نَحْوًا مِنْ قِرَاءَتِهِ. ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ. ثُمَّ قَالَ: " سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ ". ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ تَامَّتَيْنِ وَيُقِيمُ فِي كُلِّ سَجْدَةٍ نَحْوًا مِمَّا أَقَامَ فِي رُكُوعِهِ. ثُمَّ قَامَ فَقَرَأَ بِأُمِّ القُرْآنِ وَنَحْوًا مِنْ سُورَةِ النِّسَاءِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا نَحْوًا مِنْ قِرَاءَتِهِ. ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ بِتَكْبِيرٍ وَثَبَتَ قَائِمًا. ثُمَّ قَرَأَ نَحْوًا مِنْ سُورَةِ المَائِدَةِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا نَحْوًا مِنْ قِرَاءَتِهِ. ثُمَّ رَفَعَ. فَقَالَ: " سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ ". ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ. ثُمَّ تَشَهَّدَ وَسَلَّمَ. (١)

---

1 - صحيح البخاري في الكسوف ٢ (١٠٤٦)، و٥ (١٠٤٧)، و١٣ (١٠٥٨)، والعمل في الصلاة ١١ (١٢١٢)، وبدء الخلق ٣ (٣٢٠٣)، صحيح مسلم في الكسوف ١ (٩٠١)، سنن ابي داود في الصلاة ٢٦٢ (١١٨٠)، سنن النسائي في الكسوف ١١ (١٤٧٣)، سنن ابن

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي نمر تندر اونيولو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم خلقو ته مونځ ورکړو او اوږد قرائت يي اوکړو بيا يي رکوع اوکړه او رکوع يي هم اوږده کړه بيا يي سر پورته کړو او اوږد قرائت يي اوکړو مګر دويم قرائت داولني قرائت نه کم وو بيا يي رکوع اوکړه او اوږد قرائت يي اوکړو مګر دا قرائت دمخکني قرائت نه کم وو بيا يي سر پورته کړو او سجده يي اوکړه او بيا يي په دي طريقه دويم رکعات اوکړو. امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي. امام شافعي او احمد او اسحاق هم ددي حديث په بناء واني چي په صلاة کسوف کي په څلورو سجدو کي څلور رکوع ګاني دي. امام شافعي واني په اولني رکعات کي به سورة فاتحه لولي او دسورة بقري په مقدار قرائت به کوي که ورځ وي نو قرائت به سري وي او بيا به دقرائت برابر اوږده رکوع کوي بيا به الله اکبر واني او سر به پورته کوي او برابر به اودريږي څنګه چي مخکي اودريدلي وو او بيا به سورة فاتحه واني او دسورة ال عمران په مقدار قرائت به کوي او بيا به دخپل قرائت برابر اوږده رکوع کوي بيا به سر پورته کوي بيا به سمع الله لمن حمده واني بيا به په ښه شان سره دوه سجدي کوي او په هره سجده کي به دومره وخت تيروي څومره چي يي په رکوع کي تير کړي وو بيا به اودريږي او سورة فاتحه به واني او دسورة نساء په مقدار قرائت به کوي بيا به دخپل قرائت برابر اوږده رکوع کوي بيا به الله اکبر واني او سر به پورته کوي او نيغ به اودريږي بيا به دسورة مائدي برابر قرائت اوکړي او بيا به دخپل قرائت برابر اوږده رکوع اوکړي بيا به سر پورته کړي او سمع الله لمن حمده به اوواني بيا دي دوه سجدي اوکړي بيا دي تشهد اوواني او سلام دي اوګرځوي.

**تشريح** : که نمر تندر اونيولو.نو دجُمعی امام دی په جامع مسجد يا عيدګاه کي خلقو ته دنفل په شان دوه رکعته نفل مونځ ورکړی.يعنی څنګه چی نفل د اذان اواقامت نه بغيرکيږی.هم دغه شان د اذان او اقامت نه بغير دکسوف مونځ ادا کيږی.

په کسوف مونځ کي څو رکوع دي په کي دوه قولونه دي:

(۱) د احنافو په نزد په يو رکعت کي يوه رکوع ده.

(۲) امام مالك امام شافعی او امام احمد فرمائيلی دی.چی دکسوف په مونځ کي په يو رکعت کي دوه رکوع ګانی دی.ددوی دليل د عائشی رضی الله عنهاحديث دی.دحديث الفاظ دی:

ماجه في الإقامة ١٥٢ (١٢٦٣) . (تحفة الأشراف : ١٦٦٢٩) . مسند احمد (٦ في ٤٦، ٤٨، ١٦٣) . سنن الدارمي في الصلاة ١٩٤

(١٥٢٥)

"قالت خسفت الشمس في حياة رسول الله ﷺ فخرج الى المسجد فقام وصف الناس وراءه فكبر فقرأ قراءة طويلة ثم كبر فركع ركوعاً طويلاً ثم رفع رأسه فقال سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد ثم قام فقرأ قراءة طويلة هي ادنى من القراءة الأولى ثم كبر فركع ركوعاً طويلاً ثم رفع رأسه فقال سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد ثم سجد وفعل في الركعة الأخرى مثل ذلك فاستكمل أربع ركعات بأربع سجدات وانجلت الشمس قبل أن ينصرف ثم قام فخطب الناس فأثنى على الله بما هو أهله ثم قال إن الشمس والقمر ايتان من ايات الله تعالى لا ينخسفان لموت أحد ولا لحياته فإذا رأيتم ذالك فافزعوا إلى الصلاة"

يعنى عائشه صديقه فرمائي.چې د رسول الله ﷺ په ژوند کي يو ځل نمر تندر اونيولو . نو نبیﷺ جومات ته تشريف يوړلو. او اودريدلو.دخان شاته ئې دخلقو صفونه جوړ کړل.بيا ئې تکبير تحريمه اووئيلو.او اوږد قراءت ئې او لوستلو.بيا ئې تکبيراووئيلو.او اوږده رکوع ئې اوکړله.بيا ئې خپل سر د رکوع نه اوچت کړو.او " سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد" ئې اووئيل.بيا نبیﷺ اودريدلو.او اوږد قرات ئې اوکړلو.خو دا قرات د اولنى قرات نه کم وو.بيا ئې تکبير اووئيل.يوه اوږده رکوع ئې اوکړله.خو دا رکوع د اولنۍ رکوع نه کمه وه.بيا دوی سر اوچت کړو.او" سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد" ئې اووئيل.بيا ئې سجده اوکړه.او په دويم رکعت کي ئې هم هغه عمل اوکړو.نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم څلور رکعته (رکوع ګانى ) او څلور سجدي پوره کړي.اود نبیﷺ د فراغت نه مخکي نمر روښانه شو.بيا پاځيدو.خلقو ته ئې خطبه اووئيله.حمد او ثناء ئې د الله دشان مناسب بيان کړه.اووی فرمائيل.چې نمراو سپوږمئ د الله تعالى د نښو نه دوه نښى دى.دوی ته د چا په مرګ يا ژوند باندې تندر نه لګى.چې کله تاسو دا اووينئ.نومونځ طرف ته متوجه شئ . ددي حديث نه معلومه شوه.چې نبیﷺ د کسوف په مونځ کي په يو رکعت کي دوه رکوع ګانى کړى دى. زمونږ دليل دعبدالله بن عمروبن العاص رضى الله عنهم روايت دې.

" قال انكسفت الشمس على عهد رسول الله ﷺ فقام رسول الله ﷺ فلم يكد يركع ثم ركع فلم يكد يرفع ثم رفع فلم يكد يسجد ثم سجد فلم يكد يرفع ثم رفع فلم يكد يسجد ثم سجد فلم يكد يرفع ثم رفع وفعل في الركعة الأخرى مثل ذلك"

يعنى په عهد رسالت کي نمر تندر اونيولو.نورسول الله ﷺ دومره اوږد قيام اوکړو.چې لکه نبیﷺ رکوع نه کوى.بيا نبیﷺ دومره اوږده رکوع اوکړله . معلوميدله چې نبیﷺ سرنه اوچتوى.بيا ئې اوچت کړلو.نو معلوميده چې نبیﷺ سجده نه کوى.بيا ئې سجده اوکړه.نو د سجدى نه د سر اوچتولو امکان په نظر نه راتلو.بيا ئې سراوچت کړو.نود دويمى سجدى

امکان په نظر نه راتلو.بیا هغوی ﷺ سجده اوکړه.نو داسی ښکاریده چی سر نه اوچتوی.خو نبیﷺ سر اوچت کړو.هم دا عمل نبیﷺ په دویم رکعت کي اوکړلو.د دی حدیث نه داخبره معلومه شوه.چی نبیﷺ په یو رکعت کي یوه رکوع کړې ده.اګر چی رکوع اوسجده ډیره اوږده وه.

اوس دحدیث عائشی رضی الله عنها او دعبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهم حدیثونه متعارض شو.نود ابن عمر رضی الله عنهما روایت ته به ترجیح وی.ځکه چی سړې چونکه د امام سره نزدی وی.نوځکه ده ته د امام حال زیات ښکاره وی.

***************

## ٤٥_ باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ الْقِرَاءَةِ فِي الْكُسُوفِ

### په صلاة کسوف کي دقرائت کولو طریقه

٥٦٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ عِبَادٍ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، قَالَ: " صَلَّى بِنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي كُسُوفٍ لَا نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ إِلَى هَذَا، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. (١)

**ترجمه** : دسمره بن جندب رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته صلاة کسوف مونځ راکړو او مونږ دهغه اواز نه اوریدلو، امام ترمذي وائي دسمره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه هم حديث وارد دي بعضي اهل علمو همدا قول اختيار کړي دي او دا دمام شافعي قول هم دي.

**تشریح** :

### په صلاة کسوف کي دقراءت طريقه

دکسوف دمونځ په دواړو رکعتونو کي به اوږد قرات کوی.په بعضي احاديثو کي وارد دی.چی اول رکعت به په اندازه دسورة بقري او دويم رکعت کي په اندازه د آل عمران وی.
په دی کي اختلاف دې چی قرات جهری اوکړی یا سری؟

(١) امام صاحب فرمائی.چی دکسوف په مانځه کي به سری قرات کوی.ددی قائل امام مالك امام شافعی او جمهورفقهاء هم دی.

---

١ سنن ابي داود في الصلاة ٢٦٢ (١١٨٤) . . سنن النسائي في الكسوف ١٥ (١٤٨٥) . و١٩ (١٤٩٦) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥٢ (١٢٦٤) . (تحفة الأشراف : ٤٥٧٣)

(٢) صاحبين فرمائی.چی جهربه کوی.دا قول د امام احمد هم دې. دا امام طحاوی هم اختیار کړی دې.
د امام محمد رحمه الله نه یو روایت د امام ابوحنیفه رحمه الله په شان دې.په دی صورت کي طرفین د اخفاء او دسری قرات قائل دی .
او ابویوسف د جهری قرات قائل دې.
قرات اوږدول خو افضل دی.ځکه چی دا ثابت دی.چی په اولنی رکعت کي د رسول الله صلي الله علیه وسلم قیام په اندازه د سورة بقري او په دویم رکعت کي په اندازه د آل عمران وو.
علامه ابن همام رحمه الله فرمائیلی دی" والحق ان السنة التطويل والمندوب مجرد استيعاب الوقت" یعنی حق دا دې. چی قرات اوږدول مسنون دی.اودکسوف د وخت استیعاب کول مستحب دې. لکه چی په حدیث مغیره بن شعبه(رضي الله عنه) کي دی.
"فاذا رأيتموها فادعوا الله وصلوا حتى تنجلي" (صحيحين)
یعني کله چي نمر د خریدو په حالت کي ووینئ نو د الله نه دعا اوغواړئ اود روښانه کیدو پوري مونځ جاري وساتئ.

***************

٥٦٣ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ صَدَقَةَ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " صَلَّى صَلَاةَ الْكُسُوفِ وَجَهَرَ بِالْقِرَاءَةِ فِيهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرَوَاهُ أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ نَحْوَهُ. وَبِهَذَا الْحَدِيثِ يَقُولُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. (1)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دكسوف مونځ وركړو او په دي كي يي په جهري اواز سره قرائت اوكړو امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او ابو اسحاق فزاري هم دا روايت دسفيان بن حسين نه دسابقه روايت پشان نقل كړي دي او ددي حديث مطابق مالك بن انس، احمد ، او اسحاق بن راهويه هم قول كړي دي .

---

1 ـ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف : ١٦٣٢٨) . وأخرجه البخاري (في الكسوف ١٩. تعليقا) . و سنن ابي داود في الصلاة ٢٦٣ (١١٨٨) نحوه من طريق الأوزاعي عن الزهري .

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي په كسوف كي به قرائت جهري وي او كه سري وي په دي كي دوه مذاهب دي.
(۱) دامام احمد او صاحبينو په نزدپه صلاة كسوف كي جهري قراءت كول دي.
(۲) دامام ابو حنيفه او امام شافعي په نزد په صلاة كسوف كي سري قرائت كول دي.

***************

## ٤٦_ باب مَا جَاءَ فِي صَلاَةِ الْخَوْفِ

### دصلاة خوف بيان

٥٦٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " صَلَّى صَلاَةَ الْخَوْفِ بِإِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ رَكْعَةً وَالطَّائِفَةُ الأُخْرَى مُوَاجِهَةُ الْعَدُوِّ، ثُمَّ انْصَرَفُوا فَقَامُوا فِي مَقَامِ أُولَئِكَ وَجَاءَ أُولَئِكَ فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَةً أُخْرَى، ثُمَّ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ، فَقَامَ هَؤُلاَءِ فَقَضَوْا رَكْعَتَهُمْ، وَقَامَ هَؤُلاَءِ فَقَضَوْا رَكْعَتَهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ مِثْلَ هَذَا. قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ، وَحُذَيْفَةَ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَسَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، وَأَبِي عَيَّاشٍ الزُّرَقِيِّ وَاسْمُهُ زَيْدُ بْنُ صَامِتٍ، وَأَبِي بَكْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ ذَهَبَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ فِي صَلاَةِ الْخَوْفِ إِلَى حَدِيثِ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. وقَالَ أَحْمَدُ: قَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلاَةُ الْخَوْفِ عَلَى أَوْجُهٍ وَمَا أَعْلَمُ فِي هَذَا الْبَابِ إِلاَّ حَدِيثًا صَحِيحًا، وَأَخْتَارُ حَدِيثَ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، وَهَكَذَا قَالَ إِسْحَاق بْنُ إِبْرَاهِيمَ. قَالَ: ثَبَتَتِ الرِّوَايَاتُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلاَةِ الْخَوْفِ، وَرَأَى أَنَّ كُلَّ مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلاَةِ الْخَوْفِ فَهُوَ جَائِزٌ، وَهَذَا عَلَى قَدْرِ الْخَوْفِ. قَالَ إِسْحَاق: وَلَسْنَا نَخْتَارُ حَدِيثَ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ عَلَى غَيْرِهِ مِنَ الرِّوَايَاتِ.[1]

[1] _ صحيح البخاري في الخوف ۱ (۹۴۲)، والمغازي ۳۱ (۴۱۳۳)، صحيح مسلم في المسافرين ۵۷ (۸۳۹)، سنن ابي داود في الصلاة ۲۸۵ (۱۲۴۳)، سنن النسائي في الخوف (۱۵۳۹)، سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۵۱ (۱۲۵۸)، (تحفة الأشراف : ۶۹۳۱)، مسند احمد (۲ في ۱۴۷)

**ترجمه** دابن عمررضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په دوه ډلو کي يوي ډلي ته دصلاة خوف مونځ يو رکعات ورکړو او دويمه ډله ددشمن مخي ته ولاړه وه بيا دا خلق اوګرځيدل او دهغه چا په ځاي اودريدل څوک چي ددشمن مخي ته ولاړ وو او څوک چي ددشمن مخي ته ولاړ وو هغوئ راغلل او رسول الله صلي الله عليه وسلم دويم رکعات مونځ هغوئ ته ورکړو او بيا يي سلام اوګرځولو بيا دا خلق پورته شول او خپل رکعات يي پوره کړو. او کومو کسانو چي يو رکعات کړي وو او ددشمن مخي ته اودريدلو بيا هغوئ اودريدل او هغوئ هم خپل يو رکعات پوره کړو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او موسي بن عقبه دنافع نه او نافع دابن عمر رضي الله عنهما نه هم داسي روايت نقل کړي دي. په دي باب کي دجابر. حذيفه. زيد بن ثابت، ابن عباس، ابوهريره، ابن مسعود، سهل بن ابي حثمه ابوعياش، ذرقي ،دده نوم زيد بن صامت دي، او ابوبکر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او مالك بن انس دصلاة خوف باره کي دسهل بن ابي حثمه په حديث عمل کړي دي او همدا دامام شافعي قول هم دي. امام احمد وائي صلاة خوف دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه په يو څو طريقو مروي دي او په دي باب کي صرف ماته يو صحيح حديث معلوم دي او زما په دي باره کي دسهل بن ابي حثمه حديث خوښ دي، دا رنګي اسحاق بن ابراهيم بن راهويه هم ونيلي دي چي دصلاة خوف باره کي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه روايات ثابت دي دده خيال دادي دصلاة خوف باره کي چي څه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي هغه ټول جائز دي او دا ټول صورتونه دخوف په مقدار جائز دي، اسحاق بن راهويه وائي چي مونږ دسهل بن ابي حثمه حديث ته په نورو احاديثو فوقيت نه ورکوو.

**تشريح :** **د صلاة الخوف کولو طريقه اوددي متعلق دعلماؤ اقوال**

د ويرى دمونځ طريقه دا ده.چى وخت امام دى خلق په دوو ډلو کي وويشي.يوه ډله دى د دښمن مخامخ أودروى.او بله ډلى ته دى يو رکعت اوکرى.نوکله چى امام د اول رکعت د دويمى سجدى نه سر راپورته کرى.دا ډله دى پيدل د دښمن مقابلى له لاره شى .اوهغه ډله کومه چى دښمن ته مخامخ وى.هغه دى د امام شاته أودريږى.امام به دى خلقو ته يورکعت اوکرى.سلام به واړوى.خو خلق به سلام نه اړوى.بلکه د دښمن مقابلى ته به لاړشى.اوس اولنئ ډله به خانله خانله خپل رکعت پوره کرى.دا رکعت بغير د قرات نه شو.ځکه چى دا خلق د تحريمى نه د امام سره د شرکت په وجه لاحقين دى.او په لاحق قرات نشته.ددى ډلى مونځ پوره شو.نودا ډله دى سلام واړوى.ددښمن مقابلى ته دى ورشي او دويمه ډله دى خپل رکعت پوره کرى سلام دى واړوى.د دوى يورکعت قرات سره دي.ځکه چى دا خلق په اولنى

رکعت کي د امام سره د عدم شرکت په وجه مسبوقین دی.اوپه مسبوق قرات واجب وی.خکه به دا خلق قرات کوی.

ددي دپاره دليل : په صلاة الخوف کي اصل دعبدالله بن مسعود(رضي الله عنه) حديث دي. الفاظ د حديث دا دي:

" عن ابن مسعود(رضي الله عنه) صلی رسول الله صلي الله عليه وسلم صلوة الخوف فقاموا صفاً خلفه وصفا مستقبل العدو فصلی بهم ﷺ ركعة ثم جاء الاخرون فقاموا فی مقامهم واستقبل هولاء العدو فصلی بهم ﷺ ركعة ثم سلم فقام هؤلاء للی العدو فصلوا لأنفسهم ركعة وسلموا. ثم ذهبوا. فقاموا مقام اولئك مستقبل العدو. ورجع اولئك إلی مقامهم فصلوا لانفسهم ركعةً ثم سلموا"

دابن مسعود(رضي الله عنه) نه منقول دی.چی رسول الله ﷺ صلاة الخوف اوکړواو یوه ډله د نبی کریمﷺ شاته اودریدله.اوبله د دښمن په مقابله کي .نبی کریمﷺ دوی ته یو رکعت اوکړو.بیا دویمه ډله راغله.اود دوی په خائې اودریدله.اودا د دښمن مقابلی ته لاړله.نبی کریمﷺ دوی ته هم یو رکعت اوکړو.بیا، نبی کریمﷺ سلام واړولو.بیا دی خلقو په خپله یو رکعت اوکړو. اوسلام ئې واړولو.اولاړل.د هغوی په ځائې د دښمن په مقابله کي اودریدل.او هغوی ددوی ځائې ته راغلل.او ځانله ځانله ئې یو رکعت اوکړو.نو سلام ئې اوګرځولو.

صاحب د عنایه رحمه الله لیکلی دی.چی د داسی صلوة الخوف اجازت په هغه وخت کي دي.چی کله یو امام وی.د ده نه سوا خلق بل چا پسې مونځ کولو ته تیار نه وی.اوکه څو امامان وی.اوپه دوی کي د چا اختلاف هم نه وی.نو بیا صلات خوف ته ضرورت نشته.

دصاحب هدايه د قول مطابق امام ابویوسف رحمه الله د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د صلاة الخوف د مشروعیت نه انکار کړي دي.امام ابویوسف رحمه الله په ابتداء کي د طرفینو په شان قائل وو.بیا ئې دخپل دی قول نه رجوع اوکړله. فرمائی چی د صلوة الخوف مشروعیت د نبی کریم ﷺ د ژوند سره خاص دي.(العنایه)

***************

٦٦٥_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيُّ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، أَنَّهُ قَالَ فِي صَلَاةِ الْخَوْفِ، قَالَ: " يَقُومُ الإِمَامُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ وَتَقُومُ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ مَعَهُ وَطَائِفَةٌ مِنْ قِبَلِ الْعَدُوِّ وَوُجُوهُهُمْ إِلَى الْعَدُوِّ، فَيَرْكَعُ بِهِمْ رَكْعَةً، وَيَرْكَعُونَ لِأَنْفُسِهِمْ وَيَسْجُدُونَ لِأَنْفُسِهِمْ سَجْدَتَيْنِ فِي

مَكَانِهِمْ. ثُمَّ يَذْهَبُونَ إِلَى مَقَامِ أُولَئِكَ وَيَجِيءُ أُولَئِكَ فَيَرْكَعُ بِهِمْ رَكْعَةً وَيَسْجُدُ بِهِمْ سَجْدَتَيْنِ فَهِيَ لَهُ ثِنْتَانِ وَلَهُمْ وَاحِدَةٌ. ثُمَّ يَرْكَعُونَ رَكْعَةً وَيَسْجُدُونَ سَجْدَتَيْنِ ".([1])

**ترجمه**: دسهل بن ابي حثمه رضي الله عنه نه روايت دي چي هغه دصلاة خوف باره كي اوونيل امام به قبلي ته مخامخ ولاړ وي او دخلقو يو جماعت دي ورسره اودريږي او بل جماعت دي ددشمن مخي ته ولاړ وي او ددوئ مخه به دشمن طرف ته وي امام دي دوئ ته يو ركعات مونځ وركړي او دويم يو ركعات دي هغوئ پخپله پخپل خاي اوكړي او پخپله به سجده كوي. بيا دي دوئ دهغه چا خاي ته راشي او دوئ دي دهغوئ خاي ته لاړ شي او امام دي ورته يو ركعات مونځ وركړي او ددوئ سره دي دوه سجدي اوكړي په دي طريقه به دامام دوه ركعاتونه پوره شي اودخلقو به يو يو ركعات اوشي بيا به يو ركعات بل اوكړي او سجدي به اوكړي.

**سهل بن ابو حثمه انصاري رضي الله عنه حالات**

نوم سهيل كنيه ابو محمد يا ابو يحيي دپلار نوم ابو حثمه عبدالله بن ساعده چي د هجرت په دريم كال پيداشوى وو اول په مدينه كي اوسيدو بيا كوفي ته منتقل شو درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات په وخت كي دده عمر اته كاله وو.

وفات: دمصعب بن زبير په زمانه كي په مدينه كي وفات شوى دى او دمروياتو شمير يي ۲۵دى چي بخاري او مسلم ورباندي اتفاق كړى دى.

****************

٥٦٦_قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ: سَأَلْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ عَنْ هَذَا الحَدِيثِ، فَحَدَّثَنِي عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ القَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيِّ، وقَالَ لِي يَحْيَى: اكْتُبْهُ إِلَى جَنْبِهِ وَلَسْتُ أَحْفَظُ الحَدِيثَ، وَلَكِنَّهُ مِثْلُ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. لَمْ يَرْفَعْهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيُّ، عَنِ القَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، وَهَكَذَا رَوَى

---

[1] ـ صحيح البخاري في الخوف ۱ (۹۴۲)، والمغازي ۳۱ (۴۱۳۲). صحيح مسلم في المسافرين ۵۷ (۸۳۹). سنن ابي داود في الصلاة ۲۸۵ (۱۲۴۲). سنن النسائي في الخوف (۱۵۳۹). سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۵۱ (۱۲۵۸). (تحفة الأشراف: ۶۹۳۱). مسند احمد (۲ في ۱۴۷)

أَصْحَابُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيِّ مَوْقُوفًا، وَرَفَعَهُ شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ.([1])

**ترجمه** امام ترمذي وائي دمحمد بن بشار قول دي فرمائي چي ديحي بن سعيد نه مي ددې حديث باره کي تپوس اوکړو نو هغه راته دشعبه نه او شعبه دعبدالرحمن بن قاسم نه او هغه دخپل پلار نه او هغه دصالح بن خوات نه او هغه دسهل بن ابي حثمه نه او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ديحي بن سعيد درروايت پشان روايت بيان کړو، ماته يحي بن سعيد اووئيل دا حديث دده په تشي اوليکه ماته دا حديث ياد نه دي ليکن دا د يحي بن سعيد انصاري دحديث پشان دي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي، او دا حديث يحي بن سعيد دقاسم بن محمد په واسطه مرفوع نه دي بيان کړي دقاسم بن محمد په واسطه ديحي بن سعيد شاګردانو دا موقوف نقل کړي دي البته شعبه دا حديث دعبدالرحمن بن قاسم بن محمد په واسطه مرفوع نقل کړي دي.

*****************

٥٦٧ـ وَرَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ، عَنْ مَنْ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْخَوْفِ فَذَكَرَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَرُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " صَلَّى بِإِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ رَكْعَةً رَكْعَةً، فَكَانَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَانِ وَلَهُمْ رَكْعَةٌ رَكْعَةٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: أَبُو عَيَّاشٍ الزُّرَقِيُّ اسْمُهُ زَيْدُ بْنُ صَامِتٍ.([2])

**ترجمه** صالح بن خوات ديو داسي کس نه روايت کوي چاچه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره صلاة خوف اداء کړي دي او بيا يي دسابقه حديث پشان حديث ذکر کړو

---

[1] ـ صحيح البخاري في الخوف١ (٩٤٢) . والمغازي٣١ (٤١٣٣) . صحيح مسلم في المسافرين ٥٧ (٨٣٩) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٨٥ (١٢٤٣) . سنن النسائي في الخوف (١٥٣٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥١ (١٢٥٨) . (تحفة الأشراف : ٦٩٣١) . مسند احمد (٢ في ١٤٧)

[2] ـ صحيح البخاري في الخوف١ (٩٤٢) . والمغازي٣١ (٤١٣٣) . صحيح مسلم في المسافرين ٥٧ (٨٣٩) . سنن ابي داود في الصلاة ٢٨٥ (١٢٤٣) . سنن النسائي في الخوف (١٥٣٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥١ (١٢٥٨) . (تحفة الأشراف : ٦٩٣١) . مسند احمد (٢ في ١٤٧)

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي. او دامام مالك شافعي. احمد. او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي دا رنګي ددي اهل علمو قول دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم دوارو جماعتونو ته يو يو ركعات مونځ وركړي دي نو درسول الله صلي الله عليه وسلم دوه ركعاتونه شول او دنورو خلقو دامام سره يو يو ركعات شو

امام ترمذي واني دابوعياش الزرقي نوم زيد بن صامت دي.

*****************

## ٤٧_ باب مَا جَاءَ فِي سُجُودِ الْقُرْآنِ

## په قران كي دسجدو دايتونو بيان

٥٦٨_ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ. عَنْ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ. عَنْ عُمَرَ الدِّمَشْقِيِّ. عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ. عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ. قَالَ: "سَجَدْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِحْدَى عَشْرَةَ سَجْدَةً مِنْهَا الَّتِي فِي النَّجْمِ ".([1])

**ترجمه** دابو الدرداء رضي الله عنه بيان دي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يولس سجدي كړي وي او يوه په دي كي هغه وه كومه چي په سورة النجم كي ده.

**تشريح: په قران كريم كي د سجدو د ايتونو تعداد**

په قران كريم كي د سجدي ايتونه څوارلس دي.

[١] إِنَّ الَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيُسَبِّحُونَهُ وَلَهُ يَسْجُدُونَ (الاعراف:٢٠٦)

[٢] وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَظِلَالُهُم بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ (الرعد:١٥)

[٣] يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ (النحل:٥٠)

[٤] وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا (الاسراء:١٠٩)

[٥] إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا (مريم:٥٨)

[٦] إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا (الفرقان: ٥٨)

[٧] وَمَن يُهِنِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِن مُّكْرِمٍ إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ (الحج:١٨)

---

[1] - سنن ابن ماجه في الإقامة ٧١ (١٠٥٥) . (تحفة الأشراف : ١٠٩٩٣) . مسند احمد (٥ في ١٩٣)

[٨] وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمَنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمَنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا (الفرقان:٦٠)

[٩] لا اله الا هو رب العرش العظيم (النمل)

[١٠] إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ (السجدة:١٥)

[١١] فَغَفَرْنَا لَهُ ذَلِكَ وَإِنَّ لَهُ عِنْدَنَا لَزُلْفَى وَحُسْنَ مَآبٍ (ص:٢٥)

[١٢] فَإِنِ اسْتَكْبَرُوا فَالَّذِينَ عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْأَمُونَ (حم السجدة:٣٨)

[١٣] فاسجدوا لله واعبدوه. (النجم)

[١٤] وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ (الانشقاق:٢١)

[١٥] واسجد واقترب (العلق)

د امام شافعي رحمه الله په نزد هم ايات د سجدې ځوارلس دي. خو دوي په نزد په سورة حج كي دواړه سجدې سجدي د تلاوت دي. او په سورة صٓ كي سجده د تلاوت نشته. بلكه سجده د شكرده

او زمونږ د احنافو علماؤ په نزد د سورة حج رومبۍ سجده، سجده تلاوت ده، د دويمي سجدې نه د مانځه سجده مرادده، د تلاوت سجده مراد نه ده . اوپه سورة صٓ كي زمونږ په نزد سجده تلاوت ده

(١) د احنافو په ذكرشوي څوارلسو مقاماتو سجده كول په قاري اوسامع دواړوواجب دي كه سامع د اوريدو قصد كړى وي اوكه نه.

(٢) امام مالك امام شافعي او دحنابله په نزد سجده تلاوت سنت ده

د مالكيانو او شوافعو دليل دادى ، زيد بن ثابت رضي الله عنه د رسول پاك ﷺ په وړاندې د سورة النجم تلاوت اوكړو. خونه زيد بن ثابت رضي الله عنه سجده اوكړه . اونه رسول پاك ﷺ. ددې واقعي نه ثابته شوه، چې سجده تلاوت واجب نه ده. بلكه سنت ده. ځكه كه واجب وي نو نه به رسول پاك ﷺ پريخودې وه. اونه زيد بن ثابت رضي الله عنه

من اراد البسط في المسئله فليراجع الي شروح الهدايه.

*****************

٥٦٩_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ عُمَرَ وَهُوَ ابْنُ حَيَّانَ الدِّمَشْقِيُّ قَالَ: سَمِعْتُ مُخْبِرًا يُخْبِرُ عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِلَفْظِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ سُفْيَانَ بْنِ وَكِيعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ وَهْبٍ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَعَمْرِو بْنِ الْعَاصِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي الدَّرْدَاءِ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ عُمَرَ الدِّمَشْقِيِّ.(1)

**ترجمه** په پورتني سند سره هم ابو الدرداء رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دسابقه روايت پشان الفاظ نقل كړي دي. او په دي باب كي دعلي، ابن عباس، ابوهريره، ابن مسعود، زيد بن ثابت، عمرو بن العاص رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. او دابو الدرداء حديث غريب دي مونږ ته صرف دسعيد بن ابي هلال په روايت معلوم دي اوسعيد دعمر دمشقي نه نقل كړي دي.

****************

## ٤٨_ باب مَا جَاءَ فِي خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسَاجِدِ

### مسجدونو ته دښځو تللو بيان

٥٧٠_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ ابْنِ عُمَرَ، فَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ائْذَنُوا لِلنِّسَاءِ بِاللَّيْلِ إِلَى الْمَسَاجِدِ ". فَقَالَ ابْنُهُ: وَاللَّهِ لَا نَأْذَنُ لَهُنَّ يَتَّخِذْنَهُ دَغَلًا، فَقَالَ: فَعَلَ اللَّهُ بِكَ وَفَعَلَ، أَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَتَقُولُ: لَا نَأْذَنُ لَهُنَّ ؟! قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(2)

1 سنن ابن ماجه في الإقامة ٤١ (١٠٣٥). (تحفة الأشراف ١٠٩٩٣) مسند احمد (٥ في ١٩٣)

2 صحيح البخارى في الأذان ١٦٢ (٨٦٥). (متابعةً) صحيح مسلم في الصلاة ٣٠ (٤٤٢). سنن ابي داود في الصلاة ٥٣ (٥٦٨) سنن النسائي في المساجد ١٥ (٧٠٤). سنن ابن ماجه في المقدمة ٢ (١٦). (تحفة الأشراف : ٧٣٨٥). مسند احمد (٢ في ٧، ١٦، ٣٦، ٤٩، ٤٣، ٩٠، ١٢٧، ١٤٠، ١٤٣، ١٥١)

**ترجمه** دمجاهد بيان دي فرمائي چي مونږ دابن عمررضي الله عنهما سره موجود وو چي هغوئ اوونيل رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ښځو ته دشپې مسجد ته دتللو اجازت ورکوئ په دي وخت کي دهغوئ خوي بلال اوونيل په الله قسم چي مونږ ورته اجازت نه ورکوو هغوئ به داجازت په سبب دفساد ذريعه اوګرځي. ابن عمر رضي الله عنهما اوونيل الله تعالي دي تا داسي داسي کړي زه درته وايم چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي او ته وائي چي مونږ ورته اجازت نه ورکوو «دا درټلو الفاظ دي»

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي. او په دي باب کي دابو هريره عبدالله ابن مسعود دښځي زينب او زيد بن خالد رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

*****************

## ٤٩ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْبُزَاقِ فِي الْمَسْجِدِ

### په مسجد کي دلاړو توکلو دکراهت بيان

٥٧١ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ طَارِقِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُحَارِبِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كُنْتَ فِي الصَّلَاةِ فَلَا تَبْزُقْ عَنْ يَمِينِكَ، وَلَكِنْ خَلْفَكَ أَوْ تِلْقَاءَ شِمَالِكَ، أَوْ تَحْتَ قَدَمِكَ الْيُسْرَى". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ طَارِقٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالَ: وَسَمِعْت الْجَارُودَ. يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا. يَقُولُ: لَمْ يَكْذِبْ رِبْعِيُّ بْنُ حِرَاشٍ فِي الْإِسْلَامِ كِذْبَةً. قَالَ: وقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ: أَثْبَتُ أَهْلِ الْكُوفَةِ مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ. ([1])

**ترجمه** دطارق بن عبدالله محاربي بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي تاسو په مونځ ولاړ يئ نو خپل ښي طرف ته توکل مه کوئ. دخان نه شاته يا دچپي خپي لاندي او يا چپ طرف ته اوتوکئ

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٢٢ (٤٧٨). سنن النسائي في المساجد ٣٣ (٧٢٤). سنن ابن ماجه في الإقامة ٦١ (١٠٢١). (تحفة الأشراف: ٤٩٨٧). مسند احمد (٦ في ٣٩٦)

امام ترمذي واني دطارق رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابوسعيد، ابن عمر، انس، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي

امام ترمذي واني د جارود نه مي اوريدلي دي چي ونيل يي ماد وكيع نه اوريدلي دي چي ربعي بن حراش د كله نه په اسلام كي داخل شوي دي، بيا يي چرته دروغ نه دي ونيلي وكيع د عبد الرحمن بن مهدي قول نقل كوي چي منصور بن معتمر په كوفي راويانو كي زيات ثقه او معتمد راوي دي

**تشريح** : انسان طبعا نفاست پسند وي او تمنا يي داوي چي دي پخپله هم پاك ستره وي او كور وغيره يي هم پاك او ستره وي نو تاسو ددينه اندازه ولګوئ چي دالله تعالي دپاك كور او دربار صفايي به څومره ضروري وي ، چرته انسان دخپل حقيقي مالك عبادت دپاره راجمع كيږي ، امام شعراني وايي چي داحاديثو نه معلوميږي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زمونږ نه عهد اخستلي دي چي مونږ به مساجد دهر قسم ګندګئ او غلاظت نه پاك ساتو . په يو بل روايت كي هم راغلي دي: ان النبي صلي الله عليه وسلم كان يتتبع غبار المسجد بجريدة.
يعني رسول الله دمسجد ګردونه دكهجورونو جارو كول علامه محمد يوسف بنوري فرمايي وفي العمدة وقد ورد عن النبي صلي الله عليه وسلم انه كنس المسجد الخ

كچير په مسجد كي توكلو ته ضرورت راشي مثلا دچا په خوله كي ماشي ننوځي او توكل ضروري شي نو چپ طرف ته يا دچپي خپي لاندي توكل جائز دي او په همدي وجه په حديث كي راغلي دي چي مخامخ طرف الله تعالي سره دمخامخ كيدو طرف نه او ښخي طرف ته دنيكئ ليكونكي فرشتي ولاړي وي د دغوئ احترام كول پكار دي

****************

٥٧٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.([1])

---

[1] صحيح البخاری في الصلاة ٣٧ (٤١٥). صحيح مسلم في المساجد ١٣ (٥٥٢). سنن ابي داود في الصلاة ٢٢ (٤٧٤). سنن النسائي في المساجد ٣٠ (٧٢٣). (تحفة الأشراف: ١٢٢٨). مسند احمد (٣ في ١٠٩، ٢٣٢، ٢٧٤، ٢٧٧) سنن الدارمي في الصلاة ١١٦ (١٤٣٥)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مسجد کي توکانړي توکول غلطي ده او کفاره يی داده چي دفن کړی شي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دی.

**تشريح** : امام نووي فرمائي ددفن کولو نه مراد دادي چي مسجد کچه وي يعني خاوري ياشگي پکي وي نو بيا خښول ممکن دي او دا خبره زمونږ په اصحابو کي (شوافع) ابو العباس روياني پخپل کتاب البحر کي ليکلي ده دبعضو قول دادی چي د دفن کولو نه مراد دمسجد نه ويستل دي ليکن هله چي مسجد دکانړوجوړ وي يا چونه شوی وي نو بيا په پيزار وغيره مږل پکار نه دي لکه چي اکثر جاهلان يي کوي نو دا دفن کول نه دي بلکه دا خو په گناه کي زياتوالی دی او په مسجد کي گندگي خورول دي او څوك چي مسجد داسي گنده کړي په هغه باندي واجب دي چي بيا يي په کپړه يا په لاس يا په کوم بل څيز پاك کړي او يا يي په اوبو اووينځي (رياض الصالحين)

دفن کولو مطلب دادی که جومات کچه وي خاوری ياشگی وي پکی نو په خاوره يا شگو کي دبې کړی شي ابو المحاسن رؤياني په خپل کتاب کي داسی ليکلي دي او که جومات پوخ وي دکانړو يا سنگ مرمرو په فرش يا په چونه وغيره نو بيا ورباندی په جارو مښل لکه چي اکثر جاهلان يی کوي دفن کولو نه دي. بلکه گندگي زياتول دي چا که پوخ جومات کي توکلي وي نو پکار ده چي په کپړه يا لاس يی پاك کړي او يايی اووينځي

په يو بل روايت کي هم راغلي دي من اخرج اذي من المسجد بني الله له بيتا في الجنة. (معراج الصالحين. شرح رياض الصالحين)

***************

## ٥٠ـ بَاب مَا جَاءَ فِي السَّجْدَةِ فِي (اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ) وَ (إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ)

**په سورة اقراء او سورة انشقاق کي دسجدو کولو بيان**

**٥٧٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ عَطَاءِ بْنِ مِينَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " سَجَدْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ وَإِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ ".**[1]

---

[1] صحيح مسلم في المساجد ٢٠ (٥٧٦). سنن ابي داود في الصلاة ٣٣١ (١٤٠٧) سنن النسائي في الافتتاح ٥٢ (٩٦٨) (تحفة الأشراف: ١٤٢٠٦). مسند احمد (٢ في ٢٤٩، ٤٦١). وانظر أيضا: صحيح البخاري في الأذان ١٠٠ (٧٦٦). و١٠١ (٧٦٨).

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په "اقراء باسم ربك الذي خلق" او په "اذا السماء انشقت" كي سجده اوكړه

****************

**٥٧٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ هُوَ ابْنُ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَرَوْنَ السُّجُودَ فِي إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ وَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ وَفِي هَذَا الْحَدِيثِ أَرْبَعَةٌ مِنَ التَّابِعِينَ بَعْضُهُمْ عَنْ بَعْضٍ. (١)**

**ترجمه** په دي سند سره هم دابوهريره رضي الله عنه نه دسابقه حديث هم معني روايت مروي دي چي هغوئ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل كړي دي

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي ددي په سند كي څلور تابعين دي چي يو دبل نه روايت كوي . داكثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي دوئ په "اذا السماء انشقت" او "اقراء باسم ربك الذي خلق" كي دسجدو كولو قائل دي

****************

## ٥١ـ باب مَا جَاءَ فِي السَّجْدَةِ فِي النَّجْمِ

### په سورة النجم كي دسجدي كولو بيان

**٥٧٥ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْبَزَّازُ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " سَجَدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا يَعْنِي النَّجْمَ وَالْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ**

---

وسجود القرآن ٤ (١٠٤٣)، و١٠ (١٠٧٨) . سنن النسائي في الافتتاح ٥١ (٩٦٣ ٩٦٥)، و٥٢ (٩٦٤) . وسنن ابن ماجه في الإقامة (٧١. ١٠٥٨. ١٠٥٩) . والموطاء في القرآن ٥ (١٢) . و مسند احمد (٢٤٧، ٢٨١، ٤١٣، ٤٤٩٤٥١، ٤٥٣، ٤٦٦، ٤٨٧، ٥٢٩) . وسنن الدارمي في الصلاة ١٦٣

[1] ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ١٣٨٦٥)

الْعِلْمِ يَرَوْنَ السُّجُودَ فِي سُورَةِ النَّجْمِ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: لَيْسَ فِي الْمُفَصَّلِ سَجْدَةٌ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالْقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ، وَبِهِ يَقُولُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په دي كي يعني په سورة نجم كي سجده اوكړه او مسلمانانو ، مشركانو، جناتو، او انسانانو هم سجده اوكړه.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د ابن مسعود، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دبعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي ددوئ په نزد په سورة النجم كي سجده شته په صحابه كرامو او تابعينو كي دبعضي اهل علمو قول دي چي په مفصل سورتونو كي سجده نشته همدا دامام مالك قول دي ليكن اولني قول زيات صحيح دي، سفيان ثوري او ابن مبارك او شافعي او احمد او اسحاق هم ددي قائل دي.

***************

## ٥٢ـ بَاب مَا جَاءَ مَنْ لَمْ يَسْجُدْ فِيهِ

### بيان دهغه خلقو څوك چي په سورة النجم كي دسجدي كولو قائل نه دي

٥٧٦ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قُسَيْطٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: "قَرَأْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّجْمَ فَلَمْ يَسْجُدْ فِيهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَتَأَوَّلَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ هَذَا الْحَدِيثَ، فَقَالَ: "إِنَّمَا تَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السُّجُودَ" لِأَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ حِينَ قَرَأَ فَلَمْ يَسْجُدْ لَمْ يَسْجُدِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالُوا: السَّجْدَةُ وَاجِبَةٌ عَلَى مَنْ سَمِعَهَا فَلَمْ يُرَخِّصُوا فِي تَرْكِهَا، وَقَالُوا: إِنْ سَمِعَ الرَّجُلُ وَهُوَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ، فَإِذَا تَوَضَّأَ سَجَدَ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَبِهِ يَقُولُ إِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِنَّمَا السَّجْدَةُ عَلَى مَنْ أَرَادَ أَنْ يَسْجُدَ فِيهَا، وَالْتَمَسَ فَضْلَهَا وَرَخَّصُوا فِي تَرْكِهَا إِنْ أَرَادَ ذَلِكَ، وَاحْتَجُّوا بِالْحَدِيثِ الْمَرْفُوعِ، حَدِيثِ

1 صحيح البخاري في سجود القرآن ٥(١٠٧١)، وتفسير النجم ٣(٤٨٦٣)، (تحفة الأشراف: ٥٩٩٦)

زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ. حَيْثُ قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّجْمَ فَلَمْ يَسْجُدْ فِيهَا. فَقَالُوا: لَوْ كَانَتِ السَّجْدَةُ وَاجِبَةً لَمْ يَتْرُكِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا حَتَّى كَانَ يَسْجُدَ. وَيَسْجُدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَاحْتَجُّوا بِحَدِيثِ عُمَرَ. أَنَّهُ قَرَأَ سَجْدَةً عَلَى الْمِنْبَرِ فَنَزَلَ فَسَجَدَ. ثُمَّ قَرَأَهَا فِي الْجُمُعَةِ الثَّانِيَةِ فَتَهَيَّأَ النَّاسُ لِلسُّجُودِ. فَقَالَ: إِنَّهَا لَمْ تُكْتَبْ عَلَيْنَا إِلَّا أَنْ نَشَاءَ. فَلَمْ يَسْجُدْ وَلَمْ يَسْجُدُوا. فَذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ. (١)

**ترجمه** دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دي فرمايي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي سورة النجم اولوستلو مګر هغوئ سجده اونکړه

امام ترمذي وائي دزيد بن ثابت رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي. بعضي اهل علمو په دي حديث کي تاويل کړي دي هغوئ وائي نبي کريم صلي الله عليه وسلم سجده خکه نه ده کړي چي زيد بن ثابت څه وخت دا سورة اولوستلو نو هغه پخپله هم سجده اونکړه نو په دي وجه نبي کريم صلي الله عليه وسلم هم سجده اونکړه دوئ وائي دا سجده په هر هغه چا واجب ده څوک چي دا واوري او دوئ ددي دپريخودو اجازت نه دي ورکړي. دوئ وائي که څوک دا واوري او اودس يي نه وي نو چي کله اودس اوکړي بيا دي دا سجده اوکړي، او همدا دسفيان ثوري او اهل کوفه قول دي. اسحاق بن راهويه هم ددي قائل دي. بعضي اهل علم وائي دا سجده په هغه چا لازم ده څوک چي دسجدي کولو اراده لري او ددي دخير او برکت طلب ګار وي. هغوئ ددي دپريخودلو اجازت ورکړي دي که چري دي يي پريخودل غواړي او دوئ د مرفوع حديث يعني دزيد بن ثابت دحديث نه په کوم کي چي دا راغلي دي "مادرسول الله په وړاندي سورة النجم اولوستلو ليکن هغه په دي کي سجده اونکړه" نه استدلال کړي دي دوئ وائي که چري دا سجده واجب وي نو رسول الله به زيد لره دسجدي کولو نه بغير نه پريخودلو او رسول الله به پخپله دا سجده کړي وه او دوئ دعمر رضي الله عنه دحديث نه هم استدلال کړي دي چي هغه په منبر دسجدي ايت اولوستلو او بيا راکوز شو او سجده يي اوکړه. دا سورة يي بيا په بله جمعه هم اولوستلو نو خلق سجدي کولو ته تيار شو هغوئ اوفرمائيل دا په مونږ باندي فرض نه ده علاوه ددينه چي مونږ يي اوغواړو چنانچه نه هغوئ سجده اوکړه او نه خلقو

---

١ صحيح البخاري في سجود القرآن ٢ (١٠٤٣). صحيح مسلم في المساجد ٢٠ (٥٧٧). سنن ابي داود في الصلاة ٣٢٩ (١٤٠٤). سنن النسائي في الافتتاح ٥٠ (٩٦١). (تحفة الأشراف: ٣٧٣٣). مسند احمد (٥ في ١٨٣). سنن الدارمي في الصلاة ١٦٤ (١٥١٣)

بعضي اهل علمو دي طرف ته ميلان اختيار كړي دي او همدا دامام شافعي او امام احمد قول هم دي.

***************

## ٥٣_ باب مَا جَاءَ فِي السَّجْدَةِ فِي "ص"

### په سورة ص كي دسجدي كولو بيان

٥٧٧_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ فِي ص". قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَلَيْسَتْ مِنْ عَزَائِمِ السُّجُودِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي ذَلِكَ. فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ أَنْ يَسْجُدَ فِيهَا، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّهَا تَوْبَةُ نَبِيٍّ وَلَمْ يَرَوْا السُّجُودَ فِيهَا.[1]

**ترجمه**: دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم په سورة ص كي په سجدي كولو ليدلي وو دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي دا سجده د واجبي سجدو نه نه ده.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، داهل علمو په دي كي اختلاف دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي بعضي ددي قائل دي چي په سورة ص كي سجده كول شته. دسفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي او دبعضو قول دادي چي دا ديو نبي توبه ده او سجده په دي كي ضروري نه ده.

**تشريح**: په دي مسئله كي اختلاف دي چي په سورة ص كي سجده شته او كنه په دي كي داهل علمو دود مذاهب دي

(١) دامام ابو حنيفه او امام مالك او امام احمد په نزد په سورة ص كي سجده شته.

(٢) او دشوافعو په نزد په سورة ص كي سجده نشته

***************.

## ٥٤_ باب مَا جَاءَ فِي السَّجْدَةِ فِي الحَجِّ

---

[1] صحيح البخاري في سجود القرآن ٣ (١٠٦٩). سنن ابي داود في الصلاة ٣٣٢ (١٤٠٩). سنن النسائي في الافتتاح ٤٨ (٩٥٨). (تحفة الأشراف: ٥٩٨٨). سنن الدارمي في الصلاة١٦١ (١٥٠٨)

## په سورة حج كې دسجدي كولو بيان

٥٧٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ مِشْرَحِ بْنِ هَاعَانَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فُضِّلَتْ سُورَةُ الحَجِّ بِأَنَّ فِيهَا سَجْدَتَيْنِ، قَالَ: "نَعَمْ، وَمَنْ لَمْ يَسْجُدْهُمَا فَلَا يَقْرَأْهُمَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ القَوِيِّ وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي هَذَا، فَرُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ، وَابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُمَا قَالَا: فُضِّلَتْ سُورَةُ الحَجِّ بِأَنَّ فِيهَا سَجْدَتَيْنِ، وَبِهِ يَقُولُ ابْنُ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَرَأَى بَعْضُهُمْ فِيهَا سَجْدَةً، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكٍ وَأَهْلِ الكُوفَةِ. (١)

**ترجمه** دعقبه بن عامر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما عرض اوكړو اي دالله رسوله سورة حج ته دا شرف او عزت وركړي شوي دي چي په دي كي دوه سجدي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هو څوك چي دا دواړه سجدي نه كوي هغه دي دا سورة نه لولي
امام ترمذي وائي ددي حديث سند څه خاص قوي نه دي، په دي سلسله كي داهل علمو اختلاف دي عمر بن الخطاب او ابن عمر رضي الله عنهما وائي چي په سورة حج كي دوه سجدي دي . ابن مبارك ، شافعي، احمد اسحاق هم په دي باندي قول كړي دي او دبعضي اهل علمو قول دادي چي په دي كي يوه سجده ده سفيان ثوري، امام مالك، او اهل كوفه دا قول هم اختيار كړي دي.

**تشريح** : په دي كي هم اختلاف دي چي په سورة حج كي يوه سجده ده او كه دوه دي په دې كې هم دوه مذاهب دي.

(١) داحنافو او امام مالك په نزد په سورة حج كي يوه سجده ده او دليل يې په طحاوي كي دابن عباس رضي الله عنهما اثر دي او په مؤطا دامام محمد كي هم دابن عباس نه منقول دي چي دسورة حج والا سجده اولنۍ سجده ده بلكه خبره داده چرته چي دركوع او سجدي ذكر راشي ددينه مراد سجده دتلاوت نه وي بلكه صلاتي سجده مراد وي

(٢) امام شافعي او امام احمد په نزد په سورة حج كي دوه سجدي دي

***************

## ٥٥_ باب مَا يَقُولُ فِي سُجُودِ القُرْآنِ

---

(١) ـ سنن ابي داود في الصلاة ٣٢٨ (١٤٠٢) . (تحفة الأشراف : ٩٩٦٥)

## دقران په سجدو کې کومه دعا وئیل پکار دي

٥٧٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ بْنِ خُنَيْسٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ، قَالَ: قَالَ لِي ابْنُ جُرَيْجٍ: يَا حَسَنُ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللهِ بْنُ أَبِي يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي رَأَيْتُنِي اللَّيْلَةَ وَأَنَا نَائِمٌ كَأَنِّي أُصَلِّي خَلْفَ شَجَرَةٍ فَسَجَدْتُ فَسَجَدَتِ الشَّجَرَةُ لِسُجُودِي فَسَمِعْتُهَا. وَهِيَ تَقُولُ: اللَّهُمَّ اكْتُبْ لِي بِهَا عِنْدَكَ أَجْرًا. وَضَعْ عَنِّي بِهَا وِزْرًا وَاجْعَلْهَا لِي عِنْدَكَ ذُخْرًا. وَتَقَبَّلْهَا مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ قَالَ الْحَسَنُ: قَالَ لِيَ ابْنُ جُرَيْجٍ: قَالَ لِي جَدُّكَ: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ، " فَقَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجْدَةً ثُمَّ سَجَدَ ". قَالَ: فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَسَمِعْتُهُ وَهُوَ يَقُولُ مِثْلَ مَا أَخْبَرَهُ الرَّجُلُ عَنْ قَوْلِ الشَّجَرَةِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.[1]

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما بیان دي چي یو کس نبي کریم صلي الله علیه وسلم په خدمت کي حاضر شو او عرض یي اوکړو اي دالله رسوله ما نن شپه خپل خان په خوب کي اولیدلو او زه اوده وم چي زه دیوي اوني لاندي مونځ کوم نو ما سجده اوکړه نو زما دسجدي سره وني هم سجده اوکړه او بیا ورنه ما واوریدل چي دا دعا یي وئیله

: اللَّهُمَّ اكْتُبْ لِي بِهَا عِنْدَكَ أَجْرًا. وَضَعْ عَنِّي بِهَا وِزْرًا وَاجْعَلْهَا لِي عِنْدَكَ ذُخْرًا. وَتَقَبَّلْهَا مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ

یعني اي الله ددي په بدل کي ته زما دپاره اجر اولیکي او ددي په بدل کي ته زما نه زما بوج لري کړي او دا زما دپاره دخان سره ذخیره کړي او ته دا زما نه داسي قبوله کړي څنګه چي تا دخپل بنده داود علیه السلام نه دهغه سجده قبوله کړي وه. حسن بن محمد بن عبیدالله بن ابي یزید وائي ماته ابن جریج وئیلي دي چي ماته ستاسو نیکه وئیلي دي چي ابن عباس رضي الله عنهما فرمائیلي دي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم دسجدي ایت تلاوت کړو او سجده یي اوکړه ابن عباس اوونیل چي ما هم دهغوی نه داسي اوریدلي دي څنګه چي دي کس د وني الفاظ بیان کړي دي.

[1] سنن ابن ماجه في الإقامة ٧٠ (١٠٥٣). (تحفة الأشراف: ٥٨٦٤)

امام ترمذي واني دا حديث دابن عباس په سند حسن غريب دي او مونږ يي صرف په همدي سند باندي پيژنو اوپه دي باب کي د ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه هم حديث وارد دی

*****************

٥٨٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي سُجُودِ الْقُرْآنِ بِاللَّيْلِ: " سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دشپي په وخت کي دقران په سجدو کي دا دعا لوستله

" سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ "

يعني زما مخ هغه ذات ته سجده کړي ده چاچه دا جوړ کړي دي او پخپل قوت او طاقت سره يي دده غوږونه او سترګي شلولي دي.

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٥٦_ باب مَا ذُكِرَ فِيمَنْ فَاتَهُ حِزْبُهُ مِنَ اللَّيْلِ فَقَضَاهُ بِالنَّهَارِ

### باب دي په بيان دهغه چا کي دچا نه چي دشپي خپله وظيفه پاتي شي نو دورځي به دهغي قضاء راوړي

٥٨١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ، وَعُبَيْدَ اللهِ بْنَ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ أَخْبَرَاهُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدٍ الْقَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ نَامَ عَنْ حِزْبِهِ أَوْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ فَقَرَأَهُ مَا بَيْنَ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَصَلَاةِ الظُّهْرِ، كُتِبَ لَهُ كَأَنَّمَا قَرَأَهُ مِنَ اللَّيْلِ ". قَالَ أَبُو

[1] - سنن ابي داود في الصلاة ٣٣٢ (١٤١٤)، سنن النسائي في التطبيق ٧٠ (١١٣٠)، (تحفة الأشراف ١٦٠٨٣)، مسند احمد (٦ في ٣٠، ٢١٧)

عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَأَبُو صَفْوَانَ اسْمُهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَعِيدٍ الْمَكِّيُّ. وَرَوَى عَنْهُ الْحُمَيْدِيُّ وَكِبَارُ النَّاسِ. (١)

**ترجمه:** عبدالرحمن بن قاري وائي چي ما دعمر بن الخطاب رضي الله عنه نه اوريدلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دچا نه خپله پوره وظيفه يا دوظيفي څه حصه بغير لوستلو پاتي شي او دي ورنه اوده شي نو بيا دي دا دسحر نه واخله دماسپخين پوري دوخت په مينځ کي پوره کړي نو دا به دده دپاره داسي اوليکلي شي لکه چي ده دشپي پوره کړي وي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**دسائب بن يزيد رضي الله عنه حالات**

نوم سائب دپلار نوم يزيد بن سعيد بن ثمامه کندي. امام زهري وائي چي کندي په يمن کي داد قبيلي يو شخ دی مګر په بنوکنانه کي شميرلی شي سائب دعمر کندي خوريی دی . دهجرت په شلم کال پيدا شوی وو او داوه کالو په عمر کي دخپل پلار سره په حجة الوداع کي شريک شوی دی .ده نه عموما زهري او محمد بن يوسف نقل دروايت کوي کنړ شمير روايات ورنه منقول دي او دهجرت په ٨٠ کال وفات شوی دی.

***************

## ٥٧_ باب مَا جَاءَ مِنَ التَّشْدِيدِ فِي الَّذِي يَرْفَعُ رَأْسَهُ قَبْلَ الإِمَامِ

**دهغه چا دپاره وعيد څوک چي په رکوع کي دامام نه مخکي سر پورته کوي**

٥٨٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ. عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ وَهُوَ أَبُو الْحَارِثِ الْبَصْرِيُّ ثِقَةٌ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَا يَخْشَى الَّذِي يَرْفَعُ رَأْسَهُ قَبْلَ الإِمَامِ أَنْ

1 صحيح مسلم في المسافرين ١٨ (٥٢٠). سنن ابي داود في الصلاة ٣٠٩ (١٣١٣) سنن النسائي في قيام الليل ٦٥ (١٧٩١) سنن ابن ماجه في الإقامة ١٧٧ (١٣٤٣) . (تحفة الأشراف : ١٠٥٩٢). مسند احمد (١ في ٣٢) . سنن الدارمي في الصلاة ١٦٧ (١٥١٨)

يَحْوِلَ اللهُ رَأْسَهُ رَأْسَ حِمَارٍ ". قَالَ قُتَيْبَةُ: قَالَ حَمَّادٌ: قَالَ لِي مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ: وَإِنَّمَا قَالَ: أَمَا يَخْشَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ هُوَ بَصْرِيٌّ ثِقَةٌ وَيُكْنَى أَبَا الْحَارِثِ. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي دامام نه مخكي دركوع ياسجدى نه سر اوچتوي ايا دا نه ويريږي چي دا سربى الله تعالي دخر دسر په شان كړي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي. او محمد بن زياد بصري دي او ثقه دى او اسم كنيه يي ابو الحارث ده.

**لغات**: الحمار معني خر ، خره په دوه قسمه دي يو كورني وي او بل خنګلي . خنګلي ته حمار الوحش ويلي شي جمع يي حمير او حمور او حمورات راځي. جمع يي حمير او احمرة وحمر وحمور وحمرات مونث يي حمارة جمع يي حمائر حمارة القدم دخپي شاه . الحمارة خر والا. مفرد حمار دي لكه جمال او بغال

**تشريح** : ددي مطلب دادى چي دمونځ اركان دامام نه مخكي ادا كړي مثلا په ركوع او سجده كي دامام نه مخكي سر راپورته كړي، ملا علي قاري وائي په دي حديث كي شديد وعيد دى دامام نه په مخكي كيدو باندي

بعضي علماء وائي چي پورتنى حديث پخپله حقيقي معني باندي محمول نه دى چي الله تعالي به ورنه حقيقتا خر جوړوي بلكه مطلب دادى چي دخر پشان به يي كم عقل كړي ځكه چي په ټولو خناورو كي خر ډير كم عقل وي

علامه خطابي رحمة الله عليه وائي كه دا حديث په حقيقي معني حمل كړى شي نو هم صحيح ده او دا خبره امام ابن حجر رحمة الله عليه هم كړي ده چي مسخ به كړى شي او په كومو روايتونو كي چي راځي چي زما په امت كي به مسخ نه وي دهغي مطلب دادى چي عمومي مسخ به نه وي په جزيي طور به وي

## عبرتناكه واقعه:

علامه ابن حجر يود عبرتناكه واقعه نقل كړي ده خلاصه يي داده چي يو محدث دعلم زده كولو دپاره د دمشق يو مشهور عالم ته ورغلو څوك چي په علم او فضل كي مشهور وو ليكن هغه به

---

[1] صحيح البخاري في الأذان ٥٣ (٦٩١) . صحيح مسلم في الصلاة ٢٥ (٤٢٢) سنن النسائي في الإمامة ٣٨ (٨٢٩) سنن ابن ماجه في الإقامة ٤١ (٩٦١) (تحفة الأشراف : ١٤٣٦٢) (وكذا ١٤٣٨) مسند احمد (٢) في ٢٦٠، ٢٧١، ٤٢٥، ٤٥٦، ٤٦٩، ٤٧٢، ٥٠٤) . سنن الدارمي في الصلاة ٧٢ (١٣٥٥)

همیشه دېردي نه اخوا درس ورکولو یو خل دي صاحب په ډېر کوشش سره دهغه مخ اولیدونو چي ویې کتل دخر پشان وو کله چي یي دهغه نه ددي دوجي تپوس اوکړو نو ورته یي اوونیل کله چي ما دا حدیث واوریدو څوك چي دامام نه مخکي سر اوچتوي دهغه سربه دخر پشان کیږي نو ما دتجربي په طور داسي اوکړل نو الله تعالي زما مخ داسي کړو (روضة الصالحین)

****************

## ٥٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الَّذِي يُصَلِّي الْفَرِيضَةَ ثُمَّ يَؤُمُّ النَّاسَ بَعْدَ مَا صَلَّى

**بیان دهغه چا چي یواځي فرض مونځ اوکړي او بیا دمونځ نه پس نورو خلقو ته امامتي ورکوي**

٥٨٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ "مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ كَانَ يُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَغْرِبَ، ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى قَوْمِهِ فَيَؤُمُّهُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَصْحَابِنَا الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا: إِذَا أَمَّ الرَّجُلُ الْقَوْمَ فِي الْمَكْتُوبَةِ وَقَدْ كَانَ صَلَّاهَا قَبْلَ ذَلِكَ أَنَّ صَلَاةَ مَنِ ائْتَمَّ بِهِ جَائِزَةٌ. وَاحْتَجُّوا بِحَدِيثِ جَابِرٍ فِي قِصَّةِ مُعَاذٍ، وَهُوَ حَدِيثٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ جَابِرٍ، وَرُوِي عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَالْقَوْمُ فِي صَلَاةِ الْعَصْرِ وَهُوَ يَحْسِبُ أَنَّهَا صَلَاةُ الظُّهْرِ فَائْتَمَّ بِهِمْ، قَالَ: صَلَاتُهُ جَائِزَةٌ، وَقَدْ قَالَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ: إِذَا ائْتَمَّ قَوْمٌ بِإِمَامٍ وَهُوَ يُصَلِّي الْعَصْرَ وَهُمْ يَحْسِبُونَ أَنَّهَا الظُّهْرُ فَصَلَّى بِهِمْ وَاقْتَدَوْا بِهِ، فَإِنَّ صَلَاةَ الْمُقْتَدِي فَاسِدَةٌ إِذِ اخْتَلَفَ نِيَّةُ الْإِمَامِ وَنِيَّةُ الْمَأْمُومِ.[1]

**ترجمه**: دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روایت دي چي معاذ بن جبل رضي الله عنه درسول الله صلي الله علیه وسلم سره دماښام مونځ کولو او بیا د خپل قوم خلقو ته واپس ورغلو او هغوئ ته به یي هم امامتي ورکوله

امام ترمذي وائي دا حدیث حسن صحیح دي زمونږ دعلماؤ یعني دامام شافعي او احمد او اسحاق په دي باندي عمل دي دوئ وائي کله چي څوك په فرض مونځ کي دخپل قوم امامتي کوي او ددینه مخکي یي خپل فرض مونځ کړي وي نو څوك چي په ده پسي اقتداء کوي دهغوئ

[1] صحیح البخاری في الأذان ٦٦ (٧١١) صحیح مسلم في الصلاة ٣٦ (٤٦٥) . سنن ابی داود في الصلاة ٦٨ (٥٩٩ ـ ٦٠٠ و٧٩٠) . سنن النسائي في الإمامة ٣٩ (٨٣٢) . و٤١ (٨٣٤) . والافتتاح ٦٣ (٩٨٥) . و٧٠ (٩٩٨) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٤٨ (٩٨٦) . (تحفة الأشراف: ٢٥١٧) . مسند احمد (٣في٢٩٩، ٣٠٨، ٣٦٩) . سنن الدارمي في الصلاة ٦٥ (١٣٣٢)

مونځ درست دي دوي د معاذ رضي الله عنه دقصې نه چې دجابر په حديث کې مروي ده استدلال کړي دي ، دابو الدرداء رضي الله عنه نه مروي دي چې ددوی نه ديو داسې کس په باره کې تپوس اوکړي شو څوك چې مسجد ته داخل شي او خلق دمازيګر په مونځ کې مشغول وي او هغه دا ګمان اوکړي چې دا ماسپخين دي او هغه دده اقتداء اوکړي نو ايا مونځ يې جائزدي؟ اوکنه، ابو الدرداء په جواب کې اوونيل دده مونځ درست دي، داهل کوفه دبو جماعت قول دي څوك چې دکوم امام اقتداء کوي او هغه د مازيګر مونځ کوي او خلق دا اوګنړي چې دي دماسپخين مونځ کوي او هغه دوی ته مونځ ورکړي او خلق دده په اقتداء کې مونځ اوکړي نو په داسې صورت کې دمقتدي مونځ فاسد دي ځکه چې دمقتدي نيت او دامام نيت مختلف شول

## د مفترض دپاره په متنفل پسې اقتداء کول درست نه دي

د احنافو په نزد د مفترض دپاره په متنفل پسې اقتداء کول جائز نه دي. دليل دا دې چې په دې مسئله کې د مقتدی حال اقوی دې.او امام اضعف دې.او وړاندې تېر شوی دی چې اضعف الحال اقوی الحال ته امامتی نشی ورکولې.

ځکه چې اقتداء نوم دي د بناء کولو.او بناء امر وجودی دې.امر عدمی نه دې.اوبنکاره ده چې متابعت مفهوم وجودی دې.مفهوم سلبی نه دې.او د امر وجودی بناء په امر عدمی باندې صحيح نه ده.اوچونکه په ذکر شوې مسئله کې د امام په حق کې د فرضيت وصف معدوم دې.نوځکه بناء نه متحقق کيږی.او کله چې بناء کول نه متحقق کيږی.نو اقتداء به ځنګه صحيح شی.

***************

## ٥٩_ بَابُ مَا ذُكِرَ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي السُّجُودِ عَلَى الثَّوْبِ فِي الْحَرِّ وَالْبَرْدِ

### په ګرمئ او يخنئ کې په کپړې دسجدې کولو داجازت بيان

٥٨٤- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: حَدَّثَنِي غَالِبٌ الْقَطَّانُ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْمُزَنِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالظَّهَائِرِ سَجَدْنَا عَلَى ثِيَابِنَا اتِّقَاءَ الْحَرِّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. وَقَدْ رَوَى وَكِيعٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. [1]

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي مونږ به كله په ماسپخين كي په نبي كريم صلى الله عليه وسلم پسي مونځ كولو نو دګرمئ نه دبچ كيدو دپاره به مو پخپلو كپړو سجده كوله.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دجابر بن عبدالله او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

****************

## ٦٠_ باب ذِكْرِ مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الْجُلُوسِ فِي الْمَسْجِدِ بَعْدَ صَلاَةِ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ

### دسهر دمونځ نه پس په مسجد كي د نمر ختلو پوري كيناستل مستحب دي

٥٨٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى الْفَجْرَ قَعَدَ فِي مُصَلاَّهُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه**: دجابر بن سمره رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم به كله دسحر مونځ اوكړو نو پخپله مسئله به ناست پاتي شو تردي چي نمر به راوختلو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

[1] _ صحيح البخارى في الصلاة ٢٣ (٣٨٥) ، والمواقيت ١١ (٥٤٢) ، والعمل فى الصلاة ٩ (١٢٠٨) ، صحيح مسلم في المساجد ٣٣ (٦٢٠) ، سنن ابى داود في الصلاة ٩٣ (٦٦٠) ، سنن النسائى في التطبيق ٥٩ (١١١٧) ، سنن ابن ماجه في الإقامة ٦٤ (١٠٣٣) ، (تحفة الأشراف : ٢٥٠) ، سنن الدارمى في الصلاة ٨٢ (١٣٦)

[2] _ مسلم في المساجد ٥٢ (٢٨٦) ، والفضائل ١٧ (٢٣٢٢) ، سنن ابى داود في الصلاة ٣٠١ (١٢٩٤) ، سنن النسائى في السهو ٩٩ (١٣٥٨) ، (تحفة الأشراف : ٢١٦٨) ، مسند احمد (٥ في ٩١، ٩٧، ١٠٠)

٥٨٦_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْجُمَحِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا أَبُو ظِلاَلٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ صَلَّى الْغَدَاةَ فِي جَمَاعَةٍ ثُمَّ قَعَدَ يَذْكُرُ اللَّهَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ كَانَتْ لَهُ كَأَجْرِ حَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ " قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " تَامَّةٍ تَامَّةٍ تَامَّةٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، عَنْ أَبِي ظِلاَلٍ، فَقَالَ: هُوَ مُقَارِبُ الْحَدِيثِ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَاسْمُهُ هِلاَلٌ. (1)

**ترجمه** . دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دسحر مونځ دجماعت سره اداء كړي او بيا كيني دالله ذكر جاري اوساتي تردي چي نمر ورباندي راوخيژي او بيا دهغي نه پس دوه ركعاتونه اوكړي نو ده ته به ديو حج او يوي عمري ثواب ملاؤ شي، انس بن مالك وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل پوره پوره يعني دحج او عمري پوره پوره ثواب به ورته وركړي شي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه د ابو ظلال راوي باره كي تپوس اوكړو نو راته يي اوفرمائيل چي ابو ظلال مقارب الحديث دي محمد بن اسماعيل بخاري وائي دده نوم هلال دي.

**تشريح** : ددينه علماؤ استدلال كړى دى چي داشراق پوري په مسجد كي كيناستل كه چري څه عذر نه وي نو مستحب دي لكه چي درسول الله او دصحابه كرامو معمول نقل شوى دى علماء وائي دا ډير بركتي وخت دى په دي وخت كي دانسان دماغ حاضر وي او دا قيمتي وخت په ذكر او دعا او تلاوت كي تير شي نو ډيره بهتره خبره ده.

***************

## ٦١_ بَاب مَا ذُكِرَ فِي الِالْتِفَاتِ فِي الصَّلاَةِ

### په مونځ كي دا خوا ديخوا دكتلو د جواز او عدم جواز بيان

٥٨٧_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

(1) ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦٤٢)

وَسَلَّمَ كَانَ "يَلْحَظُ فِي الصَّلَاةِ يَمِينًا وَشِمَالًا وَلَا يَلْوِي عُنُقَهُ خَلْفَ ظَهْرِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ خَالَفَ وَكِيعٌ، الْفَضْلَ بْنَ مُوسَى فِي رِوَايَتِهِ. [1]

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله به د ځټ اړولو نه بغير په مونځ كي ښي او كس طرف ته د ستركو په كوټونو كي كتل

امام ترمذي وايي حديث حسن غريب دی.او وكيع راوي پخپل روايت كي د فضل بن موسي نه مخالفت كړی دی.

***************

٥٨٨ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ عِكْرِمَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَلْحَظُ فِي الصَّلَاةِ فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَعَائِشَةَ. [2]

**ترجمه** عكرمه وايي چي رسول الله به د ځټ اړولو نه بغير په مونځ كي ښي او كس طرف ته د ستركو په كوټونو كي كتل.

امام ترمذي وايي په دي باب كي د انس او عائشه نه هم احاديث مروي دي.

***************

٥٨٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو حَاتِمٍ مُسْلِمُ بْنُ حَاتِمٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، قَالَ: قَالَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا بُنَيَّ إِيَّاكَ وَالِالْتِفَاتَ فِي الصَّلَاةِ، فَإِنَّ الِالْتِفَاتَ فِي الصَّلَاةِ هَلَكَةٌ، فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ فَفِي التَّطَوُّعِ لَا فِي الْفَرِيضَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [3]

**ترجمه** انس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل.اي بچيه مانځه كي اخو اديخوا كتو نه خان ساته خكه چي په مانځه كي اخوا

[1] ـ سنن النسائي في السهو ١٠(١٢٠٢). (تحفة الأشراف: ٦٠١٢). مسند احمد (١في ٢٧٥، ٣٠٢)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٠١٢)

[3] أخرجه: الترمذي ابواب الصلاة باب ما ذكر في الالتفات في الصلاة (٥٨٩) وقال: ((حديث حسن غريب)) وفي اسناده علي بن زيد بن جدعان ضعفوه ولكن للحديث شواهد.

ديخوا كتل تباهي ده كه كتل ضروري وي نو په نفلو كي خير دی خو په فرضو كي هرګز مه ګوری

امام ترمذي وايي حديث حسن غريب دی

**لغات** : هلك. هلك هلاكا د ضرب او فتح او سمع نه معني پناه كيدل او هلاكيدل نيست نابود كيدل

**تشريح** : علماء وائي په مونځ كي يو طرف او بل طرف ته دكتو په وجه دمونځ په خشوع كي نقصان راځي ځکه چي دا كار په دي مونځ ګذار باندي شيطان كوي او شيطان خو انسان لره ضرور دبربادئ طرف ته بوتلل غواړي

اوكه داكار ضرور كول غواړئ يعني كه صبر نشئ كولی نو په نفلي مونځونو كي يي كولی شئ خو په فرضي كي يي نشئ كولی علماء وائي چي په مونځ كي اخوا ديخوا كتل دمونځ خشوع ختموي.دلته ترغيب وركولی شي چي په مونځ كي اخوا ديخوا كتل پكار نه دي او كه مجبورا كتلو ته ضرورت پيښ شي نو په فرض مونځ كي كتل نه دي پكار ځكه چي په دي كي زيات اهتمام او خشوع او خضوع پكار ده ځكه چي په قيامت كي به اول ددي تپوس كيږي.په نفلي مونځ كي هم اخوا ديخوا كتل نه دي پكار مكروه دي مګر دفرض په مقابله كي كم دي نو په دي وجه په قدر دمجبورئ په نوافلو كي اجازت شته

*****************

٥٩٠ـ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ أَبِي الشَّعْثَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الاِلْتِفَاتِ فِي الصَّلاَةِ، قَالَ: " هُوَ اخْتِلاَسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلاَةِ الرَّجُلِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** عائشي رضي الله عنها نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي دمانځه په حالت دسترګو په ګوټونو كي اخوا كتو تپوس اوكړو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا دشيطان يوه پټه غوټه ده چي دبنده پد مانځه يی وهي

امام ترمذي وايي چي دا حديث حسن غريب دی

[1] صحيح البخاري في الأذان ٩٣ (٧٥١) . وبدء الخلق ١١ (٣٢٩١) . سنن ابي داود في الصلاة ١٦٥ (٩١٠) . سنن النسائي في السهو ١٠ (١١٩٧) . (تحفة الأشراف : ١٧٦٦١) . مسند احمد (٦ في ٧٠، ١٠٦)

**لغات** : الشيطان: شطنه شطنا معني مخالفت كول ، لري ، په رسئ تړل ، شطن في الارض معني داخليدل ، تشيطن معني شيطاني فعل كول جمع يې شياطين راځي

**تشريح** : علماء وائي په مونځ كې يو طرف او بل طرف ته دكتو په وجه دمونځ په خشوع كې نقصان راځي او كه دكتو په وخت كې مخ دقبلې نه واړولى شي نو مونځ مكروه كيږي او كه سينه واړولى شي نو مونځ يې فاسد يږي.

هو اختلاس يختلسه الشيطان: دا تختول دي چې تختوي يې دي لره شيطان مطلب دادئ چې دچا په غفلت او ناخبرئ كې په انتهائي تيزئ سره دده څيز اوړي.كله چې څوك په مانځه كې اخوا ديخوا ګوري نو په دي وخت كې شيطان دمونځ كونكي دمونځ خشوع او خضوع تختوي او دده مونځ لره بې اثره ګرځوي.

****************

## ٦٢ــ بَاب مَا ذُكِرَ فِي الرَّجُلِ يُدْرِكُ الإِمَامَ وَهُوَ سَاجِدٌ كَيْفَ يَصْنَعُ

### كه يوكس امام په سجده كې ومومي نو څه به كوي

٥٩١ــ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُونُسَ الكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُحَارِبِيُّ، عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ هُبَيْرَةَ بْنِ يَرِيمَ، عَنْ عَلِيٍّ، وَعَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَا: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ وَالإِمَامُ عَلَى حَالٍ فَلْيَصْنَعْ كَمَا يَصْنَعُ الإِمَامُ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْلَمُ أَحَدًا أَسْنَدَهُ، إِلَّا مَا رُوِيَ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. قَالُوا: إِذَا جَاءَ الرَّجُلُ وَالإِمَامُ سَاجِدٌ فَلْيَسْجُدْ وَلَا تُجْزِئُهُ تِلْكَ الرَّكْعَةُ إِذَا فَاتَهُ الرُّكُوعُ مَعَ الإِمَامِ. وَاخْتَارَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ أَنْ يَسْجُدَ مَعَ الإِمَامِ. وَذَكَرَ عَنْ بَعْضِهِمْ، فَقَالَ: لَعَلَّهُ لَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ فِي تِلْكَ السَّجْدَةِ حَتَّى يُغْفَرَ لَهُ. [1]

**ترجمه** دعلي او معاذ بن جبل رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چې په تاسو كې څوك مونځ كولو دپاره راشي نوچه امام په كوم حالت كې بيامومي هم هغه عمل دې دي كوي چې كوم امام كوي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او مونږ هيڅوك داسي نه دي ليدلي چې دا يې مسند بيان كړي وي علاوه ددي سند نه، او په دي باندي داهل علمو عمل دي دوئ وائي كله

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٣٠٦، ١١٣٢٥)

چي خوك راشي او امام په سجده كي وي نو دي به ورسره هم سجده كوي ليكن كله چي دامام سره دده نه ركوع تيره شي نو ركعات به يي كافي نه وي. عبدالله بن مبارك هم دا قول خوښ كړي دي چي دامام سره به سجده كوي او دبعضي خلقو نه يي نقل كړي دي چي شايد هغوئ به ددي سجدي نه سر نه پورته كولو تردي چي مغفرت ورته اوشي

***************

## ٦٣ـ باب كَرَاهِيَةِ أَنْ يَنْتَظِرَ النَّاسُ الإِمَامَ وَهُمْ قِيَامٌ عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلاَةِ

**دمونځ شروع كولو وخت دا اودريدو نه پس دامام دا نتظار كولو دكراهت بيان**

٥٩٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ. أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ. عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ. عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلاَةُ فَلاَ تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي خَرَجْتُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ وَحَدِيثُ أَنَسٍ غَيْرُ مَحْفُوظٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ أَنْ يَنْتَظِرَ النَّاسُ الإِمَامَ وَهُمْ قِيَامٌ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا كَانَ الإِمَامُ فِي الْمَسْجِدِ فَأُقِيمَتِ الصَّلاَةُ فَإِنَّمَا يَقُومُونَ إِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ: قَدْ قَامَتِ الصَّلاَةُ. قَدْ قَامَتِ الصَّلاَةُ. وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ. [1]

**ترجمه** دابوقتاده رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي دمونځ دپاره اقامت اوكړي شي نو تاسو به هغه وخته پوري نه اودريږئ ترڅو پوري چي مو زه په راوتو ليدلي نه يم

امام ترمذي وائي دابوقتاده حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي ليكن دهغه حديث غير محفوظ دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي يو جماعت دخلقو په ولاړه دامام انتظار كول مكروه ګڼړلي دي دبعضي علماؤ قول دي چي كله امام په مسجد كي وي او دمونځ دپاره اقامت اوكړي شي نو خلق به هله اودريږي كله چي مؤذن قد قامت الصلاة قد قامت الصلاة اووائي . دابن مبارك هم دا قول دي

---

[1] ـ صحيح البخاري في الأذان ٢٢ (٦٣٤) ، و ٢٣ (٦٣٨) ، والجمعة ١٨ (٩٠٩) ، صحيح مسلم في المساجد ٢٩ (٦٠٢) ، سنن ابي داود في الصلاة ٤٦ (٥٣٩) ، سنن النسائي في الأذان ٤٢ (٦٨٨) ، والإمامة ١٢ (٧٩١) ، (تحفة الأشراف : ١٢١٠٦) ، مسند احمد (٥ في ٣٠٢، ٣٠٤، ٣٠٨) ، سنن الدارمي في الصلاة ٤٧ (١٢٩٦)

*******************

## ٦٤_ بابٌ مَا ذُكِرَ فِي الثَّنَاءِ عَلَى اللَّهِ وَالصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ الدُّعَاءِ

**ددعا نه مخکي د الله تعالي حمد او په رسول الله صلاة او سلام ونيل**

٥٩٣_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ. حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ. عَنْ عَاصِمٍ. عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنْتُ أُصَلِّي وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ. وَعُمَرُ مَعَهُ. فَلَمَّا جَلَسْتُ بَدَأْتُ بِالثَّنَاءِ عَلَى اللَّهِ ثُمَّ الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ثُمَّ دَعَوْتُ لِنَفْسِي. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَلْ تُعْطَهْ. سَلْ تُعْطَهْ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا الْحَدِيثُ رَوَاهُ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ. عَنْ يَحْيَى بْنِ آدَمَ مُخْتَصَرًا. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي ما مونځ کولو او نبي کريم صلي الله عليه وسلم موجود وو او ابوبکر او عمر رضي الله عنهما هم ورسره وو کله چي زه په قعده کيناستم نو اول ما دالله تعالي تعريف اوکړو او بيا مي په نبي کريم صلي الله عليه وسلم درود اووئيلو او بيا مي دخان دپاره دعا اوغوښتله نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اوغواړه تاته به درکولي شي . اوغواړه تاته به درکولي شي

امام ترمذي وائي دعبدالله بن مسعود حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دفضاله بن عبيد رضي الله عنه نه هم يو روايت مروي دي. دا حديث احمد بن حنبل ديحي بن ادم نه مختصر نقل کړي دي

*******************

## ٦٥_ بابٌ مَا ذُكِرَ فِي تَطْيِيبِ الْمَسَاجِدِ

**دمسجدونو دخوشبويه کولو بيان**

1 تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف ـ ٩٢٠٩). وانظر: مسند احمد (١/ ٤٤٥، ٤٥٢)

۵۹٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ الْمُؤَدِّبُ الْبَغْدَادِيُّ الْبَصْرِيُّ. حَدَّثَنَا عَامِرُ بْنُ صَالِحٍ الزُّبَيْرِيُّ هُوَ مِنْ وَلَدِ الزُّبَيْرِ. حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: " أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبِنَاءِ الْمَسَاجِدِ فِي الدُّورِ وَأَنْ تُنَظَّفَ وَتُطَيَّبَ ". [1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په محلو او کوڅو کي دمسجدونو جوړولو او ددي دپاك ساتلو او خوشبويه کولو حکم کړي دي

**تشريح** : مسلم روايت نقل کړی دی چي مساجد د الله په نزد احب البلاد مقامات دي.

عن ابي هريرة عن النبيّ ﷺ قال : ((أَحَبُّ البِلادِ إلى اللهِ مَسَاجِدُهَا ، وَأَبْغَضُ البِلاَدِ إلى اللهِ أَسْوَاقُهَا))

.رواه مسلم .

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په ښارونو کي الله تعالي ته محبوب ځايونه ددوی مسجدونه دي او مبغوض ځايونه يې بازارونه دي

"احب البلاد الي الله مساجدها" يعني الله تعالي ته په تمامو ښارو او تمامو ځايونو کي بهترين ځايونه مسجدونه دي، ددي جملي مطلب دادی څوك چي مسجد ته راتلل کوي نو الله تعالي ورباندي دخپل رحمت سوری کوي او ده ته دخير او هدايت رهنمائي کوي. همدا وجه ده چي په يو روايت کي راغلي دي "المساجد بيوت الله في الارض تضيء لاهل السماء كما تضيء نجوم السماء لاهل الارض" يعني مسجدونه په زمکه کي دالله تعالي کورونه دي دا اسمان والا ته داس پرقيږي لکه څرنګه چي زمکي والا ته داسمان ستوري پرقيږي. ددينه علاوه په نورو ډيرو روايتونو کي هم دمسجدونو فضائل راغلي دي ليکن ددي په مقابل کي بازار هغه ځاي دی چرته چي دشيطان تسلط ډير زيات وي ليکن علماء وائي ددينه مراد هغه خلق دي څوك چي بغير دکوم ضرورت او مقصد نه په بازار کي اوسيږي ليکن دضرورت په قدر بازار ته تلونکي په دي وعيد کي داخل نه دي

سوال په دنيا کي بد ځايونه نور هم ډير شته مثلا بت خانه ، شراب خانه وغيره ددوی تولو نه په بدو ځايونو تعبير ولي نه دی شوی

[1] سنن ابي داود في الصلاة ۱۳ (۴۵۵) ، سنن ابن ماجه في المساجد ۹ (۷۵۸، ۷۵۹) ، (تحفة الأشراف : ۱۶۹۶۲) ، مسند احمد (٦ في ۱۲، ۲۷۱)

جواب. شريعت چي دكومو مقاماتو جوړولو حكم كړى دى په دي كي بازار ناخوښه مقام دى پاتي شو بت خانه او شراب خانه وغيره نو ددي دجوړولو خو شريعت خو بالكل حكم نه دى كړى.

## دعروه بن زبير رضي الله عنه حالات:

نوم عروه كنيه ابوعبدالله دپلار نوم زبير بن عوام دمور نوم اسماء بنت ابي بكر. دعروه ولادت عمر فاروق دخلافت په اخر يا دعثمان دخلافت په ابتداء كې شوى وو (تهذيب التهذيب).

دده ورور عبدالله بن زبير دده په وړنا عبدالملك دعبدالله بن زبير د دفن كولو حكم اوكړو عروه دعلم او عمل مجمع البحرين وو ځكه چي دده پلار زبير بن عوام حواري رسول وو او دده نيكه ابوبكر صديق رضي الله عنه وو او دده ترور ام المومنين عائشه رضي الله عنها وه او دده مور اسماء ذات النطاقين وه دده ورور عبدالله هم داهل علمو صحابه كرامو نه وو. په ده كي يو ځو خصوصيات وو مثلا صبر او استقامت، عبادت او رياضت، صبر او شكر. ددنيا نه بې رغبتي او سخاوت وغيره دده ضرب المثل وو.

داحاديثو سره يي ډيره مينه وه چي دعائشه رضي الله عنها نه يي اكثر اوريدلي وو او هغه اعلم الناس وه (تهذيب التهذيب).

دام المومنين تمام علمي ذخيره يي محفوظ كړي وه پخپله فرمائي چي زما دترور دوفات نه څلور پنځه كاله مخكې ما دهغي ټول علم حاصل كړى وو كه چري دا په دي وخت كې مړه وى نو ما به دهغي دكوم حديث په باقي پاتي كيدو افسوس نه وو كړى (تهذيب التهذيب).

په كال ۹۴ هجري كې په مدينه كې وفات شو (طبقات ابن سعد).

دده مزيد حالاتو دپاره لانديني كتابونه مفيد دي ابن اسير، طبقات ابن سعد. تهذيب الاسماء. تذكرة الحفاظ ابن خلكان

*****************

۵۹۵ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا عَبْدَةُ. وَوَكِيعٌ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ فَذَكَرَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنَ الْحَدِيثِ الأَوَّلِ. [1]

**ترجمه** عروه دخپل پلار نه روايت كوي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم باقي حديث دسابقه روايت پشان دي. امام ترمذي وائي دا حديث داولني حديث نه زيات صحيح دي.

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ۱۳ (۴۵۵). سنن ابن ماجه في المساجد ۹ (۷۵۸، ۷۵۹). (تحفة الأشراف: ۱۶۹۶۲). مسند احمد (۶ في ۱۲، ۲۷۱).

****************

۵۹٦ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. أَنِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ فَذَكَرَ نَحْوَهُ. وقَالَ سُفْيَانُ: قَوْلُهُ بِبِنَاءِ الْمَسَاجِدِ فِي الدُّورِ يَعْنِي الْقَبَائِلَ. (١)

**ترجمه** . په دي سند سره هم هشام بن عروه دخپل پلار نه روايت نقل کړي دي چه. باقي حديث يي دسابقه حديث پشان بيان کړو. سفيان وائي په کورونو يامحلو کي مسجدونو جوړولو نه مراد په قبائلو کي مسجدونه جوړول دي.

****************

## ٦٦ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ صَلاَةَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنَى مَثْنَى

### دشپي اود ورځي نفلي مونځونه دوه دوه رکعاته کولو بيان

۵۹۷ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ. عَنْ عَلِيٍّ الأَزْدِيِّ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " صَلاَةُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنَى مَثْنَى ". قَالَ أَبُو عِيسَى: اخْتَلَفَ أَصْحَابُ شُعْبَةَ فِي حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ فَرَفَعَهُ بَعْضُهُمْ وَأَوْقَفَهُ بَعْضُهُمْ. وَرُوِي عَنْ عَبْدِ اللَّهِ الْعُمَرِيِّ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هَذَا. وَالصَّحِيحُ مَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " صَلاَةُ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى " وَرَوَى الثِّقَاتُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ صَلاَةَ النَّهَارِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. أَنَّهُ كَانَ " يُصَلِّي بِاللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى وَبِالنَّهَارِ أَرْبَعًا " وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي ذَلِكَ فَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنَّ صَلاَةَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنَى مَثْنَى. وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ. وَأَحْمَدَ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: صَلاَةُ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى. وَرَأَوْا صَلاَةَ التَّطَوُّعِ بِالنَّهَارِ أَرْبَعًا مِثْلَ الأَرْبَعِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَغَيْرِهَا مِنْ صَلاَةِ التَّطَوُّعِ. وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. وَابْنِ الْمُبَارَكِ. وَإِسْحَاق. (٢)

---

1 - سنن ابي داود في الصلاة ١٣ (٣۵۵). سنن ابن ماجه في المساجد ٩ (٧۵٨، ٧۵٩). (تحفة الأشراف: ١٦٩٦٢). مسند احمد (٦ في ١٢، ٢٧١)

2 - سنن ابي داود في الصلاة ٣٠٢ (١٢٩۵). سنن النسائي في قيام الليل ٢٦ (١٦٦٨). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٧٢ (١٣٢٢). (تحفة الأشراف: ٧٣٣٩). مسند احمد (٢ في ٢٦، ۵١). سنن الدارمي في الصلاة ١۵۵ (١۵٠٠)

**ترجمه** : عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دشپې او د ورځې مونځونه دوه دوه ركعاته دي.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث كي دشعبه په شاګردانو كي اختلاف دي بعضو دا حديث مرفوع بيان كړي دي او بعضو موقوفا فرمائيلي دي. عبدالله عمري په سند دنافع عن ابن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي صحيح هغه دي كوم چي دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دشپې مونځ دوه دوه ركعاته دي، دا روايت ثقاتو د عبدالله بن عمر په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي په دي كي دوئ دورځي دمونځ ذكر نه دي كړي. دعبيدالله نه مروي دي هغوئ دنافع نه او نافع دابن عمر نه روايت نقل كړي دي چي هغه به دشپې دوه دوه ركعاتونه كول او دورځې به يې څلور څلور ركعاتونه كول په دي مسئله كي داهل علمو اختلاف دي دبعضو قول دي چي دشپې او دورځي دواړو نفلي مونځونه دوه دوه ركعاته دي همدا دامام شافعي او امام احمد قول دي او بعضي وائي چي دشپې مونځ دوه ركعاتي دي او دهغوئ په خيال دورځي نفلي مونځونه څلور ركعاتي دي مثلا دماسپخين نه مخكي څلور نفل ركعاتونه دي . سفيان ثوري ابن مبارك او اسحاق هم دا قول اختيار كړي دي.

*****************

## ٦٧ـ باب كَيْفَ كَانَ تَطَوُّعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّهَارِ

### د ورځي به د رسول الله (ص) نفلونه څنګه وو؟

٥٩٨ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، قَالَ: سَأَلْنَا عَلِيًّا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ النَّهَارِ. فَقَالَ: إِنَّكُمْ لَا تُطِيقُونَ ذَاكَ. فَقُلْنَا: مَنْ أَطَاقَ ذَاكَ مِنَّا. فَقَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَتِ الشَّمْسُ مِنْ هَاهُنَا كَهَيْئَتِهَا مِنْ هَاهُنَا عِنْدَ الْعَصْرِ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، وَإِذَا كَانَتِ الشَّمْسُ مِنْ هَاهُنَا كَهَيْئَتِهَا مِنْ هَاهُنَا عِنْدَ الظُّهْرِ صَلَّى أَرْبَعًا، وَصَلَّى أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ وَقَبْلَ الْعَصْرِ

أَرْبَعًا يَفْصِلُ بَيْنَ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ بِالتَّسْلِيمِ عَلَى الْمَلَائِكَةِ الْمُقَرَّبِينَ وَالنَّبِيِّينَ وَالْمُرْسَلِينَ وَمَنْ تَبِعَهُمْ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُسْلِمِينَ". (1)

**ترجمه**: دعاصم بن ضمره رضي الله عنه نه مروي دي چې مونږ دعلي رضي الله عنه نه درسول الله صلي الله عليه وسلم دورځي دمونځ باره کي تپوس اوکړو نو ويې فرمائيل تاسو ددي طاقت نه لرئ مونږ اووئيل په مونږ کي به څوك ددي طاقت لري؟ هغه اوفرمائيل کله چې به نمر دي طرف ته يعني مشرق طرف ته اوګرځيدو لکه مازيګر کي چې څنګه دي طرف يعني د مغرب طرف ته ګرځي نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به دوه رکعاتونه اوکړل او کله چې به نمر مشرق طرف ته مائل شو لکه چې دي طرف (مغرب کي) دماسپخين وخت کي مائل کيږي نو څلور رکعاتونه به يې اوکړل او څلور رکعاتونه به يې دماسپخين دمونځ نه مخکي کول او دوه به يې وروسته کول او دمازيګر دمونځ نه مخکي به يې څلور رکعاتونه کول دهغو دوه رکعاتونو په مينځ کي به يې په مقربو فرښتو او په انبياؤ او رسولانو او په مومنانو او په مسلمانانو کي چې چا دده پيروي کړي وي دسلام نيت اوکړو او په دي سلام به يې فصل راوستلو.

***************

٥٩٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: أَحْسَنُ شَيْءٍ رُوِيَ فِي تَطَوُّعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّهَارِ هَذَا. وَرُوِي عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ كَانَ يُضَعِّفُ هَذَا الْحَدِيثَ. وَإِنَّمَا ضَعَّفَهُ عِنْدَنَا وَاللهُ أَعْلَمُ. لِأَنَّهُ لَا يُرْوَى مِثْلُ هَذَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ. عَنْ عَلِيٍّ. وَعَاصِمُ بْنُ ضَمْرَةَ هُوَ ثِقَةٌ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ: قَالَ سُفْيَانُ: كُنَّا نَعْرِفُ فَضْلَ حَدِيثِ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ عَلَى حَدِيثِ الْحَارِثِ. (2)

---

1 سنن النسائي في الإمامة ٦٥ (٨٧٣، ٨٧٥). (تحفة الأشراف: ١٠١٣٧). مسند احمد (١/ ٨٥، ١٤٢، ١٦٠)، وانظر أيضاما تقدم برقم ٤٢٤، و٤٢٩)

2 ـ سنن النسائي في الإمامة ٦٥ (٨٧٣، ٨٧٥). (تحفة الأشراف: ١٠١٣٧). مسند احمد (١/ ٨٥، ١٤٢، ١٦٠)، وانظر أيضاما تقدم برقم ٤٢٤، و٤٢٩)

**ترجمه** په دي سند سره هم دعلي رضي الله عنه نه دسابقه روايت هم معني روايت مروي دي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي، داسحاق بن ابراهيم بن راهويه قول دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دورخي د نفلو په سلسله كي په مروي روايتونو كي دټولو نه بهتر روايت همدا دي او عبدالله بن مبارك ددي حديث تضعيف كولو او زمونږ په خيال كي هغه صرف په دي وجه ددي حديث تضعيف كړي دي چي ددي پشان حديث دنبي كريم سلي الله عليه وسلم نه صرف په همدي سند (يعني دعاصم بن ضمره په واسطه دعلي رضي الله عنه نه) مروي دي.
سفيان ثوري وائي مونږ دعاصم بن ضمره حديث صرف دحارث اعور په روايت پيژنو.

****************

## ٦٨ـ بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّلاَةِ فِي لُحُفِ النِّسَاءِ

### دسرو دپاره دښځو په څادرونو كي دمونځ كولو دكراهت بيان

٦٠٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ أَشْعَثَ وَهُوَ ابْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يُصَلِّي فِي لُحُفِ نِسَائِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُخْصَةٌ فِي ذَلِكَ. (1)

**ترجمه**: ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دخپلو بيبيانو په څادرونو كي مونځ نه كولو.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي اجازت هم مروي دي.

****************

## ٦٩ـ بَابُ ذِكْرِ مَا يَجُوزُ مِنَ الْمَشْيِ وَالْعَمَلِ فِي صَلاَةِ التَّطَوُّعِ

### په نفلي مونځ كي دګرځيدلو او كار كولو دجواز بيان

---

1 ـ سنن ابي داود في الطهارة ١٣٤ (٣٦٧)، والصلاة ٨٨ (٦٤٥). سنن النسائي في الزينة ١١٥ (٥٣٦٨). (تحفة الأشراف: ١٦٢٢١)

٦٠١_ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ بُرْدِ بْنِ سِنَانٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " جِئْتُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي الْبَيْتِ، وَالْبَابُ عَلَيْهِ مُغْلَقٌ، فَمَشَى حَتَّى فَتَحَ لِي ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مَكَانِهِ ". وَوَصَفَتِ الْبَابَ فِي الْقِبْلَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي زه كور ته راغلم او رسول الله صلي الله عليه وسلم مونځ كولو او دروازه بنده وه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم راغلو او ماته يي دروازه پرانيستله او بيا خپل خاي ته واپس لاړو. دام المؤمنين بيان دي چي ددوی دروازه قبلي طرف ته وه.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي.

**تشريح** : په دي مسئله دتمامو اهل علمو اتفاق دي چي عمل كثير مفسد دصلات دي او عمل قليل مفسد دصلات نه دي مګر دقليل او كثير په تعريف كي اختلاف دي يو قول دادي چي دقلت او كثرت دار مدار په رائي دمبتلا به بناء دي چي هغه ته كوم قليل ښكاري هغه قليل دي او چي كوم ورته كثير ښكاري هغه كثير دي ددي مزيد نور جوابات هم شته چي فقهاؤ ذكر كړي دي.

***************

## ٧٠_ باب مَا ذُكِرَ فِي قِرَاءَةِ سُورَتَيْنِ فِي رَكْعَةٍ

## په يو ركعات كي د دوه سورتونو لوستلو بيان

٦٠٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ، قَالَ: سَأَلَ رَجُلٌ عَبْدَ اللَّهِ عَنْ هَذَا الْحَرْفِ غَيْرِ آسِنٍ أَوْ يَاسِنٍ، قَالَ: كُلَّ الْقُرْآنِ قَرَأْتَ غَيْرَ هَذَا الْحَرْفِ، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: إِنَّ قَوْمًا يَقْرَءُونَهُ يَنْثُرُونَهُ نَثْرَ الدَّقَلِ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ، إِنِّي لَأَعْرِفُ السُّوَرَ النَّظَائِرَ الَّتِي كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرُنُ بَيْنَهُنَّ، قَالَ: فَأَمَرْنَا عَلْقَمَةَ فَسَأَلَهُ.

---

[1] _ سنن ابي داود في الصلاة ١٦٩ (٩٢٢) . سنن النسائي في السهو ١٣ (١٢٠٧) . (تحفة الأشراف : ١٦٤١٧) . مسند احمد (٦ في ١٨٣، ٢٣٤٠)

فَقَالَ: " عِشْرُونَ سُورَةً مِنَ الْمُفَصَّلِ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرُنُ بَيْنَ كُلِّ سُورَتَيْنِ فِي رَكْعَةٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دابو وائل شقیق بن سلمه بیان دي فرماني چي يو کس دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه د "غير اسن" لفظ او يا د "ياسن" لفظ په باره کي تپوس اوکړو نو هغوئ اووئيل ايا تا ددينه علاوه پوره قران لوستلي دي؟ هغه اووئيل هو، ابن مسعود رضي الله عنه اووئيل يو قوم داسي لوستلو لکه چي څوك خرابي کجوري تيروي او دمرئ نه يي نه تيريږي، ما ته هغه متشابه سورتونه معلوم دي کوم چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم متصل لوستل. ابووائل وائي مونږ دعلقمه نه دتپوس کولو دپاره اووئيل نو هغه دابن مسعود رضي الله عنه نه تپوس اوکړو هغه اووئيل چي مفصل شل سورتونه دي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په هر رکعات کي دوه دوه يوځاي کول او لوستل به يي، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ٧١ـ بَاب مَا ذُكِرَ فِي فَضْلِ الْمَشْيِ إِلَى الْمَسْجِدِ وَمَا يُكْتَبُ لَهُ مِنَ الأَجْرِ فِي خُطَاهُ

### مسجد ته دپيدل تلو او په هرقدم داجر ملاويدو بيان

٦٠٣ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ، سَمِعَ ذَكْوَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِذَا تَوَضَّأَ الرَّجُلُ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ لَا يُخْرِجُهُ أَوْ قَالَ: لَا يَنْهَزُهُ إِلَّا إِيَّاهَا، لَمْ يَخْطُ خُطْوَةً إِلَّا رَفَعَهُ اللَّهُ بِهَا دَرَجَةً أَوْ حَطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي کله چي يو کس اودس اوکړي او په ښه شان سره اودس اوکړي او بيا دمونځ دپاره روان شي او دد لره صرف مونځ روان کړي وي او که داسي يي اووئيل صرف مونځ ده لره پورته کړي وي نو هر يو قدم چي دي اخلي الله تعالي به دهغي په بدل کي دده درجه لوړوي او که داسي يي اووئيل چي الله تعالي به دهر قدم په بدل کي دده يوه ګناه محوه کوي

---

[1] ـ صحيح البخاري في الأذان ١٠٦ (٧٧٥) ، وفضائل القرآن ٦ (٤٩٩٦) . صحيح مسلم في المسافرين ٤٩ (٨٢٢) . سنن النسائي في الافتتاح ٧٥ (١٠٠٥، ١٠٠٦، ١٠٠٧) (تحفة الأشراف : ٩٢٤٨) . مسند احمد (١/ في ٣٨٠، ٤٢١، ٤٢٦ـ٤٢٢، ٤٦٢، ٤٥٥)

[2] ـ سنن ابن ماجه في المساجد ١٤ (٧٧٤) (تحفة الأشراف : ١٢٢٠٥)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

## ٧٢ـ باب مَا ذُكِرَ فِي الصَّلَاةِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ أَنَّهُ فِي الْبَيْتِ أَفْضَلُ

**دماښام دمونځ نه پس په کورکي نفل کول افضل دي**

٦٠٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ الْبَصْرِيُّ ثِقَةٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَسْجِدِ بَنِي عَبْدِ الأَشْهَلِ الْمَغْرِبَ، فَقَامَ نَاسٌ يَتَنَفَّلُونَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَلَيْكُمْ بِهَذِهِ الصَّلَاةِ فِي الْبُيُوتِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، مِنْ حَدِيثِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَالصَّحِيحُ مَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِي بَيْتِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ حُذَيْفَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الْمَغْرِبَ فَمَا زَالَ يُصَلِّي فِي الْمَسْجِدِ حَتَّى صَلَّى الْعِشَاءَ الآخِرَةَ" فَفِي الْحَدِيثِ دِلَالَةٌ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِي الْمَسْجِدِ. [1]

**ترجمه**: دکعب بن عجره رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دبني عبدالاشهل په مسجد كي دماښام مونځ اوكړو او څه كسان په نفلو اودريدل نورسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل تاسو دا مونځ په كور كي كول په خان باندي لازم كړئ.

امام ترمذي وائي دا حديث دكعب بن عجره په روايت غريب دي او مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي او صحيح هغه روايت دي كوم چي دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دماښام دمونځ نه پس دوه ركعاتونه پخپل كور كي كول، دحذيفه رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دماښام مونځ اوكړو او بيا يي برابر په مسجد كي مونځ كول جاري اوساتل تر څو چي يي دماخوستن مونځ نه وو كړي تر هغه وخته پوري ، په دي حديث كي په دي خبره دلالت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دماښام دمونځ نه پس دوه ركعاتونه په مسجد كي اداء كړي وو.

**كعب ابن عجره رضي الله عنه حالات**

نوم كعب كنيه ابو محمد په يوه غزوه كي يي لاس كټ شوى وو او دسر ويخته يي ګنړ وو

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٣٠٣ (١٣٠٠) . سنن النسائي في قيام الليل ( ١٦٠١) . (تحفة الأشراف : ١١١٠٤)

،طبقات ابن سعد،

دهجرت نه پس مسلمان شوی وو او دمسلمانيدو نه پس يي په تمامو غزواتو کي شرکت کړی دی په غزوه حديبيه کي هم درسول الله صلي سره موجود وو دويختو دګنړوالي په وجه يي په سر کي دومره ډيري سپړي شوي وي چي په مخ به يي راروانی وي نو رسول الله ورته دويختو کټ کولو مشوره ورکړه نو بيا يي ددينه پس کټ کړل دده په سيرت کي دحق حمايت او حب رسول سر پهرست دي دکعب رضي الله عنه په اخلاقو کي دا دوه ځيزونه ډير روښانه دي چي يو ځل درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو چي درسول الله رنګ دلوږي په وجه تغير شوی وو نو دی فورا پوهه شو او ديهودي اوښ يي اوبه کولو ده به اوښ ته يوه يوه اوبه په يوه کجوره اچولي کله چي يو څو کجوري ورسره جمع شوي نو هغه يي درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضري کړي (الاصابه).

دهجرت په ۵۱کال کي کله چي دده عمر ۷۵کلونه وو په مدينه کي وفات شو او درواياتو تعداد يي ۴۷دی

***************

## ۷۳_ باب مَا ذُكِرَ فِي الاِغْتِسَالِ عِنْدَ مَا يُسْلِمُ الرَّجُلُ

### د اسلام قبلولو وخت کي د غسل کولو بيان

**٦٠٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَغَرِّ بْنِ الصَّبَّاحِ، عَنْ خَلِيفَةَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ عَاصِمٍ أَنَّهُ أَسْلَمَ. فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ لِلرَّجُلِ إِذَا أَسْلَمَ أَنْ يَغْتَسِلَ وَيَغْسِلَ ثِيَابَهُ. (١)**

**ترجمه** دقيس بن عاصم رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي ما اسلام قبول کړو او نبي کريم صلي الله عليه وسلم ما ته دبيرو په پاڼړو کي به دخوټکيدلو اوبو دغسل کولو حکم اوکړو.

امام ترمذي واني دا حديث حسن دي او موږ ته صرف په همدي سند معلوم دي او په دي باندي داهل علمو عمل دي دوی واني مستحب داده چي څوك په اسلام کي داخليږي نو غسل

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصلاة ٣٠٢ (١٣٠٠). سنن النسائي في قيام الليل (١٦٠١). (تحفة الأشراف: ١١١٠٤)

دي اوکړي او خپلي جامي دي اووينځي، په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

**تشريح** : په اسلام کي د داخليدونکي دپاره دغسل په حکم کي دفقهاؤ دوه مذاهب دي

(۱) دامام ابو حنيفه او امام شافعي په نزد په اسلام کي د داخليدونکي دپاره غسل کول مستحب او مسنون دي

(۲) دامام مالك او امام احمد په نزد باندي امر دوجوب دپاره دي

او همدا مسئله مړي ته دغسل ورکولو باره کي هم ده چي مړي ته په غسل ورکولو کي دصابن داستعمال څه حکم دي واجب دي او که مسنون دي مذکوره اختلاف په دي کي هم دي

***************

## ٧٤_ بَاب مَا ذُكِرَ مِنَ التَّسْمِيَةِ عِنْدَ دُخُولِ الْخَلَاءِ

### بيت الخلاء ته د داخليدو وخت کي دبسم الله ونيلو بيان

٦٠٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا الحَكَمُ بْنُ بَشِيرِ بْنِ سَلْمَانَ، حَدَّثَنَا خَلَّادٌ الصَّفَّارُ، عَنِ الحَكَمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ النَّصْرِيِّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " سَتْرُ مَا بَيْنَ أَعْيُنِ الجِنِّ وَعَوْرَاتِ بَنِي آدَمَ إِذَا دَخَلَ أَحَدُهُمُ الخَلَاءَ أَنْ يَقُولَ: بِسْمِ اللَّهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِذَاكَ القَوِيِّ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْيَاءُ فِي هَذَا. (١).

**ترجمه** دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دجناتو دسترګو او دانسانانو دشرمګاهونو په مينځ کي پرده داده چي کله په دوئ کي څوك اودس ماتي ته لاړ شي نو بسم الله دي اووائي

امام ترمذي واني دا حديث غريب دي مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي چي سند يي قوي نه دي. او په دي سلسله کي ډير څيزونه دانس رضي الله عنه په واسطه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي.

---

[1] _ سنن ابي داود في الطهارة ٣١ (٥ د ٣). سنن النسائي في الطهارة ١٢٦ (١٨٨). سنن ابن ماجه في الطهارة ٩ (٢٩٧). (تحفة الأشراف: ١١٠٠٠)

*****************

## ۷۵_ باب مَا ذُكِرَ مِنْ سِيمَا هَذِهِ الأُمَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ آثَارِ السُّجُودِ وَالطُّهُورِ

**دقيامت په ورځ دامت محمدي پيژندګلي دسجدو او داودس په نښا ناتو کيږي**

۶۰۷_ حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ أَحْمَدُ بْنُ بَكَّارٍ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، قَالَ: قَالَ صَفْوَانُ بْنُ عَمْرٍو، أَخْبَرَنِي يَزِيدُ بْنُ خُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أُمَّتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ غُرٌّ مِنَ السُّجُودِ مُحَجَّلُونَ مِنَ الْوُضُوءِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن بسررضي الله عنه نه روايت دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دقيامت په ورځ به زما دامت دخلقو تندي دسجدو کولو په وجه او لاسونو خپو دوينځلو په وجه پرقيږي.

امام ترمذي وائي عبدالله بن بسر په روايت دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي

**دعبدالله بن بسر رضي الله عنه حالات**

نوم عبدالله دپلار نوم بسر او د مازن قبيلي سره يي تعلق وو دده مور او پلار او ورور چي علي دی او دده خور صحماء تولو ته رسول الله صلي الله عليه وسلم دملاقات شرف حاصل شوی دی رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوی دپاره ذعمر د اوږدوالي دعا غوښتلي وه ۵۰ روايات ورنه منقول دي چي په بخاري او مسلم کي يو يو ذکر شوي دي.

اصحاب سير ليکلي دي چي دده مرګ ناڅاپي داودس په وخت کي واقع شو دده دپاره نبي کريم صلي الله عليه وسلم دعمر داوږدوالي دپاره دعا غوښتلي وه نو ځکه يي عمر ډير اوږد وو چي په شام ياحمص کي په ۸۸هجري کي وفات شو او عمر يي ۹۴ کلونو ته رسيدو او دبعضو په نزد دده عمر سل کاله وو (تهذيب التهذيب).

## ۷۶_ باب مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ التَّيَمُّنِ فِي الطُّهُورِ

**اودس دښي طرف اندامونو وينځلو نه شروع کول مستحب دي**

۶۰۸_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ أَبِي الشَّعْثَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُحِبُّ التَّيَمُّنَ فِي طُهُورِهِ إِذَا تَطَهَّرَ، وَفِي تَرَجُّلِهِ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۵۲۰۴)

إِذَا تَرَجَّلَ وَفِي انْتِعَالِهِ إِذَا انْتَعَلَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو الشَّعْثَاءِ اسْمُهُ سُلَيْمُ بْنُ أَسْوَدَ الْمُحَارِبِيُّ. ([1])

**ترجمه**: دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به كله اودس كولو نو پخپل اودس كي او چي كله به يي ويخته گومنزول نو په گومنزولو كي به يي او چي كله به يي پيزار پخپو كول نو په پيزار خپو كولو كي به يي دښي طرف نه شروع كول خوښول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي اود ابو الشعثاء نوم سليم بن اسود محاربي دى.

***************

## ٧٧- باب قَدْرِ مَا يُجْزِئُ مِنَ الْمَاءِ فِي الْوُضُوءِ

### داودس دپاره دخومره اوبو استعمال كافي دي

٦٠٩- حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عِيسَى، عَنِ ابْنِ جَبْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " يُجْزِئُ فِي الْوُضُوءِ رِطْلَانِ مِنْ مَاءٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ شَرِيكٍ عَلَى هَذَا اللَّفْظِ. وَرَوَى شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَبْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يَتَوَضَّأُ بِالْمَكُّوكِ وَيَغْتَسِلُ بِخَمْسَةِ مَكَاكِيَّ " وَرُوِي عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عِيسَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَبْرٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ وَيَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ " وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ شَرِيكٍ. ([2])

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په اودس كي دوه رطله اوبو استعمال كافي دي.

---

[1] - صحيح البخاري في الوضوء ٣١ (١٦٨). والصلاة ٤٧ (٤٢٦). والأطعمة ٥ (٥٣٨٠). واللباس ٣٨ (٥٨٥٤). و٧٧ (٥٩٢٦). صحيح مسلم في الطهارة ١٩ (٢٦٨). واللباس ٣٣ (٢٠٩٧). سنن ابي داود في اللباس ٣٣ (٤١٤٠). سنن النسائي في الطهارة ٨٩ (١١٢). والغسل ١٧ (٤١٩). والزينة ٦٣ (٥٠٦٣). سنن ابن ماجه في الطهارة ٤٢ (٤٠١). (تحفة الأشراف: ١٧٦٥٧). مسند احمد (٦ في ٩٤، ١٣٠، ١٤٧، ١٨٨، ٢٠٢، ٢١٠). والمؤلف في الشمائل ١٠ (٨٠)

[2] - تفرد بهذا اللفظ (تحفة الأشراف: ٩٦٣)

امام ترمذي واني دا حديث په دي الفاظو غريب دي مونږ ته صرف دشريك په سند معلوم دي. شعبه دعبدالله بن عبدالله نه او هغه دانس بن مالك نه نقل كړي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په يو مكوك اوبو اودس او په پنځه مكوك اوبو غسل كول.
سفيان ثوري په سند دعبدالله بن عيسي عن عبدالله بن جبير عن انس روايت نقل كړي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به په يو مد اوبو اودس او په يو صاع اوبو غسل كولو دا روايت دشريك دروايت نه زيات صحيح دي.

**تشريح** : مكوك د دوه رطلونو په مقدار د يوي خاص پيماني نوم دى.

****************

## ٧٨ـ باب مَا ذُكِرَ فِي نَضْحِ بَوْلِ الْغُلاَمِ الرَّضِيعِ

### دېږ خوړونكي ماشوم دمتيازو داوبو پونه كول كافي دي

٦١٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ. حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي حَرْبِ بْنِ أَبِي الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ فِي بَوْلِ الْغُلاَمِ الرَّضِيعِ: "يُنْضَحُ بَوْلُ الْغُلاَمِ، وَيُغْسَلُ بَوْلُ الْجَارِيَةِ". قَالَ قَتَادَةُ: وَهَذَا مَا لَمْ يَطْعَمَا فَإِذَا طَعِمَا غُسِلاَ جَمِيعًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. رَفَعَ هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ قَتَادَةَ، وَأَوْقَفَهُ سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (١)

**ترجمه** : دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دېږ خوړونكي ماشوم دمتيازو باره كي اوفرمائيل دهلك په متيازو دي داوبو پونه اوكړي شي او دجينۍ متيازي دي اووينځلي شي، قتاده واني دا حكم هغه وخت كي دي كله چي دواړه خوراك شروع كړي نه وي مګر چي خوراك شروع كړي بيا به ددواړو متيازي وينځلي شي
امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي، هشام دستوايي دا حديث دقتاده نه نقل كړي دي او سعيد بن ابو عروبه دقتاده نه موقوفا نقل كړي دي او هغوی دا مرفوع كړي نه دي

****************

## ٧٩ـ باب مَا ذُكِرَ فِي مَسْحِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ نُزُولِ الْمَائِدَةِ

---

1 سنن ابي داود في الطهارة ١٣٧ (٣٧٧) . سنن ابن ماجه في الطهارة ٧٧ (٥٢٥) . (تحفة الأشراف : ١٠١٣١) . مسند احمد ا في ٩٧)

**دسورة ماندي د نزول نه پس هم د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په موزو باندي دمسح كولو بيان**

٦١١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ مُقَاتِلِ بْنِ حَيَّانَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، قَالَ: رَأَيْتُ جَرِيرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ، قَالَ: فَقُلْتُ لَهُ فِي ذَلِكَ، فَقَالَ: " رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ فَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ ". فَقُلْتُ لَهُ: أَقَبْلَ الْمَائِدَةِ أَمْ بَعْدَ الْمَائِدَةِ، قَالَ: مَا أَسْلَمْتُ إِلَّا بَعْدَ الْمَائِدَةِ. ([1])

**ترجمه** : شهر بن حوشب وائي ما جرير بن عبدالله رضي الله عنه اوليدو چي اودس يي اوكړو او په موزو يي مسح اوكړه چنانچه ما ورنه په دي باره كي تپوس اوكړو نو ويي فرمانيل ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي اودس يي اوكړو او پخپلو دواړو موزو يي مسح اوكړه ما ورنه تپوس اوكړو چي دا دسورة المائده دنزول نه دمخكي وخت خبره ده او كه ددي دنزول نه پس؟ هغوئ اوفرمانيل ما خو دسورة مائدي دنزول نه پس اسلام قبول كړي دي.

**دشهر بن حوشب رضي الله عنه حالات**

نوم شهر دپلار نوم حوشب دى او مشهور تابعي دى دخپلي زماني دلويو علماؤ دجملي نه دى دعثمان بن عفان رضي الله عنه دخلافت په زمانه كي پيدا شوى وو انتهائي متقي انسان وو. ونيلى شوي دي چي يو واده نه تلى وو او هلته ګاني ونيلى كيدي نو فورا روان شو. امام احمد بن حنبل وائي چي پخپل ښار كي ثقه دى دده روايات صحيح دي هغه همدا خبره معاويه بن صالح، احمد بن زبيريه باره كي هم كړي ده، او يحيي بن معين هم دده په باره كي كړى ده په ۱۱۲ هجري كي وفات شوى دى صرف دوه روايتونه ورنه منقول دي

****************

٦١٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا نُعَيْمُ بْنُ مَيْسَرَةَ النَّحْوِيُّ، عَنْ خَالِدِ بْنِ زِيَادٍ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ هَذَا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُقَاتِلِ بْنِ حَيَّانَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ. ([2])

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۳۲۱۳)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۳۲۱۳)

**ترجمه**: په دي سند سره هم دخالد بن زياد نه دسابقه روايت هم معني روايت مروي دي، امام ترمذي وائ دا حديث غريب دي مونږ يي صرف په دي مضمون دمقاتل بن حيان په سند پيژنو چي هغوئ دا د شهر بن حوشب نه نقل كړي دي.

****************

## ٨٠ـ باب مَا ذُكِرَ فِي الرُّخْصَةِ لِلْجُنُبِ فِي الأَكْلِ وَالنَّوْمِ إِذَا تَوَضَّأَ

### جنب چي اودس اوكړي نوهغه ته دخوراك كولو او اوده كيدلو اجازت دي

٦١٣ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عَطَاءٍ الْخُرَاسَانِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ عَمَّارٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رَخَّصَ لِلْجُنُبِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَشْرَبَ أَوْ يَنَامَ أَنْ يَتَوَضَّأَ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه**: دعمار رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم جنب ته چي كله خوراك څښاك يا اوده كيدل غواړي ددي خبري اجازت وركړي دي چي دي د مونځ دپاره د اودس پشان اودس اوكړي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

## ٨١ـ باب مَا ذُكِرَ فِي فَضْلِ الصَّلَاةِ

### دمونځ دفضائلو بيان

٦١٤ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ الْقَطَوَانِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا غَالِبٌ أَبُو بِشْرٍ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ عَائِذٍ الطَّائِيِّ، عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُعِيذُكَ بِاللَّهِ يَا كَعْبَ بْنَ عُجْرَةَ مِنْ أُمَرَاءَ يَكُونُونَ مِنْ بَعْدِي، فَمَنْ غَشِيَ أَبْوَابَهُمْ فَصَدَّقَهُمْ فِي كَذِبِهِمْ وَأَعَانَهُمْ عَلَى ظُلْمِهِمْ، فَلَيْسَ مِنِّي وَلَسْتُ مِنْهُ وَلَا يَرِدُ عَلَيَّ الْحَوْضَ، وَمَنْ غَشِيَ أَبْوَابَهُمْ أَوْ لَمْ يَغْشَ فَلَمْ يُصَدِّقْهُمْ فِي كَذِبِهِمْ وَلَمْ يُعِنْهُمْ عَلَى ظُلْمِهِمْ فَهُوَ مِنِّي وَأَنَا مِنْهُ وَسَيَرِدُ عَلَيَّ الْحَوْضَ، يَا كَعْبَ بْنَ عُجْرَةَ الصَّلَاةُ بُرْهَانٌ وَالصَّوْمُ جُنَّةٌ حَصِينَةٌ، وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيئَةَ كَمَا يُطْفِئُ الْمَاءُ النَّارَ، يَا كَعْبَ بْنَ عُجْرَةَ إِنَّهُ لَا يَرْبُو لَحْمٌ نَبَتَ مِنْ

---

1. سنن ابي داود في الطهارة ٨٩ (٢٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٧١)

سُحْتٍ إِلَّا كَانَتِ النَّارُ أَوْلَى بِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. مِنْ هَذَا الْوَجْهِ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مُوسَى. وَأَيُّوبُ بْنُ عَائِذٍ الطَّائِيُّ يُضَعَّفُ. وَيُقَالُ: كَانَ يَرَى رَأْيَ الْإِرْجَاءِ. وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَلَمْ يَعْرِفْهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مُوسَى وَاسْتَغْرَبَهُ جِدًّا. ([1])

**ترجمه** : دكعب بن عجره رضي الله عنه نه مروي دي چي ماته نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي كعب زه تا لره په الله تعالي باندي دداسي اميرانو او حاكمانو نه پناه غواړم كوم چي به زما نه پس راځي څوك چي ددوئ دروازو ته لاړو او ددوئ د دروغو تصديق يي اوكړو او ددوئ سره يي ددوئ په ظلم كي تعاون اوكړو نو هغه به زما د امت نه نه وي او نه زه ددوئ دډلي نه يم او نه به هغوئ په حوض كوثر كي ماته راځي او كه څوك ددوئ دروازي ته لاړو او نه يي ددوئ د دروغو تصديق اوكړو او نه يي دظلم په معامله كي ددوئ مدد اوكړو داسي كسان زمانه دي او زه ددوئ نه يم او ډيره نژدي ده چي هغوئ به په حوض كوثر كي ماته راشي. او اي كعب! مونځ دليل دي او روژه مضبوط ډال دي او صدقه ګناهونو لره داسي مړه كوي څنګه چي اوبه اور لره مړكوي او اي كعب كومه غوښه چي دحرامو نه جوړه شوي وي اور دهغي دپاره زيات مناسب دي.

امام ترمذي واني دا حديث په دي سند حسن غريب دي او مونږ يي صرف دعبيدالله بن موسي په سند پيژنو. ايوب بن عائذ طائي ضعيف دي او وئيلي شوي دي چي دهغه خيالات او عقائد دمرجئه قبيلي سره برابريدل .ما دامام بخاري نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو نو هغه ته صرف دعبيدالله بن موسي سند معلوم وو او هغه دا روايت ډير غريب اوګنړلو

****************

۶۱۵_وقَالَ مُحَمَّدٌ: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مُوسَى، عَنْ غَالِبٍ بِهَذَا. ([2])

**ترجمه** امام بخاري واني مونږ دا روايت صرف دابن نمير په سند پيژنو چي هغه دعبيدالله بن موسي نه نقل كړي دي او عبيدالله دغالب نه نقل كړي دي.

****************

## ۸۲_ باب مِنْهُ

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۱۱۰۹)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۱۱۰۹)

## دمونځ دفضائلو متعلق يو بل باب

٦١٦ـ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْكِنْدِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، أَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنِي سُلَيْمُ بْنُ عَامِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا أُمَامَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ، فَقَالَ: "اتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ وَصَلُّوا خَمْسَكُمْ وَصُومُوا شَهْرَكُمْ وَأَدُّوا زَكَاةَ أَمْوَالِكُمْ وَأَطِيعُوا ذَا أَمْرِكُمْ تَدْخُلُوا جَنَّةَ رَبِّكُمْ". قَالَ: فَقُلْتُ لِأَبِي أُمَامَةَ مُنْذُ كَمْ سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الْحَدِيثَ، قَالَ: سَمِعْتُهُ وَأَنَا ابْنُ ثَلَاثِينَ سَنَةً. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دسليم بن عامر بيان دي فرمائي چي ما دابو امامه رضي الله عنه نه اوريدلي دي فرمائيل يې چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دحجة الوداع دخطبي په موقع اوريدلي دي فرمائيل يې چي "تاسو دخپل رب نه په ويره كي اوسئ او پنځه وخته مونځ كوئ او درمضان دمياشتي روژي نيسئ او دخپل مال زكوة اداء كوئ او دامير اطاعت كوئ ددې عملونو په كولو به تاسو دخپل رب په جنت كي داخل شئ" ما دابو امامه رضي الله عنه نه تپوس اوكړو تا دڅو كالو په عمر كي دا حديث درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي وو؟ ابو امامه اوفرمائيل ما دهغوئ نه دا حديث هغه وخت اوريدلي وو كله چي زما عمر ديرش كاله وو. امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**لغات** يخطب: خطب يخطب دنصر نه په معني دوعظ او تقرير او نصيح كولو اوخطبي وركولو دي. ادّدوا: ادي اديا د ضرب نه په معني د ادا كولو او رسيدلو دي

امراء: جمع دامير ده په معني دحكم كونكي او سردار دقوم.

**تشريح** يخطب في حجة الوداع. يعني رسول الله په حجة الوداع كي خطبه وركوله حجة الوداع ورته ځكه وائي چي دودع معني رخصتول دي او رسول الله صلي الله عليه وسلم هم ددي حج نه پس ددنيا نه رخصت شوي دي دي حج ته حجة الاسلام هم ونيلي شي.

اتقوا الله دالله نه ويريږئ ځكه چي تقوي دتمامو اوامرو ادا كولو او نواهي نه دمنع كيدلو دپاره

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٨٦٨)

يو اكسير دي
واطيعوا امرانكم تدخلوا جنة ربكم ، يعني دخپلو اميرانو اطاعت اوکړئ نو دخپل رب جنت ته به داخل شئ علماؤ ليکلي دي کله چي دامير اطاعت په شرعي طريقه نافذ شي نو په جائزو کارونوکي به يې اطاعت ضروري وي البته که دناجائز کار حکم اوکړي نو دهغې منل به جائز نه وي او په دي خبره امام نووي اجماع نقل کړي ده ددي حديث نه دا هم معلومه شوه چي کله امير دامارت دشرائطو سره منتخب کړي شي نو بيابه دده دامارت نه بغاوت کول جائز نه وي ترڅو چي ددي امير نه دکفر بواح ظهور نه وي شوي.

***************

## كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

عبادات په درې قسمه دی (۱) بدنی لکه مونځ. روژه (۲) مالی: لکه زکاة (۳) ددې دواړو نه مرکب لکه حج. مګر د کتاب الصلاة نه پس کتاب الزکاة ځکه ذکر کړې شو چی په دې ترتیب کي د الله تعالی د کلام اود رسول اللهﷺ د کلام د دواړو اقتداء کیږی لکه: اقيموا الصلاة واتوا الزكوٰة . وركوئ.

او "بني الاسلام على خمس شهادة أن لاإله إلا الله وأن محمدًا رسول الله وإقام الصلاة وإيتاء الزكاة. ألحديث"

د زکاة لغوی معنی د طهارت ده.

د شريعت په اصطلاح کي زکاة وائی د نصاب حولی يو جزء فقير او دده په شان د بل په ملك کي ورکولو ته.اوبعض وائی چی زکاة د مال د هغه مقدار نوم دې.کوم چی د فقير دپاره اوبنکلي شوې وی.

دزکاة فرضيت په کتاب الله.د رسول اللهﷺ په احاديثو.او په اجماع امت درې واړو سره ثابت دې.کتاب الله مثلاً الله تعالی فرمانيلي دی: واتوا الزكاة،زکواة

او په سنت نبوي سره هم ثابت دي او متعدد احاديث وربانديي دلالت کوي مثلاً:

(۱) "عن سليم بن عامر قال سمعت أبا امامة(رضي الله عنه) يقول سمعت رسول اللهﷺ يقول فى حجة الوداع إتقوا الله وصلوا خمسكم وصوموا شهركم وأدوا زكاة أموالكم وأطيعوا إذا امرتم تدخلوا جنة ربكم قال قلت لأبي امامة منذ كم سمعت هذا من رسول اللهﷺ فقال سمعته وأنا إبن ثلاثين سنة" (رواه الترمذی)

سليم بن عامر(رضي الله عنه) فرمائی چی ما د ابوامامه(رضي الله عنه) نه واوریدل.فرمائیل نې چی ماد رسول اللهﷺ نه دحجة الوداع په موقع باندې دا واوریدل چی فرمائیل یې چی د الله تعالی نه او یریږئ.اوخپل پنځه واړه مونځونه اداکوئ.اود رمضان روژې نیسی.اود خپلو مالونو زکاة ورکوئ.اوکله چی تاسوته حکم اوکړئ شی.نواطاعت کوئ د خپل رب.جنت ته به داخل شئ.سلیم وائی چی ما ابوامامه(رضي الله عنه) ته اووئیل.تاسو دا د رسول اللهﷺ نه په څومره عمرکې اوریدلی دی؟ ابوامامه(رضي الله عنه) اووئیل چی ما دا د دیرشو کالو په عمرکې اوریدلی دی.

(۲) عن ابن عمر (رضي الله عنه مرفوعاً بنی الإسلام علی خمس شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله وأقام الصلاة وإيتاء الزكاة وحج البيت وصوم رمضان (رواه احمد والشيخان والترمذی والنسائی)

دذکات شرائط:

(۱) د زکاة د وجوب سبب د نصاب نامی مالك کیدل دی.اوددې شرطونه

(۲) د صاحب نصاب ازادکیدل.

(۳) بالغ کیدل

(۴)عاقل کیدل

(۵)مسلمان کیدل

(۶)د قرض نه فارغ کیدل

(۷)اوپه مال نصاب باندې د کال تیریدل دی.

******************

## ١ـ بَاب مَا جَاءَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَنْعِ الزَّكَاةِ مِنَ التَّشْدِيدِ

### دزکواة په نه ورکولو وعید

٦١٧ـ حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ التَّمِيمِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنِ الْمَعْرُورِ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: جِئْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ جَالِسٌ فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ، قَالَ: فَرَآنِي مُقْبِلًا، فَقَالَ: " هُمُ الأَخْسَرُونَ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ " قَالَ: فَقُلْتُ: مَا لِي لَعَلَّهُ أُنْزِلَ فِيَّ شَيْءٌ، قَالَ: قُلْتُ: مَنْ هُمْ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " هُمُ الأَكْثَرُونَ إِلَّا مَنْ قَالَ: هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا ". فَحَثَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَعَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ، ثُمَّ قَالَ: " وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَا يَمُوتُ رَجُلٌ فَيَدَعُ إِبِلًا أَوْ بَقَرًا لَمْ يُؤَدِّ زَكَاتَهَا، إِلَّا جَاءَتْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْظَمَ مَا كَانَتْ

وَأَسْمَنَهُ. تَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا وَتَنْطَحُهُ بِقُرُونِهَا. كُلَّمَا نَفِدَتْ أُخْرَاهَا عَادَتْ عَلَيْهِ أُولاَهَا حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ". وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مِثْلُهُ. وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: "لُعِنَ مَانِعُ الصَّدَقَةِ" وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ، عَنْ أَبِيهِ وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَاسْمُ أَبِي ذَرٍّ جُنْدَبُ بْنُ السَّكَنِ وَيُقَالُ ابْنُ جُنَادَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مُوسَى عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ عَنْ حَكِيمِ بْنِ الدَّيْلَمِ عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ مُزَاحِمٍ. قَالَ: "الأَكْثَرُونَ أَصْحَابُ عَشَرَةِ آلاَفٍ". قَالَ: وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ مَرْوَزِيٌّ رَجُلٌ صَالِحٌ.

(١)

**ترجمه**: د ابو ذر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او هغه دكعبي د ديوال سوري ته ناست وو زه چي يي دراتلو په حال كي اوليدلم نو ويي فرمائيل دكعبي په رب مي دي قسم وي دقيامت په ورځ به همدا خلق په خساره كي وي ما په زړه كي اوونيل شايد زما باره كي به څه نازل شوي وي ما عرض اوكړو چي كوم خلق زما مور او پلار دي په تا قربان شي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل همدا خلق څوك چي ډير مال والا دي مګر علاوه دهغه خلقو نه څوك چي داسي داسي اوكړي، او پخپلو دواړو لاسونو يي د خان په مخامخ او ګس او ښي طرف ته دلپي ډكولو اشاره اوكړه او بيا يي اوفرمائيل په هغه ذات مي دي قسم وي دچا په اختيار كي چي زما روح دي هر څوك چي اوښه او غوا پريږدي او مړ شي او زكوة يي اداء كړي نه وي نو دقيامت په ورځ به دا د خپل مخكني حالت نه په زيات دروند حالت كي راشي او پخپلو ښكرو به ده لره اووهي او په خپو به ورباندي اوګرځي هر كله چي اخري څاروي هم په ده باندي تير شي نو اولني به ورباندي دوباره راوګرځي تردي چي دخلقو مينځ كي به فيصله اوكړي شي.

امام ترمذي وائي دابوذر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابوهريره رضي الله عنه نه هم ددي روايت هم معني روايت مروي دي او دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي په زكواة منع كونكي باندي لعنت شوي دي، دا حديث قبيصه بن حلف دخپل پلار نه او هغه دده دنيكه نه نقل كړي دي، دارنګي دجابر بن عبدالله او عبدالله بن مسعود رضي الله عنه

---

١ ـ صحيح البخاري في الزكاة ٣٣ (١٤٦٠)، الأيمان والنذور ٣ (٦٦٣٨)، سنن النسائي في الزكاة ٢ (٢٤٤٢)، و١١ (٢٤٥٨)، سنن ابن ماجه في الزكاة ٢ (١٧٨٥)، (تحفة الأشراف: ١١٩٨١)، وأخرجه صحيح مسلم في الزكاة ٩ (٩٩٠).

نه هم په دي باب کي احاديث مروي دي، ضحاك بن مزاحم وائي د "الاكثرون" نه مراد هغه خلق دي دچا سره چي لس زره درهم يا ديناروي.

**تشريح** : په قران کريم کي د زکاة ذکر په ۳۳ مقاماتو کي راغلى دى ، د زکاة د فرضيت نه منکر کافر دى، او زکاة نه ادا کونکى فاسق او فاجر دى، د زکاة شرائط مونږ په ماقبل صفحاتو کي ذکر کړل.

د زکاة بعضي رموز او اسرار په ورکونکي پوري خاص دي او بعضي په اخستونکي پوري خاص دي ، او خصوصيات د زکاة په اخستونکي او ورکونکي کي مشترك دي

په زکاة کي د د زکاة ورکونکي متعلق اسرار دادي:

(۱) په زکاة ورکولو سره انسان کي بخل کميږي

(۲) په زکاة ورکولو سره د الله تعالي قرب حاصليږي

(۳)په زکاة ورکولو سره د الله د توحيد اقرار کيږي

(۴)په زکاة ورکولو سره په مال کي برکت پيدا کيږي. او ددي په سبب په مال کي کمي نه راخي

(۵)په زکاة ورکولو سره باقي پاتي شوى مال حلاليږي او پاکيږي

په زکاة کي د د زکاة اخستونکي متعلق اسرار دادي

(۱)په زکاة ورکولو سره د فقيرانو او مسکينانو اعانت کيږي

(۲)په زکاة ورکولو سره خلق اسلام قبلولو ته راغب کيږي، وغيره.

طبراني په الاوسط کي او ابن عدي په الکامل کي اوابن مردويه اوبيهقي په سنن کي دابن عمر رضي الله عنهما په روايت سره درسول الله صلي الله عليه وسلم دا فرمان نقل کړي دي چي دکوم مال زکاة ادا کړي شي هغه کنز نه دي يعني په کوم کنز چي دعذاب وعيد راغلي دي هغه نه دي

بغوي ليکلي دي چي مجاهد دابن عباس رضي الله عنهما بيان نقل کړي دي چي کله ايت کريمه يکنزون الذهب والفضة نازل شو نومسلمانانوته داحکم مشکل ښکاره شو او ويي وئيل داسي څوك کولي شي چي خپلو بچوته څه پري نږدي نودي تذکره عمرفاروق رضي الله عنه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اوکړه نورسول الله اوفرمائيل زکاة خو الله تعالي هم ددي دپاره فرض کړي دي چي ستاسوباقي مال پاك شي ،يعني دزکاة اداکو'و نه پس باقي مال جمع کول ممنوع نه دي اوبغير دذينه مال ناپاك دي، داحديث ابوداود ، ابويعلي. ابن ابي حاتم، حاکم، ابن مردويه، اوبيهقي هم دابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړي دي مګر پدي کي دومره اضافه ده چي دميراث دحصو فرضيت خو شوي دي ددي دپاره چي ستاسو دپاتي شوو وارثانودپاره دا مال ترکه شي . بغوي ليکلي دي چي ابن عمر رضي الله عنهما فرمائيلي دي

زه ددي خبري پرواه نه ساتم چي كه زماسره داحد دغر برابر سره زر وي خوپدي شرط چي زه يي اوشميرم اوزكاة يي ادا كړم اودالله تعالي په اطاعت عمل اوكړم.
ابن ابي حاتم اوابن حبان او ابوشيخ دعلي رضي الله عنه قول نقل كړي دي چي دتركي كوم مال دڅلورزره درهمو نه زيات وي هغه كنز دي اوزكاة يي اداشوي وي اوكه نه وي ادا شوي او كوم مال چي ددي مقدار نه كم وي هغه نفقه ده.
دابوذر رضي الله عنه نه مرفوع حديث مروي دي چي چاسره اوسپين زر په تركه كي پريخودل نوپه همدي باندي به دي دقيامت په ورځ داغلي كيږي (اخرجه البخاري في تاريخه وابن جرير وابن مردويه)
دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څوك چي دسرو اوسپينو مالك وي اوددي حق (زكاة) ادانكړي نودقيامت په ورځ به ددي سپينو اوسرو زرو نه لوي كمرونه جوړ كړي شي اوددوزخ په اور كي به ګرم كړي شي او ددي كس تندي اوډډي به پدي داغلي كيږي اوهركله چي يخيږي نودوباره به دداغلو دپاره ګرمولي شي اوداعمل به دده سره تمامه ورځ جاري وي چي مقدار يي پنځوس زره كاله دي اخرداچه كله دبنده فيصله اوشي نوده ته به دده لار اوښودلي شي يابه جنت ته دتلو وي يابه دوزخ ته دتلو وي، عرض اوكړي شو اي دالله رسوله داوښانو څه حكم دي نو ويي فرمائيل اوكه داوښانو والا داوښانو حق (زكاة ادانكړي) اوداوبو وركولو په ورځ يي لوشي اومسكينانو ته تري نه وركوي نوداهم داوښانو دحقونو نه دي دقيامت په ورځ به په يو اوار ميدان كي به دي داوښانو په وړاندي څملولي شي او اوښان به يي ټول موجود وي يوبچي به يي هم ورك نه وي اودا اوښان به پده باندي اوګرځي اودل به يي كړي اوپه خوله به يي اوچيچي او دا سلسله به نه ختميږي اوتمامه ورځ به جاري وي اوهغه داسي ورځ ده چي مقدار به يي پنځوس زره كاله وي اخر داچه كله دبنده فيصله اوشي نوده ته به دده لار اوښودلي شي يابه جنت ته دتلو وي يابه دوزخ ته دتلو وي. عرض اوكړي شو اي دالله رسوله دغواؤ او ميښو اوچيلو ګډوڅه حكم دي نو ويي فرمائيل كه چري ددي مالك ددي حق ادا نكړي نو په اوار ميدان كي به ددي څاروو په وړاندي زوړند كړي شي اوټول څاروي به يي موجود وي يوبه پكي هم غير حاضر نه وي اوپه دوئ كي به هيڅ يوداسي نه وي چي په ښكرو به يي نه وهي اونه به په دي څاروو كي كوم يو بغير ښكرو والا وي اونه به پكي دماتو ښكرونووالا وي دا تمام څاروي به دغه كس لره په ښكرونو وهي اوپه خپو كي به يي دل كړي اوله حصه به يي ختمه شي نو وروستئ حصه به يي رامخكي شي اودا عذاب به پوره ورځ جاري وي چي مقدار يي دپنځوسو زرو كالو سره برابر دي اخر چي كله فيصله اوشي نوده ته به دده دجنت يادوزخ لار اوښودلي شي (رواه مسلم). (تفسير مظهري سورة التوبة: ٣٤)

## د ابوذر رضي الله عنه د ژوندکۍ حالات

نوم جندب کنیه ابو ذر دپلار نوم جناده او دمور نوم یي رمله وو چي دبني غفار قبیلي سره یي تعلق وو . په شروع کي مشهور ډاکو وو خو یك دم یي په ژوندکۍ کي انقلاب راغی پخپله دابوذر رضي الله عنه بیان دی چي داسلام راوړو نه دري کاله مخکي هم ما مونځونه کول (طبقات ابن سعد).

کله چي درسول الله ددعوت نه خبر شو نو خپل ورور انیس یي دتحقیق کولو دپاره اولیږلو او پخپله دعلي رضي الله عنه سره ملاؤ شو او درسول الله په خدمت کي حاضر شو او اسلام یي قبول کړو نو رسول الله دی دده قوم ته دتبلیغ دپاره اولیږلو ددینه پس به یي خپل ټول وخت په تبلیغ او دعوت کي خرچ کولو تردي چي نیمه قبیله په هغدي وخت مسلمانه شوه او نیمه قبیله یي دهجرت نه پس مسلمانه شوه (مسند احمد).

درسول الله دهجرت نه پس هغوی مدیني ته هجرت کړی دی (طبقات ابن سعد).

ابوذر یوتارك الدنیا او زاهد انسان وو درسول الله او ابوبکر په زمانه کي په مدینه کي پاتي شوی وو او بیا یي شام ته هجرت کړی وو.

وفات: کله چي دده طبعیت خراب شو نو ښځي یي ژړل چي په دي صحرا کي به څوك زمونږه انتظام کوي هغه ورته اووئیل زه تاسو ته زیری درکوم چي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چي په تاسو کي به یو تن په صحرا کي مري او هلته به دمسلمانانو یو جماعت راځي او هغوی به دده تدفین کوي زما نه چي علاوه کوم خلق وو هغوی په ابادۍ کي مره شوي دي چنانچه همداسي اوشول عبدالله بن مسعود دیوي ډلي سره راغی او هغه عراق ته روان وو په دده باندي یي جنازه اوکړه او هم دلته یي دفن کړو (مستدرك حاکم).

مرویات: دده درروایاتو شمیر ۲۸۱ دی چي دولس متفق علیه دي او دوه په بخاري کي دي او اوه په مسلم کي دي (تهذیب الکمال ۴۴۹).

****************

## ۲ـ باب مَا جَاءَ إِذَا أَدَّيْتَ الزَّكَاةَ فَقَدْ قَضَيْتَ مَا عَلَيْكَ

### کله چي دي اداء کړو زکواة نو یقینا چي اداء کړه تا فریضه

٦١٨ـ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ الشَّيْبَانِيُّ الْبَصْرِيُّ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ. أَخْبَرَنَا عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ دَرَّاجٍ، عَنِ ابْنِ حُجَيْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَدَّيْتَ زَكَاةَ مَالِكَ فَقَدْ قَضَيْتَ مَا عَلَيْكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ

النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ أَنَّهُ ذَكَرَ الزَّكَاةَ. فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا؟ فَقَالَ: "لَا إِلَّا أَنْ تَتَطَوَّعَ". وَابْنُ حُجَيْرَةَ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ حُجَيْرَةَ الْمَصْرِيُّ. ([1])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي تا زكواة اداء كړو نو ستا په ذمه چي كومه فريضه وه دا ستا نه اداء شوه
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په نورو سندونو هم مروي دي چي رسول الله دزكواة ذكر اوكړو نو يو كس عرض اوكړو اي دالله رسوله ايا په ما باندي ددينه علاوه هم نور څه شي فرض شته ورته يي اوفرمائيل نه علاوه ددينه چي ته په نفلي طور چاته څه وركړي (حديث وړاندي راروان دي) .

***************

٦١٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كُنَّا نَتَمَنَّى أَنْ يَأْتِيَ الْأَعْرَابِيُّ الْعَاقِلُ، فَيَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ عِنْدَهُ، فَبَيْنَا نَحْنُ كَذَلِكَ إِذْ أَتَاهُ أَعْرَابِيٌّ فَجَثَا بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ إِنَّ رَسُولَكَ أَتَانَا فَزَعَمَ لَنَا أَنَّكَ تَزْعُمُ أَنَّ اللَّهَ أَرْسَلَكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ". قَالَ: فَبِالَّذِي رَفَعَ السَّمَاءَ وَبَسَطَ الْأَرْضَ وَنَصَبَ الْجِبَالَ آللَّهُ أَرْسَلَكَ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ". قَالَ: فَإِنَّ رَسُولَكَ زَعَمَ لَنَا أَنَّكَ تَزْعُمُ أَنَّ عَلَيْنَا خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ". قَالَ: فَبِالَّذِي أَرْسَلَكَ آللَّهُ أَمَرَكَ بِهَذَا؟ قَالَ: "نَعَمْ". قَالَ: فَإِنَّ رَسُولَكَ زَعَمَ لَنَا أَنَّكَ تَزْعُمُ أَنَّ عَلَيْنَا صَوْمَ شَهْرٍ فِي السَّنَةِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَدَقَ". قَالَ: فَبِالَّذِي أَرْسَلَكَ آللَّهُ أَمَرَكَ بِهَذَا؟ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ". قَالَ: فَإِنَّ رَسُولَكَ زَعَمَ لَنَا أَنَّكَ تَزْعُمُ أَنَّ عَلَيْنَا فِي أَمْوَالِنَا الزَّكَاةَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَدَقَ". قَالَ: فَبِالَّذِي أَرْسَلَكَ آللَّهُ أَمَرَكَ بِهَذَا؟ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ". قَالَ: فَإِنَّ رَسُولَكَ زَعَمَ لَنَا أَنَّكَ تَزْعُمُ أَنَّ عَلَيْنَا الْحَجَّ إِلَى الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ". قَالَ: فَبِالَّذِي أَرْسَلَكَ آللَّهُ أَمَرَكَ بِهَذَا؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ". فَقَالَ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا أَدَعُ مِنْهُنَّ شَيْئًا وَلَا أُجَاوِزُهُنَّ، ثُمَّ وَثَبَ، فَقَالَ

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الزكاة ٣ (١٧٨٨) . (تحفة الأشراف: ١٣٥٩١)

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ صَدَقَ الْأَعْرَابِيُّ دَخَلَ الْجَنَّةَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، سَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، يَقُولُ: قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: فِقْهُ هَذَا الْحَدِيثِ أَنَّ الْقِرَاءَةَ عَلَى الْعَالِمِ وَالْعَرْضَ عَلَيْهِ جَائِزٌ مِثْلُ السَّمَاعِ. وَاحْتَجَّ بِأَنَّ الْأَعْرَابِيَّ عَرَضَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَقَرَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي زمونږ دا خواهش وو چي څوك عقلمند اعرابي راشي او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دمسئلي سوال اوکړي او مونږ ورسره موجود يو مونږ په دغه ورځ درسول الله سره موجود وو چي په دي دوران کي يو اعرابي راغلو او درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي دپرلت وهلو په طريقه کيناستو او تپوس يي اوکړو اي محمد ستاسو قاصد مونږ ته راغلي وو هغه مونږ ته اوونيل چي تاسو دا وائي چي ته الله تعالي په طور درسول رالیږلي يي (ايا دا خبره صحيح ده) نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هو دا صحيح ده اعرابي بيا اوونيل قسم دي په هغه ذات چاچه اسمانونه پورته کړي دي زمکه او غرونه يي غوړولي دي ايا الله تعالي ته په طور درسالت راليږلي يي؟ نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هو، اعرابي اووئيل ستاسر قاصد وائي چي تاسو دا خبره کړي ده چي په مونږ باندي په شپه او ورځ کي پنځه مونځونه فرض دي (ايا دا خبره درسته ده)؟ رسول الله اوفرمائيل هو، اعرابي اووئيل په هغه ذات قسم چاچه ته په طور درسالت راليږلي يي ايا الله تعالي تاته ددي حکم کړي دي رسول الله اوفرمائيل هو، اعرابي اووئيل ستاسو قاصد وائي چي تاسو دا وائي په مونږ باندي په کال کي يوه مياشت روژي نيول فرض دي رسول الله اوفرمائيل هو هم داسي ده (رښتيا وائي) اعرابي بيا اوونيل قسم دي په هغه ذات چاچه ته په طور درسالت راليږلي يي ايا الله تعالي درته ددي حکم کړي دي؟رسول الله اوفرمائيل هو، اعرابي اوونيل ستاسو قاصد وائي چي تاسو دا حکم کوئ چي په مونږ باندي په مالونو کي زکواة واجب دي (ايادا خبره درسته ده) رسول الله اوفرمائيل هو (رښتيا يي ونيلي دي) اعرابي اوونيل په هغه ذات قسم دي چاچه ته په طور درسالت راليږلي يي ايا الله تعالي درته ددي حکم کړي دي رسول الله اوفرمائيل هو ، اعرابي اووئيل ستاسو قاصد وائي چي تاسو دا حکم کوئ چي په مونږ باندي په هر يو کس حج کول دبيت الله فرض دي چي څوك هلته درسيدو طاقت

[1] ـ صحيح البخارى في العلم ٦ (تعليقاً عقب حديث رقم: ٦٣). صحيح مسلم في الإيمان ٣ (١٢). سنن النسائي في الزكاة ١ (٢٠٩٣). (تحفة الأشراف: ٤٠٤). مسند احمد (٣ في ١٤٣، ١٩٣). سنن الدارمي في الطهارة ١ (٦٥٦)

لري (ايا دا رښتيا دي) رسول الله اوفرمائيل هو حج فرض دي اعرابي اووئيل قسم دي په هغه ذات چاچه ته په حق سره راليږلي يي چي زه به په دي څيزونو كي يو هم نه پريږدم او نه به په دي كي دكوم څيز اضافه كوم او ددي خبري په كولو سره واپس لاړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه اعرابي رښتيا وئيلي وي نو جنت ته به داخل شي.

امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند حسن غريب دي او ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم د انس رضي الله عنه نه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم ارشاد مروي دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي فرمائيل يي چي دبعضي اهل علمو قول دي ددي حديث نه دا خبره مستفاد كيږي چي دشاګرد استاذ ته اورول د استاذ نه داوريدو پشان دي هغوئ استدلال داسي كړي دي چي اعرابي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته معلومات پيش كړل نو رسول الله دهغوئ تصديق اوكړو.

**تشريح** : د زكاة نه وركونكو دپاره وعيد:

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاته چي الله تعالي مال وركړي وي اوده ورنه زكاة نه وي وركړي نودقيامت په ورځ به دده دغه مال دګنجي مار په شكل كړي شي چي دسترګودپاسه به يي تور ټكي وي اودامار به په طور دطوق دده په څټ كي واچولي شي او ورنه به تاؤ شي او وائي به زه ستا مال يم اوزه ستا خزانه يم بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ايت كريمه "ولا يحسبن الذين يبخلون الايه" تلاوت كړو رواه البخاري.

دابوذر رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچاسره چي اوښان، غواګاني ، ميښي، ګډي ياچيلۍ وي اودي ورنه زكاة ادا نكړي نودقيامت په ورځ به دوئ ته لوي جثي وركړي شي اورابه وستلي شي اودا څاروي به ده لره پخپلو كي دل كړي اوپه ښكرو به يي وهي كله چي دڅاروو اولنئ ډله لاړه شي نوبله ډله به راشي اوده لره به دل كړي اوداسي به دهغه وخته پوري كيږي ترڅوچه دخلقو فيصله نه وي شوي (بخاري ومسلم). (تفسير مظهري سورة التوبة: ٣٤)

**************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي زَكَاةِ الذَّهَبِ وَالْوَرِقِ

### دسرو زرو او دسپينو زرو د زكواة بيان

٦٢٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَدْ عَفَوْتُ عَنْ صَدَقَةِ الْخَيْلِ

وَالرَّقِيقِ، فَهَاتُوا صَدَقَةَ الرِّقَةِ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمًا، وَلَيْسَ فِي تِسْعِينَ وَمِائَةٍ شَيْءٌ، فَإِذَا بَلَغَتْ مِائَتَيْنِ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ". وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، وَعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ الأَعْمَشُ، وَأَبُو عَوَانَةَ وَغَيْرُهُمَا، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: كِلَاهُمَا عِنْدِي صَحِيحٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ يُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ رُوِيَ عَنْهُمَا جَمِيعًا. [1]

**ترجمه**: دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ما داسونو او د غلامانو زكواة معاف كړي دي نو اوس تاسو دسپينو زرو زكواة اداء كړئ او په هر څلويښتو درهمو كي يو درهم دي او په يو كم دوه سوو كي هيڅ نشته ترڅو پوري چي دوه سوه پوره شوي نه وي دوه سوه چي پوره شي نو پنځه درهمه زكواة به لازم شي.

امام ترمذي وائي اعمش او ابو عوانه وغيره هم دا حديث په سند دابي اسحاق عن عاصم بن ضمره عن علي نقل كړي دي او سفيان ثوري، سفيان بن عيينه او بعضي نورو اهل علمو په سند دابي اسحاق عن الحارث عن علي نقل كړي دي ما دامام بخاري نه په دي حديث باره كي تپوس اوكړو نو ويي وئيل دابو اسحاق سبيعي نه مروي دا دواړه احاديث زما په نزد صحيح دي احتمال دادي چي د حارث او عاصم دواړو نه په يو ځاي نقل كړي شوي وي او بيا ابو اسحاق ددواړو نه روايت كړي وي په دي باب كي دابوبكر او عمرو بن حزم نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح**: **د دوو سوو درهمو په زياتوكي زكاة**

په نصاب دزواندو كي داهل علمو دوه مسلكونه دي:

(١) د امام ابوحنيفه مذهب په نزد كه په دوه سوه درهمو باندي زياتوالي اوشي.نوپه زياتوالي كي به زكاة واجب نه وي.خوكه دزياتوالي مقدار څلويښتو درهموته اورسي. (نوبيا به پكي زكاة واجب وي)نوكه دوه سوه څلويښت درهمه شي.نوپه دي كي به شپږ درهمه واجب وي.بيابه په هرڅلويښتوباندي يو درهم واجب وي.

---

[1] سنن ابي داود في الزكاة ٥ (١٥٧١، ١٥٧٢) . سنن النسائي في الزكاة ١٨ (٢٤٧٩، ٢٤٨٠) . (تحفة الأشراف : ١٠١٣٦) . مسند احمد (١١٣١، ١٣٨) . سنن الدارمي في الزكاة ٧ (١٦٦٩) وأخرجه: سنن ابن ماجه في الزكاة ٤ (١٧٩٠) . مسند احمد (١في١٢١، ١٣٢، ١٣٦ من طريق الحارث عنه (تحفة الأشراف : ١٠٠٣٩)

(۲) اوصاحبين فرمائى چى مطلقاً په زياتوالى كي زكاة واجب دي.كه دا زياتوالى كم وى اوكه ډير.نوكه په دوه سوه درهموباندې يو درهم زياتى شو.نود پنځو درهمو نه علاوه به ديو درهم په څلويښتوحصوكي يوه حصه بله هم واجب وى.او دا دامام شافعى قول هم دې.(العنايه علي الهدايه).

***************

## ٤_ باب مَا جَاءَ فِي زَكَاةِ الإِبِلِ وَالْغَنَمِ

### داوښانواودچيلوګډودزکواةبيان

٦٢١_ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ البَغْدَادِيُّ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْهَرَوِيُّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ كَامِلٍ الْمَرْوَزِيُّ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَتَبَ كِتَابَ الصَّدَقَةِ، فَلَمْ يُخْرِجْهُ إِلَى عُمَّالِهِ حَتَّى قُبِضَ فَقَرَنَهُ بِسَيْفِهِ" فَلَمَّا قُبِضَ، عَمِلَ بِهِ أَبُو بَكْرٍ حَتَّى قُبِضَ، وَعُمَرُ حَتَّى قُبِضَ، وَكَانَ فِيهِ "فِي خَمْسٍ مِنَ الإِبِلِ شَاةٌ، وَفِي عَشْرٍ شَاتَانِ، وَفِي خَمْسَ عَشْرَةَ ثَلَاثُ شِيَاهٍ، وَفِي عِشْرِينَ أَرْبَعُ شِيَاهٍ، وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ بِنْتُ مَخَاضٍ إِلَى خَمْسٍ وَثَلَاثِينَ، فَإِذَا زَادَتْ فَفِيهَا ابْنَةُ لَبُونٍ إِلَى خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ، فَإِذَا زَادَتْ فَفِيهَا حِقَّةٌ إِلَى سِتِّينَ، فَإِذَا زَادَتْ فَجَذَعَةٌ إِلَى خَمْسٍ وَسَبْعِينَ، فَإِذَا زَادَتْ فَفِيهَا ابْنَتَا لَبُونٍ إِلَى تِسْعِينَ، فَإِذَا زَادَتْ فَفِيهَا حِقَّتَانِ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ، فَإِذَا زَادَتْ عَلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ فَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ وَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ ابْنَةُ لَبُونٍ، وَفِي الشَّاءِ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ شَاةً شَاةٌ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ، فَإِذَا زَادَتْ فَشَاتَانِ إِلَى مِائَتَيْنِ، فَإِذَا زَادَتْ فَثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى ثَلَاثِ مِائَةِ شَاةٍ فَإِذَا زَادَتْ عَلَى ثَلَاثِ مِائَةِ شَاةٍ فَفِي كُلِّ مِائَةِ شَاةٍ شَاةٌ، ثُمَّ لَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ حَتَّى تَبْلُغَ أَرْبَعَ مِائَةٍ وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ مَخَافَةَ الصَّدَقَةِ، وَمَا كَانَ مِنْ خَلِيطَيْنِ فَإِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بِالسَّوِيَّةِ، وَلَا يُؤْخَذُ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ وَلَا ذَاتُ عَيْبٍ. وَقَالَ الزُّهْرِيُّ: إِذَا جَاءَ الْمُصَدِّقُ قَسَّمَ الشَّاءَ أَثْلَاثًا: ثُلُثٌ خِيَارٌ وَثُلُثٌ أَوْسَاطٌ وَثُلُثٌ شِرَارٌ، وَأَخَذَ الْمُصَدِّقُ مِنَ الْوَسَطِ وَلَمْ يَذْكُرِ الزُّهْرِيُّ الْبَقَرَ. وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، وَبَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ وَأَبِي ذَرٍّ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ عَامَّةِ الْفُقَهَاءِ، وَقَدْ رَوَى

يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ وَلَمْ يَرْفَعُوهُ. وَإِنَّمَا رَفَعَهُ سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ. (1)

**ترجمه** عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دزكواة احكامو متعلق تحرير مرتب كړو او عاملانو ته يي ليږلي نه وو چي ددنيا نه رخصت شو او دا يي دخپلي توري سره كيخودلو رسول الله چي وفات شو نو ابوبكر په دي باندي عمل جاري اوساتلو تردي چي دي هم وفات شو او دده نه پس ورباندي عمر رضي الله عنه عمل جاري اوساتلو تردي چي دي هم وفات شو په دي كتاب كي دا تحرير وو په پنځه اوښانو كي يوه چيلئ زكواة دي او په لسو كي دوه چيلئ زكواة دي او په پنځلسو كي دري چيلئ زكواة دي او په شلو كي څلور چيلئ زكواة دي د پنځه ويشتو نه واخله تر پنځه ديرشو پوري داوښي يو كلن بچي دي كله چي ددينه زيات شي نو تر څلويښتو پوري داوښي دوه كلن بچي دي او كله چي ددينه زيات شي تر شپيتو پوري داوښي دري كلن بچي دي او كله چي ددينه زيات شي تر پنځه اويا پوري په دي كي څلور كلن بچي داوښي په زكواة كي واجب دي او كله چي ددينه زيات شي نو تر نوي پوري دوه دوه كلن بچي زكواة دي او كله چي ددينه زيات شي نو په دي كي تر يو سل شلو پوري د اوښ دري دري كلن بچي زكواة دي او كله چي ديو سلو شلو نه زيات شي نو په هر پنځوسو كي داوښي يو دري كلن بچي زكواة دي او په هر څلويښتو كي يو دوه كلن بچي زكواة لازم كيږي، دچيلو په باره كي داسي حكم چي په څلويښتو چيلو كي يو چيلئ زكواة دي تر يو سلو شلو پوري او كله چي ددينه زياتي شي تر دوه سوو پوري په هرو شلوكي يوه چيلئ زكواة دي او بيا په دي كي تر څلور سوو پوري هيڅ نشته او دزكواة دپاره متفق مال راجمع نكړي دپاره چي كوم مال جمع دي دا دي دزكواة دخوف په وجه متفرق نكړي شي او په كوم كي چي دوه كسان شريكان وي نو هغوئ به دخپلي خپلي حصي دشراكت په حساب زكواة وركوي او په زكواة كي دزور او نقصاني څاروي وركول پكار نه دي.

زهري وائي كله چي صدقه وصول كونكي راشي نو دي به چيلئ په دري حصو تقسيموي اولني ثلث به بهتر وي دويم ثلث به درميانه وي او دريم ثلث به خراب وي نو صدقه وصول كونكي به د اوسط درجي والا چيلئ اخلي او زهري راوي دغواؤ ذكر نه دي كړي.

1 _ صحيح البخاري في الزكاة ٣٣ تعليقا عقب الحديث (رقم: ١٤٥٠). سنن ابي داود في الزكاة ٤ (١٥٦٨) سنن ابن ماجه في الزكاة ٩ (١٧٩٨). (تحفة الأشراف: ٦٨١٣). سنن الدارمي في الزكاة ٦/(١٦٦٦)

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن دي ، يونس بن زيد او بعضي نورو محدثينو هم دا حديث دزهري نه او زهري دسالم نه نقل کړي دي او دوئ مرفوع نه دي بيان کړي. صرف سفيان بن حصين دا مرفوع نقل کړي دي او په همدي باندي دعامو فقهاؤ عمل دي په دي باب کي دابو بکر صديق، بهز بن حکيم ، عن ابيه عن جده معاويه بن حيده قشيري او ابو ذر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح:** **داوښانو دزکاة دنصاب بيان**

اوښانو د زکاة نصاب پنځه اوښان دی.ددې نه په کموکي زکاة واجب نه دې. د زکاة د وجوب شرائط دادي:

(۱) دابه سائمه وی.

(۲) اوپه دې کال تيرشوې وی.

(۱) نوکه په دې شرطونو سره پنځه اوښان وی.نوپه دې کي به يوه چيلۍ واجب وی.د پنځونه پس تر نهو پورې عفوه دی.

هم دغه يوه چيلۍ به وی.کومه چيلۍ چی د زکاة په حساب کي اخستې شی.ماده به وی.او د پوره يوکال به وی چی دويم کال ئې شروع وی.

(۲) اوکه په ذکرشوی شرطونوسره دچا په ملك کي لس اوښان وی.نوپه دې کي دوه چيلۍ دی.او د لسو اوښانونه پس تر څوارلسو پورې عفوه دي.په څوارلسوکي هم دغه دوه چيلۍ واجب دی.

(۳) اوکه اوښان پنځلس وی.نوپه دې کي به درې چيلۍ واجب وی.اود پنځلسونه نولسو پورې عفوه دی.

(۴) که دچا شل اوښان وی نوپه دې کښې څلورچيلۍ دی.اود شلونه پس څليريشتوپورې عفوه دی.

(۵) بياچی کله اوښان پنځويشت شی.نوپه دې کي يو بنت مخاض واجب دې.د پنځه ويشتو نه پس ترد پنځه ديرشو پورې عفوه دی.

(۶) اوکله چی شپږديرش شی.نوپه دې کي يو بنت لبون واجب دې.اود شپږديرشو نه پس د پنځه څلويښتو پورې عفوه دی.

(۷) خوچی کله شپږڅلويښت پوره شی.نوپه دې کي يوحقه واجب ده.اود شپږڅلويښتونه تر شپيتو پورې عفوه دی.

(۸) اوکله چی يوشپيته شی.نوپه دې کي يوجذعه واجب ده.او يوشپيتونه پس د پنځه اويا پورې عفوه دی.

(۹) اوکله چی شپږاويا شی.نوپه دې کي دوه بنت لبون دی.د شپږاويا نه تر نوی پورې عفوه دی.

(۱۰) اوکله چی يونوی شی.نوپه دې کي دوه حقه دی.د يونوی نه پس د شپږشلو پورې عفوه دی.

او دليل ددي حديث دانس دي چي صديق(رضي الله عنه) د انس(رضي الله عنه) په نوم ليکلي رو کوم چی امام بخاری رحمه الله نقل کړي دي:

إن أنسًا حدثه أن أبابكر الصديق (رضي الله عنه) كتب له هذا الكتاب لما وجهه إلى البحرين. بسم الله الرحمن الرحيم. هذه فريضة الصدقة التى فرض رسول الله ﷺ على المسلمين والتى أمر الله بها رساله فمن سئلها من المسلمين فليعطها على وجهها ومن سئل فوقه فلا يعطه فى أربع وعشرين من الإبل فما دونها من الغنم فى خمس ذود شاة. فإذا بلغت خمساً وعشرين إلى خمس وثلاثين ففيها بنت مخاض انثى. فإذا بلغت ستاً و ثلاثين إلى خمس وأربعين ففيها بنت لبون انثى. فإذا بلغت ستاً و أربعين إلى ستين ففيها حقه طروقة الجمل. فإذا بلغت إحدى وستين إلى خمس وسبعين ففيها جذعة فإذا بلغت ستاً وسبعين إلى تسعين ففيها بنتا لبون فإذا بلغت إحدى وتسعين إلى عشرين و مائة ففيها حقتان طروقة الجمل. فإذا زادت على عشرين ومائة ففى كل أربعين إبنة لبون وفى كل خمسين حقة ثم ساق بقية الحديث فى الغنم (فتح القدير)

فوائد :د څناورو نصاب دزکاة او مقدار دزکاة توقیفی دی.په دې کي د عقل او قیاس هیڅ د خل نشته.

اوکه دا سوال اوکړې شی چی په هرقسمه څاروکي هم د هغې نه زکاة اخستې شی نو د اوښانوپه زکاة کي چيلئ ولې واجبيږی. ددي اعتراض دوه جوابونه دي:

(۱) ددې یوجواب خو دادې چی داخبره خلاف قیاس په نص سره ثابت ده.په دې وجه دې باره کي د کلام کولو هیڅ گنجائش نشته.

(۲) دویم جواب دادې چی د اوښ نصاب پنځه اوښان دی.اوس که یو اوښ د زکاة دپاره مقررشی.نودا د نصاب خُمس یعنی پنځمه حصه ده.حالانکه زکاة د نصاب د مال څلویښتمه حصه وی.اوکه یواوښ حصې کړې شی.اوددې اتمه حصه ورکړې شی څکه چی د یو اوښ اتمه حصه د پنځو اوښانوڅلویښتمه جوړیږی.نوپه دې صورت کي په دې اوښ کي د شرکت عیب پیدا کیږی.اودا هم مناسب نه دې.نوپه پنځه اوښانوکي یوه چیلئ واجب شوي ده

## د چیلو د نصاب بیان

غنم لفظ اسم جنس دې چی نر او ماده ټولوته ونیلې شی. د چیلونصاب څلویښت چیلئ دی.د څلویښتونه په کموکي هیڅ زکاة نشته.البته څلویښتوچیلوکي یوه چیلئ واجب ده.په دې شرط چی دا سائمه وی.اوپه دې کال هم تیر شو. نود شپږشلو پورې به هم دغه یوه چیلئ واجب وی.خوچی کله په شپږشلو باندې یوه هم زیاتی شوه.یعنی یوسل یریشت چیلئ شی.نوپه دې کي به دوه چیلئ واجب وی.تردوه سوه پورې به هم دغه دوه چیلئ واجب

وي.بياچې کله په دوه سوه باندې يوه چيلۍ زياتی شوه.يعنی يو دپاسه دوه سوه شی.نوپه دې کې به درې چيلۍ واجب وی.بياچې کله څلورسوه شی.نوپه دې کې به څلورچيلۍ واجب وی.بياپه هرسلو باندې يوه چيلۍ زياتيږی.تردې چې په پنځه سوه باندې پنځه اوپه شپږسوه باندې شپږ چيلۍ واجب دی.ددې دپاره دليل د خليفه اول ابوبكر(رضي الله عنه) کوم فرمان چې د انس(رضي الله عنه) په نوم تلی وو:

وفى صدقة الغنم فى سائمتها إذاكانت أربعين إلى عشرين ومأة شاة. فإذا زادت على عشرين ومأة إلى مأتين شاتان. فما زادت على مأتين إلى ثلاث مأة ففيها ثلاث شياه . فإذا زادت على ثلاث مأة ففى كل مأة شاة. فإذا كانت سائمة الرجل ناقصة. من أربعين شاة واحدة. فليس فيها صدقة إلا أن يشاء ربها.

دويم دليل دا دې چې د چيلۍ د زكاة كوم تفصيل بيان كړې شوې دې. په دې اجماع هم منعقد شوي ده.اوهم دا د سلفو اوخلفو فقهاؤ او دآئمه اربعه مذهب دې.

****************

## ٥_ باب مَا جَاءَ فِي زَكَاةِ الْبَقَرِ

### دغواو دزكواة بيان

٦٢٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، وَأَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، قَالاَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلاَمِ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " فِي ثَلاَثِينَ مِنَ الْبَقَرِ تَبِيعٌ أَوْ تَبِيعَةٌ وَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ مُسِنَّةٌ ". وَفِي الْبَاب عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَاهُ عَبْدُ السَّلاَمِ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ خُصَيْفٍ، وَعَبْدُ السَّلاَمِ ثِقَةٌ حَافِظٌ، وَرَوَى شَرِيكٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ أُمِّهِ عَبْدِ اللَّهِ، وَأَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ. (١)

**ترجمه** . دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په ديرشو غواگانو كي يو كلن سخي يا يو كلنه سخۍ زكواة دي امام ترمذي وائي عبدالسلام بن حرب هم دا رنگي دا حديث دحصيف نه نقل كړي دي او عبدالسلام ثقه او

---

1 سنن ابن ماجه في الزكاة ١٢ (١٨٠٣) . (تحفة الأشراف : ٩٦٠٦)

حافظ دي، شريك هم دا سند په سند دخصيف عن ابي عبيده عن امه عن عبدالله نقل كړي دي او دابو عبيده بن عبدالله سماع دخپل پلار عبدالله نه ثابت نه ده، او په دي باب كي دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

*****************

٦٢٣ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ "فَأَمَرَنِي أَنْ آخُذَ مِنْ كُلِّ ثَلَاثِينَ بَقَرَةً تَبِيعًا أَوْ تَبِيعَةً، وَمِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ مُسِنَّةً، وَمِنْ كُلِّ حَالِمٍ دِينَارًا أَوْ عِدْلَهُ مَعَافِرَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ. فَأَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ وَهَذَا أَصَحُّ. [1]

**ترجمه**: دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم زه يمن ته اوليږلم او ماته يي حكم اوكړو چي په هرو ديرشو غواو كي يو كلن سخي يا يو كلنه سخۍ زكواة اخلم او په هر څلويښتو غواګانو كي به دوه كلن سخي يا سخۍ اخلم او دهربالغ ذمي نه به يو دينار يا ديو دينار برابر معافري كپړي په طور دجزيه او ټكس اخلم.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي، بعضي محدثينو دا په سند دسفيان عن الاعمش عن ابي وائي عن مسروق مرسل نقل كړي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم معاذ يمن ته اوليږلو او په دي حديث كي د "فامرني ان اخذ" په ځاي باندي "فامره ان ياخذ" راغلي دي او دا زيات صحيح دي.

*****************

٦٢٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ: هَلْ تَذْكُرُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ شَيْئًا؟ قَالَ: لَا. [2]

---

[1] ـ سنن ابي داود في الزكاة ٤ (١٥٧٧، ١٥٧٨). سنن النسائي في الزكاة ٨ (٢٣٥٥). سنن ابن ماجه في الزكاة ١٢ (١٨٠٣). (تحفة الأشراف: ١١٣٦٣). مسند احمد (٥ في ٢٣٠). سنن الدارمي في الزكاة٥ (١٦٦٣)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٥٨٩)

**ترجمه** : دعمرو بن مره نه روايت دي فرمائي چي ما دابو عبيده بن عبدالله نه تپوس اوکړو چي ايا تاته دخپل پلار عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه کوم څيز ياد دي او کنه؟ هغه اوونيل نه.

**تشريح** : البقر، د بقرنه مشتق دي. معنى يي ده شلول.او د جنس بقر نوم بقرخکه کيخودې شو چي دا زمکه شلوی.په البقره کنبي" ة "دوحدت دپاره ده.د تانيث دپاره نه ده نو البقربه په نر او ماده دواړو باندې واقع کيږی.تبيع د غوا يوکلن نربچي .اوتبيعه يوکلن ماده بچی .دې ته تبيع يا تبيعه خکه وائی چی دا دخپل مور تابع وی.هم دې پسی شاته شاته ګرځی.او مسن نر دوه کلن بچی .اومسنه ماده دوه کلن بچی .د بقر په زکاة کي په مذکراو مونث کي اختيار ورکړې شوې دې خکه چی په بقرکي مونث غوره نه شمارلې کيږی.

نشته په کمو د ديرشوغواګانوکي زکاة، نوکله چی شی ديرش غواګانی ،څريدونکی .او تير شی په دې باندې کال،نو(واجب دی) په دې کي يو تبيع يا تبيعه، اودا(تبيع يا تبيعه)هغه بچی دې چی دويم کال ئې شروع وی.او په څلويښتو(غواګانو)کي يو مسن يا مسنه (واجب)ده.اودا (مسن يامسنه) هغه بچی دې چی په دريم کال کي شروع وی.هم په دې حکم کړې وو. رسول اللهﷺ معاذ(رضي الله عنه) ته.

**دڅلويښتو نه زياتو غواګانوزکاة**

ديرشوغواګانوکي به يوتبيعه واجب وی.اوپه څلويښتوکي يوه مسنه واجب وی.خوکه په څلويښتوغواګانو باندې زيات شی.نوپه دې کي دامام ابوحنيفه نه درې روايتونه دی. اولني روايت کوم چی .مبسوط.نه نقل کړی دې.دا دې چی د څلويښتونه زيات ترشپيتو پورې به دحساب په اندازه زکاة واجب وی.

نوکه په څلويښتوباندې يوه غوازياتی شوه.نوپه دې کي به يوه مسنه واجب وی.اوپه يوزياتی کي به دمسنه څلويښتمه حصه واجب وی.

دويم روايت په سند د حسن بن زياد عن ابی حنيفه دې.چي دڅلويښتونه په زياتی کي هيڅ څيزواجب نه دې.

دريم روايت دا دې چی د څلويښتونه په زياتی کي ترشپيتو پورې هيڅ زکاة واجب نه دې.هم دې قائل صاحبين دی.اوهم داقول دامام مالك، امام شافعی،اود امام احمد رحمه الله دې.

*****************

## ٦_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَخْذِ خِيَارِ الْمَالِ فِي الصَّدَقَةِ

**په زکاة کي دغوره مال اخستل مکروه دي**

٦٢٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ إِسْحَاقَ الْمَكِّيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَيْفِيٍّ، عَنْ أَبِي مَعْبَدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ، فَقَالَ لَهُ: " إِنَّكَ تَأْتِي قَوْمًا أَهْلَ كِتَابٍ فَادْعُهُمْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ، فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذَلِكَ، فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللَّهَ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ، فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذَلِكَ، فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللَّهَ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً فِي أَمْوَالِهِمْ، تُؤْخَذُ مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ وَتُرَدُّ عَلَى فُقَرَائِهِمْ، فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذَلِكَ، فَإِيَّاكَ وَكَرَائِمَ أَمْوَالِهِمْ، وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ، فَإِنَّهَا لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللَّهِ حِجَابٌ ". وَفِي الْبَابِ عَنِ الصُّنَابِحِيِّ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو مَعْبَدٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ اسْمُهُ: نَافِذٌ. [1]

**ترجمه** : د ابن عباس نه روايت دى فرمائي چي رسول الله (ص) معاذ بن جبل رضي الله عنه د (حاكمانو جوړولو او) ليږلو په وخت رسول الله صلي الله عليه وسلم دا هدايت اوفرمائيلو چي ته به داهل كتابو نه يوي ډلي ته ورځي نو ته ورته اووايه چي هغوي دالله تعالي دمعبود كيدلو او خما د رسول الله صلي الله عليه وسلم كيدلو اقرار اوكړي، كه دايي اومنلو نو بيا ورته اووايه چي الله تعالي تاسو باندي شپه او ورځ كې پنځه مونځونه فرض كړي دي او چي كله دا هم اومني نو بيايي په دي پوهه كړه چي الله تعالي په تاسو زكواة هم فرض كړى دى چي ستاسو دمالدارانو نه به اخستلى شي او مسكينانو او غريبانو باندي به تقسيمولى شي چي كله دا خبره هم اومنئ نو ته دعمده او غوره مال اخستلو نه ځان اوساته او د مظلوم دخيرونه او ويريږه ځكه چي دهغه دخيرو او دالله تعالي مينځ كې هيڅ ځيز پرده نه جوړيږي.

امام ترمذي وايي په دي باب كي د صنابحي نه هم روايت وارد دي ، امام ترمذي وايي دابن عباس رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دى ، او ابو معبد د ابن عباس ازاد كړى غلام دي او نوم يي نافذ وو.

**لغات**: فترد : ردّ ردًا دنصر نه په معني دواپس كولو.

حجاب: الحجاب مصدر دي معني پرده او حائل كيدونكي ځيز.

---

[1] _ صحيح البخاري في الزكاة ١ (١٣٩٥)، و٦١ (١٤٥٨)، والمظالم ١٠ (٢٤٤٨)، والمغازي ٦٠ (٤٣٤٧)، والتوحيد ١ (٧٣٧٢) صحيح مسلم في الإيمان ٧ (١٩)، سنن ابي داود في الزكاة ٥ (١٥٨٤)، سنن النسائي في الزكاة ١ (٢٤٣٧)، و٤٦ (٢٥٢٣)، سنن ابن ماجه في الزكاة ١ (١٧٨٣)، (تحفة الأشراف: (٦٥١١)، مسند احمد (١/ ٢٣٣)، سنن الدارمي في الزكاة ١ (١٦٥٥)، ويأتي آخره عند المؤلف في البر والصلة ٦٨ (٢٠١٤)

**تشريح** : بعثني رسول الله صلى الله عليه وسلم، يعني رسول الله زه يمن ته ليږلي وم،

**معاذ رضي الله عنه يمن ته كله ليږلي شوي وو؟**

دابن سعد دقول مطابق دمعاذ رضي الله عنه ليږل دفتح مكي په كال په ربيع الثاني كې دهجرت په اتم كال شوي وو او ابن حجر لسم هجري بيان كړي دي.

فادعهم الى شهادة ان لا اله الا الله، يعني اول ورته دتوحيد دعوت وركړئ نو كه قبول يې كړي نو بيا ورته داسلامي شريعت تعليم وركړئ.

فترد الى فقرائهم. ددي جملي نه امام شافعي او مالك استدلال كوي چې ديو ښار نه بل ښار ته زكواة منتقل كول جائز نه دي ، په خلاف دامام ابوحنيفه څكه چې هغه وايي ديوښار نه بل ښار ته زكواة منتقل كول بغير دكراهيت نه جائز دي.

فترد الى فقرائهم، احناف وايي د هم ضمير نه فقراء المسلمين مراد دي چې فقيران به هم ددي ښار وي يا دبل ښار وي، طيبي فرمائي چې په دي خبره دتمامو علماؤ اتفاق دي چې زكواة كه دبل ښار فقراؤ ته وركړي شو نو فرضيت ساقط شو.

**پدي حديث كې دحج او روژې ذكر نشته**

سوال پدي حديث كې دحج او روژې ذكر ولي نشته؟

جواب: په حديث كې يو اعتقادي جزء ذكر دی چې كلمه دشهادت ده او دويم دبدني عبادت يعني مونځ دی او دريم دمالي عبادت بيان دی چې زكواة دی بهر حال تمام عبادات په دي كې داخل دي.

علامه شبير احمد عثماني وائي د تمامو اركانو داسلام شميرل مقصود نه وو هغه خو معاذ رضي الله عنه ته معلوم وو صرف يو حد يې ذكر كړو او دعوت الى الاسلام ته يې تنبيه وركړه يعني تمام اسلام طرف ته به په يو خل دعوت نه وركوئ بلكه لږ لږ او په تدريجي طور.

واتق دعوة المظلوم. بله دا چې دمظلوم دخيرو نه خان ساته دمظلوم دخيرو په وجه دالله غضب او عذاب نازليږي څكه چې دمظلوم او دالله په مينځ كې هيڅ پرده نشته.

***************

## ٧_ باب مَا جَاءَ فِي صَدَقَةِ الزَّرْعِ وَالتَّمْرِ وَالْحُبُوبِ

**دفصل او ميوو دانو دزكاة بيان**

٦٢٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: "لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ ذَوْدٍ صَدَقَةٌ، وَلَيْسَ

فِيمَا دُونَ خَمْسِ أَوَاقٍ صَدَقَةٌ، وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ". وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو. (1)

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دپنځو نه په كمو اوښانو كې زكواة نشته او دپنځه اوقيو نه په كمو سپينو زرو كې زكواة نشته او دپنځو وسق نه په كمه غله كې زكواة نشته.

امام ترمذي وائي په دي باب كې دابوهريره، ابن عمر، جابر او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح** : **د زمكې په پيداواركې د عشر نصاب**

د عشر د وجوب په سلسله كې د امام ابوحنيفه رحمه الله او صاحبينواختلاف دې..

(۱) امام صاحب فرمائي چې مطلقاً د زمكې په پيداوار كې عشر واجب دې.پيداوار كم وي اوكه زيات وي چې بغيرد تدبير اختيارولونه د يوكاله پورې باقي پاتې كيدونكې وي.زمكه په نهري وغيره جاري اوبوسره اوبه كړې وي.يا د باران په اوبوسره اوبه شوې وي.په هرصورت كې به عشر واجب وي.علاوه د نلو،د سوزلو لرګو اود ګيا نه چې په دې څيزونوكې دامام صاحب په نزد عشر واجب نه دې.

(۲) صاحبين فرمائي چې د زمكې په پيداوار كې په دوه شرطونو عشر واجب وي.

يوداچې هغه څيزكوم چې د زمكې نه پيداكيږي.بغير دڅه علاجه د يوكال پورې باقي پاتې كيدې شي.لكه غنم،اوريشې اوريجې وغيره.كه د يو كال پورې باقي نه پاتې كيږي.نوپه دې كې به عشر واجب نه وي.لكه انګور،خربوزه، تربوزه، سيب وغيره.

دويم شرط داچې پيداوار د پنځه وسقو په مقدار وي.ددې نه په كم كې به عشر واجب نه وي او يو وسق د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په صاع شپيته صاعه جوړيږي نو پنځه وسق د درې سوه صاع برابر وي او يوصاع څلور منه وي.نوګويا پنځه وسق دولس سوه منه وي.

د صاحبينو په نزدسبزيانو كې عشر واجب نه دې ځكه چې ددې د يوكال پورې باقي پاتې كيدل بغير د علاجه ممكن نه دي.

---

1 _ صحيح البخاري في الزكاة ۴ (۱۴۰۵) ، و ۳۲ (۱۴۴۷) ، و ۴۲ (۱۴۵۹) ، و ۵۶ (۱۴۸۳) . صحيح مسلم في الزكاة ۱ (۹۷۹) . سنن ابي داود في الزكاة ۱ (۱۵۵۸) . سنن النسائي في الزكاة ۵ (۲۴۴۷) ، و ۱۸ (۲۴۷۵) ، و ۲۱ (۲۴۸۵) ، و ۲۴ (۲۴۸۹) . سنن ابن ماجه في الزكاة ۶ (۱۷۹۳) . (تحفة الأشراف : ۴۴۰۲) . موطأ امام مالك في الزكاة ۱ (۱) . مسند احمد (۳ في ۶، ۳۵، ۶۰، ۷۳، ۷۴، ۷۹) . سنن الدارمي في الزكاة ۱۱ (۱۶۷۳)

حاصل دادي چې د امام صاحب او د صاحبينو اختلاف دوه خبرو کي دي.
(۱) يودا چې امام صاحب په نزدد عشر وجوب دپاره د نصاب مقدارنصاب کيدل شرط نه دي، اود صاحبينو په نزدشرط دي.
(۲) دويم دا چې د امام صاحب رحمه الله په نزدد يو کال پورې باقي پاتې کيدل شرط نه دي او دصاحبينو په نزدشرط دي.

د صاحبينو (۱) رومبې دليل د نبی کريم صلي الله عليه وسلم قول "ليس فيما دون خمسة أوسق صدقة" دي.په حديث کي د صدقة نه مراد عشر دي خکه چې زکاة خو پنحه وسق نه په کم کي هم واجب وی.په شرط ددي چې د دې قيمت دوه سوه درهمه ته رسی.
(۲) دويم دليل دادې چې عشرهم د صدقه (زکاة) په شان دې خکه چې دعشر تعلق هم د زمکې د نماء سره دي.لکه څنګه چې د وجوب زکاة دپاره نماء شرط ده.
(۳) او د زکاة په شان عشرهم په کافر نه واجب کيږی او د عشر مستحق هم هغه دي. کوم چې دصدقاتو مستحق دي.نوثابته شوه چې عشر د زکاة په شان دي او د وجوب زکاة دپاره د نصاب کيدل شرط دی چې غناء متحقق شي.نودغه شان د وجوب عشر دپاره به هم نصاب کيدل شرط وی چې مالداری اوغناء متحقق شي.
د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل په عدم شرطيت دنصاب کي د الله تعالى د قول :
يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ (الايه)
عموم دي.په دې طريقه چې د زمکې مطلقاً پيداوار کي د انفاق حکم شوي دي.د قليل او کثير هيڅ تفصيل نشته.

د صاحبينو پيش شوی حديث "فيما دون خمسة أوسق صدقة" تاويل دادې چې په دې کي د تجارت زکاة مراددې.يعنی په مال تجارت کي د زکاة د وجوب دپاره پنځه وسق ضروری دی او وجه ددې داده چې دصحابو(رضي الله عنهم) په زمانه کي به خلقو د وسق په حساب سره اخستل خرخول کول اود يو وسق کجورو قيمت څلويښت درهمه وو.نود پنځه وسق قيمت به دوه سوه درهمه وو او دوه سوه درهمه د زکاة نصاب دي.

دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا حديث "ما أخرجت الأرض ففيه العشر" دې خکه چې دا حديث مطلق دې.د باقي پاتې کيدلو او دنه پاتې کيدلوهيڅ قيدنشته نو مطلقاً به د زمکې په پيداوارکي عشرواجب وی.که پوره کال باقی پاتې کيدې شي.اوکه نشي.
د امام صاحب رحمه الله مذهب ذکرکولو کي چې د خشاکو د لرګو،نلونو اود ګيا استثناء شوې وه.يعنی په دې خيزونوکي عشرواجب نه دې خکه چې عادةً دا خيزونه په باغونوکي نه راخيژی.بلکه ددې خيزونو نه باغونه صفا کولې شی.(۲) خوکه د پټی مالك زمکه د خشاکو

د ونو باغ يا د ګيا لګولو ځاني جوړ کړی اوددې څيزونوحاصلول مقصود کړی نو په دې کي به عشر واجب وی.

***************

٦٢٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، وَشُعْبَةُ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ حَدِيثِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْهُ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ، وَالْوَسْقُ سِتُّونَ صَاعًا، وَخَمْسَةُ أَوْسُقٍ ثَلَاثُ مِائَةِ صَاعٍ، وَصَاعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسَةُ أَرْطَالٍ وَثُلُثٌ، وَصَاعُ أَهْلِ الْكُوفَةِ ثَمَانِيَةُ أَرْطَالٍ وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ أَوَاقٍ صَدَقَةٌ، وَالْأُوقِيَّةُ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا وَخَمْسُ أَوَاقٍ مِائَتَا دِرْهَمٍ، وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ ذَوْدٍ صَدَقَةٌ يَعْنِي لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسٍ مِنَ الْإِبِلِ، فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَعِشْرِينَ مِنَ الْإِبِلِ فَفِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ، وَفِيمَا دُونَ خَمْسٍ وَعِشْرِينَ مِنَ الْإِبِلِ فِي كُلِّ خَمْسٍ مِنَ الْإِبِلِ شَاةٌ. (1)

**ترجمه** : په دي سند هم دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دا حديث دمخكني حديث پشان مروي دي كوم چي دعبدالعزيز بن محمد حديث دي او هغه دعمرو بن يحي نه نقل كړي دي (كوم چي په ماقبل كي تير شو).

امام ترمذي واني دابوسعيد خدري حسن صحيح دي او دهغه نه دا روايت په نورو سندونو هم مروي دي ، داهل علمو په همدي باندي عمل دي چي دپنځو وسقو نه په كمه غله كي زكواة نشته او يو وسق شپيته صاعه وي او په پنځه وسقو كي دري سوه صاعه دي او درسول الله صلي الله عليه وسلم صاع پنځه رطله وو او داهل كوفه صاع اته رطله دي، او دپنځو اوقيو نه په كمو سپينو زرو كي زكواة نشته، يوه اوقيه دڅلويښتو درهمو وي او پنځه اوقي د دوه سوه درهمو وي دا رنګي دپنځو نه په كمو اوښانو كي زكواة نشته اوښان چي كله پنځه ويشتو نه

---

1 ـ صحيح البخارى في الزكاة ٣ (١٤٠٥) ، و٣٢ (١٤٤٧) ، و٤٢ (١٤٥٩) ، و٥٦ (١٤٨٤) ، و مسلم في الزكاة ١ (٩٧٩) . سنن ابى داود في الزكاة ١ (١٥٥٨) ، و النسائى في الزكاة ٥ (٢٤٤٧) ، و١٨ (٢٤٧٥) ، و٢١ (٢٤٨٥) ، و ٢٤ (٢٤٨٩) . و ابن ماجه في الزكاة ٦ (١٧٩٣) . (تحفة الأشراف : ٤٤٠٢)، موطا امام مالک في الزكاة ١ (١) . مسند احمد (٣/ ٦، ٤٥، ٦٠، ٧٤، ٧٤، ٧٩) . و الدارمى في الزكاة ١١ (١٦٧٤)

ورسيږي نو په دوئ کي يو يو کلن بچي زکواة دي او دپنځويشتو اوښانو نه په کمو کي په هر پنځه اوښانو کي يوه چيلئ زکواة وي.

**تشريح** : دزمکي دپيداوار په نصاب کي دفقهاؤ اختلاف دي او په دي باره کي داهل علمو دوه مذاهب دي.

(۱) دامام ابو حنيفه په نزد دزمکي دپيداوار دپاره کوم نصاب نشته دده په نزد په قليل او کثير کي عشر واجب دي.

(۲) دائمه ثلاثه او صاحبينو په نزد د زمکي دپيدا وار دعشر دپاره نصاب مقرر دي او هغه پنځه وسقه دي او د وسق تشريح په ماقبل کي دامام ترمذي په قول کي تيره شوه.

****************

## ٨ـ بَاب مَا جَاءَ لَيْسَ فِي الْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ صَدَقَةٌ

### په اس او غلام کي زکاة نشته

٦٢٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، وَشُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ فِي فَرَسِهِ وَلَا فِي عَبْدِهِ صَدَقَةٌ". وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّهُ لَيْسَ فِي الْخَيْلِ السَّائِمَةِ صَدَقَةٌ وَلَا فِي الرَّقِيقِ، إِذَا كَانُوا لِلْخِدْمَةِ صَدَقَةٌ إِلَّا أَنْ يَكُونُوا لِلتِّجَارَةِ، فَإِذَا كَانُوا لِلتِّجَارَةِ فَفِي أَثْمَانِهِمُ الزَّكَاةُ إِذَا حَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په مسلمان باندي نه دهغه په اس کي زکواة شته او نه دهغه په غلامانو کي.

امام ترمذي وائي دابو هريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعلي او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او په همدي داهل علمو عمل دي چي په څريدونکو اسونو کي کوم چي په موکي ګيااو دانه نه خوري زکواة نشته او په غلامانو کي هم

1 ـ صحيح البخاري في الزكاة ٤٥ (١٤٦٣)، و٤٦ (١٤٦٤). صحيح مسلم في الزكاة ٢ (٩٨٢). سنن ابي داود في الزكاة ١٠ (١٥٩٤). سنن النسائي في الزكاة ١٦ (٢٤٧٠). سنن ابن ماجه في الزكاة ١٥ (١٨١٢). (تحفة الأشراف: ١٤١٥٣). مسند احمد (٢ في ٢٤٢، ٢٥٤، ٢٤٩، ٤١٠، ٤٣٢، ٤٦٩، ٤٧٠، ٤٧٧). سنن الدارمي في الزكاة ١٠ (١٦٧٤)

زكواة نشته خو چي دخدمت دپاره وي او كه دتجارت دپاره وي نو بيا به په دي كي زكواة واجب وي خو چي كال وربانديي تير شي.

**تشريح**: په دي مسئله دعلماؤاتفاق دي چي دسورلئ په اس كي زكواة نشته او په دي مسئله هم اتفاق دي چي دتجارت په اسونو كي زكواة واجب دي اختلاف په دي كي دي چي نسل وركونكو اسونو كي زكواة واجب دي او كنه په دي كي دوه مذاهب دي.

(۱) دامام ابوحنيفه په نزد په تناسل والاخريدونكو اسونو كي زكواة واجب دي.

(۲) او دائمه ثلاثه په نزد په تناسل والاخريدونكو اسونو كي زكواة واجب نه دي، ددي دلائل دعلم فقه په كتابونو كي كتلي شي.

****************

## ۹_ باب مَا جَاءَ فِي زَكَاةِ الْعَسَلِ

## په شهدوكي د زكاة بيان

۶۲۹_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي سَلَمَةَ التِّنِّيسِيُّ، عَنْ صَدَقَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ مُوسَى بْنِ يَسَارٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فِي الْعَسَلِ فِي كُلِّ عَشَرَةِ أَزُقٍّ زِقٌّ». وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَيَّارَةَ الْمُتَعِيِّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ فِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ، وَلَا يَصِحُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَابِ كَبِيرُ شَيْءٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَيْسَ فِي الْعَسَلِ شَيْءٌ. وَصَدَقَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ لَيْسَ بِحَافِظٍ، وَقَدْ خُولِفَ صَدَقَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ فِي رِوَايَةِ هَذَا الْحَدِيثِ عَنْ نَافِعٍ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په شهدو كي په هر لسو مشكونو كي يو مشك زكواة دي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابوهريره، ابو سياره متعي، او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، دابن عمر رضي الله عنهما دحديث په سند محدثينو كلام كړي دي او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باب كي كوم زيات صحيح څيز مروي نه دي او په همدي باندي داهل علمو عمل دي امام احمد او اسحاق هم په دي باندي قول كړي دي،

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۸۵۰۹)

دبعضي اهل علمو قول دادي چي په شهدو کي هيڅ قسم زکواة نشته، صدقه بن عبدالله حافظ نه دي دنافع نه ددي حديث په نقل کولو کي دصدقه بن عبدالله مخالفت شوي دي.

***************

٦٣٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: سَأَلَنِي عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ صَدَقَةِ الْعَسَلِ، قَالَ: قُلْتُ: مَا عِنْدَنَا عَسَلٌ نَتَصَدَّقُ مِنْهُ، وَلَكِنْ أَخْبَرَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ حَكِيمٍ، أَنَّهُ قَالَ: "لَيْسَ فِي الْعَسَلِ صَدَقَةٌ". فَقَالَ عُمَرُ: عَدْلٌ مَرْضِيٌّ فَكَتَبَ إِلَى النَّاسِ أَنْ تُوضَعَ يَعْنِي عَنْهُمْ. (1)

**ترجمه**: دنافع بيان دي چي زما نه عمر بن عبدالعزيز دشهدو دزکواة باره کي تپوس اوکړو نو ما اووئيل موږ سره خو شهد نشته چي زکواة يي ورکړو ليکن موږ ته مغيره بن حکيم خبر راکړي دي چي په شهدو کي زکواة نشته عمر بن عبدالعزيز اووئيل دا خو په عدل بناء او درسته خبره ده چنانچه هغوئ خلقو ته اوليکل چي تاسو ته دي دشهدو زکواة معاف کړي شي.

## د عشري زمکې په شهدو کې د زکاة حکم

په مذکوره مسئله کي د اهل علمو اختلاف دی:

(١) امام ابو حنيفه رحمه الله وايي که چري شهد د عشري زمکي نه حاصل کړي شو نو په دې کي به عشرواجب وی.

(٢) او امام شافعی رحمه الله فرمائی چی په شهدوکي عشرواجب نه دې.هم دا قول د امام مالك رحمه الله دې.

د امام شافعی رحمه الله دليل دادې چی شهد د ځناورو يعنی د مچو نه پيداکيږی. نو دا د ريښمو په شان شو ځکه چی ريښم هم د ځناور يعنی د چينجو نه پيداکيږی اوپه ريښموکي په اتفاق سره عشرنشته.نوپه شهدوکي به هم عشرنه وی.

زموږ دليل د رسول الله صلي الله عليه وسلم حديث

"عن أبي هريرة(رضي الله عنه) أن رسول الله صلي الله عليه وسلم كتب إلى أهل اليمن أن فى العسل العشر" دې.يعنی نبی کريم صلي الله عليه وسلم يمن والوته اوليکل چی په شهدو کي عشر واجب دې.

(٢) دويم دليل دادې چی دشهدو مچئ ګلونه او ميوې خوری.لکه چی د الله تعالی ارشاد دې

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٥٠٩)

:ثم كلي من كل الثمرات (الايه)
او په ګلونو او ميووکي عشرواجب دي.نوکوم څيز چې ددې نه پيدا کيږي. يعنې شهد ،په دې کي به هم عشرواجب وي.په خلاف د ريښمو د چينجو.چې د شهتوتانو پانړې خوري او په پانړوکي عشر واجب نه وي.نوکوم څيز چې ددې نه پيدا کيږي.يعنې ريښم، په دې کي به هم عشر واجب نه وي.
په شهدو کي به عشر واجب وي.که شهد کم وي اوکه زيات څکه چې امام صاحب رحمه الله په وجوب عشر کي د نصاب اعتبار نه کوي.
د امام ابويوسف رحمه الله دويم قول دادي: دهغه نه په دې باره کي درې روايتونه منقول دي.
(۱) يودا که شهد د پنځو وسق قيمت برابروي نو په دې کي به عشرواجب وي.هم دا د ابويوسف دويم داکه دشهدو مقدار د لسومشکونو په اندازه وي.نوبيه دې کي به عشرواجب وي.
ددويم دليل د بنې شبابه حديث دې.په عنايه کي دا حديث داسې دې چې د بنې جرهم يو قوم بنوشبابه سره د شهدو مچئ وې.دې خلقوبه په هرلسو مشکونوکي يو مشک رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورکولو او رسول الله صلي الله عليه وسلم به ددوی د علاقې حفاظت کولو.بياهرکله چې د اميرالمؤمنين عمرين الخطاب(رضي الله عنه) د خلافت زمانه راغله اودوی سفيان بن عبدالله ثقفي(رضي الله عنه) عامل مقرر کړو.نودې خلقو د عشر ورکولو نه انکاراوکړو.سفيان بن عبدالله ثقفي(رضي الله عنه) عمر(رضي الله عنه) ته اوليکل نو عمر(رضي الله عنه) په جواب کي اوليکل چې د شهدومچئ خو د باران مچئ دی الله تعالی چې کوم خائې اوغواړی هلته کې ئې بوځي.که دغه خلق تاله عشر درکړي.کوم ئې چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورکولو.نوتاسو ددوی د علاقې حفاظت کوئ.ګنی د دوی دعلاقه او دخلقو په مينځ کي لارخالي کړئ.ددې جواب نه پس دغه خلق عشر ورکول شروع کړل. د عمر(رضي الله عنه) د جواب حاصل داوو چې که دغه خلق عشرورکړي.نوددوی د علاقې ددوی دپاره حفاظت کوه.ګنی چې څوك غواړی شهد دې اوباسی او اوړی دې.بهرحال ددې حديث نه معلومه شوه چې د بنوشبابه خلقو په لسومشکونوکي يومشك عشر ورکولو.يومشك لس رطله وي.
(۳) دريم روايت دا دې.که شهد پنځه منه وي.نوبه دې کي به عشر واجب وي.
د امام محمد رحمه الله نه نقل دی چې پنځه فرق نصاب دې.يعنې په پنځه فرق شهدوکي عشر واجب دې او يو فرق شپږ ديرش رطله وي څکه په کومو پيمانوسره چې د شهدو اندازه کيږي.په دې کي د ټولو نه اعلی پيمانه فرق دې.

****************

## ١٠_ باب مَا جَاءَ لاَ زَكَاةَ عَلَى الْمَالِ الْمُسْتَفَادِ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ

**دكال په مينځ كې هغه وخته پورې په حاصل شوي مال كې زكواة نشته ځوپورې چې په دي باندې كال تير شوي نه وي**

٦٣١_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ صَالِحٍ الطَّلْحِيُّ الْمَدَنِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اسْتَفَادَ مَالًا فَلَا زَكَاةَ عَلَيْهِ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ عِنْدَ رَبِّهِ". وَفِي الْبَابِ عَنْ سَرَّاءَ بِنْتِ نَبْهَانَ الْغَنَوِيَّةِ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاته چې کوم مال حاصل شي په هغي کي ترهغه وخته زکواة نشته تر څو پورې چې دمالك سره په دي باندي كال تير نشي.
امام ترمذي وائي په دي باب کي دسراء بنت نبهان غنويه رضي الله عنها نه هم روايت مروي دي.

****************

٦٣٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "مَنِ اسْتَفَادَ مَالًا فَلَا زَكَاةَ فِيهِ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ عِنْدَ رَبِّهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى أَيُّوبُ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ مَوْقُوفًا، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ، ضَعَّفَهُ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَعَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ وَغَيْرُهُمَا مِنْ أَهْلِ الْحَدِيثِ، وَهُوَ كَثِيرُ الْغَلَطِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنْ لَا زَكَاةَ فِي الْمَالِ الْمُسْتَفَادِ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا كَانَ عِنْدَهُ مَالٌ تَجِبُ فِيهِ الزَّكَاةُ فَفِيهِ الزَّكَاةُ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ سِوَى الْمَالِ الْمُسْتَفَادِ مَا تَجِبُ فِيهِ الزَّكَاةُ لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ فِي الْمَالِ الْمُسْتَفَادِ زَكَاةٌ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ، فَإِنِ اسْتَفَادَ مَالًا قَبْلَ أَنْ

---

[1] - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٧٣١)

يَحُولَ عَلَيْهِ الحَوْلُ فَإِنَّهُ يُزَكِّي المَالَ المُسْتَفَادَ مَعَ مَالِهِ الَّذِي وَجَبَتْ فِيهِ الزَّكَاةُ. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَأَهْلُ الكُوفَةِ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي چاته كوم مال حاصل شي نو په هغي كي تر هغه وخته زكواة نشته ترڅو پوري چي دده سره په دي باندي يو كال تير نشي.
امام ترمذي وائي دا موقوف حديث د عبدالرحمن بن زيد بن اسلم دمرفوع حديث نه زيات صحيح دي، ايوب، عبيدالله بن عمر، او بعضي نورو محدثينو دنافع نه او هغه د ابن عمر نه موقوفا نقل كړي دي، عبدالرحمن بن زيد بن اسلم دحديث په باب كي ضعيف دي احمد بن حنبل. علي بن مديني، او نورو محدثينو دده تضعيف كړي دي عبدالرحمن به په كثرت سره غلطياني كولي په صحابه كرامو كي داكثرو نه مروي دي چي په حاصل شوي مال كي هغه وخته پوري زكواة نشته څو پوري چي كال درباندي تير شوي نه وي، امام مالك ، شافعي، احمد، او داسحاق هم ددي قائل دي، دبعضي اهل علمو قول دي كله چي ديو سړي سره دمخكي نه دومره مال وي چي زكواة پكي واجب كيږي نو په حاصل شوي مال كي به هم زكواة واجب وي او كه دده سره حاصل شوي مال نه علاوه نور مال نه وي چي زكواة پكي واجب شوي وي نو په گټلي شوي مال كي به هيڅ قسم زكواة واجب نه وي څو پوري چي كال درباندي تير نشي او كه ددي سره دكال تيريدو نه مخكي نور مال يوځاي شي نو دا به ددي مال سره په كوم كي چي زكواة واجب شوي دي په حكم كي شامل شي او دمستفاد مال نه به هم زكواة اوباسي سفيان ثوري او اهل كوفه هم ددي قائل دي.

## تشريح: دكال په مينځ كې د ، مستفاد مال، دزكاة بيان

مستفاد(حاصل شوى"مال دوه قسمونه دي:
(١) ياخويه دا داصلي يعنى داوښانوجنس وى.(٢) اويابه دغيرجنس نه وى.مثلاً دده سره د اوښانونصاب دي.اودكال په مينځ كي غواگانى ياچيلۍ حاصلى شوې.په دي دويم صورت كي په اتفاق سره مال مستفاد اصل سره نشى ملاويدلي .بلكه په مال مستفاد به ځانله د سرنه دحولان حول معتبروي.
اوكه اولنى صورت وې.يعنى مال مستفاد د اصل مال د جنس نه وې.نوددې هم دوه صورتونه دي:
(١) ځكه چى مال مستفاد به ياهم اصل حاصل شوې وى.مثلاً بچى اومنافع

---

1 _ تفرد به المؤلف(تحفة الأشراف: ٧٥٩٥)

(۲) او یابه دسبب مقصود نه حاصل شوې وی.نوپه اول صورت کې بالاجماع مال مستفاد داصل سره ملاوولې شی.اود اصل نصاب حول به دمال مستفاد حول شمارلی شی.دمال مستفاد دپاره دوباره دسرنه دحولان حول ضرورت نشته .

اوکه دویم صورت وې.مثلاًدچا سره داوښانونصاب وې.اودکال په مینځ کې څه نور اوښان مستفاد شو.لیکن ددې دحاصلولوسبب اختل دی.یاهبه ده،یامیراث دې.یعنی ده په مینځ کې نوراوښان واخستل،یاچا ده ته هبه کړل،یاپه میراث کې ملاوشو.نوپه دې صورت کې زمونږ په نزد مال مستفاد داصل نصاب سره ملاوولې شی.اوپه اصل نصاب چې کال تیرشی.نود(اصل نصاب اومال مستفاد)پوره مال زکاة به واجب وی.په مال مستفاد باندې دسرنه حولان حول شرط نه دې.

بلکه په اصل مال باندې دکال تیریدل کافی دی.

(۲) اوامام شافعی رحمه الله فرمائی چې په مال مستفاد کې دزکاة د وجوب دپاره په مال مستفاد باندې دسرنه کال تیریدل شرط دی.اوددې ابتداء دمالك کیدلو د وخت نه کیږی.نوکله چې په مال مستفاد باندې پوره یوکال تیرشی.نوپه دې کې به زکاة واجب وی.مال مستفاد که دنصاب په اندازه وی اوکه نه وی. د جانبینو دلائل د علم فقه په مطولاتو کې کتلی شئ. (العنایه علي الهدایه)

****************

## ۱۱_ بَابِ مَا جَاءَ لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ جِزْيَةٌ

## په مسلمانانو جزیه اوټکس نشته

۶۳۳_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَكْثَمَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ قَابُوسَ بْنِ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَصْلُحُ قِبْلَتَانِ فِي أَرْضٍ وَاحِدَةٍ وَلَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ جِزْيَةٌ».[1]

**ترجمه** : عبدالله بن عباس رضي الله عنهما بیان دي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي په یوه زمکه باندې د دوه قبیلو موجود کیدل درست نه دي او نه په مسلمانانو باندې جزیه مقررول درست دي.

****************

[1] _ ابي داود في الخراج ۲۸ (۳۰۳۲) . (تحفة الأشراف : ۵۳۹۹) . مسند احمد (۱ في ۲۸۵)

٦٣٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ قَابُوسَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. وَفِي البَابِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، وَجَدِّ حَرْبِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ الثَّقَفِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ قَدْ رُوِيَ، عَنْ قَابُوسَ بْنِ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ العِلْمِ، أَنَّ النَّصْرَانِيَّ إِذَا أَسْلَمَ وُضِعَتْ عَنْهُ جِزْيَةُ رَقَبَتِهِ، وَقَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ عَلَى المُسْلِمِينَ عُشُورٌ" إِنَّمَا يَعْنِي بِهِ جِزْيَةَ الرَّقَبَةِ، وَفِي الحَدِيثِ مَا يُفَسِّرُ هَذَا حَيْثُ، قَالَ: إِنَّمَا العُشُورُ عَلَى اليَهُودِ، وَالنَّصَارَى وَلَيْسَ عَلَى المُسْلِمِينَ عُشُورٌ. (1)

**ترجمه** په دي سند سره هم دقابوس نه دسابقه روايت هم معني حديث مروي دي
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث دقابوس بن ابي ظبيان نه مروي دي كوم چې هغه دخپل پلار نه او دهغه پلار درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دي . او په دي باب كي دسعيد بن زيد او حرب بن عبيدالله ثقفي دنيكه نه هم احاديث مروي دي داهل علمو عمل هم په دي باندي دي چي يو نصراني كله اسلام قبول كړي نو هغه ته به دخپل ځټ جزيه معاف كولي شي او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمان "ليس علي المسلمين عشور" مطلب هم دادي چي په ځټ باندي جزيه نشته ،او په حديث كي هم ددي وضاحت شوي دي لكه چي ارشاد نبوي دي "عشر صرف په يهود او نصاري دي او په مسلمانانو باندي عشر نشته.

***************

## ١٢ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي زَكَاةِ الحُلِيِّ

### دزيوراتو دزكواة بيان

٦٣٥ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ بْنِ المُصْطَلِقِ، عَنْ ابْنِ أَخِي زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَتْ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ تَصَدَّقْنَ وَلَوْ مِنْ حُلِيِّكُنَّ، فَإِنَّكُنَّ أَكْثَرُ أَهْلِ جَهَنَّمَ يَوْمَ القِيَامَةِ". (2)

**ترجمه** : عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دبي بي زينب ثقفيه رضي الله عنهما نه روايت دي

---

1 سنن ابي داود في الخراج ٢٨ (٣٠٣٢) . (تحفة الأشراف : ٥٣٩٩) . مسند احمد (١ في ٢٨٥)

2 ـ تفرد به المؤلف (بهذا السياق وبهذا المناسبة (تحفة الأشراف : ١٥٨٨٤) وانظر : مسند احمد (٦ في ٣٦٣)

چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته د وعظ کولو په حال کي اوفرمائيل اى د ښځو ډلي صدقه او خيرات ورکوئ اګرکه په شکل زيوراتو وي. ځکه چي د قيامت په ورځ په جهنم کي اکثر تاسو يئ.

**لغات** : تصدّقن: تصدق: باب تفعل نه په معني دخيرات ورکولو دي، تصدق علي الفقير بکذا يعني فقير ته يي فلاني شي صدقه کړو.

## د زينب ثقفيه رضي الله عنهما حالات

نوم زينب عرف رائطه قبيله ثقيف سره يي تعلق وو او دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره يي نکاح شوي وه، چونکه دابن مسعود دمعاش څه ذريعه نه وه نو زينب رضي الله عنها به د دستکارئ په ګټي ګذاره کوله ددينه چي به کوم امدن راتلو هغه به يي پخپل خاوند او خپلو بچو خرچ کولو يو ځل يي اووئيل زه چي څه ګټم نو په تاسو يي خورم زما په دي کي څه فائده ده ابن مسعود رضي الله عنه جواب ورکړو ته دخپلي فائدي صورت پيدا کړه زما ستا نقصان خوښ نه دی په دي وجه تالره پکار دي چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه معلومات حاصل کړي چنانچه زينب خپله مسئله په دربار نبوت کي بيان کړه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل پخپل خاوند او اولاد چي خرچ کوي تاته به ددي اجر ملاويږي (مسلم).
دزينب دوفات باره کي تحقيق معلومات حاصل نه دی ، او دمروياتو شمير يي اتو ته رسيږي چي دوه متفق عليه دي.

****************

٦٣٦ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ ابْنِ أَخِي زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي مُعَاوِيَةَ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ وَهِمَ فِي حَدِيثِهِ، فَقَالَ: عَنْ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ، عَنْ ابْنِ أَخِي زَيْنَبَ، وَالصَّحِيحُ إِنَّمَا هُوَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ ابْنِ أَخِي زَيْنَبَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّهُ رَأَى فِي الحُلِيِّ زَكَاةً" وَفِي إِسْنَادِ هَذَا الحَدِيثِ مَقَالٌ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي ذَلِكَ، فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ فِي الحُلِيِّ زَكَاةً مَا كَانَ مِنْهُ ذَهَبٌ وَفِضَّةٌ. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ المُبَارَكِ، وَقَالَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مِنْهُمْ ابْنُ عُمَرَ، وَعَائِشَةُ، وَجَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَأَنَسُ بْنُ مَالِكٍ لَيْسَ فِي الْحُلِيِّ زَكَاةٌ، وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ بَعْضِ فُقَهَاءِ التَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. (1)

**ترجمه** : په دي سند سره هم دعبدالله بن مسعود د بي بي زينب رضي الله عنهاپه واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل حديث هم معني روايت مروي دي.

امام ترمذي وائي دا روايت دابومعاويه دحديث نه زيات صحيح دي هغه ته پخپل حديث كي وهم پيدا شوي دي ابو معاويه وائي دعمرو بن الحارث نه روايت دي او هغه دعبدالله بن مسعود دبنځي دوراره نه روايت كوي او صحيح روايت دي دزينب دوراره عمرو بن حارث نه روايت دي، همدارنګي دعمرو بن شعيب نه په سند د عن ابيه عن جده عبدالله بن عمرو العاص عن النبي صلي الله عليه وسلم روايت مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په زيوراتو كي زكواة واجب كړي دي ددي حديث په سند محدثينو كلام كړي دي، داهل علمو په دي سلسله كي اختلاف دي په صحابه كرامو او تابعينوكي دبعضو په كومو كي چي ابن عمر، عائشه، جابر بن عبدالله، او انس بن مالك رضي الله عنهم شامل دي دا قول دي چي په زيوراتو كي زكواة نشته ، دبعضي تابعينو او فقهاؤ نه هم داسي مروي دي او دا دامام مالك، شافعي، احمد ، او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي.

***************

٦٣٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ امْرَأَتَيْنِ أَتَتَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي أَيْدِيهِمَا سُوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ، فَقَالَ لَهُمَا: "أَتُؤَدِّيَانِ زَكَاتَهُ؟" قَالَتَا: لَا. قَالَ: فَقَالَ لَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتُحِبَّانِ أَنْ يُسَوِّرَكُمَا اللَّهُ بِسُوَارَيْنِ مِنْ نَارٍ؟" قَالَتَا: لَا. قَالَ: "فَأَدِّيَا زَكَاتَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ قَدْ رَوَاهُ الْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ نَحْوَ هَذَا. وَالْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ، وَابْنُ لَهِيعَةَ يُضَعَّفَانِ فِي الْحَدِيثِ. وَلَا يَصِحُّ فِي هَذَا الْبَابِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي دوه زنانه په خدمت نبوي كي حاضر شوي او ددوئ په لاسونو كي دسرو زرو بنګړي وو رسول الله صلي الله عليه

---

1 ـ صحيح البخارى في الزكاة ٤٨ (١٤٦٦). صحيح مسلم في الزكاة ١٤ (١٠٠٠). سنن النسائي في الزكاة ٨٢ (٢٥٨٣). (تحفة الأشراف: أيضا: ١٥٨٨٤). مسند احمد (٣ في ٥٠٢). سنن الدارمي في الزكاة ٢٣ (١٦٩٣)

2 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٦٣٠)

وسلم ورته اوفرمائيل ايا تاسو دواړه ددي زکواة اداء کوئ؟ هغوئ عرض اوکړو . رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته اوفرمائيل ايا تاسو دا خوښوئ چي الله تعالي درته د اور دوه بنګړي واچوي هغوئ عرض اوکړو هرګز نه، نو رسول الله ورته اوفرمائيل تاسو به ددي دواړو زکواة ضرور اداء کوئ.

امام ترمذي وائي دا حديث مثني بن صباح هم دعمرو بن شعيب نه په دي طريقه نقل کړي دي او مثني بن صباح او ابن لهيعه دواړه دحديث په باب کي ضعيف دي ، درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باب کي هيڅ يو صحيح څيز ثابت نه دي.

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي په زيوراتو کي زکواة واجب دي او کنه په دي کي دوه مذاهب دي.

(١) دامام ابو حنيفه په نزد دښځو داستعمال په زيوراتو کي زکواة واجب دي.

(٢) او دائمه ثلاثه په نزد داستعمال په زيوراتو کي زکواة نشته او دائمه ثلاثه په مذهب کوم صريح حديث نشته صرف قياسي استدلال کوي چي زيور د استعمال څيز وي او داستعمال په څيزونو کي زکواة نه وي ليکن زمونږ فقهاؤ اصول دادي چي قياس دنص په مقابله کي مقبول نه دي.

***************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي زَكَاةِ الْخُضْرَوَاتِ

## په شينکواوسبزيانوکي دزکاة بيان

٦٣٨_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الحَسَنِ بْنِ عُمَارَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ مُعَاذٍ أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُهُ عَنِ الخَضْرَاوَاتِ وَهِيَ البُقُولُ، فَقَالَ: "لَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: إِسْنَادُ هَذَا الحَدِيثِ لَيْسَ بِصَحِيحٍ، وَلَيْسَ يَصِحُّ فِي هَذَا البَابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ، وَإِنَّمَا يُرْوَى هَذَا عَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ أَنْ لَيْسَ فِي الخَضْرَاوَاتِ صَدَقَةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالحَسَنُ هُوَ ابْنُ عُمَارَةَ، وَهُوَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الحَدِيثِ ضَعَّفَهُ شُعْبَةُ وَغَيْرُهُ وَتَرَكَهُ ابْنُ المُبَارَكِ. (١)

---

١ _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١١٣٥٢)

**ترجمه** دمعاذ رضي الله عنه نه روايت دي چي ما نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته خط اوليکو او دسبزيانو دزکواة باره کي مي ورنه تپوس اوکړو نو جواب يې راوليږلوچه په دي کي هيڅ قسم زکواة نشته.

امام ترمذي وائي ددي حديث سند صحيح نه دي او په دي باب کي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه هيڅ څيز صحيح ثابت نه دي او دا صرف دموسي بن طلحه نه مروي دي او هغه درسول الله نه مرسلا نقل کړي دي، په همدي داهل علمو عمل دي چي په سبزيانو کي زکواة نشته.
حسن دعماره څوي دي او دا دمحدثينو په نزد ضعيف دي شعبه وغيره دده تضعيف کړي دي او دابن مبارك متروکينو کي شميرلي دي.

**تشريح** : د سبزياتو او ترکاريانو د زکات متعلق د احنافو اهل علمو دا مسلك دی چي سبزي به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا به د تجارت دپاره وي او يابه د خپل ذاتي ضرورت پوره کولو دپاره کرلی شوي وي، که د تجارت دپاره وي نو په دي کي بالاتفاق عشر واجب دی، اوکه د خپل ذاتي ضرورت پوره کولو دپاره کرلی شوي وي نو په دي کي اختلاف دی اوپه دي مسئله دوه اقوال دي:
(١) امام ابو حنيفه رحمه الله په دي کي د زکات د وجوب قائل دی .
(٢) دويم قول د صاحبينو دی دوئ وايي چي په سبزيانو کي زکات نشته .

د صاحبينو دليل د نبی کريم صلي الله عليه وسلم قول "ليس فی الخضروات صدقة" دې اودا روايت په،دارقطنی،کي داسې دې. "أن رسول الله صلي الله عليه وسلم نهی أن يؤخذ من الخضروات صدقة" په حديث کي د صدقه نه مرادعشر دې ځکه چی سبزيانې که دتجارت دپاره وی.نوپه دې کي بالاتفاق زکاة واجبيږی.نومعلومه شوه چی په حديث کي د زکاة نفی نه ده شوې. اوهرکله چی زکاة غيرمنفی دې.نوعشربه متعين وی اود حديث مطلب به داوی چی نبی کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلې دی. چی په سبزيانوکي عشر واجب نه دې اوپه سبزيانوکي د عشرد عدم وجوب علت ددې باقی نه پاتې کيدل دی.نوکوم څيزونه چی پوره کال بغيرد څه علاجه باقی نه پاتې کيږی.په دې کي به عشر واجب نه وی.

دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل ذکرشوې حديث "ما أخرجت الأرض ففيه العشر" دې ځکه چی دا حديث مطلق دې.د باقی پاتي کيدلو او دنه پاتې کيدلوهيڅ قيدنشته نو مطلقاً به د زمکې په پيداوارکي عشرواجب وی.که پوره کال باقی پاتې کيدې شي.وکه نشي.

دصاحبينو ددليل نه جواب دادی چی د "ليس فی الخضروات صدقة"مطلب دادې چی که څوك ترکاريانې او سبزيانې دخان سره واخلی اود عاشر په خواکي تيرشی اومالك د قيمت ورکولونه انکار اوکړی.نوعاشر به د ترکاريانو عشر نه وصول کوی ځکه چی عاشر بالعموم

د بنار نه لرې اوسيږی. اوهلته کي فقيران موجود نه وی.نوپه داسې صورت کي که په سبزيانوکي عشروصول کړی. نو د دې دخرابيدو امکان دې.په دې وجه او وئيلې شو چې عاشر به د سبزيانو عشر نه اخلی.بلکه مالك به يې په خپله فقيرانو ته ورکړی اوهرکله چې ئې مالك پخپله فقيرانو ته ورکړی.نودوی به دا اوخوری اوس به ددې د خرابيدو هيڅ امکان پاتې نشی. امام ابوحنيفه ددې حديث هم په دې محمل باندې عمل کوی.دامطلب نه دې چې په سبزيانو کې بالکل عشرواجب نه دې.

د امام صاحب رحمه الله په مذهب باندې عقلی دليل دادې چې د عشر دوجوب سبب د زمکې نامی کيدل دی اوکله دزمکې نه په داسې څيز سره هم نماء حاصليږی چې هغه باقی پاتې کيدونکې نه وی.نوکه د زمکې نه ترکاريانې او سبزيانې پيداکړې شې اوعشر واجب نکړې شی.نود سبب نه بغير به دحکم نه موجود کيدل لازم شی اودا درست نه دی.په دې وجه ترکاريانو او سبزيانوکي هم عشرواجب کړې شو.

هم دغه وجه ده چې په خراجی زمکه کي که ترکاريانې او سبزيانې وکرلی شوې نو په دې کي به خراج واجب وی.څنګه چې په باقی نه پاتې کيدونکوڅيزونوکي خراج واجبيږی.دغه شان عشر به هم واجب وی.

(۱) د امام صاحب رحمه الله مذهب ذکرکولو کي چې د خشاکو د لرګو.نلونو اود ګيا استثناء شوې وه.يعنی په دې څيزونوکي عشرواجب نه دې ځکه چې عادةً دا څيزونه په باغونوکي نه راخيژی.بلکه ددې څيزونو نه باغونه صفا کولې شی.

(۲) خوکه د پټی مالك زمکه د درمو يا د خشاکو د ونو باغ يا د ګيا کرلو ځائې جوړ کړی اوددې څيزونو حاصلول يې مقصود وي نو په دې کي به عشر واجب وی.(احسن الهدايه، عنايه شرح هدايه).

***************

## ١٤ـ باب مَا جَاءَ فِي الصَّدَقَةِ فِيمَا يُسْقَى بِالأَنْهَارِ وَغَيْرِهِ

### په نهرونووغيره اوبه شووزمکوپه فصل کي دزکواة بيان

٦٣٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ الْمَدَنِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي ذُبَابٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، وَبُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فِيمَا سَقَتِ السَّمَاءُ وَالْعُيُونُ الْعُشْرُ، وَفِيمَا سُقِيَ بِالنَّضْحِ نِصْفُ الْعُشْرِ ".

قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الأَشَجِّ، وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، وَبُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. وَكَأَنَّ هَذَا أَصَحُّ وَقَدْ صَحَّ حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَابِ، وَعَلَيْهِ الْعَمَلُ عِنْدَ عَامَّةِ الْفُقَهَاءِ. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دكوم فصل سيرابي چي دباران يا دنهر په اوبو شوي وي په هغې كي زكواة لسمه حصه ده او دكوم فصل سيرابي چي په بوكه شوي وي په هغې كي زكواة دلسمي حصي نيمه ده يعني شلمه حصه ده.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دانس بن مالك، ابن عمر، عن جابر رضي الله عنه نه هم احاديث مروي دي، دا حديث دبكير بن عبدالله بن اشج سليمان بن يسار او بسر بن سعيد نه هم مروي دي او دوئ ټولو دا رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دي ګويا كي چي دا زيات صحيح دي او په دي باب كي دابن عمر حديث هم صحيح دي كوم چي هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي او په همدي داكثرو فقهاؤ عمل دي.

**تشريح** : دزمكي په پيداوار كي زكواة په دوه قسمه دي لسمه حصه او شلمه حصه كه دزمكي سيرابي په خاروو يا په بوكه يا موټر وغيره په ذريعه كيږي او يا يي سيرابي په محنت باندي كيږي نو ددي په پيداوار كي نصف عشر يعني شلمه حصه زكواة واجب دي او كه نه يي خرچه كړي وي او نه يي محنت كړي وي په نهر يا په چينه يا په باران سيراب شوي وي نو دي كي پوره عشر يعني لسمه حصه زكواة واجب دي او په عرف كي دواړو ته عشر وئيلي شي او دا مسئله دټولو فقهاؤ په نزد اجماعي ده.

***************

٦٤٠ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْحَسَنِ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَنَّهُ سَنَّ فِيمَا سَقَتِ السَّمَاءُ وَالْعُيُونُ أَوْ كَانَ عَثَرِيًّا الْعُشْرَ وَفِيمَا سُقِيَ بِالنَّضْحِ نِصْفَ الْعُشْرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

---

1 ـ سنن ابن ماجه في الزكاة ١٧ (١٨١٦). (تحفة الأشراف: ١٢٢٠٨، و ١٣٤٨٣)

2 ـ صحيح البخاري في الزكاة ٥٥ (١٤٨٣). سنن ابي داود في الزكاة ١١ (١٥٩٦). سنن النسائي في الزكاة ٢٥ (٢٤٩٠). سنن ابن ماجه في الزكاة ١٧ (١٨١٧). (تحفة الأشراف: ٦٩٧٧)

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا طريقه جاري كړي ده چي كومه زمكه چينو يا باران سيراب كړي وي او يا رطوبت والا زمكه وي چي اوبو ته ضرورت نه لري نو په دي كي لسمه حصه زكواة دي او چي كومه زمكه په بوكه سيراب كيږي په هغي كي لسمي حصي نيمه يعني شلمه حصه زكواة دي ، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: كه پټي په لوي ډول يا آرټ ياد اوښي په ذريعه خړوب كړې شوي وي.نود امام صاحب رحمه الله او صاحبين دواړو په نزد په دې كي نصف عشرواجب دي خوددي اختلاف سره د امام صاحب رحمه الله په نزد نه نصاب شرط دي اونه بقاء اود صاحبينو په نزدبه د دواړو شرطونو لحاظ ساتلي شي.

ددي دليل دادې چي په دې صورتونوكي زيات مشقت اوچتولي شي.په نسبت د باران يا د درياب نه د اوبه كولو.چونكه په باران يا درياب سره اوبه كولوكي مشقت كم وي.په دې وجه به په دې كي عشرواجب وي اوپه آرټ وغيره سره خړوبولوكي مشقت زيات وي.په دې وجه په دې صورتونوكي به دعشر نيمه يعني شلمه حصه واجب وي.

اوكه پټي د درياب په اوبوسره هم سيراب كړې شوي وي اوپه ډول سره هم اوبه راوښكلي شوي وي اوسيراب كړې شوې وي.نود كال د اكثر اعتبار به كولي شي.يعني كه اكثركال په درياب سره سيراب كړې شو اوڅه ورځي په ډول سره سيراب كړې شو نو عشر به واجب وي اوكه ددې په عكس دې نونصف به واجب وي.

دصاحبينو په مذهب كي يو اشكال دى.هغه داچي د صاحبينو په نزد زمكي په پيداوار كي د عشر د وجوب دپاره ددې پنځه وسق مقدار كيدل ضروري دې.ددې نه په كم كي به عشر واجب نه وي.خوپه كومو څيزونوكي چي په وسق سره د كاروبارمعمول نه وي اوددې اخستل خرڅول په وسق سره نه كيږي.لكه زعفران او مالوچ شو.نوآيا په دې كي به عشرواجب نه وي؟

د داسي څيزونو باره كي د امام ابويوسف رحمه الله قول دادې چي زعفران وغيره غير وسقي څيزونو قيمت كه د ادنى درجه وسقي څيزونو سره پنځه وسق پوره كيدې شي.نوپه دې كي به عشرواجب وي.مثلاً دوه سوه گرامه زعفرانو قيمت د پنځه وسق جوارو قيمت ته رسي.نوپه دوه سوه گرامه زعفرانو كي به عشرواجب وي اگرچي د زعفرانو اخستل خرڅول په وسق سره نه كيږي.

د امام ابو يوسف دليل دادې چي په غير وسقي څيزونو كي شرعي نصاب يعني د پنځه وسقو اندازه كول ممكن نه دى.په دې وجه به ددې د قيمت اعتباركولي شي.لكه څنگه چي د تجارت په سامان كي شرعي نصاب يعني دوه سوه درهمو اندازه كول ناممكن دى. ددې

قيمت معتبر دی.یعنی سامان تجارت که دوه سوه درهمومقدار ته اورسیږی.نوپه دې کي به زکاة واجب وی.
د امام محمد رحمه الله قول دادې چی په غیر وسقی څیزونو کي د اعلی درجه معیار معتبر دې، یعنی په کوم معیار سره چی اندازه کولې شی.کوم چی د تولونه اعلی وې.که دا د پنځوتعداد ته اورسی.نوپه دې کي به عشر واجب وی.کنی واجب به نه وی.لکه چی په مالوچو کي د تولو نه اعلیٰ او لویه اندازه کولو والا آله اومعیار جمل (بکسرالحاء) دې.جمل د یوې اوښې بوجه نوکه مالوچ پنځه جمله وی.نود امام محمد رحمه الله په نزدبه په دې کي عشر واجب وی.یوجمل تقریباً درې سوه منه وی اوپه زعفرانو کي د تولونه اعلیٰ معیار .مَن. وی نو که زعفران پنځه منه مقدار ته اورسی. نو په دې کي به عشرواجب وی.

***************

## ١٥ـ باب مَا جَاءَ فِي زَكَاةِ مَالِ الْيَتِيمِ

### د یتیم دمال نه دزکاة ویستلو بیان

٦٤١ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنِ الْمُثَنَّى بْنِ الصَّبَّاحِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ النَّاسَ، فَقَالَ: " أَلَا مَنْ وَلِيَ يَتِيمًا لَهُ مَالٌ فَلْيَتَّجِرْ فِيهِ وَلَا يَتْرُكْهُ حَتَّى تَأْكُلَهُ الصَّدَقَةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَفِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ، لِأَنَّ الْمُثَنَّى بْنَ الصَّبَّاحِ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَذَكَرَ هَذَا الْحَدِيثَ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي هَذَا الْبَابِ، فَرَأَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَالِ الْيَتِيمِ زَكَاةً، مِنْهُمْ عُمَرُ، وَعَلِيٌّ، وَعَائِشَةُ، وَابْنُ عُمَرَ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَيْسَ فِي مَالِ الْيَتِيمِ زَكَاةٌ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَعَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ هُوَ ابْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، وَشُعَيْبٌ قَدْ سَمِعَ مِنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَقَدْ تَكَلَّمَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ فِي حَدِيثِ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، وَقَالَ: هُوَ عِنْدَنَا وَاهٍ وَمَنْ ضَعَّفَهُ فَإِنَّمَا ضَعَّفَهُ مِنْ قِبَلِ أَنَّهُ يُحَدِّثُ مِنْ صَحِيفَةِ جَدِّهِ عَبْدِ

اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَمَّا أَكْثَرُ أَهْلِ الْحَدِيثِ فَيَحْتَجُّونَ بِحَدِيثِ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ فَيُثْبِتُونَهُ. مِنْهُمْ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ وَغَيْرُهُمَا. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم خلقو ته خطاب اوكړو او وېي فرمائيل څوك چي دداسي يتيم متولي او سرپرست وي دچا سره چي څه مال وي نو دده په مال دي تجارت اوكړي او بغير دتجارته دي دي لره نه پريږدي دي دپاره چي صدقه يې په خوړلو ختم نكړي.

امام ترمذي وائي دا حديث صرف په همدي سند مروي دي او په دي سند محدثينو كلام كړي دي ځكه چي مثني بن صباح ضعيف دي . بعضي محدثينو دا حديث دعمرو بن شعيب نه نقل كړي دي چي عمر رضي الله عنه اوفرمائيل ....او دماقبل حديث پشان حديث يې ذكر كړو. عمرو دشعيب خوي دي او شعيب دمحمد بن عبدالله بن عمرو بن العاص خوي دي . شعيب دخپل نيكه عبدالله بن عمر نه اوريدل كړي دي ، يحي بن سعيد دعمرو بن شعيب په حديث كلام كړي دي او دا يې وئيلي دي چي دي زمونږ په نزد ضعيف دي او چاچه دده تضعيف كړي دي دا يې صرف په دي وجه كړي دي چي هغه دخپل نيكه عبدالله بن عمرو دصحيفي نه حديث بيان كړي دي ليكن اكثر محدثينو دعمرو بن شعيب حديث قابل داستدلال ګڼري او دا ثابت ګڼري په كومو كي چي احمد او اسحاق بن راهويه وغيره هم شامل دي، په دي باب كي داهل علمو اختلاف دي دبعضي صحابه كرامو رائي داده چي ديتيم په مال كي زكواة شته يو دهغوئ نه عمر ، علي، عائشه، او ابن عمر رضي الله عنهم دي او همدا دامام مالك ، شافعي، احمد ، او اسحاق بن راهويه قول هم دي او داهل علمو ديو جماعت قول دادي چي ديتيم په مال كي زكواة نشته سفيان ثوري او عبدالله بن مبارك هم په دي باندي قول كړي دي.

اود عمرو بن شعيب نوم محمد بن عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه دي اود شعيب سماع د خپل نيكه عمرو نه ثابت ده او يحي بن سعيد د عمرو بن شعيب په حديث كلام كړي دي ويل چي زمونږ په نزد ددي هيڅ بنياد نشته، او دده تضعيف په دي وجه شوي دي چي ده به د خپل نيكه عبد الله بن عمرو د صحيفي نه احاديث بيانول مګر اكثر محدثين دده روايت قبلوي او حجت يې ګڼي چي يو دهغوي نه امام احمد او اسحاق وغيره هم دي.

**تشريح** : د يتيم د متولي دپاره د يتيم د مال نه زكواة ويستل او وركول واجب دي او كنه په دي مسئله كي د فقهاؤ دوه مذاهب دي:

---

[1] - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٧٤٤)

(۱) د احنافو په نزد واجب نه دي.
(۲) د باقي ائمه په نزد د نابالغ په مال کي هم زکاة واجب دي:
احنافو د ابو داود او نسائي د مشهور روايت رفع القلم عن الثلاث عن النائم حتي يستيقظ وعن الصغير حتي يكبر وعن المجنون حتي يعقل او يفيق نه استدلال کړي دي.
دويم دليل امام محمد په کتاب الاثار کي د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه دا قول نقل کړی دی: ليس في مال اليتيم زکاة.
او جمهورو علماؤ په دي باب کي د حديث الباب نه استدلال کړی دی چي شارحينو د هدايه ورنه مفصل جوابات کړي دي، دلته يي دطوالت د خوف په وجه نشو نقل کولی.

**دعبدالله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه حالات:**

نوم عبد الله کنيه ابومحمد يا ابوعبدالرحمان دپلار نوم يي عمرو بن العاص وو او دمور نوم يي ريطه بنت مبني وو دخپل پلار عمرو سره په اسلام کي داخل شوی وو (اسد الغابه).
درسول الله صلي الله عليه وسلم مجلس ته به راتلو او چي څه به يي اوريدل هغه به يي ليکل.
پخپله ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چي ده ته زما نه زيات احاديث ياد دي ځکه چي ده به ليکل کول او ما نه کول (تذکرة الحفاظ).
درسول الله سره په بعضي غزواتو کي هم شريك شوی دی او په جنګ يرموك کي عمرو بن العاص رضي الله عنه ده ته دخپل لاس جهنډه ورکړي ده.
ددرس حلقه يي ډيره وسيعه ده او دخپلو شاګردانو سره يي ډير محبت وو په هره دويمه ورځ به يي روژه نيوله او دشپي اکثره حصه به يي په عبادت کي تيروله او په دري ورځو کي به يي قران ختمولو.
وفات: عمرو بن العاص رضي الله عنه په ۲۵هجري کي وفات شوی دی او پدغه زمانه کي دمروان بن حکم او عبدالله بن زبير جنګ جاري وو نو په دي وجه ده لره خلقو په کور کي دفن کړو ځکه چي جنازه عام قبرستان ته رسول مشکل وو.
دده نه اوه سوه روايات منقول دي چي ۱۷ متفق عليه دي اته په بخاري کي او شل په مسلم کي (تهذيب الکمال).

******************

## ۱٦_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الْعَجْمَاءَ جُرْحُهَا جُبَارٌ وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ

**د څارويُ وهلي انسان وينه ويريا ده او د زمکي په مدفون مال کي خمس دی**

٦٤٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، وَأَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْعَجْمَاءُ جَرْحُهَا جُبَارٌ، وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ، وَالْبِئْرُ جُبَارٌ، وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، وَعَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيِّ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دخاروي جوړ كړي زخم وېريا دي يعني معاف دي غوړ معاف دي او كوهي ته غورخيدل معاف دي او په ركاز يعني دزمكي په دفينه كي به پنخمه حصه وركولي شي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دانس بن مالك، عبدالله بن عمرو، عباده بن الصامت ، عمرو بن عوف مزني او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : په عام طور سره رواج دا دي چي پتي والا دورخي دخپل پتي خيال ساتي او څاروي هم دورخي سريږي او دشپي واپس كورته راځي نوبيا دي وجه دورخي د فصل دبربادېدو په صورت كي ذمه داري دپتي دمالك ده او دشپي چي فصل برباد شي ددي ذمه واري دڅاروو په مالك ده او وجه يي داده چي دشپي يي خپل څاروي ولي تړلي نه دي ساتلي څكه چي درسول الله صلي الله عليه وسلم فرمان دي "العجماء جرحها جبارا" (متفق عليه واحمد واصحاب سنن من حديث ابي هريره).

صاحب دهدايه ليكلي دي چي امام محمد بن حسن فرمائيلي دي دعجماء نه مراد پريخودلي شوي څاروي دي يعني كه پريخودلي څاروي څوك زخمي كړي نو ددي څه معاوضه نشته .

جمهورو د حرام بن سعد بن محيصه دروايت نه استدلال كړي دي چي دبراء بن عازب رضي الله عنه اوښه دچا باغ ته داخله شوه او څه نقصان يي اوكړو او مقدمه يي رسول الله ته پيش كړي شوه نو رسول الله فيصله اوكړه چي دورخي دپتو دحفاظت ذمه واري دپتو په مالك ده او دشپي

[1] ـ صحيح البخاري في الديات ٢٨ (٦٩١٢)، ومسلم في الحدود ١١ (١٧١٠)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٢٤، و١٥٢٢٨) وأخرجه: البخاري في الزكاة ٦٦ (١٤٩٩)، والمساقاة ٣ (٢٣٥٥)، والديات ٢٩ (٦٩١٣)، وابي داود في الخراج ٤٠ (٣٠٨٥)، والديات ٣٠ (٤٥٩٣)، والنسائي في الزكاة ٢٨ (٢٤٩٧)، سنن ابن ماجه في الأحكام ٤ (٢٦٧٣)، موطا مالك في الزكاة ٤ (٩)، العقول ١٨ (١٢)، مسند احمد (٢ في ٢٢٨، ٢٥٤، ٢٧٤، ٢٨٥، ٣١٩، ٣٨٢، ٣٨٦، ٤٠٦، ٤١١، ٤٥٤، ٤٥٦، ٤٦٧، ٤٧٥، ٤٨٢، ٤٩٥، ٥٠١، ٥٠٧)، و الدارمي في الزكاة ٣٠ (١٧١٠)، والمؤلف في الأحكام ٣٧ (١٣٧٧)

چي خاروي نقصان اوكړي نوددي ذمه وار دخاروو مالك دي (رواه مالك في الموطاء والشافعي واصحاب السنن الاربعه والدارقطني وابن حبان والحاكم والبيهقي في السنن).

امام شافعي وائي ددي حديث نه مونږ هم استدلال كړي دي داحديث متصل دي او راويان يي معروف دي

حافظ ابن حجر ليكلي دي ددي روايت مدار په زهري دي اودزهري په الفاظو كي دبل سند په اعتبار سره اختلاف دي ، دموطا روايت خو هغه دي كوم چي ذكر كړي شو او په كوم سند كي چي ليث دزهري نه نقل كړي دي په هغي كي عن ابي محيصه نوم نشته او معن بن عيسي چي كوم روايت دمالك نه بيان كړي دي په هغي كي عن جده محيصه راغلي دي او دمعمر عن الزهير په روايت كي عن حرام عن ابيه راغلي دي او دده هيڅ څوك متابع نشته (اخرجه ابو داود وابن حبان) ليكن اوزاعي او اسماعيل بن اميه او عبدالله بن عيسي چي دزهري كوم حديث نقل كړي دي په هغي كي عن حرام عن البراء راغلي دي زه وايم ابن جوزي په تحقيق التعليق كي داحمد په سند سره داسي بيان كړي دي حافظ ابن حجر ليكلي دي حرام دبراء نه اوريدل نه دي كړي . عبدالحق دابن حزم په اتباع كي هم داسي وئيلي دي نسائي من طريق محمد بن ابي حفصه عن الزهري ، زهري قول دي ابواسامه بن سهل خبر راكړي دي چي دبراء رضي الله عنه اوبني (الحديث).

دابن ذئب په روايت كي دي دزهري قول دي چي ماته چي دبراء رضي الله عنه اوبنه الخ. پس د دري وارو امامانو په نزد العجماء جرحها جبار دعموم دپاره ناقة البراء والاحديث مخصص دي او وئيلي يي دي دالعجماء جبارا حكم هم په ورځ پوري مخصوص دي ، مونږ وايو عام هم دخاص پشان قطعي وي ترڅو چي ددوارو په يو وخت كي كيدل ظاهر نشي ترهغي به دي لره منسوخ گرځولي شي او كه اقتران زماني يا تاخر زماني هم ثابت نه وي نو تعارض به قائم شي اوچونكه د العجماء جبارا او ناقة البراء والاحديثونو ظهور په يوه زمانه كي شوي دي تردي چي عام لره په خاص محمول كړي شي او نه تاخر او تقدم ثابت دي چي سابقه جمله منسوخ اوګڼرلي شي نوپدي وجه په دوارو كي تعارض باقي دي پس دشك په حالت كي د تاوان عائد كيدو فتوه نشي جاري كيدي . ددينه علاوه قاعده داده كه چري ددوارو حديثو تعارض ختم نكړي شي نو دقياس طرف ته رجوع ضروري ده او قياس دا تقاضا كوي چي ضمان دتاوان دي عائدنكړي شي خكه چي دخاروو مالك هيڅ قصور نه لري دي بالكل موجود نه وو او خاروي ازاد وو نه ده پخپله خاروي پريخي دي او نه يي شړلي وو او نه يي راوستلي وو دهيڅ قسم ضمان دموجب نسبت ده ته نشي كيدي پدي بنا باندي مونږ وايو كه چري چا خاروي په لار كي پريخودلي وي او خاروو چاته ضرر ورسولو نو دخاروو پريخودونكي به دتاوان ذمه دار وي داځكه ترڅو چي دا خاروي پدي لاره روان وي نو ددي دپريخودو نسبت به پريخودونكي ته

کيږي مګر که څاروي کوم طرف ته ستانه شوي وي بني ياچپ طرف ته يا ودريدلي وي اوبيا يې ددينه پس چاته تاوان رسولي وي نو ددي مالك ته به ددي فعل نسبت نه کوي او به لاره دېريخودو حکم به منقطع وي.

**مسئله**: که چري داس والا په اس سور وي او يايې واګي نيولي وي او روان کړي يې وي او يايې دوروستونه شړي او اس څوك په لته اووهي او يايې اوچيچي او يايې په سر اووهي او يايې په خوله اوچيچي او يايې دخپو لاندي کړي يادچاسره تکراؤ شي او يا په ولاړه دچا سره اوجنګيږي او دغه خاي داس والاملکيت وي يادتيکي وغيره په ذريعه دده په تيکه کي وي نو داولني صورت نه علاوه په باقي ټولو صورتونو کي به داس والادتاوان ذمه واري نه وي صرف په اولني صورت کي به تاوان ورکوي خکه چي دسوريدو په حالت کي دده بوج دده په شاپروت وي پداسي حالت کي که اس چالره دخپو لاندي کړي نو ګوياکي سور هم داس سره دلاندي کولو په عمل کي شريك دي. پس پدي حالت کي به سور مرتکب دبربادئ ګرخولي شي
په باقي صورتونو کي مونږ دنقصان رسولو او دضرر ورکولو سبب اخرني ګرخولي دي او په مسبب تاوان په هغه وخت کي عائد دي کله چي دده دطرف نه بغير دارادي ددي فعل ظهور اوشي او په ذکر شوو صورتونو کي بغير دارادي نه دضرر رسولو سبب پيدا کول ثابت نه دي ليکن که دغه خاي داس دمالك ملکيت نه وي او نه دده په قبضه کي وي بلکه صرف ده ته دلته دتلو اجازت وي او داودريدو اجازت ورته نه وي لکه عامه لاره . يا ودريدل او تللو دواړو اجازت ورته وي نوپدي حالت کي به په ټولو ذکر شوو صورتونو کي په مالك تاوان عائد وي برابره خبره ده چي سور وي اوکه واګي يي نيولي وي او روان کړي يي وي او که دوروستو نه يي شړي ليکن پدي حالاتو کي هم که چري اس چالره په لته اووهي او يا ورته په لکئ کوم ضرر اورسوي نو په اس والابه دکوم تاوان ذمه واري نه وي خکه چي په عامه لاره په سلامتئ سره نورو ته دتاوان رسولو نه بغير تيريدل دهر مسلمان حق دي او لاره خو دټولو مشترکه وي او دلاري نه فائده اخستل هم دهر چاحق دي ليکن دا اباحت ددي شرط سره مقيد دي چي نورو ته به ضرر نه رسوي مګر تردي حده سلامتي ضروري ده دکومه حده پوري چي دتيريدونکي په اختيار کي حدود وي او دسور دپاره دا ممکن وي چي چالره داس دخپو نه لاندي نکړي او چالره دخپو نه لاندي کول دتلو دحق تقاضا نه ده مګر په تلو کي دلکئ وهلو او لتي وهلو نه خلق محفوظ کول دسور داختيار نه بهر دي پس که چري په روانه روانه دلاري په مينخ کي دمسلمانانو په لار کي اس ودروي اوپدي حالت کي اس چالره په لته يالکئ اووهي نودامام مالك بيان دي که چري اس والاواګي نيولي وي او بوتلو ياشړلو والادطرف نه اس ته څه ترغيب نه وي يايي اس وهلي نه وي نو په ذکر شوو صورتونو کي په هيڅ يو صورت کي داس والا دتاوان ذمه وار نه دي.

دامام شافعي بيان دي كه چري اس په خوله ياپه لته ياپه لكئ كوم ځيز ته ضرر ورسوي نو اس والابه دتاوان ذمه وار وي اګر كه دده دطرف نه كوم ضرر پيداشوي وي اوكه نه وي او برابره خبره ده چي پدغه وخت كي په اس سور وي اوكه شړي يي او كه هيڅ هم نه كوي صرف ورسره وي.

دامام احمد بيان دي كه چري داس مالك په اس سور وي او اس پخپله خوله ياپه خپه چاته ضرر اورسوي نو مالك به يي دتاوان ذمه وار وي اوكه په لته څوك اووهي نومالك به دتاوان ذمه وار نه وي ځكه چي رسول الله فرمائيلي دي الرجل جبار يعني دلتي تاوان نشته (رواه الدارقطني عن سعيد بن المسيب مرسلا). (تفسير مظهري في تفسير سورة الانبياء).

****************

## ١٧ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْخَرْصِ

### د پيداوار د اټكلي مقدار مقررولو بيان

٦٤٣ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ مَسْعُودِ بْنِ نِيَارٍ، يَقُولُ: جَاءَ سَهْلُ بْنُ أَبِي حَثْمَةَ إِلَى مَجْلِسِنَا، فَحَدَّثَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: "إِذَا خَرَصْتُمْ فَخُذُوا وَدَعُوا الثُّلُثَ فَإِنْ لَمْ تَدَعُوا الثُّلُثَ فَدَعُوا الرُّبُعَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَعَتَّابِ بْنِ أَسِيدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالْعَمَلُ عَلَى حَدِيثِ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي الْخَرْصِ، وَبِحَدِيثِ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: وَالْخَرْصُ: إِذَا أَدْرَكَتِ الثِّمَارُ مِنَ الرُّطَبِ وَالْعِنَبِ مِمَّا فِيهِ الزَّكَاةُ بَعَثَ السُّلْطَانُ خَارِصًا يَخْرُصُ عَلَيْهِمْ، وَالْخَرْصُ أَنْ يَنْظُرَ مَنْ يُبْصِرُ ذَلِكَ، فَيَقُولُ: يَخْرُجُ مِنْ هَذَا الزَّبِيبِ كَذَا وَكَذَا وَمِنَ التَّمْرِ كَذَا وَكَذَا فَيُحْصِي عَلَيْهِمْ وَيَنْظُرُ مَبْلَغَ الْعُشْرِ مِنْ ذَلِكَ فَيُثْبِتُ عَلَيْهِمْ، ثُمَّ يُخَلِّي بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الثِّمَارِ فَيَصْنَعُونَ مَا أَحَبُّوا، فَإِذَا أَدْرَكَتِ الثِّمَارُ أُخِذَ مِنْهُمُ الْعُشْرُ. هَكَذَا فَسَّرَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهَذَا يَقُولُ مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. [1]

---

[1] ـ سنن ابي داود في الزكاة ١٢ (١٦٠٥). سنن النسائي في الزكاة ١٢ (١٦٠٥). سنن النسائي في الزكاة ٢٦ (٢٢٩٣). (تحفة الأشراف: ٤٦٢٤). مسند احمد (٣ في ٣)

**ترجمه** : دعبدالرحمن بن مسعود بن نيار بيان دي چي سهل بن ابي حثمه رضي الله عنه زمونږ مجلس ته راغي او دا بيان يي اوكړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به فرمائيل كله چي تاسو اټكلي اندازه لګوئ نو داټكل اندازي مطابق زكواة به اخلئ او يو ثلث به پريږدئ او كه يو ثلث نشئ پريخودلي نو يوه ربع خو به ضرور پريږدئ.

امام ترمذي وائي په دي باب كي به عائشه، عتاب بن اسيد، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي داټكلي اندازي لګولو په سلسله كي دسهل بن ابي حثمه په حديث كي داكثرو اهل علمو عمل دي او دسهل بن ابي جثمه دحديث مطابق امام احمد اوشافعي هم قول كړي دي چي تخمينه لګول دادي چي كله دكجورو يا دانګورو دكومي ميوو زكواة وركولي شي او دا پخي شوي وي انتظاميه والا دي يو تخمينه لګونكي اوليږي چي اندازه اولګوي او اووائي چي په دي كي به دومره غله يا ميوه وي او تخمينه لګول داسي وي چي يو تجربه كار سړي به ورته اوګوري او داسي به اووائي چي په دي ونه كي دومره دومره انګور پراته دي او په دي كي دومره دومره كجوري پرتي دي نو ددينه به دزكواة اندازه معلومه شي او په دي باندي به هم هغه كس عشر مقرروي او دميوو دپخيدو پوري به مهلت وركوي بيا به دميوو دپخيدو په وخت كي خپل عشر وركوي او مالك ته به اختيار وي چي په باقي كي څنګه كوي هغه شان دي اوكړي بعضي علماؤ دتخميني تشريح همداسي كړي ده او همدا دامام مالك او احمد او اسحاق قول هم دي.

****************

٦٤٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو مُسْلِمُ بْنُ عَمْرٍو الْحَذَّاءُ الْمَدَنِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ الصَّائِغُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ صَالِحٍ التَّمَّارِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَتَّابِ بْنِ أَسِيدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَبْعَثُ عَلَى النَّاسِ مَنْ يَخْرُصُ عَلَيْهِمْ كُرُومَهُمْ وَثِمَارَهُمْ" وَبِهَذَا الإِسْنَادِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي زَكَاةِ الْكُرُومِ: "إِنَّهَا تُخْرَصُ كَمَا يُخْرَصُ النَّخْلُ ثُمَّ تُؤَدَّى زَكَاتُهُ زَبِيبًا كَمَا تُؤَدَّى زَكَاةُ النَّخْلِ تَمْرًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى ابْنُ جُرَيْجٍ هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا

الْحَدِيثِ، فَقَالَ: حَدِيثُ ابْنِ جُرَيْجٍ غَيْرُ مَحْفُوظٍ وَحَدِيثُ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَتَّابِ بْنِ أَسِيدٍ أَثْبَتُ وَأَصَحُّ. (1)

**ترجمه** دعتاب بن اسید بیان دي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم به خلقو ته یو کس ورلیږلو چي ددوی دانګورو او دنورو میوو تخمینه به یي لګوله. په همدي سند دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه دانګورو دزکواة په باره کي ارشاد مروي دي چي په دي کي به هم تخمینه لګولي شي لکه څنګه چي په کجورو کي تخمینه لګولي شي او بیا دپخیدو نه پس به ددینه زکواة ویستلي شي لکه دکجورو نه چي زکواة دپخیدو نه پس ویستلي کیږي (یعني دوچیدو نه پس)

امام ترمذي وائي دا حدیث حسن غریب دي او ابن جریج دا حدیث په سند دابن شهاب عن عروه عن عائشه نقل کړي شي ما دامام بخاري نه ددي حدیث باره کي تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل دابن جریج حدیث محفوظ نه دي او دابن مسیب حدیث کوم چي هغه دعتاب بن اسید نه نقل کړي ي زیات ثابت او زیات صحیح دي

***************

## ١٨_ باب مَا جَاءَ فِي الْعَامِلِ عَلَى الصَّدَقَةِ بِالْحَقِّ

### دزکواة دصحیح وصول کونکي عامل فضیلت

٦٤٥_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ عِيَاضٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ ح. وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، قَالَ: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الْعَامِلُ عَلَى الصَّدَقَةِ بِالْحَقِّ كَالْغَازِي فِي سَبِيلِ اللَّهِ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى بَيْتِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَيَزِيدُ بْنُ عِيَاضٍ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، وَحَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق أَصَحُّ. (2)

---

1 سنن ابي داود في الزكاة ١٣ (١٦٠٣). سنن النسائي في الزكاة ١٠٠ (٢٦١٩). سنن ابن ماجه في الزكاة ١٨ (١٨٩١). (تحفة الأشراف: ٩٧٤٨)

2 ابي داود في الخراج ٧ (٢٩٣٦) سنن ابن ماجه في الزكاة ١٤ (١٨٠٩) (تحفة الأشراف: ٣٥٨٢)

**ترجمه** : درافع بن خديج رضي الله عنه بيان دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي په صحيح طريقه صدقه وصول کونکي دالله په لاره کي دجنګيدونکي غازي پشان دي چي خو پوري کور ته واپس نه وي راګرځيدلي.
امام ترمذي وائي درافع بن خديج حديث حسن دي او يزيد بن عياض دمحدثينو په نزد ضعيف دي او محمد بن اسحاق دا حديث دټولو نه زيات صحيح دي.

******************

## ١٩ـ باب مَا جَاءَ فِي الْمُعْتَدِي فِي الصَّدَقَةِ

### دزكواة په وصول كولو كي دظلم او زياتي كولو بيان

٦٤٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمُعْتَدِي فِي الصَّدَقَةِ كَمَانِعِهَا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَقَدْ تَكَلَّمَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ فِي سَعْدِ بْنِ سِنَانٍ، وَهَكَذَا يَقُولُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. وَيَقُولُ عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، وَابْنُ لَهِيعَةَ: عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ سِنَانِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: وَسَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: وَالصَّحِيحُ سِنَانُ بْنُ سَعْدٍ. وَقَوْلُهُ: "الْمُعْتَدِي فِي الصَّدَقَةِ كَمَانِعِهَا". يَقُولُ: عَلَى الْمُعْتَدِي مِنَ الْإِثْمِ كَمَا عَلَى الْمَانِعِ إِذَا مَنَعَ.(١)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زكواة وصول كولو كي ظلم او زياتي كونكي دزكواة نه وركونكي پشان دي
امام ترمذي وائي په دي باب كي دابن عمر، ابن سلمه، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دانس حديث په دي سند غريب دي احمد بن حنبل، په سعد بن سنان راوي باندي كلام كړي دي دارنګي ليث بن سعد هم وائي عن يزيد بن حبيب عن سعد بن سنان عن انس بن مالك او عمرو بن حارث او ابن لهيعه عن يزيد بن حبيب عن سنان بن سعد عن انس بن مالك سند ذكر كړي دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي صحيح په دي كي سنان بن سعد

١ ـ سنن ابي داود في الزكاة ٣ (١٥٨٥). سنن ابن ماجه في الزكاة ١٣ (١٨٠٨). (تحفة الأشراف: ٨٤٧)

دي، او دزكواة په وصول كولو كي ظلم او زياتي كونكي دزكواة نه وركونكي پشان دي ددي مطلب دادي چي په زياتي كولو كي دومره گناه ده څومره گناه چي دزكواة په نه وركولو كي

***************

## ٢٠ـ بَاب مَا جَاءَ فِي رِضَا الْمُصَدِّقِ

### دزكواة وصول كونكي درضامندئ بيان

٦٤٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَتَاكُمُ الْمُصَدِّقُ فَلَا يُفَارِقَنَّكُمْ إِلَّا عَنْ رِضًا".([1])

**ترجمه**: دجرير رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي زكواة وصولونكي تاسو ته درشي نو پكار داده چي هغه ستاسو نه خوشحاله او راضي جدا شي.

***************

٦٤٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ دَاوُدَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَرِيرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَحْوِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ دَاوُدَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ مُجَالِدٍ، وَقَدْ ضَعَّفَ مُجَالِدًا بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ وَهُوَ كَثِيرُ الْغَلَطِ.([2])

**ترجمه**: په دي سند هم دجرير په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دمخكني حديث هم معني روايت مروي دي.

امام ترمذي وائي كوم حديث چي داود دشعبي د نقل كړي هغه دمجالد دحديث نه زيات صحيح دي بعضي محدثينو دمجالد تضعيف كړي دي چي هغه كثيرالغلط دي يعني غلطياني به يي ديري كولي.

***************

## ٢١ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الصَّدَقَةَ تُؤْخَذُ مِنَ الأَغْنِيَاءِ فَتُرَدُّ فِي الْفُقَرَاءِ

---

1 ـ صحيح مسلم في الزكاة ٥٥ (٩٨٩). سنن النسائي في الزكاة ١٣ (٢٤٦٣). سنن ابن ماجه في الزكاة ١١ (١٨٠٢). (تحفة الأشراف: ٣٢١٥). مسند احمد (٤/في ٣٦٠، ٣٦١، ٣٦٤، ٣٦٥)

2 ـ صحيح مسلم في الزكاة ٥٥ (٩٨٩). سنن النسائي في الزكاة ١٣ (٢٤٦٣). سنن ابن ماجه في الزكاة ١١ (١٨٠٢). (تحفة الأشراف: ٣٢١٥). مسند احمد (٤/في ٣٦٠، ٣٦١، ٣٦٤، ٣٦٥)

### زکواة به دمالدارانو نه اخستلې شي او واپس به په فقیرانو تقسیمولې شي

٦٤٩ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ أَشْعَثَ، عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَدِمَ عَلَيْنَا مُصَدِّقُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَأَخَذَ الصَّدَقَةَ مِنْ أَغْنِيَائِنَا فَجَعَلَهَا فِي فُقَرَائِنَا وَكُنْتُ غُلَامًا يَتِيمًا فَأَعْطَانِي مِنْهَا قَلُوصًا. قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي جُحَيْفَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. [1]

**ترجمه** : دابوجحیفه رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي چي مونږ ته درسول الله صلي الله علیه وسلم مصدق (دزکواة وصولولو عامل) راغي او هغه زمونږ دمالدارانو نه زکواة وصول کړو او زمونږ فقیرانو ته یي ورکړو زه په دغه وخت کي یو یتیم هلك وم نو ماته یي هم په دغه مال کي یوه اوبنه راکړه.

امام ترمذي وائي دجحیفه حدیث حسن دي، او په دي باب کي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم حدیث وارد دي.

****************

## ٢٢ـ باب مَا جَاءَ مَنْ تَحِلُّ لَهُ الزَّكَاةُ

### زکواة اخستل دچا دپاره جائز دي

٦٥٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، قَالَ قُتَيْبَةُ: حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، وَقَالَ عَلِيٌّ: أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ وَالْمَعْنَى وَاحِدٌ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ سَأَلَ النَّاسَ وَلَهُ مَا يُغْنِيهِ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَسْأَلَتُهُ فِي وَجْهِهِ خُمُوشٌ أَوْ خُدُوشٌ أَوْ كُدُوحٌ " قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا يُغْنِيهِ. قَالَ: " خَمْسُونَ دِرْهَمًا أَوْ قِيمَتُهَا مِنَ الذَّهَبِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ تَكَلَّمَ شُعْبَةُ فِي حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ مِنْ أَجْلِ هَذَا الْحَدِيثِ. [2]

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١١٨٠٣).

[2] سنن ابي داود في الزكاة ٢٣ (١٦٢٦) . سنن النسائي في الزكاة ٨٧ (٢٥٩٣) . سنن ابن ماجه في الزكاة ٢٦ (١٨٤٠) . (تحفة الأشراف: ٩٣٨٧)

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دخلقو نه سوال كوي او دده سره خپل دومره مال موجود وي چي دده سوال كولو ته ضرورت نه راځي دا كس به دقيامت په ورځ په داسي حالت كي راځي چي دده سوال به دده په مخ دبلغم په شكل انختلي وي عرض اوكړي شو چي اي دالله رسوله بنده په څومره مال دسوال كولو نه بي نيازه كيدي شي وبي فرمائيل پنځوس درهمه اويا ددي د قيمت په مقدار سره زر.

امام ترمذي وائي ابن مسعود حديث حسن دي او په دي باب كي دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او شعبه همدي حديث په وجه په حكيم بن جبير كلام كړي دي

***************

٦٥١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ. فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُثْمَانَ صَاحِبُ شُعْبَةَ: لَوْ غَيْرُ حَكِيمٍ حَدَّثَ بِهَذَا الْحَدِيثِ. فَقَالَ لَهُ سُفْيَانُ: وَمَا لِحَكِيمٍ لَا يُحَدِّثُ عَنْهُ شُعْبَةُ. قَالَ: نَعَمْ. قَالَ سُفْيَانُ: زُبَيْدًا يُحَدِّثُ بِهَذَا. عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَصْحَابِنَا. وَبِهِ يَقُولُ الثَّوْرِيُّ. وَعَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ. وَأَحْمَدُ. وَإِسْحَاقَ. قَالُوا: إِذَا كَانَ عِنْدَ الرَّجُلِ خَمْسُونَ دِرْهَمًا لَمْ تَحِلَّ لَهُ الصَّدَقَةُ. قَالَ: وَلَمْ يَذْهَبْ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى حَدِيثِ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ وَوَسَّعُوا فِي هَذَا. وَقَالُوا: إِذَا كَانَ عِنْدَهُ خَمْسُونَ دِرْهَمًا أَوْ أَكْثَرُ وَهُوَ مُحْتَاجٌ فَلَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنَ الزَّكَاةِ. وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ وَغَيْرِهِ مِنْ أَهْلِ الْفِقْهِ وَالْعِلْمِ. (1)

**ترجمه**: سفيان هم دحكيم بن جبير نه دا حديث په همدي سند نقل كړي دي كله چي سفيان دا حديث نقل كړو نو ده ته دشعبه شاګرد عبدالله بن عثمان اووئيل كاش چي دحكيم نه علاوه بل چا دا حديث بيان كړي وي سفيان ورنه تپوس اوكړو څه خبره ده چي شعبه به دحكيم نه روايت دحديث نه كوي؟ هغوئ اووئيل هو، چي دوئ نه وي كړي نو بيا به وه سفيان اووئيل دا حديث زبيد د محمد بن عبد الرحمن بن يزيد نه اوريدلي دي، او په همدي باندي زمونږ دعلماؤ عمل دي او په همدي باندي سفيان ثوري، عبدالله بن مبارك، احمد، او اسحاق بن راهويه هم قول كړي دي دوئ وائي چي كله دچا سره پنځوس درهم وي نو دده دپاره زكواة

1 سنن ابي داود في الزكاة ٢٣ (١٦٢٦). سنن النسائي في الزكاة ٨٧ (٢٥٩٣). سنن ابن ماجه في الزكاة ٢٦ (١٨٤٠). (تحفة الأشراف: ٩٣٨٤)

اخستل جائز نه دي او بعضي اهل علمو دحکیم بن جبیرحدیث نه دي اختیار بلکه هغوی په دي کي مزید گنجائش پریخودلي دي دوی وائي کله چي دچا سره پنځوس درهم یا ددینه زیات مال وي او دي پخپله ضرورت مند وي نو دده دپاره زکواة اخستل جائز دي فقهاؤ محدثینو کي امام شافعي وغیره هم په دي باندي قول کړي دي

**تشریح** : په دي مسئله کي یو څو صورتونه دي:

(۱) که دچا سره نصاب موجود وي او دا نصاب مال نامي وي او حولان حول موجود شي نو په ده باندي زکواة واجب دي او دبل چا نه زکواة اخستلي نشي.

(۲) که دچا سره نصاب موجود وي او حولان حول هم اوشي لیکن مال نامي نه وي نو په ده باندي زکواة ورکول واجب نه دي او دبل چا نه زکواة هم نشي اخستلي.

(۳) که دچا سره دنصاب نه کم مال موجود وي نو زکواة وربانديواجب نه دي او دبل چا نه زکواة اخستلي شي خو سوال کول دده دپاره جائز نه دي.

سوال: سوال کول په کوم وخت کي جائز دي.

جواب: په دي مسئله کي اختلاف دي او په دي کي دعلماؤ دوه مذاهب دي.

(۱) امام ابو حنیفه وائي دچاسره چي د یوي ورځي او دشپي دخوراك انتظام هم موجود نه وي نو دده دپاره به هم سوال کول جائز نه وي او دلیل یي روایت دابوداود دي چي درسول الله صلي الله علیه وسلم نه تپوس اوکړي شو غني څه شي دي دکوم په وجه چي سوال کول حرامیږي، رسول الله دسوال په جواب کي اوفرمائیل "مایغذیه ویشغیه" یعني چا سره چي دیو سحر او یو مابنام خوراك موجود وي.

(۲) دامام احمد قول دي دچا سره چي دپنځوس درهمو نه کم مال وي دهغه دپاره سوال کول جائز دي او دحدیث الباب نه یي استدلال کړي دي.

****************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ مَنْ لاَ تَحِلُّ لَهُ الصَّدَقَةُ

### زکواة اخستل دچا دپاره جائز نه دي

٦٥٢_ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ سَعِيدٍ ح. وحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ رَيْحَانَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لاَ تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ وَلاَ لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَحُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ، وَقَبِيصَةَ بْنِ

مُخَارِقٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ هَذَا الحَدِيثَ بِهَذَا الإِسْنَادِ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَقَدْ رُوِيَ فِي غَيْرِ هَذَا الحَدِيثِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَحِلُّ المَسْأَلَةُ لِغَنِيٍّ وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ وَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ قَوِيًّا مُحْتَاجًا وَلَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ شَيْءٌ فَتُصُدِّقَ عَلَيْهِ أَجْزَأَ عَنِ المُتَصَدِّقِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ" وَوَجْهُ هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ عَلَى المَسْأَلَةِ.(1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دهيڅ يو مالدار دپاره سوال كول جائز نه دي او نه ديو طاقت ور او روغ جوړ سړي دپاره.

امام ترمذي وائي دعبدالله بن عمرو حديث حسن دي، او شعبه دا حديث په همدي سند دسعد بن ابراهيم نه نقل كړي دي ليكن هغوئ مرفوع نه دي بيان كړي. او په دي باب كي دابوهريره، حبشي بن جناده ، او قبيصه بن مخارق رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او ددي حديث نه په علاوه كي د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي دهيڅ يومالدار دپاره سوال كول جائز نه دي او نه ديو تندرست سړي دپاره غوښتل جائز دي كله چي يو سړي روغ او جوړ او تندرست وي ليكن محتاج وي او هيڅ ورسره نه وي نو ده ته دي زكواة وركړي شي داهل علمو په نزد داسي كس ته دوركونكي زكواة اداء كيږي . بعضي محدثينو په دي حديث كي توجيه كړي ده چي د "لاتحل لكم الصدقة" مطلب دادي چي دده دپاره غوښتل او سوال كول جائز نه دي.

****************

٦٥٣ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَعِيدٍ الكِنْدِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنْ عَامِرٍ الشَّعْبِيِّ، عَنْ حُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ السَّلُولِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي حَجَّةِ الوَدَاعِ وَهُوَ وَاقِفٌ بِعَرَفَةَ، أَتَاهُ أَعْرَابِيٌّ فَأَخَذَ بِطَرَفِ رِدَائِهِ فَسَأَلَهُ إِيَّاهُ فَأَعْطَاهُ وَذَهَبَ فَعِنْدَ ذَلِكَ حَرُمَتِ المَسْأَلَةُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ المَسْأَلَةَ لَا تَحِلُّ لِغَنِيٍّ وَلَا لِذِي مِرَّةٍ

1 سنن ابي داود في الزكاة ٢٣ (١٦٣٢) . (تحفة الأشراف : ٨٦٣٦) . مسند احمد (٢ في ١٦٣) . سنن الدارمي في الزكاة ١٥ (١٦٧٩)

سَوِيٍّ إِلَّا لِذِي فَقْرٍ مُدْقِعٍ أَوْ غُرْمٍ مُفْظِعٍ، وَمَنْ سَأَلَ النَّاسَ لِيُثْرِيَ بِهِ مَالَهُ كَانَ خُمُوشًا فِي وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَرَضْفًا يَأْكُلُهُ مِنْ جَهَنَّمَ، وَمَنْ شَاءَ فَلْيُقِلَّ وَمَنْ شَاءَ فَلْيُكْثِرْ ".(١)

**ترجمه** : دحبشي بن جناده سلولي رضي الله عنه نه روايت دي چي مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه په حجة الوداع كي دفرمائيلو په حال كي واوريدل او هغه په عرفه كي ولاړ وو چي يو اعرابي ورته راغي او درسول الله صلي الله عليه وسلم دڅادر يو ګوټ يي اونيولو او دهغه نه يي اوغوښتلو رسول الله ورته ورکړو او هغه لاړو او په دغه وخت کي سوال كول حرام شوي وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ديومالدار دپاره سوال كول جائز نه دي او نه ديو روغ جوړ سړي دپاره علاوه دهغه چانه چي هلاكونكي فقر ورباندي راغلي وي او دكوم درروند تاوان دلاندي ګير وي او څوك چي دخلقو نه ددي دپاره سوال كوي چي دد امدن زيات شي نو دا مال به دقيامت په ورځ دده په مخ دتوكلي شوو بلغمو پشان انختلي وي او دا به دجهنم يو ګرم كاڼړي وي چي دي به ورباندي داغلي شي نو كه څوك غواړي دا دي كم كړي او كه دچا خوښه وي دي لره دي زيات كړي (يعني مال).

****************

٦٥٤ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحِيمِ بْنِ سُلَيْمَانَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.

**ترجمه** : په دي سند باندي هم دعبدالرحيم بن سليمان نه دسابقه حديث هم معني روايت مروي دي ليكن په دي سند دا حديث غريب دي.

*****************

## ٢٤ـ بَاب مَا جَاءَ مَنْ تَحِلُّ لَهُ الصَّدَقَةُ مِنَ الْغَارِمِينَ وَغَيْرِهِمْ

### په قرضدارو او نورو خلقو كي دچا دپاره زكواة اخستل حلال دي

٦٥٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: أُصِيبَ رَجُلٌ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثِمَارٍ ابْتَاعَهَا فَكَثُرَ دَيْنُهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " تَصَدَّقُوا عَلَيْهِ " فَتَصَدَّقَ النَّاسُ عَلَيْهِ. فَلَمْ يَبْلُغْ ذَلِكَ وَفَاءَ دَيْنِهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِغُرَمَائِهِ: " خُذُوا مَا وَجَدْتُمْ وَلَيْسَ

---

١ - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٣٢٩١)

لَكُمْ إِلَّا ذَلِكَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَجُوَيْرِيَةَ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كي ديو كس په ميوو كي كومي چي ده اخستلي وي دكوم افت په وجه نقصان او مرض پيدا شو او قرض ورباندي واوريدو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ده ته زكواة وركړئ چنانچه خلقو ورته زكواة وركړو مگر دا زكواة دده دقرض مقدار ته نه رسيدو رسول الله صلي الله عليه وسلم دده قرضدارو ته اوفرمائيل څومره چي درته ملاويږي دا واخلئ او ددينه علاوه ستاسو دپاره هيڅ نشته.

امام ترمذي وائي دابوسعيد حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعائشه، جويرد، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

*****************

## ٢٥ــ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّدَقَةِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَهْلِ بَيْتِهِ وَمَوَالِيهِ

**درسول الله صلي الله عليه وسلم او داهل بيتو دپاره دزكواة اخستلو دحرمت بيان**

٦٥٦ــ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَيُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ الضُّبَعِيُّ السَّدُوسِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا بَهْزُ بْنُ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُتِيَ بِشَيْءٍ سَأَلَ أَصَدَقَةٌ هِيَ أَمْ هَدِيَّةٌ؟ فَإِنْ قَالُوا: صَدَقَةٌ لَمْ يَأْكُلْ، وَإِنْ قَالُوا: هَدِيَّةٌ أَكَلَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ سَلْمَانَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَالْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ، وَأَبِي عَمِيرَةَ جَدِّ مُعَرِّفِ بْنِ وَاصِلٍ وَاسْمُهُ رُشَيْدُ بْنُ مَالِكٍ، وَمَيْمُونِ بْنِ مِهْرَانَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي رَافِعٍ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَلْقَمَةَ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ أَيْضًا، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ

---

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٢٩١)

بْنِ أَبِي عَقِيلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَجَدُّ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ اسْمُهُ مُعَاوِيَةُ بْنُ حَيْدَةَ الْقُشَيْرِيُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه**: دمعاويه بن حيده رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي كله به رسول الله صلي الله عليه وسلم ته كوم څيز راوړلي شو نو تپوس به يي كولو چي دا صدقه ده او كه تحفه ده كه چا به اووئيل چي صدقه ده نو رسول الله به نه خوړل او كه اوبه يي وئيل چي تحفه ده نو بيا به يي خوړله.

امام ترمذي وائي دبهز بن حكيم دا حديث حسن غريب دي ، او په دي باب كي دسلمان ، ابوهريره ، انس، حسن بن علي ابو عميره (دمعرف بن واسل نيكه دي او نوم يي رشيد بن مالك) او ميمون او ابن عباس، عبدالله بن عمرو، ابورافع. عبدالرحمن بن علقمه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دارنګي دا حديث دعبدالرحمن بن علقمه په سند هم مروي دي هغوئ دا حديث دعبدالرحمن بن ابي عقيل نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي.

**تخريج**: سنن النسائي في الزكاة ٩٨ (٢٦١٣) . (تحفة الأشراف : ١١٣٨٦) . مسند احمد (٥ في ٥)

**تشريح**: په دي مسئله ډير احاديث وارد دي چي د نبوت د خاندان دپاره صداقه حلاله نه ده:

عن أبي هريرة ﷺ. قَالَ: أخذ الحسن بن علي رضي الله عنهما تَمْرَةً مِنْ تَمْرِ الصَّدَقَةِ فَجَعَلَهَا فِي فِيهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: ((كَخْ كَخْ إِرْمِ بِهَا. أَمَا عَلِمْتَ أَنَّا لَا نَأْكُلُ الصَّدَقَةَ!؟)) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

وفي رواية: ((أَنَّا لَا تَحِلُّ لَنَا الصَّدَقَةُ)).

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي يو خل حسن بن علي رضي الله عنهما دصدقى دكهجورو نه يوه كهجوره پورته كړه خلی ته يی واچوله رسول الله صلي الله عليه وسلم چي دا اوليدل نو ويی فرمائيل نه ، نه. دا راوباسه ويی غورځوه، ايا تاته پته نشته چي مونږ دصدقي مال نه خورو. (بخاري ومسلم) په يو روايت كي داسي دي چي زمونږ دپاره دصدقی مال حلال نه دی.

د رسول الله صلي الله عليه وسلم الفاظ كخ كخ تلفظ دكاف پيش او دخاء جزم سره دی او بعضو وئيلي دي چي دكاف زير اودخاء تنوين سره دی دا لفظ دناخوښه كارنه دمنع كولو په

---

[1] صحيح مسلم في المساقاة (١٥٥٦) . سنن ابي داود في البيوع ٦٠ (٣٤٦٩) . سنن النسائي في البيوع ٣٠ (٤٥٣٢) . و٩٣ (٤٦٨٢) . سنن ابن ماجه في الأحكام ٢٥ (٢٣٥٦) . (تحفة الأشراف : ٤٢٧٠) . مسند احمد (٣ في ٣٦)

طور ونيلی شي ماشومانو ته او حسن رضي الله عنه دغه وخت ماشوم وو.

"كخ كخ ارم بها" كخ لفظ په هغه وخت كي استعماليږي كله چي ماشوم په خوله كي څه ځيز نيولی وي او خوړل يي دهغه دپاره مضر وي نو پدغه وخت كي خلق كخ كخ وائي يعني ويی غورځوه.

"اما علمت انا لاناكل الصدقة" يعني ايا تاته معلومه نه ده چي مونږ صدقه نه خورو. دنه خوړلو وجه په دويم روايت كي راځي چي دا دخلقو دمالونو خيري دي. او اما علمت لفظ په هغه وخت كي استعماليږي كله چي مخاطب دكوم واضح كار خلاف عمل كوي ددي روايت نه علماؤ استدلال كړی دی چي د والدينو او سرپرست ذمه واري داده چي خپل ماشومان دغلطو كارونو نه منع كړي او پوهه يي كړي.

***************

٦٥٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنِ ابْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ رَجُلًا مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ عَلَى الصَّدَقَةِ، فَقَالَ لِأَبِي رَافِعٍ: اصْحَبْنِي كَيْمَا تُصِيبَ مِنْهَا، فَقَالَ: لَا حَتَّى آتِيَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْأَلَهُ، فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ، فَقَالَ: "إِنَّ الصَّدَقَةَ لَا تَحِلُّ لَنَا وَإِنَّ مَوَالِيَ الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو رَافِعٍ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْمُهُ: أَسْلَمُ، وَابْنُ أَبِي رَافِعٍ هُوَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي رَافِعٍ، كَاتِبُ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. [1]

**ترجمه** : ابورافع وائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دبني مخذوم يو كس ته دصدقي وصول كولو حكم اوكړو نو هغه ابو رافع ته اووئيل ته به هم زما سره لاړ شي ترڅو چي تاته هم په دي كي حصه ملاؤ شي مګر ابو رافع انكار اوكړو او ده ته يي اووئيل زه درسره هغه وخته پوري نشم تلي تر څو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دتپوس كولو او اجازت غوښتلو دپاره ورغلي نه يم چنانچه ابو رافع دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زمونږ دپاره صدقه حلاله نه ده او ديو قوم موالي (غلامان) هم دهغوئ دجملي نه وي.

---

[1] ـ سنن ابي داود في الزكاة ٢٩ (١٦٥٠)، سنن النسائي في الزكاة ٩٧ (٢٦١٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٠١٨)، مسند احمد (٦ في ١٠)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او ابورافع درسول الله صلي الله عليه وسلم ازاد کړي غلام دي دده نوم اسلم دي او دابن ابي رافع نوم عبيدالله بن ابي رافع دي او دي د علي بن ابي طالب رضي الله عنه منشي وو.

**دمعاويه بن حيده رضي الله عنه حالات:**

نوم معاويه دبصري اوسيدونكى وو بيا خراسان ته منتقل شو دده نه عموما دده خوي حكم بن معاويه نقل دروايت كوي دده دوفات تاريخ او دمروياتو دشمير باره كي څه معلومات نشته.

***************

## ٢٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّدَقَةِ عَلَى ذِي الْقَرَابَةِ

**رشته دارانوته د صدقي وركولو بيان**

٦٥٨ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ عَمِّهَا سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا أَفْطَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيُفْطِرْ عَلَى تَمْرٍ، فَإِنَّهُ بَرَكَةٌ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ تَمْرًا فَالْمَاءُ فَإِنَّهُ طَهُورٌ" وقَالَ: "الصَّدَقَةُ عَلَى الْمِسْكِينِ صَدَقَةٌ وَهِيَ عَلَى ذِي الرَّحِمِ ثِنْتَانِ صَدَقَةٌ وَصِلَةٌ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالرَّبَابُ هِيَ أُمُّ الرَّائِحِ بِنْتُ صُلَيْعٍ، وَهَكَذَا رَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَرَوَى شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ الرَّبَابِ، وَحَدِيثُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ عُيَيْنَةَ أَصَحُّ، وَهَكَذَا رَوَى ابْنُ عَوْنٍ، وَهِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ. [1]

**ترجمه** دسلمان بن عامر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائل چي كله تاسو روژه ماتوئ نو په كهجورو يى ماتوئ ځكه چي دي كي بركت دى، كه چري كهجوره نه ملاويږي نو بيا په اوبو سره افطار كوئ ځكه چي دا پاكونكي دي او مسكين ته صدقه وركول دنيكئ كار دى او رشته دارته صدقه وركولو كي دوه ثوابونه دي يو دصدقى كولو دويم دصله رحمئ.

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصوم ٢١ (٢٣٥٥). سنن النسائي في الزكاة ٨٢ (٢٥٨٢). سنن ابن ماجه في الصيام ٢٥ (١٦٩٩).

امام ترمذي وايي چي په دي باب کي د عبدالله بن مسعود د ببي زينب ، جابر. او ابو هريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، اود سلمان بن عامر حديث حسن دی. اود رباب نوم ام الرائح بنت صليع دی، رباب د سليمان بن عامر او هغه د نبي صلي الله عليه وسلم نه د سابقه حديث پشان روايت نقل کړی دی. دارنګي سفيان ثوري د عاصم او هغه د حفصه بنت سيرين نه او هغه د سليمان بن عامر او هغه د نبي صلي الله عليه وسلم نه د سابقه حديث پشان روايت نقل کړی دی، دارنګي شعبه د عاصم او هغه د حفصه بنت سيرين نه او هغه د سلمان بن عامر نه نقل کړی دی، او د رباب ذکر يي نه دی کړي، او حديث د ثوري او ابن عيينه زيات صحيح دی، دارنګي ابن عون او هشام بن حسان د حفصه بنت سيرين نه او هغه درباب نه او هغه د سلمان بن عامر نه روايت نقل کړی دی.

**لغات** : افطر: خوړل او څکل ، فطر دنصر او ضرب نه معني يي روژه دار ته خوراك ورکول دي.

**تشريح** : "فليفطر علي تمر" يعني څوك چي روژه ماتوي نو په کجورو ماتول پکار دي او که نور څه نه ملاويږي نو پکار ده چي په اوبو يي ماته کړي ددي وجه حافظ ابن قيم په طب نبوي کي بيان کړي ده چي "وفي فطر النبي صلي الله عليه وسلم من الصوم علي التمر او الماء تدبير لطيف جدا فان الصوم يخلي المعدة من الغذاء فلا يجد الکبد فيها ما يجذ به وترسله الي القوي والاعضا و الحلو اسرع شيء وصولا الي الکبد واحبه اليها ولا سيما ان کان رطبا قبولها له فنفع به هي. والقوي فان لم يکن التمر محلا انه وتوذيته فان لم يکن محسرات الماء تطفي لهيب المعدة وحرارة الصوم فتنة المعدة للطعام وما جده بشهوة.

يعني په کجورو او په اوبو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پرې روژه ماتوله په دي کي يو لفيط تدبير دی څکه چي دروژي په حالت کي معده دغذا نه خالي وي او جګر ته داسي غذا نه ملاويږي چي جذب يي کړي او اعضاء ته يي وليږي په داسي وخت کي خواږه په تيزۍ سره جګر ته ور رسيږي او جګر يي هم خوښوي خصوصا چي کله لمدي کجوري وي نو جګر يي ډير خوښوي او دنورو څيزونو په نسبت زياته فائده ورکوي ليکن که دا نه وي نو بيا داوبو يو څو ګوټونه کول پکار دي کوم چي دجګر دحرارت دپاره مفيد دي ددي دپاره چي بياددينه پس انسان خوراك ته تيار شي اوددينه علاوه مسکين ته صدقه ورکول او درشته دار سره صله رحمي کول هم دي. په احاديثو کي زيات زيات ترغيب راغلی دی که څوك دزيات ثواب طلب ګار وي نو رشته داروته دي صدقه ورکړي چي يو طرف ته په دي باندي دصدقي ثواب حاصليږي او بل طرف ته دصله رحمۍ کولو.

**دسلمان بن عامر رضي الله عنه حالات**

نوم سلمان دپلار نوم عامر بن عوس بن جعد چي ضبي قبيلي سره يي تعلق وو او په بسريانو كي شميرلى شي دبعضي اسماء الرجال والاخيال دى چي په ضبي قبيله كي دده نه علاوه بل كوم روايت كونكى صحابي نشته ديارلس روايات ورنه منقول دي چي صرف يو په بخاري كي موجود دى.

*****************

## ٢٧_ باب مَا جَاءَ أَنَّ فِي الْمَالِ حَقًّا سِوَى الزَّكَاةِ

### په مال كي د زكاة نه علاوه هم واجبي حقوق شته

٦٥٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ مَدُّوَيْهِ، حَدَّثَنَا الأَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، قَالَتْ: سَأَلْتُ أَوْ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الزَّكَاةِ، فَقَالَ: "إِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا سِوَى الزَّكَاةِ". ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الآيَةَ الَّتِي فِي الْبَقَرَةِ لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ. (البقرة: ١٧٧)([1])

**ترجمه**: د فاطمه بنت قيس رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي د زكاة متعلق تپوس وكړو او كه تپوس ورنه وكړى شو (د راوي شك دى)، نو په جواب كي يي وفرمائيل يقينا په مال كي د فرض زكاة نه علاوه هم بعضي نور واجبي حقوق شته او بيا يي دا ايت كريمه: ليس البر ان تولوا وجوهكم. الاية ولوستلو.

**لغات**: تلا: تلا يتلو د نصر ينصر باب نه په معني د لوستلو دى.

**تشريح**: په دي باب كي د زكاة نه علاوه بعضي نور حقوق مذكور دي چي درجه په درجه لازميږي مثلا:

(١) په موسر اولاد د محتاج مور پلار نفقه واجب ده.
(٢) د ښځي نفقه واجب ده.
(٣) دصغير اولاد نفقه.
(۴) په حالت د ايسار كي دمعذور اقرباؤ نفقه په قدر دميراث واجب ده.
(۵) حق دمضطر يا د مړي دتكفين انتظام كول.
(٦) د عام مصيبت وخت كي لكه ددشمن د حملي وخت كي يا دقحط وخت كي ياد ناګهاني حادثي وخت كي په چا خرج كول.

---

[1] سنن ابن ماجه في الزكاة ٣ (١٧٨٩)، سنن الدارمي في الزكاة ١٣ (١٦٧٧)

(۷) حق د ضيافت.
(۸) حق د ماعون.
(۹) حق د حصاد يعني د ميوي د شوكولو وخت كي چي فقيران راشي هغوئ ته يو څه وركول.
(۱۰) د مساجدو او مكاتبو سره تعاون كول.

## دفاطمه بنت قيس حالات

نوم فاطمه دپلار نوم قيس بن خالد اكبر بن وهب وو او دمور نوم يي اميمه بنت ربيعه وو دبني كنانه قبيلي سره يي تعلق وو او اولنئ نكاح يي دابوعمرو بن حفص سره شوي وه. داسلام په ابتدائي زمانه كي مسلمانه شوي وه او خاوند ورته دهجرت په لسم كال طلاق وركړل او بيايي دعبدالله بن ام مكتوم په كور كي عدت تير كړو او ددينه پس يي دويمه نكاح رسول الله صلي الله عليه وسلم داسامه بن زيد سره اوكړه، دفاطمه بيان دی چي زمونږ په مينځ كي دومره محبت وو كوم چي دكيني قابل وو دهجرت په ۲۳كال چي كله عمر رضي الله عنه وفات شو نو دمجلس شوري اجلاس به ددي په كور كي كيدو صاحب داسد الغابه ليكلي دي لها عقل وكمال ، يعني فاطمه انتهائي قابله او عقلمنده اومالكه دكمال وه، دهجرت په ۵۴كال اسامه وفات شو او بيايي بله نكاح اونكړه او دخپل ورور ضحاك سره به اوسيده كله چي يزيد ضحاك دعراق والي مقرر كړو او هلته منتقل شو نو فاطمه هم ورسره منتقل شوه، دمروياتو شمير يي ۳۴احاديث دی مزيد حالات يي اسد الغابه ليكلي دي.

***************

٦٦٠ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الطُّفَيْلِ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ عَامِرٍ الشَّعْبِيِّ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ فِي الْمَالِ حَقًّا سِوَى الزَّكَاةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِذَاكَ، وَأَبُو حَمْزَةَ مَيْمُونٌ الأَعْوَرُ يُضَعَّفُ، وَرَوَى بَيَانٌ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ سَالِمٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ هَذَا الْحَدِيثَ قَوْلَهُ وَهَذَا أَصَحُّ. [1]

**ترجمه** : د فاطمه بنت قيس رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: يقينا په مال كي د فرض زكاة نه علاوه هم بعضي نور واجبي حقوق شته.

[1] ـ سنن ابن ماجه في الزكاة ۳ (۱۷۸۹)، سنن الدارمي في الزكاة ۱۳ (۱٦٧٧)

امام ترمذي وايي چي ددي حديث سند قوي نه دی، او ابو حمزه چي نوم ميمون اعور دی دمحدثينو په نزد ضعيف دی، دارنګي دا روايت بيان او اسماعيل بن سالم هم د شعبي نه نقل کړی دی مګر دا حديث د سابقه حديث نه زيات صحيح دی.

**تشريح** : تشريح په ما قبل حديث کي تيره شوه.

***************

## ٢٨_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الصَّدَقَةِ

### دصدقي دفضيلت بيان

٦٦١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا تَصَدَّقَ أَحَدٌ بِصَدَقَةٍ مِنْ طَيِّبٍ وَلَا يَقْبَلُ اللَّهُ إِلَّا الطَّيِّبَ إِلَّا أَخَذَهَا الرَّحْمَنُ بِيَمِينِهِ، وَإِنْ كَانَتْ تَمْرَةً تَرْبُو فِي كَفِّ الرَّحْمَنِ حَتَّى تَكُونَ أَعْظَمَ مِنَ الْجَبَلِ، كَمَا يُرَبِّي أَحَدُكُمْ فُلُوَّهُ أَوْ فَصِيلَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَعَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، وَحَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَبُرَيْدَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1]).

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه هر يو پاك شي صدقه كړو او الله تعالي پاك څيز لره صدقه کول خوښوي نو رحمان ذات هغي لره په ښي لاس نيسي اګر كه دا دكجوري يوه دانه ولي نه وي، او دا دصدقي مال درحمان ذات په ورغوي کي زياتيږي تردي پوري چي دغر نه زياته شي، لكه په تاسو كي چي يو كس دخپل اس يا دغوا بچي اوساتي او لوي شي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دام المؤمنين، عائشه، عدي بن حاتم، انس، عبدالله بن ابي اوفي، حارثه بن وهب، عبدالرحمن بن عوف، او بريده رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

---

[1] _ صحيح البخاری في الزكاة ٨ (تعليقا عقب حديث رقم: ١٤١٠) . والتوحيد ٢٣ (تعليقا عقب حديث رقم: ٧٤٣٠) . و مسلم / الزكاة ١٩ (١٠١٤) . و النسائي في الزكاة ٣٨ (٢٥٢٦) . سنن ابن ماجه في الزكاة ٢٨ (١٨٤٢) . (تحفة الأشراف: ١٣٣٧٩) . مسند احمد (٢ / ٣٣١، ٤١٨، ٥٣٨) . سنن الدارمي في الزكاة ٣٥ (١٧١٧) وأخرجه: البخاری في الزكاة ٨ (١٤١٠) . والتوحيد ٢٣ (٧٤٣٠) . ومسلم في الزكاة . و مسند احمد (٢ في ٣٨١، ٤١٩، ٤٣١، ٤٧١، ٥٤١) من غير هذا الطريق.

**تشريح** : دصدقي پاك كيدل په دوه قسمه دي يو حسي پاك كيدل دي او بل معنوي پاكيدل دي . حسي پاك كيدل داسي دي چي دا دكوم څيز لائق وو مثلا تركاري بدبويه شي او غريب ته يي وركړي نو داسي صدقه درسته نه ده ځكه چي دا د هيڅ دپاره پكار راتلي نشي بلـه دا چي هغه به يي څنګه خوري؟ او دمعنوي پاك كيدو مطلب دادي چي صدقه بـه دحلال مال نـه وي او دحرام نه به نه وي. او دقبوليت دوه معني دي يو په معني دصحت دي او دويم په معني درضا دي دلته ورنه دويمه معني مراد ده.

****************

٦٦٢_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ يَقْبَلُ الصَّدَقَةَ وَيَأْخُذُهَا بِيَمِينِهِ، فَيُرَبِّيهَا لِأَحَدِكُمْ كَمَا يُرَبِّي أَحَدُكُمْ مُهْرَهُ، حَتَّى إِنَّ اللُّقْمَةَ لَتَصِيرُ مِثْلَ أُحُدٍ ". وَتَصْدِيقُ ذَلِكَ فِي كِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ (التوبة) ، وَيَأْخُذُ الصَّدَقَاتِ ( التوبة) و يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ ( البقرة) قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا. وَقَدْ قَالَ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: وَمَا يُشْبِهُ هَذَا مِنَ الرِّوَايَاتِ مِنَ الصِّفَاتِ، وَنُزُولِ الرَّبِّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا، قَالُوا: قَدْ تَثْبُتُ الرِّوَايَاتُ فِي هَذَا وَيُؤْمَنُ بِهَا وَلَا يُتَوَهَّمُ وَلَا يُقَالُ كَيْفَ. هَكَذَا رُوِيَ عَنْ مَالِكٍ، وَسُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُمْ قَالُوا فِي هَذِهِ الْأَحَادِيثِ: أَمِرُّوهَا بِلَا كَيْفٍ، وَهَكَذَا قَوْلُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَهْلِ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ، وَأَمَّا الْجَهْمِيَّةُ فَأَنْكَرَتْ هَذِهِ الرِّوَايَاتِ، وَقَالُوا: هَذَا تَشْبِيهٌ وَقَدْ ذَكَرَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فِي غَيْرِ مَوْضِعٍ مِنْ كِتَابِهِ الْيَدَ وَالسَّمْعَ وَالْبَصَرَ، فَتَأَوَّلَتِ الْجَهْمِيَّةُ هَذِهِ الْآيَاتِ فَفَسَّرُوهَا عَلَى غَيْرِ مَا فَسَّرَ أَهْلُ الْعِلْمِ، وَقَالُوا: إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَخْلُقْ آدَمَ بِيَدِهِ، وَقَالُوا: إِنَّ مَعْنَى الْيَدِ هَاهُنَا الْقُوَّةُ، وَقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: إِنَّمَا يَكُونُ التَّشْبِيهُ إِذَا قَالَ: يَدٌ كَيَدٍ أَوْ مِثْلُ يَدٍ أَوْ سَمْعٌ كَسَمْعٍ أَوْ مِثْلُ سَمْعٍ، فَإِذَا قَالَ: سَمْعٌ كَسَمْعٍ أَوْ مِثْلُ سَمْعٍ فَهَذَا التَّشْبِيهُ، وَأَمَّا إِذَا قَالَ: كَمَا قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: " يَدٌ وَسَمْعٌ وَبَصَرٌ " وَلَا يَقُولُ كَيْفَ، وَلَا يَقُولُ

مِثْلُ سَمْعٍ وَلَا كَسَمْعٍ، فَهَذَا لَا يَكُونُ تَشْبِيهًا، وَهُوَ كَمَا قَالَ اللَّهُ تَعَالَى فِي كِتَابِهِ: لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ (الشورى)[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي صدقي لره قبلوي او پخپل ښي لاس يي اخلي او بيا ددي پالنه كوي لكه چي په تاسو كي څوك دخپل اس يا دغوا بچي اوپالي تردي پوري چي يوه لقمه داحد دغر برابر لويه شي او ددي تصديق دالله تعالي په كتاب كيږي فرمان الهي دي "الم يعلموا ان الله هو يقبل التوبة عن عباده ويأخذ الصدقات" يعني الله تعالي دخپلو بندګانو توبه قبولي او صدقات اخلي، دا رنګي ارشاد الهي دي "يمحق الله الربوي ويربي الصدقات" يعني الله تعالي سود ختموي او صدقات زياتوي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي هغي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي اكثرو اهل علمو ددي حديث باره كي او ددي پشان نورو رواياتو باره كي او دبعضي صفاتو باره كي چي الله تعالي هره شپه اسمان ددنيا ته راكوزيږي وئيلي دي چي په دي سلسله كي روايات ثابت دي او ايمان راوړل ورباندي پكار دي او په داسي قسم څيزونو كي وهم كول پكار نه دي او نه ددي دكيفيت دمعلومولو كوشش پكار دي ، دارنګي دامام مالك . سفيان بن عيينه، او عبدالله بن مبارك نه مروي دي چي دا احاديث بغير دكيف نه جاري كړئ او ددي مشابه قول داهل سنت والجماعت داهل علمو دي البته جهميه ددي رواياتو نه انكار كړي دي هغوئ وائي چي بيا تشبيه لازميږي. الله تعالي پخپل كتاب كي په ډيرو مقاماتو كي دلاس. غوږ. ستركي ذكركړي دي او جهميه په دي كي تاويل كړي دي او په دي كي يي داسي تشريح كړي ده كومه چي داهل تفسير دمنشاء او عقيدي خلاف ده دوئ وائي چي الله تعالي ادم عليه السلام پخپل لاس نه دي پيدا كړي په حقيقت كي لاس په معني دقوت دي، اسحاق بن ابراهيم وائي تشبيه به هله وي كله چي څوك اووائي "يد كيد او مثل يد" يا "سمع كسمع او مثل سمع" يعني دالله تعالي لاس زمونږ دلاس پشان دي يا زمونږ دلاس په مثل دي . يا د هغه غوږ زمونږ دغوږ پشان دي يا زمونږ دغوږ مثل دي، نو دا تشبيه ده نه صرف دا چي دالله تعالي لاس دي څكه چي دي سره تشبيه نه لازميږي او كله چي څوك اووائي څنګه چي الله تعالي وئيلي دي چي دهغه دپاره لاس او ستركه ده او دا اونه وائي چي څنګه دي او نه دا اووائي چي دفلاني دغوږ په مثل يا دفلاني غوږ

[1] . تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٢٢٨٤) . وانظر : مسند احمد (٢ في ٢٦٨، ٣٠٢)

پشان دي نو دا تشبيه نشوه دا داسي ده لكه الله تعالي چي پخپل كتاب كي فرمائيلي دي "ليس كمثله شيئ وهو السميع البصير". يعني نشته دهغه په مثل هيڅ شي او هغه اوريدونكي او ليدونكي دي.

****************

٦٦٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ مُوسَى، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الصَّوْمِ أَفْضَلُ بَعْدَ رَمَضَانَ؟ فَقَالَ: "شَعْبَانُ لِتَعْظِيمِ رَمَضَانَ". قِيلَ: فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "صَدَقَةٌ فِي رَمَضَانَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَصَدَقَةُ بْنُ مُوسَى لَيْسَ عِنْدَهُمْ بِذَاكَ الْقَوِيِّ. (1)

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړي شو چي درمضان نه پس كومه روژه افضل ده نو ويي فرمائيل دشعبان روژي كومي چي درمضان دتعظيم دپاره دي بيا تپوس اوكړي شو چي كومه يوه صدقه افضل ده نو ويي فرمائيل چي په رمضان كي صدقه وركول.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي، صدقه بن موسي د محدثينو په نزد څه خاص زيات قوي راوي نه دي.

****************

٦٦٤ـ حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ الْعَمِّيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عِيسَى الْخَزَّازُ الْبَصْرِيُّ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الصَّدَقَةَ لَتُطْفِئُ غَضَبَ الرَّبِّ وَتَدْفَعُ عَنْ مِيتَةِ السُّوءِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (2)

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي صدقه درب غضب لره مړ كوي او بد مرګ نه بچ كول كوي.

امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند حسن غريب دي.

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٣٩)

2 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٢٩)

**تشريح** : د صدقي په فضائلو کي بې شميره احاديث وارد دي چنانچي ترمذي هم دمعاذ بن جبل نه يومرفوع روايت نقل کړی دی:
عن مُعَاذٍ ﷺ قَالَ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ ، أَخْبِرْنِي بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الجَنَّةَ وَيُبَاعِدُنِي مِنَ النَّارِ؟.... قَالَ : ((أَلاَ أَدُلُّكَ عَلَى أَبْوابِ الخَيْرِ ؟ الصَّوْمُ جُنَّةٌ ، وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الخَطِيئَةَ كَما يُطْفِئُ المَاءُ النَّارَ. (الحديث).
په دي روايت کي د غضب الرب په ځاي الخطيئة لفظ مذکور دي يعني صدقه ورکول د الله د ګناهو د مغفرت داسي ذريعه ده څنګه اوبه د اور دمړ کولو ذريعه ده.

***************

## ٢٩_ باب مَا جَاءَ فِي حَقِّ السَّائِلِ

### په سوال دغوښتونکي دحق بيان

٦٦٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ بُجَيْدٍ، عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ بُجَيْدٍ، وَكَانَتْ مِمَّنْ بَايَعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ المِسْكِينَ لَيَقُومُ عَلَى بَابِي فَمَا أَجِدُ لَهُ شَيْئًا أُعْطِيهِ إِيَّاهُ. فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ لَمْ تَجِدِي شَيْئًا تُعْطِينَهُ إِيَّاهُ إِلَّا ظِلْفًا مُحْرَقًا فَادْفَعِيهِ إِلَيْهِ فِي يَدِهِ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُمِّ بُجَيْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالرحمن بن بجيد دنيا حواء رضي الله عنها (چه درسول الله سره دبيعت کونکو نه ده) نه روايت دي فرمائي چي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله کله کله مسکين زما دروازي ته راشي او ده ته زما سره دورکولو دپاره هيڅ نه وي (نو داسي وخت کي به زه څه کوم) رسول الله اوفرمائيل که تاسره ده ته دورکولو دپاره دخاروي کوم سوزيدلي نوك وي نو هم هغه ورته په لاس کي ورکړه (مګر تش لاس يي واپس تلو ته مه پريږده).
امام ترمذي وائي ام بجيد حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعلي ، حسن بن علي، ابوهريره، او ابو امامه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

---

[1] ـ سنن ابي داود في الزكاة ٣٣ (١٦٦٧) . سنن النسائي في الزكاة ٧٠ (٢٥٦٦) . (تحفة الأشراف : ١٨٣٥) . مسند احمد (٦ في ٣٨٢ ٣٨٣) . وأخرجه موطا امام مالك في صفة النبي ﷺ ٥ (٨) . ومسند احمد (٤٠٣) . و (٦ في ٤٣٥) .

**تشريح** : محدثينو ليكلي دي چي ددي حديث مطلب دادي چي دروازي ته مو كوم مسكين راشي نو نه به يي رټئ ځكه چي تاسوهم په يووخت كي ناداران اومفلسان وئ ، ياخو ورته څه وركړئ اويا يي په خوش اخلاقئ سره واپس كړئ ، ددي حديث دتفسير په ضمن كي حسن بصري فرمائيلي دي كه دعلم زده كونكي چرته درنه څه تپوس وكړي نو مه يي رټئ
دابن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي چاچه دعلم زده كونكو نه دعلم څه خبره پټه كړله نودقيامت په ورځ به ورته داور واګي واچولي شي.
امام بخاري او مسلم هم په دي باب كي د ابو هريره رضي الله عنه په دي الفاظو يو مرفوع روايت نقل كوي:

عن ابي هريرة : قَالَ : قَالَ رَسُول الله ﷺ : (( يَانِسَاءَ الْمُسْلِمَاتِ ، لاَتَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَلَوْ فِرْسِنَ شَاةٍ )) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اى مسلمانانو ښځو تاسو سپكه مه ګڼرئ څه هديه چي يوه ګاونډئ بلي ګاونډئ ته وليګي اګر چي دبيزي سوزيدلي سوئ ولي نه وي (بخاري او مسلم).
"يانساء المسلمات" اى مسلمانانو ښځو، په يو بل روايت كي داسي الفاظ راغلي دي "يانساء المومنين " ددينه معلومه شوه چي په دي كي ښه زنانه او نارينه دواړه شامل دي چي دوئ دي دچا دهديي تحقير نه كوي او په حديث كي چي صرف ښځي مخاطبي كړى شوي دي ددي وجه داده چي دا عادت په ښځو كي اكثر زيات موندلى شي.
"لاتحقرن جارة لجارتها" يعني يوه ګاونډئ دي بلي ګاونډئ لره سپكه نه ګڼري، محدثينو ددي حديث دوه مطلبونه بيان كړي دي (١) اول دا چي په دي كي تحفي او هدي ته اشاره ده يعني څوك دي دچا هديه سپكه اومعمولي نه ګڼري يعني هغه به په نظر كي معمولي ښكاري خو چي په اخلاص سره وي نو دالله تعالي په نزد ددي قيمت زيات دى (٢) په دي كي وركونكي ته اشاره ده چي چا دا تحفه تاسو ته راليږلي وي ددي راليږونكى معمولي او سپك په ګڼرئ ، په دي كي ديته هم اشاره ده چي تحفي يو بل ته وركوئ او كه زياته نشئ وركولى او لږه وي نو هم خير دى دا هم دنه وركولو نه بهتر دي.

"ولو فرس شاة" اګر چي دچيلي سوزيدلي خپه ولي نه وي ، دعلماؤ قول دى چي خلق خو چاته دچيلي سوزيدلي خپه په تحفه كي نه وركوي ځكه چي دا په تحفه كي دوركولو قابل نه دى ددي جواب دادى چي په دي حديث كي مبالغة ددي ذكر راغلى دى چي هديه كه هر څومره حقيره ولي نه وي تردي چي دچيلي سوزيدلي خپه وي نو هم به يي قبلوئ.
د ابو ذر رضي الله عنه په متفق عليه روايت كي د صدقي يو بل اعلي ترين قسم مذكور دى:

عن أبي ذر جُنْدبِ بنِ جُنَادَةَ ﷺ ....قال : (( تَكُفُّ شَرَّكَ عَنِ النَّاسِ ؛ فإنَّهَا صَدَقَةٌ مِنْكَ عَلَى نَفْسِكَ ))
مُتَّفَقٌ عليه .

أخرجه : البخاري ١٨٨/٣ ( ٢٥١٨ ) كتاب العتق باب اي الرقاب افضل . ومسلم ٦٢/١ ( ٨٤ )
كتاب الايمان باب بيان كون الايمان بالله افضل الاعمال واحمد ٢١٣٨٩/٨ والنسائي ٣١٢٩ وابن
ماجه والدارمي ، ابن حبان ١٥٢ ، عبد الرزاق والبيهقي ٢٧٧/٢ .

**د حديث دراوي ام بجيد حالات**

د ام بجيد رضي الله تعالي عنها نوم حواء بنت زيد وو ، داد كبار صحابه كرامو د جملي نه يوه انصاريه زنانه ده او د رسول الله صلي الله عليه وسلم په لاس مبارك يي د بيعت شرف هم حاصل كړى وو.

***************

## ٣٠ـ باب مَا جَاءَ فِي إِعْطَاءِ الْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ

### دتاليف قلب دپاره چاته دزكواة وركولو بيان

٦٦٦ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ، قَالَ: "أَعْطَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ، وَإِنَّهُ لَأَبْغَضُ الْخَلْقِ إِلَيَّ فَمَا زَالَ يُعْطِينِي حَتَّى إِنَّهُ لَأَحَبُّ الْخَلْقِ إِلَيَّ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ بِهَذَا أَوْ شِبْهِهِ فِي الْمُذَاكَرَةِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ.
قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ صَفْوَانَ رَوَاهُ مَعْمَرٌ، وَغَيْرُهُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ، قَالَ: "أَعْطَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" وَكَأَنَّ هَذَا الْحَدِيثَ أَصَحُّ وَأَشْبَهُ، إِنَّمَا هُوَ: سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيِّبِ، أَنَّ صَفْوَانَ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي إِعْطَاءِ الْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ. فَرَأَى أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ لَا يُعْطَوْا، وَقَالُوا: إِنَّمَا كَانُوا قَوْمًا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَأَلَّفُهُمْ عَلَى الْإِسْلَامِ حَتَّى أَسْلَمُوا، وَلَمْ يَرَوْا أَنْ يُعْطَوْا الْيَوْمَ مِنَ الزَّكَاةِ عَلَى مِثْلِ هَذَا الْمَعْنَى، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ وَغَيْرِهِمْ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: مَنْ كَانَ

الْيَوْمَ عَلَى مِثْلِ حَالِ هَؤُلَاءِ وَرَأَى الإِمَامُ أَنْ يَتَأَلَّفَهُمْ عَلَى الإِسْلَامِ فَأَعْطَاهُمْ جَازَ ذَلِكَ. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. (1)

**ترجمه**: دصفوان بن اميه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته دحنين په ورځ څه راكړل او هغه ماته دفتح مكې دورځې نه مخكې په تمامو خلقو كې زيات مبغوض وو او مسلسل يې ماته څه راكول تردې پورې چې هغه ماته په مخلوق كې دهر چانه زيات محبوب شو.

امام ترمذي وائي حسن بن علي ماته دا حديث يا ددې پشان حديث په مذاكره كې بيان كړو. په دې باب كې دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه هم روايت وارد دې. دصفوان حديث معمر وغيره دزهري نه او زهري دسعيد بن مسيب نه نقل كړې دې په كوم كې چې د "عن صفوان بن امية" په ځاې باندې "ان صفوان بن اميه قال اعطاني رسول الله صلي الله عليه وسلم" الفاظ راغلي دي ، دچا زړه مائل كول او نژدې كول چې مقصود نه وې داسې كسانو ته دوركولو په باره كې داهل علمو اختلاف دې اكثر اهل علم وائي چې داسې كسانو ته وركول نه دي پكار ددوئ قول دې چې دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كې بعضې كسان داسې وو دچا زړونه چې هغوئ اسلام ته مائل كول غوښتل تردې چې دوئ اسلام راوړې ليكن اوس په دې طريقه چاته دزكواة مال وركول جائز نه دي، سفيان ثوري او اهل كوفه وغيره ددې قول قائلين دې احمد او اسحاق بن راهويه هم په دې باندې قول كړې دې، او دبعضې اهل علمو قول دې كه دچا نن هم ددوئ پشان حالت وي او امام اسلام ته ددوئ دزړونو مائل كول غواړې او دوئ ته څه وركړي نو دا جائز دي، امام شافعي هم په دې باندې قول كړې دې.

**تشريح**: امام مسلم هم په دې سلسله كې د انس رضي عنه موقوف تفصيلي روايت نقل كړى دى:

عن أنس رضي الله عنه ، قَالَ: مَا سُئِلَ رسول الله ﷺ عَلَى الإِسْلاَمِ شَيْئاً إِلاَّ أَعْطَاهُ ، وَلَقَدْ جَاءَهُ رَجُلٌ ، فَأَعْطَاهُ غَنَماً بَيْنَ جَبَلَيْنِ ، فَرَجَعَ إِلَى قَوْمِهِ ، فَقَالَ: يَا قَوْمِ ، أَسْلِمُوا فَإِنَّ مُحَمَّداً يُعْطِي عَطَاءً مَنْ لا يَخْشَى الفَقْرَ ، وَإِنْ كَانَ الرَّجُلُ لَيُسْلِمُ مَا يُرِيدُ إِلاَّ الدُّنْيَا ، فَمَا يَلْبَثُ إِلاَّ يَسِيراً حَتَّى يَكُونَ الإِسْلاَمُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا. رواه مسلم.

انس بن مالك رضي الله عنه بيان كوي چې داسلام په نوم چې د رسول الله صلي الله عليه وسلم

---

1 ـ صحيح مسلم في الفضائل ١٤ (٢٣١٣). (تحفة الأشراف: ٤٩٢٢). مسند احمد (٣ في ٢٠١) و (٦ في ٢٦٥)

نه څه اوغوښتلی شو نو هغوئ ورکړل یو کس په خدمت کي حاضر شو، رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته دچیلو هغه رمه ورکړه کومه چي د دوو غرونو مینځ کي وه هغه کس خپلی قبیلی ته لاړو او ویی وئیل ای خلقو اسلام قبول کړئ ځکه چي رسول الله صلي الله علیه وسلم دومره ورکړه کوي چي دلوږی او محتاجئ ویره نه پاتی کیږي او که چا به ددنیا دطلب دپاره اسلام قبول کړو نو ځو ورځی به هغه په عام حالت کي اوسیدو خو لږه موده پس به دهغه حالت داسی بدل شو چي اسلام به یی زیات محبوب اوګرځیده (مسلم).

"جاءه رجل فاعطاه غنما بین جبلین" یعني یو کس رسول الله صلي الله علیه وسلم ته راغی او ددوه غرونو په مینځ کي چي څومره چیلئ وي هغه ته یي ورکړي، علماؤ لیکلي دي چي دا کس نوی مسلمان شوی وو دنوو مسلمان شوو دپاره په اسلام کي د قوي کیدو دپاره هغوئ ته صدقه او زکواة وغیره ورکولی شي او هم ددوئ نه اسلام په "مؤلفة القلوب" سره تعبیر کړی دی اوپه دي کي هم ددوئ دپاره تالیف قلب وي په دي شان سره ډیر مسلمانان په اسلام کي مضبوط شول لیکن وروسته عمر رضي الله عنه دصحابه کرامو سره مشوره اوکړه او دا کار یي ختم کړو اوس هیچاته په دي نیت مال ورکول پکار نه دي او که چا ورکړی وي نو دوباره دي دي لره واپس کړي.

***************

## ٣١_ باب مَا جَاءَ فِي الْمُتَصَدِّقِ يَرِثُ صَدَقَتَهُ

### صدقه ورکونکي دخپلي صدقي وارث ګرځیدي شي او کنه

٦٦٧_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَطَاءٍ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ. عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ أَتَتْهُ امْرَأَةٌ. فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي كُنْتُ تَصَدَّقْتُ عَلَى أُمِّي بِجَارِيَةٍ وَإِنَّهَا مَاتَتْ. قَالَ: "وَجَبَ أَجْرُكِ وَرَدَّهَا عَلَيْكِ الْمِيرَاثُ" قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهَا كَانَ عَلَيْهَا صَوْمُ شَهْرٍ أَفَأَصُومُ عَنْهَا؟ قَالَ: "صُومِي عَنْهَا" قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهَا لَمْ تَحُجَّ قَطُّ أَفَأَحُجُّ عَنْهَا؟ قَالَ: "نَعَمْ حُجِّي عَنْهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. لَا يُعْرَفُ هَذَا مِنْ حَدِيثِ بُرَيْدَةَ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَطَاءٍ ثِقَةٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ ثُمَّ وَرِثَهَا حَلَّتْ لَهُ. وَقَالَ

بَعْضُهُمْ: إِنَّمَا الصَّدَقَةُ شَيْءٌ جَعَلَهَا لِلَّهِ، فَإِذَا وَرِثَهَا فَيَجِبُ أَنْ يَصْرِفَهَا فِي مِثْلِهِ، وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَزُهَيْرٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَطَاءٍ. ([1])

**ترجمه** : دبريده رضي الله عنه بيان دي چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره ناست وم او په دي دوران كي يوه ښځه راغله او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله ما خپلي مور ته يوه وينځه په صدقه كي وركړي وه او اوس هغه وفات شوي ده ،نو دوينځي به څه كيږي، رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ثواب دي هم حاصل كړو او وينځه درته هم ميراث واپس كړه هغي بيا تپوس اوكړو اي دالله رسوله زما په مور ديوي مياشتي روژي هم وي ايا زه دهغي دطرفه دا روژي نيولي شم ورته يي اوفرمائيل ته دهغي دطرفه روژي اونيسه هغي بيا عرض اوكړو اي دالله رسوله زما مور حج هم نه وو كړي ايا زه دهغي دطرفه حج كولي شم ورته يي اوفرمائيل هو، دهغي دطرفه حج اوكړه.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او د بريده رضي الله عنه دا حديث صرف په همدي سند متعارف دي، او په دي باندي داكثرو اهل علمو عمل دي چي يو بنده كله صدقه وركړي او بيا دخپلي صدقي وارث اوګرځي نو دهغه دپاره دا جائز ده ، دبعضو قول دي چي صدقه خو دي دالله دپاره كړي وه لهذا كله چي څوك دخپلي صدقي وارث اوګرځي نو لازم ده په هغه باندي چي بيا دي لره دالله په لاره كي خرج كړي (دا زياته افضله ده).

**تشريح** : ............دا مسئله اختلافي ده چي په عباداتو كي نيابت جاري كيدي شي او كنه په دي كي دوه مذاهب دي.

(۱) داحنافو محققينو په نزد په دي مسئله كي تفصيل دي چي عبادات په دري قسمه دي:

(۱) محض بدني عبادت لكه صوم او صلاة (۲) محض مالي عبادت لكه زكواة (۳) مركب عبادت لكه حج په بدني عباداتو كي نيابت مطلقا ناجائز دي او په مالي عباداتو كي نيابت مطلقا جائز دي او په مركب عباداتو كي نيابت دعجز په وخت كي جائز دي.

(۲) دامام احمد په نزد په بدني عبادت كي هم نيابت جائز دي او همدا دامام شافعي يو قول هم دي ، دجانبينو دلائل په مطولاتو كي كتلي شئ.

***************

## ۳۲_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْعَوْدِ فِي الصَّدَقَةِ

---

[1] _ صحيح مسلم في الصوم ٢٧ (١١٣٩) . سنن ابي داود في الزكاة ٣١ (١٦٥٦) . سنن ابن ماجه في الصدقات ٣ (٢٣٩٢) .

(تحفة الأشراف: ١٩٨٠) . مسند احمد (٥ في ٣٥١ ، ٣٦١)

## دصدقې واپس اخستلو دکراهت بيان

٦٦٨ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ: أَنَّهُ حَمَلَ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ رَآهَا تُبَاعُ فَأَرَادَ أَنْ يَشْتَرِيَهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ. (١)

**ترجمه**: مروي دي چي عمر رضي الله عنه چاته يو اس دالله په لاره کي ورکړو او بيا يې اوليدل چي دغه اس خرڅيږي نو ددي اخستل يې اوغوښتل نبي کريم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل خپله صدقه واپس مه اخله.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او داکثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي.

**تشريح**: د پورتني حديث وضاحت په لاندیني حديث کي داسي شوي دي:

عن ابن عباس رضي الله عنهما: أَنَّ رسول الله ﷺ. قَالَ: ((الَّذِي يَعُودُ فِي هِبَتِهِ كَالكَلْبِ يَرْجِعُ فِي قَيْئِهِ)). متفق عَلَيْهِ. وفي رواية: ((مَثَلُ الَّذِي يَرْجِعُ فِي صَدَقَتِهِ. كَمَثَلِ الكَلْبِ يَقِيءُ. ثُمَّ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ فَيَأكُلُهُ)).

وفي رواية: ((العائِدُ فِي هِبَتِهِ كالعائِدِ فِي قَيْئِهِ)).

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چي بخښلی شي واپس اخلي داسی دی لکه سپی چي خپل قی بياخوري

أخرجه: البخاري كتاب الهبة ٢١٥/٣ (٢٦٢١) و(٢٦٢٢). ومسلم كتاب البيوع باب تحريم الرجوع في الصدقة والهبة ٦٣/٥ (١٦٢٢) (٥) و(٨) واحمد وابوداود والترمذي والنسائي وابن ماجه وعبد الرزاق والحميدي وابن حبان والبيهقي١٨٠/٦.

او يو روايت په دی الفاظو دی مثال دهغه چاچه خپل خيرات کړی شی واپس کوي داسی دی لکه سپی چي قی اوکړي، بيا ورته رااوګرځي او ويی خوري او په يو روايت کي بخښلی شي

---

[1] ـ سنن النسائي في الزكاة ١٠٠ (٢٦١٧). (تحفة الأشراف: ١٠٥٢٦). و البخاري في الزكاة ٥٩ (١٤٩٠). والهبة ٣٠ (٢٦٢٣). و٣٧ (٢٦٣٦). والوصايا ٣١ (٢٧٧٥). والجهاد ١١٩ (٢٩٧٠). و١٣٧ (٣٠٠٣). صحيح مسلم في الهبات ١ (١٦٢٠). سنن النسائي في الزكاة ١٠٠ (٢٦١٦). سنن ابن ماجه في الصدقات ١ (٢٣٩٠). موطا امام مالک في الزكاة ٢٦ (٤٩). مسند احمد (١/ ٤٠، ٥٤، من غير هذا الطريق كما أخرجه صحيح البخاري في الزكاة ٥٩ (١٤٨٩). وسنن النسائي في الزكاة ١٠٠ (٢٦١٥).

واپس کوونکی داسی دی لکه خپل قی چي بیا اوخوري (مطلب د دري واړو یو دی).
ورکړي صدقه واپس اخستل دابن ملك په نزد حرامه ده لیکن دجمهورو علماؤ په نزد مکروه ده په حدیث کي ددي مثال داسي راغلی دی لکه سپی چي خپله قی واپس ځتي په دي جمله کي دصدقي واپس اخستلو قباحت بیان شوی دی چي مثال یي داسي دی لکه دسپي پشان او دده د صدقي مثال دسپي دقی پشان دی ددینه انسانان سخته کرکه کوي علامه طیبي وائي ددینه زیات نه زیات کراهت تنزیهي ثابتیدی شي تحریمي نشي ثابتیدی. (التعلیق الصبیح. عمدة القاري)

عن عمر بن الخطاب ﷺ قَالَ: حَمَلْتُ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللهِ فَأَضَاعَهُ الَّذِي كَانَ عِنْدَهُ، فَأَرَدْتُ أن أَشْتَرِيَهُ، وَظَنَنْتُ أَنَّهُ يَبِيعُهُ بِرُخْصٍ، فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ ﷺ، فَقَالَ: ((لاَ تَشْتَرِهِ وَلاَ تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ وإِنْ أَعْطَاكَهُ بِدِرْهَمٍ؛ فَإِنَّ العَائِدَ فِي صَدَقَتِهِ كَالعَائِدِ فِي قَيْئِهِ)). متفق عَلَيْهِ.
قَوْله: ((حَمَلْتُ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ الله)) مَعناهُ: تَصَدَّقْتُ بِهِ عَلَى بَعْضِ المُجَاهِدِينَ.
عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روایت دی چي ما یو سړي ته جهاد دپاره یو اس خیراتي ورکړی وو، نو دهغه نه خراب شو څما دا خیال وو چي دی به یي اوس ارزانه خرڅوي نو زه به یي تری په بیا واخلم، رسول الله صلي الله علیه وسلم نه می تپوس اوکړو نو هغوی راته اوفرمائیل که په یو درهم یي دربانډی خرڅوي هم یي مه اخله خپله صدقه واپس اخستل داسی دي لکه خپل قی بیا خوړل.
حملت علي فرس في سبیل الله: یعني ما دا کوم مجاهد ته دجهاد دپاره ورکړو په طور دصدقي.

"لاتعد في صدقتك" یعني خپله صدقه واپس مه اخله مطلب دادی چي خپله ورکړي صدقه په قیمت واپس اخستل جائز نه دي او بعضي علماؤ حرام ګڼړلي دي مګر اکثر علماء وائي چي مکروه تنزیهي دي مکروه په دي وجه دي کیدی شي چي په چا یي احسان کړی وي دهغه نه یي په ارزان قیمت واخلي، نو داسي کس به دصدقي په واپس غوښتونکي کي شمیرلي شي چي په واپس کولو یي په شریعت کي ډیر وعیدونه راغلي دي.

****************

## ۳۳_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّدَقَةِ عَنِ الْمَيِّتِ

**دمړي دطرفه دصدقي ورکولو بیان**

٦٦٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ إِسْحَاق، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَجُلًا، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ "أُمِّي تُوُفِّيَتْ أَفَيَنْفَعُهَا إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: فَإِنَّ لِي مَخْرَفًا فَأُشْهِدُكَ أَنِّي قَدْ تَصَدَّقْتُ بِهِ عَنْهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَبِهِ يَقُولُ أَهْلُ العِلْمِ، يَقُولُونَ: لَيْسَ شَيْءٌ يَصِلُ إِلَى الْمَيِّتِ إِلَّا الصَّدَقَةُ وَالدُّعَاءُ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الحَدِيثَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. قَالَ: وَمَعْنَى قَوْلِهِ إِنَّ لِي مَخْرَفًا يَعْنِي: بُسْتَانًا. (١)

**ترجمه**: دابن عباس رضي الله عنهما بیان دي چې یو کس عرض اوکړو اي دالله رسوله زما مور وفات شوي ده که چرې زه دهغې دطرفه صدقه ورکوم نو ایا دا به هغې ته فائده ورسوي رسول الله اوفرمائیل هو، سوال کونکي اوونیل زما یو باغ دي او ته ګواه اوسه چې ما خپل دا باغ دخپلې مور دطرفه په صدقه کې ورکړو.

امام ترمذي وائي دا حدیث حسن دي بعضي محدثینو دا حدیث په سند د عمرو بن دینار عن عکرمه عن النبي صلي الله علیه وسلم مرسل نقل کړي دي.

او په همدي داهل علمو عمل هم دي چې هیڅ یو شي داسي نشته کوم چې مړي ته فائده رسولي شي مګر علاوه دصدقي او ددعا نه، او د "مخرفا" لفظ نه باغ مراد دي.

**تشریح**: د ایصال ثواب د مسئلي تحقیق د احادیثو په رڼا کي:

عن عائشة رضي الله عنها: أنَّ رجلاً قَالَ للنبيِّ ﷺ: إِنَّ أُمِّي افْتُلِتَتْ نَفْسُهَا وَأُرَاهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ، فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا؟ قَالَ: ((نَعَمْ)) متفقٌ عَلَيْهِ.

ام المومنین عائشه رضي الله عنها فرمائي چې یو کس د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چې خما مور ناځاپه وفات شوه او خما خیال دی چې که چرې هغې ته دځه ونیلو یادکولو مهلت ملاو شوی وی نو هغې به ضرور څه خیرخیرات کړی وی اوس که چرې زه دهغې دطرف نه څه خیرات اوکړم نو ایا هغې ته به ددې اجر اوثواب ملاو شي؟ رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل او ولې نه.

**دایصال ثواب طریقه**

١ ـ صحیح البخاري في الوصایا ٢٠ (٢٧٦٢). سنن أبي داود في الوصایا ١٥ (٢٨٨٢). سنن النسائي في الوصایا ٨ (٣٦٨٥).

(تحفة الأشراف: ٦١٦٢)

فهل لها اجر ان تصدقت قال نعم: يعني كه دا ددوئ دطرفه صدقه وكړي نو ايا ددي دپاره به اجر وي؟ نو ويي فرمائيل هو.

علماء وائي كه څوك كوم نيك عمل اوكړي مثلا په چا خوراك اوكړي ياپيسي ياكپړي وغيره وركړي يانفلي مونخونه او روژي اونيسي يانفلي حج اوعمره اوكړي يا دقران تلاوت اوكړي ياتسبيحات وغيره اولولي يامسجد اوديني مدرسه جوړه كړي يا مذهبي كتاب شايع كړي نوددي دكولو نه پس دي داسي دعا اوكړي چي اى الله ددي نيك كار ثواب فلاني كس ته ورسوي.

عن أَبِي هريرة ﷺ : أَنَّ رسول الله ﷺ ، قَالَ : ((إِذَا مَاتَ الإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَمَلُهُ إِلاَّ مِنْ ثَلاثٍ : صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ ، أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ)) رواه مسلم.

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي كله انسان مړ شي نو دهغه دعملونو سلسله ختمه شي ليكن درى خبرى چي دهغى داجر سلسله جاري وي يوه صدقه جاريه، دويم علم چي دهغى نه فائده اخستلى شي، او دريم نيك او صالح اولاد چي هغه دپاره دعا كوي.

اولني هغه څيز چي ثواب يي انسان ته دمرګ نه پس ملاوېږي په دي كي عموم دي ، په دي كي دا هم داخل دي چي چاته دلوستلو دپاره قران كريم وركړى او هغه يي لولي نو ده ته به ثواب ملاوېږي همدا رنګي كه څوك جومات جوړ كړي يا كوهى اوكني يا نهر جاري كړي څكه چي "الدال علي الخير كفاعله" نيكئ طرف ته رهنمائي كونكى دنيكئ كونكي پشان دى.

دويم هغه څيز دكوم ثواب چي انسان ته دمرګ نه پس ملاوېږي علم دى او خصوصا هغه علم كوم چي يي په خلقو كي خور كړى وي او هم ددينه په يو بل حديث كي په علم نافع سره تعبير شوى دى.

دريم څيز ولد صالح يعنيي نيك اولاد دى ابن حجر مكي وائي چي دصالح نه مراد مومن دى علماء وائي دولد سره صالح قيد څكه لګولى شوى دى چي خلقو ته ترغيب وركړى شي تردي چي بيا هر يو انسان نيك جوړ شي . علماء وائي كه ولد غير صالح هم وي او دعا اوغواري نو فائده به يي وي علماؤ په ولد صالح كي يوي عجيبي نكتي ته اشاره كړي ده او هغه داده چي والدينو لره پكار دي چي خپل اولاد ته دنيكئ تعليم وركړي نو هله به دوئ ته فائده رسيږي.

مطلب دادي كه څوك مړ شي او دده په ذمه روژي واجب وي نو دده متعلق دفقهاؤ اختلاف دي:
جمهور فقهاء امام ابوحنيفه مالك ، شافعي وغيره وايي دده دمرګ نه پس بل څوك دده دطرفه روژي نشي نيولي بلكه فديه به وركولي شي.
ليكن د امام احمد قول دادي چي وارثان به دده دطرفه روژي نيسي او ددي دپاره دپورتني

حديث نه استدلال کوي.
ددي جواب دادي چي فديه ورکول دروژو نيولو قائم مقام دي.
دويم جواب دادي چي پورتني حديث منسوخ دي.
دريم جواب شاه انورشاه وايي ولي روژي نيولي شي خو په طريقه د نيابت يي نشي بلکه په طور دايصال ثواب.
څلورم جواب چي په ژوند کي څوك دچا دطرفه بدني عبادت په بدل کي نشي کولي نو دمرگ نه پس يي څنگه کولي شي؟

****************

## ٣٤_ باب مَا جَاءَ فِي نَفَقَةِ الْمَرْأَةِ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا

## دښځي دپاره دخپل خاوند دکور نه خرچ کولو څه حکم دي

٦٧٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا شُرَحْبِيلُ بْنُ مُسْلِمٍ الْخَوْلَانِيُّ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خُطْبَتِهِ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يَقُولُ: "لَا تُنْفِقُ امْرَأَةٌ شَيْئًا مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا". قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَلَا الطَّعَامُ؟ قَالَ: "ذَاكَ أَفْضَلُ أَمْوَالِنَا". وَفِي الْبَابِ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي أُمَامَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ.[1]

**ترجمه**: دابو امامه رضي الله عنه بيان دي چي ما په حجة الوداع کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په خطبه کي واوريدل چي يوه ښځه دي دخپل خاوند دکور نه دهغه داجازت نه بغير څه شي نه خرچ کوي عرض اوکړي شو اي دالله رسوله که خوراك او ډوډۍ ورکړي نو څه حکم دي رسول الله اوفرمائيل دا خو زمونږ په مالونو کي دټولو نه افضل څيز دي.
امام ترمذي وائي دابو امامه حديث حسن دي، او په دي باب کي دسعد بن ابي وقاص، اسماء بنت ابي بکر، ابو هريره، عبدالله بن عمرو، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي اود امامه حديث د حسن درجي دي.

****************

[1] ـ ابن ماجه في التجارات ٦٥ (٢٢٩٥). (تحفة الأشراف: ٤٨٨٣). مسند احمد (٥ في ٢٦٧)

٦٧١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، قَال: سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِذَا تَصَدَّقَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا كَانَ لَهَا بِهِ أَجْرٌ، وَلِلزَّوْجِ مِثْلُ ذَلِكَ وَلِلْخَازِنِ مِثْلُ ذَلِكَ، وَلَا يَنْقُصُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ مِنْ أَجْرِ صَاحِبِهِ شَيْئًا لَهُ بِمَا كَسَبَ وَلَهَا بِمَا أَنْفَقَتْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.[1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي يوه ښځه دخپل خاوند دكور نه صدقه وركړي نو په دي باندي ديته اجر ملاويږي او ددي داجر هومره اجر ددي خاوند ته هم ملاويږي او ددي جمع كونكي ته هم ددي اجر ملاويږي او په دوئ كي به يو كس اجر دبل كس د اجر په وجه كم نشي . خاوند ته ددي دګټلو اجر ملاويږي او ښځي ته به ددي دخرچ كولو اجر ملاويږي.

امام ترمذي وائي دا حديث دحسن درجي دي.

***************

٦٧٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا الْمُؤَمَّلُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَعْطَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا بِطِيبِ نَفْسٍ غَيْرَ مُفْسِدَةٍ كَانَ لَهَا مِثْلُ أَجْرِهِ لَهَا مَا نَوَتْ حَسَنًا وَلِلْخَازِنِ مِثْلُ ذَلِكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، وَعَمْرُو بْنُ مُرَّةَ، لَا يَذْكُرُ فِي حَدِيثِهِ عَنْ مَسْرُوقٍ.[2]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي يوه ښځه دخپل خاوند دكور نه په خوشحالئ سره بغير دفساد دنيت نه كوم څيز چاته وركړي نو دي لره به دسړي برابر ثواب وركولي شي ديته به دخپل نيك نيت ثواب ملاويږي او ددي جمع كونكي ته به هم دارنګي ثواب ملاويږي

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ١٦١٥٣)

[2] صحيح البخارى في الزكاة ١٧ (١٤٢٥) ، و٢٥ (١٤٣٧) ، و٢٦ (١٤٣٩) ، والبيوع ١٢ (٢٠٦٥) . صحيح مسلم في الزكاة ٢٥ (١٠٢٤) . سنن ابي داود في الزكاة ٤٤ (١٦٨٥) . سنن النسائي في الزكاة ٥٧ (٢٥٤٠) . سنن ابن ماجه في التجارات ٦٥ (٢٢٩٤) . (تحفة الأشراف : ١٧٦٠٨) . مسند احمد (٦ في ٤٤، ٩٩، ٢٧٨)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دا حديث دعمرو بن مره دحديث نه کوم چي يي دابووائل نه نقل کړي دي زيات صحيح دي، عمرو بن مره پخپل روايت کي دمسروق په واسطه نه ذکر کوي.
امام ترمذي وائي دا حديث د عمرو بن مره د حديث نه چي د ابو وائل نه يي نقل کوي زيات صحيح دی مگر عمرو بن مره پخپل سند کي د مسروق واسطه نه ذکر کوي

**تشريح : ښځه دخاوند دمال نه دضرورت په قدر اخستلي شي**

عن عائشة رَضِيَ اللهُ عنها ، قالت : قالت هِندُ امْرَأَةُ أَبِي سفيَانَ للنَّبِيِّ ﷺ : إنَّ أَبَا سُفيَانَ رَجُلٌ شَحِيحٌ وَلَيْسَ يُعْطِينِي مَا يَكْفِينِي وولَدِي إِلاَّ مَا أَخَذْتُ مِنْهُ، وَهُوَ لا يَعْلَمُ ؟ قَالَ : ((خُذِي مَا يَكْفِيكِ وَوَلَدَكِ بِالمَعْرُوفِ)) . متفق عَلَيْهِ.

عائشی رضي الله عنها نه روايت دی چي دابوسفيان ښځي هندی د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي عرض اوکړو ابو سفيان ډير زيات کنجوس سړي دی ماته دومره څه نه راکوي، چي ماته او خما خوئ ته کافي شي، مگر دا چي په پټه تری نه څه واخلم، نو ايا دا په پټه اخستل ماته جائز دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل دومره تری اخله چي تاسو دواړو ته کافي کيږي درواج مطابق يعني زياتی داسی مه کوه او څه چي دکورونو دخرچ عام رواج دی هغه هومره تری په پټه اخله چي په رضا نه کيږي.

علماؤ ددي روايت نه ډير مسائل معلوم کړي دي:
اول په سړي باندي دښځي او نابالغو سړو خرچه واجب ده.
دويم نفقه په قدر دضرورت پکار ده.
دريم دضرورت په وخت کي دپردئ ښځي سره خبري کول جائز دي
څلورم دمسئلي معلومولو په وخت که څوك دغيبت کومه خبره اوکړي نو دا به غيبت نه وي.
پنځم که دښځي خرچه پوره نه وي نو هغه دخاوند دمال نه په قدر دضرورت اخستلی شي.
شپږم ښځه دضرورت په بنا دکورنه بهر وتلی شي

***************

## ٣٥_ باب مَا جَاءَ فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ

**داختر کي دسرسايه ورکولو بيان**

٦٧٣_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، كُنَّا نُخْرِجُ زَكَاةَ الْفِطْرِ، إِذْ كَانَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ، صَاعًا مِنْ طَعَامٍ أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ زَبِيبٍ أَوْ صَاعًا مِنْ أَقِطٍ، فَلَمْ نَزَلْ نُخْرِجُهُ حَتَّى قَدِمَ مُعَاوِيَةُ الْمَدِينَةَ، فَتَكَلَّمَ فَكَانَ فِيمَا كَلَّمَ بِهِ النَّاسَ: إِنِّي لَأَرَى مُدَّيْنِ مِنْ سَمْرَاءِ الشَّامِ تَعْدِلُ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ، قَالَ: فَأَخَذَ النَّاسُ بِذَلِكَ، قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: فَلَا أَزَالُ أُخْرِجُهُ كَمَا كُنْتُ أُخْرِجُهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَرَوْنَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ صَاعًا، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: مِنْ كُلِّ شَيْءٍ صَاعٌ إِلَّا مِنَ الْبُرِّ، فَإِنَّهُ يُجْزِئُ نِصْفُ صَاعٍ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَأَهْلُ الْكُوفَةِ يَرَوْنَ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ.[1]

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زمونږ په مينځ کي موجود وو نو مونږ به داختر په سرسايه کي يو صاع دغنمو يا يو صاع دوربشو يا يو صاع دكجورو يا يو صاع داوچو انګورو يا يو صاع دپنير ورکولو، مونږ په همدي طريقه سرسايه ورکول جاري ساتل تردي چي معاويه رضي الله عنه مديني ته راغي نو خلقو ته يي خطاب اوکړو او په هغه خطاب کي دا خبره هم وه چي ماته دشام دوه مده غنم ديو صاع سره برابر ښکاري نو خلقو دده خبره اختيار کړه يعني دوه مده يعني نيم صاع غنم ورکول يي شروع کړل.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او دبعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي ددوئ خيال دادي چي په هر يو څيز کي يو يو صاع سرسايه ده همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي په صحابه كرامو او ددوئ نه پس دبعضي اهل علمو قول دي چي په هر يو څيز کي يو يو صاع دي مګر علاوه دغنمو نه څکه چي په دي کي نيم صاع کافي دي او همدا دسفيان ثوري او ابن مبارك قول دي او داهل كوفه رائي هم داده چي دغنمو نه نيم صاع ورکول کافي دي.

**تشريح:** **دصدقة الفطر(سرسايه) ورکولو وخت**

داخترد مونځ نه مخکي صدقة فطر اداکول واجب دي.څکه چي په صحيحينو کي د ابن عمر رضی الله عنهما حديث مروي دی:

---

[1] ـ صحيح البخاري في الزكاة ۷۲ (۱۵۰۵) ، و۷۳ (۱۵۰٦) ، و۷۵ (۱۵۰۸) ، و۷٦ (۱۵۱۰) . صحيح مسلم في الزكاة ۴ (۹۸۵) . سنن ابي داود في الزكاة ۱۹ (۱٦۱٦) . سنن النسائي في الزكاة ۳۸ (۲۵۱۵) . سنن ابن ماجه في الزكاة ۲۱ (۱۸۲۹) . (تحفة الأشراف : ۴۲٦۹) . مسند احمد (۳ في ۲۳ ، ۷۳ ، ۹۸) . سنن الدارمي في الزكاة ۲۷ (۱٦۰۴)

"ان النبی ﷺ أمر بزكاة الفطر ان يؤدی قبل خروج الناس الى الصلوة وكان هو يؤدی قبل خروج الناس الى الصلوة وكان هو يؤديها قبل ذالك بيوم او بيومين (رواه ابو داود)

يعنی نبی ﷺ د زكاة فطر (يعنی د صدقة فطر) حكم فرمائی چی دا به د خلقو مانځه ته د تګ نه وړاندې وركولی شی. اونبی ﷺ به په خپله د اختر نه يوه ورځ يا دوه ورځې مخكې اداكوله.

(۲) دويم دليل دادي چی په دی كي نيكئ طرف ته وړاندي والي دي اود فقير زړه مونځ دپاره فارغ كول دی. اونبی ﷺ فرمائيلی دی "أغنوهم عن المسألة" يعني بی نيازه كړئ دوئ لره يعني محتاجان د سوال كولو نه. اودا به هغه وخت وی. چی كله خلق صدقة فطر وغيره ادا كړی. اودالله تعالی فرمان دې.

" قد افلح من تزكى.. أى أعطى زكوة الفطر ..وذكر اسم الله ربه.. بتكبير العيد فى الطريق ..فصلى.. صلوة العيد"

يعنی هغه سړې كامياب شو چاچی صدقه فطر اداكړه. اوداختر تكبيرات ئې اوونيل د خپل رب ذكر ئې اوكړو. بيائې داختر مونځ اوكړو.

د صدقه فطر اداكولو نه پس دی عيدګاه طرف ته متوجه شی او دا مستحب دی. بنكاره دی وی. چی عيدګاه ته پيدل تلل مستحب دی. ځكه چی عمر (رضي الله عنه) فرمائيلی دی. عيدګاه ته پيدل تلل سنت دی. اوكه څه خلق دخپل ضعف د وجي عيدګاه ته د تلو نه معذوروی. نو د وخت امام دی څوك مقرركړی. چی په ښار كي دننه دوی ته په جومات كي مونځ وركړی. ځكه چی مروي دي:

" ان علياً لما قدم الكوفة استخلف من يصلى بالضعفاء صلوة العيدين فى الجامع وخرج إلى الجبانة مع خمسين شيخا يمشى ويمشون"

يعنی علی (رضي الله عنه) چی كله كوفی ته تشريف يوړلو. نويو داسی سړې ئې خپل خليفه مقرر كړو. چی كمزورو خلقو ته په جومات كي د اخترونو مونځ وركړی. او هغه په خپله ماشومانو او بوډاګانو سره صحرا طرف ته اووتل. دوی په خپله هم پياده وو. او پنځوس ورسره سری هم پياده روان وو.

په دی مسئله كي اختلاف دې. چی د وړوكی اختر په ورځ عيدګاه ته د تلو په وخت په لاره كې تكبير په اوچت آواز سره وائی او كه په ورو آواز

(۱) امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی. چی په اوچت آواز سره دی نه وائی.

(۲) او صاحبين فرمائی. چی په اوچت آواز دی وائی. د صاحبينو دليل په لوی اختر باندې قياس دې. يعنی څنګه چی په لوی اختر كي تكبير په اوچت آوازسره مشروع دې. دغه شان په وړوكی اختر كي هم په اوچت آواز سره مشروع دې.

دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چی په ذکر کې دننه خو اصل اخفاء ده.لکه چی د باری تعالی ارشاد دی:

وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُنْ مِنَ الْغَافِلِينَ (اعراف:۲۰۵)

ارشاد نبوي دی: "خیر الذکر الخفی وخیر الرزق مایکفی"

ښه ذکر ،پټ ذکر دی او ښه رزق هغه دی چی دکفایت په مقدار وی.نه د ضرورت نه زیات او نه کم وی.

په هرحال کې په ذکر کې اصل اخفاء ده.خو دلوی اختر په ورځو کې په جهر سره تکبیر خلاف قیاس نص وارد دې.الله تعالی فرمائی:

"اذکروا الله في ایام معدودات" دمفسرینو قول دی .چی دلته د لوی اختر په ورځو کې تکبیر جهری مراد دې.او وړوکی اختر د لوی اختر په معنی کې هم نه دې.ځکه چی لوی اختر د حج په ارکانو کې یو رکن سره مخصوص دې. یعنی په دغه ورځ کې بعضی د حج ارکان اداکولی شی.او په وړوکی اختر کې دا خبره نشته.نوهرکله چی وړوکی اختر د لوی اختر په معنی کې نه دې.نو وړوکی اختر په لوی اختر باندې قیاس کول هم مناسب نه دی.

دلته یواعتراض واردکیدی شی.چی د امام صاحب دا فرمائی چی په وړوکی اختر کې په تکبیر جهری باندې شریعت نه دی وارد.

دا خبره قابل د تسلیم نه ده.ځکه الله تعالی فرمائیلی دی:

لتکملوا العدة ولتکبروا الله علی ما هدا کم، په دې آیت کې ئې د رمضان المبارك روژی پوره کولو نه پس د تکبیرخبر ورکړې دې.او د تکبیر علم به هغه وخت وی.چی په اوچت آواز سره تکبیر اوونیلی شی.اوداابن عمر(رضي الله عنه) نه مروی دی.

"ان رسول الله ﷺ کان یخرج یوم الفطر و یوم الاضحی رافعا صوته بالتکبیر" یعنی رسول الله ﷺ د وړوکی او لوی اختر په ورځ په تکبیر باندې خپل آواز اوچتولو سره وتلو.نوثابته شوه.چی د وړوکی اختر په ورځ هم په تکبیر جهری باندې نص وارد دې.

ددې جواب دادی په آیت کې په مونځ کې دننه تکبیر مراد دې.د آیت معنی به داسی وی " صلوا صلوة العید وکبروا الله فیها" یعنی د وړوکی اختر مونځ اداکړئ.او په دی کې په اوچت آواز سره تکبیر وائې.پاتې شوحدیث ددی جواب دادې.چی ددی حدیث په سند کې "ولید بن محمد عن الزهری" دی او ولید متروك الحدیث دې.ځکه داحدیث قابل د استدلال نه دې.

***************

٦٧٤_ حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا سَالِمُ بْنُ نُوحٍ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " بَعَثَ مُنَادِيًا فِي فِجَاجِ مَكَّةَ، أَلَا إِنَّ صَدَقَةَ الْفِطْرِ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ، ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى، حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ، صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ، مُدَّانِ مِنْ قَمْحٍ أَوْ سِوَاهُ صَاعٌ مِنْ طَعَامٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَرَوَى عُمَرُ بْنُ هَارُونَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، وَقَالَ: عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ مِينَاءَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ بَعْضَ هَذَا الْحَدِيثِ. حَدَّثَنَا جَارُودُ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ هَارُونَ هَذَا الْحَدِيثَ. ([1])

**ترجمه**: دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله علي وسلم يو كس لره دمديني په كوڅو كي داعلان كولو دپاره اوليږلو او دا اعلان يي كولو واورئ صدقه دفطر په هر مسلمان نارينه او زنانه ازاد او په غلام په ماشوم او په لوي باندي دغنمو نه دوه مده او دغنمو نه علاوه دنورو غلو نه يو صاع واجب ده.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، عمر بن هارون دا حديث د ابن جريج نه نقل كړي دي او ونيلي يي دي "العباس بن ميناء عن النبي صلي الله عليه وسلم" او بيا يي وړاندي ددي حديث څه حصه ذكر كړه.

****************

٦٧٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: " فَرَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَةَ الْفِطْرِ عَلَى الذَّكَرِ وَالْأُنْثَى وَالْحُرِّ وَالْمَمْلُوكِ، صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ ". قَالَ: فَعَدَلَ النَّاسُ إِلَى نِصْفِ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَدِّ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي ذُبَابٍ، وَثَعْلَبَةَ بْنِ أَبِي صُعَيْرٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. ([2])

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٦٢٨)

[2] _ صحيح البخاري في الزكاة ٧٧ (١٥١١). صحيح مسلم في الزكاة ٤ (٩٨٤). سنن النسائي في الزكاة ٣٠ (٢٥٠٢). و٣١ (٢٥٠٣). (تحفة الأشراف: ٧٥١٠). مسند احمد (٢ في ٥) وأخرجه: صحيح البخاري في الزكاة ٧٠ (١٥٠٣). و٧١ (١٥٠٤). و٧٤ (١٥٠٦). و٧٤ (١٥٠٧). و٧٨ (١٥١٢). وصحيح مسلم في الزكاة (المصدر السابق). و سنن ابي داود في الزكاة ١٩ (١٦١١). وسنن النسائي في الزكاة ٣٣ (٢٥٠٤). و٣٣ (٢٥٠٥). وسنن ابن ماجه في الزكاة ٢١ (١٨٢٥. و١٨٢٦). (٥٢). و مسند احمد (٢ في ٥٥. ٦٣. ٦٦. ١٠٢. ١١٤. ١٣٧). و سنن الدارمي في الزكاة ٢٧ (١٦٦٨).

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم صدقه دفطر په نارينه او زنانه په ازاد او په غلام باندي يو صاع دکجورو يابوصاع دوربشو مقرر کړي دي راوي وائي چي بيا خلقو نيم صاع دغنمو ددي سره برابري کافي اوګڼړلو.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي ، په دي باب کي دابوسعيد ، ابن عباس، حارث بن عبدالرحمن بن ابي ذباب نيکه يعني ابو ذباب، ثعلبه بن ابي صعير او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

٦٧٦ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " فَرَضَ زَكَاةَ الفِطْرِ مِنْ رَمَضَانَ، صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ، عَلَى كُلِّ حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى مِنَ المُسْلِمِينَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرَوَى مَالِكٌ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ حَدِيثِ أَيُّوبَ، وَزَادَ فِيهِ مِنَ المُسْلِمِينَ، وَرَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ نَافِعٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ مِنَ المُسْلِمِينَ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي هَذَا، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا كَانَ لِلرَّجُلِ عَبِيدٌ غَيْرُ مُسْلِمِينَ لَمْ يُؤَدِّ عَنْهُمْ صَدَقَةَ الفِطْرِ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: يُؤَدِّي عَنْهُمْ وَإِنْ كَانُوا غَيْرَ مُسْلِمِينَ، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ المُبَارَكِ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه**: دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم درمضان په صدقه دفطر کي يو صاع دکجورو يا يو صاع دوربشو په مسلمانانو کي په هر ازاد او غلام باندي او په هر نر او ښځه باندي فرض کړي دي.
امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي، مالك په سند دنافع عن ابن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم روايت نقل کړي دي او دايوب دحديث پشان حديث يي بيان کړي دي البته په دي روايت کي د "من المسلمين" لفظ اضافه ده او د وئ نه علاوه نورو محدثينو دنافع نه نقل کړي دي په دي کي د من المسلمين ذکر نشته داهل علمو په دي سلسله کي اختلاف دي بعضي وائي کله چي ديو کس سره غير مسلم غلام وي نو دي به دهغه سرسايه نه اداء کوي همدا دامام مالك شافعي او احمد قول دي او بعضي وائي چي مالك به دغلامانو

---

1 ـ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ٨٣٢١)

صدقه اداء کوي مسلمان وي او که غير مسلم وي سفيان ثوري، ابن مبارك، او اسحاق بن راهويه هم په دي باندي قول کړي دي.

**تشريح** : په دي باب کي څلور اختلافي مسائل معلومول ضروري دي:

(١) اوله اختلافي مسئله داده چي د صدقة الفطر شرعي حيثيت څه دی ؟

(١) د امام ابو حنيفه په نزد واجب ده.(٢) اود ائمه ثلاثه په نزد فرض ده.

(٢) دويمه اختلافي مسئله داده چي د صدقة الفطر دوجوب دپاره نصاب شرط دی اوکه نه؟

(١)د امام ابو حنيفه په نزد د صدقة الفطر دوجوب دپاره نصاب شرط دی (٢)اود ائمه ثلاثه په نزد ددي دپاره هيڅ قسم نصاب مقرر نه دی.

(٣)دريمه اختلافي مسئله داده چي په ښځه صدقة الفطر واجب ده او که نه؟

(١)د امام ابو حنيفه په نزد په ښځي هم صدقة الفطر واجب ده (٢)اود ائمه ثلاثه په نزد په ښځي هم صدقة الفطر واجب نده بلکه ددي په خاوند باندي واجب ده.

(۴) څلورمه اختلافي مسئله د صدقة الفطر د غنمو په مقدار کي ده چي پوره صاع دی او که نيم صاع؟

(١)د امام ابو حنيفه په نزدنيم صاع دی او په نوره غله کي پوره صاع دی، (٢)اود ائمه ثلاثه په نزد په غنمو کي هم د نوري غلي پشان پوره صاع دی.

ددي دلائل د هدايه شارحينو په مفصل طور سره د جواباتو ليکلي دي.

***************

## ٣٦_ باب مَا جَاءَ فِي تَقْدِيمِهَا قَبْلَ الصَّلاَةِ

### داختر دمونځ نه مخکي دسرسايه ورکولو بيان

٦٧٧_ حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ عَمْرِو بْنِ مُسْلِمٍ أَبُو عَمْرٍو الحَذَّاءُ المَدَنِيُّ. حَدَّثَنِي عَبْدُ اللهِ بْنُ نَافِعٍ الصَّائِغُ. عَنْ ابْنِ أَبِي الزِّنَادِ. عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ. عَنْ نَافِعٍ. عَنْ ابْنِ عُمَرَ. أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. كَانَ "يَأْمُرُ بِإِخْرَاجِ الزَّكَاةِ قَبْلَ الغُدُوِّ لِلصَّلاةِ يَوْمَ الفِطْرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. وَهُوَ الَّذِي يَسْتَحِبُّهُ أَهْلُ الْعِلْمِ أَنْ يُخْرِجَ الرَّجُلُ صَدَقَةَ الْفِطْرِ قَبْلَ الْغُدُوِّ إِلَى الصَّلَاةِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د واړه اختر په ورځ مونځ ته دوتلو نه مخکي دصدقة الفطر ويستلو حکم کړي دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او اهل علمو دا مستحب ګڼلي چي صدقة الفطر مونځ ته دتلو نه مخکي اوويستلي شي.

**تشريح** : صدقة الفطر باره کي دتمامو اهل علمو اتفاق دي چي مونځ ته دتلو نه مخکي ددي اداء کول مستحب دي مګر اختلاف په دي کي دي چي دمونځ نه څومره مخکي اداء کول پکار دي په دي باره کي دري مذاهب دي:

(۱) دامام ابو حنيفه په نزد يو کال يا دوه کاله مخکي هم سرسايه او صدقة الفطر ورکول جائز دي.

دويم قول دادي درمضان دشروع کيدو سره اختر دمونځه پوري چي هر وخت کي صدقة الفطر ورکړي ادائيګي يي صحيح ده.

(۳) دامام احمد په نږد داختر د مونځ نه يوه ورځ يا دوه ورځي مخکي ددي اداء کول صحيح دي او ډير مخکي صحيح نه دي.

د صدقة الفطر ادا کولو د وخت متعلق د فقهاؤ اختلاف دی اوپه دي کي د اهل علمو دوه مذاهب دي:

(۱) د احنافو په نزد وړوکی اختر د صبا نه د صدقة الفطر اداکول واجبيږی.هم دا قول د امام مالك رحمه الله دي.

(۲) او امام شافعی رحمه الله فرمائی چی د رمضان په آخری ورځ د نمر د پريوتلو نه پس اداکول واجبيږی.

حاصل دا چی د اخترپه شپه د شوافعو په نزدد واجب صدقة الفطر اداکولو وخت د نمر پريوتلو نه پس شروع کيږی او زمونږ به نزدد صباصادق په راختلوسره شروع کيږی.

---

[1] ـ صحيح البخاری في الزكاة ٧٦ (١٥٠٩) . صحيح مسلم في الزكاة ٥ (٩٨٦) . سنن ابي داود في الزكاة ١٨ (١٦١٠) . سنن النسائي في الزكاة ٣٥ (٢٥٢٢) . (تحفة الأشراف : ٨٢٥٢) . مسند احمد (٢ في ١٥١ . ١٥٥) وأخرجه: سنن النسائي في الزكاة ٣٣ (٢٥٠٦)

فائده داختلاف داده چی داخترپه شپه کي د صباصادق نه مخکي که کافر مسلمان شو.یا ماشوم پیدا شو نو زمونږ په نزدبه دده فطرانه واجب وی اود امام شافعی رحمه الله په نزدبه واجب نه وی اوکه د اخترپه شپه کي د صباصادق نه مخکي د چاغلام مړ شو.یا دده ماشوم مړشو نو زمونږ په نزدبه دده فطره واجب نه وی ځکه چی د اداکولو د وخت شروع کیدو نه مخکښي مړ شو اود امام شافعی رحمه الله په نزدبه واجب وی ځکه ددوی په نزدد اداکولو د وخت نه پس مړ شوي دي.

د احنافو دلیل دادي چی په صدقة الفطرکي د صدقه اضافت فطر طرف ته د اختصاص دپاره دي.یعنی صدقه فطر پوري مختص ده اود فطر نه مراد د صوم ضد دي اود صوم تعلق د ورځ سره وی.دشپې سره نه وی.نود فطر تعلق به هم ورځ سره وی.شپې سره به نه وی اودا معلومه شوې ده چی صدقه د فطرسره خاص ده اود فطر نه مراد ورځ ده نو صدقه به ورځ پوري مختص وی او ورځ د صباصادق نه شروع کیږی.په دې وجه د صدقة الفطر وجوب اداکول به هم د اختر د شپې د صباصادق سره متعلق وی.(العنایه، فتح القدیر)

***************

## ۳۷_ باب مَا جَاءَ فِي تَعْجِيلِ الزَّكَاةِ

### دوخت نه مخکي دزکواة ورکولو بیان

۶۷۸_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ الحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ، عَنْ حُجَيَّةَ بْنِ عَدِيٍّ، عَنْ عَلِيٍّ. أَنَّ العَبَّاسَ سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي "تَعْجِيلِ صَدَقَتِهِ قَبْلَ أَنْ تَحِلَّ، فَرَخَّصَ لَهُ فِي ذَلِكَ".[1]

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه بیان دي چي عباس رضي الله عنه درسول الله صلي الله علیه وسلم نه دوخت نه مخکي دزکواة ورکولو باره کي تپوس اوکړو نو رسول الله ورته ددي اجازت ورکړو.

***************

۶۷۹_ حَدَّثَنَا القَاسِمُ بْنُ دِينَارٍ الكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ الحَكَمِ بْنِ جَحْلٍ، عَنْ حُجْرٍ العَدَوِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

1 _ سنن ابي داود في الزكاة ۲۱ (۱۶۲۴) . سنن ابن ماجه في الزكاة ۷ (۱۷۹۵) . (تحفة الأشراف : ۱۰۰۶۳) . سنن الدارمي في الزكاة ۱۲ (۱۶۷۶)

لِعُمَرَ: " إِنَّا قَدْ أَخَذْنَا زَكَاةَ العَبَّاسِ عَامَ الأَوَّلِ لِلعَامِ ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: لَا أَعْرِفُ حَدِيثَ تَعْجِيلِ الزَّكَاةِ مِنْ حَدِيثِ إِسْرَائِيلَ، عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ دِينَارٍ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَحَدِيثُ إِسْمَاعِيل بْنِ زَكَرِيَّا، عَنِ الحَجَّاجِ عِنْدِي أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ إِسْرَائِيلَ عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ دِينَارٍ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنِ الحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي تَعْجِيلِ الزَّكَاةِ قَبْلَ مَحِلِّهَا، فَرَأَى طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ أَنْ لَا يُعَجِّلَهَا، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، قَالَ: أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ لَا يُعَجِّلَهَا، وقَالَ أَكْثَرُ أَهْلِ العِلْمِ إِنْ عَجَّلَهَا قَبْلَ مَحِلِّهَا أَجْزَأَتْ عَنْهُ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. ([1])

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم عمر فاروق ته اوفرمائيل مونږ دعباس نه ددي كال زكواة په تير شوي كال اخستلي دي.
امام ترمذي وائي په دي باب كي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي، داسرائيل مخكي دزكواة ويستلو والا حديث كوم چي هغه دحجاج بن دينار نه نقل كړي دي مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي، او داسماعيل بن زكريا حديث كوم چي يي دحجاج نه نقل كړي دي زما په نزد داسرائيل دحديث نه كوم چي هغه د حجاج بن دينار نه نقل كړي دي زيات صحيح دي، دا رنگي دا حديث دحكم بن عتيبه نه هم مروي دي او هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دي، دوخت نه مخكي دزكواة وركولو باره كي داهل علمو اختلاف دي دعلماؤ ديو جماعت خيال دادي چي اډوانس زكواة وركول درست نه دي سفيان ثوري ددي قول قائل دي دي وائي زما په نزد بهتره داده چي دوخت نه مخكي ورنكړي شي مگر داكثروفقهاؤ او اهل علمو قول دادي كه ذوخت نه مخكي چا زكواة وركړو نو جائز ده امام شافعي ، احمد، او اسحاق بن راهويه هم ددي قائل دي.

***************

## ٣٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الْمَسْأَلَةِ

**دسوال كولو دمما نعت بيان**

[1] ـ سنن ابي داود في الزكاة ٢١ (١٦٢٢) . سنن ابن ماجه في الزكاة ٧ (١٧٩٥) . (تحفة الأشراف : ١٠٠٦٣) . سنن الدارمي في الزكاة ١٢ (١٦٧٦)

٦٨٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ بَيَانِ بْنِ بِشْرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لأَنْ يَغْدُوَ أَحَدُكُمْ فَيَحْتَطِبَ عَلَى ظَهْرِهِ فَيَتَصَدَّقَ مِنْهُ فَيَسْتَغْنِيَ بِهِ عَنِ النَّاسِ، خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَسْأَلَ رَجُلاً أَعْطَاهُ أَوْ مَنَعَهُ ذَلِكَ، فَإِنَّ الْيَدَ الْعُلْيَا أَفْضَلُ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى، وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَالزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ، وَعَطِيَّةَ السَّعْدِيِّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَمَسْعُودِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَثَوْبَانَ، وَزِيَادِ بْنِ الْحَارِثِ الصُّدَائِيِّ، وَأَنَسٍ، وَحُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ، وَقَبِيصَةَ بْنِ مُخَارِقٍ، وَسَمُرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. يُسْتَغْرَبُ مِنْ حَدِيثِ بَيَانٍ، عَنْ قَيْسٍ. [1]

**ترجمه**: ابو هريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي فرمائيل يي په تاسو كي چي څوك سحر وختي لاړ شي او دلرګو ګيډي په شا راوړي او بيا ددي دقيمت نه صدقه اوكړي او په دي طريقه دخلقو نه بي پرواه او بي احتياجه شي (يعني دچا نه څه اونه غواړي) دا دده دپاره ددينه زياته بهتره ده چي دخلقو نه په سوال يو شي او بل شي غواړي او هغوئ يي ورته وركړي او يا يي ورنكړي خكه چي پورتني لاس دلاندېني لاس نه افضل دي او اول به تاسو صدقه هغه چاته وركوئ دچاچه تاسو كفالت كوي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح غريب دي او په دي باب كي دحكيم بن حزام، ابو سعيد خدري، زبير بن عوام، عطيه سعدي، عبدالله بن مسعود، مسعود بن عمرو، ابن عباس، ثوبان، زياد بن الحارث، انس بن مالك، حبشي بن جناده، قبيصه بن مخارق، سمره، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا حديث دبيان په روايت كوم چي هغه دقيس نه نقل كړي دي غريب ګڼرلي كيږي.

**تشريح**: امام بخاري هم په دي مسئله كي د ابو هريره رضي الله عنه روايت نقل كړى دى:

عن ابي هريرة عن النَّبِيِّ ﷺ، قَالَ: ((الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى، وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ، وَخَيْرُ

---

[1] _ صحيح مسلم في الزكاة ٣٥ (١٠٣٢). (تحفة الأشراف: ١٢٢٩٢) أخرجه: صحيح البخاري في الزكاة ٥٠ (٢٤٠)، و ٥٣ (١٤٨٠)، والبيوع ١٥ (٢٠٧٤)، والمساقاة ١٣ (٢٣٧٤). وسنن النسائي في الزكاة ٨٣ (٢٥٨٥)، و ٨٥ (٢٥٩٠). وسنن ابن ماجه في الزكاة ٢٥ (١٨٣٦). والموطأ في الصدقة ٢ (١٠). ومسند احمد (٢ في ٢٤٣، ٢٥٧، ٣٠٠، ٤١٨، ٤٧٥، ٤٩٦)

الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى، وَمَنْ يَسْتَعْفِفْ يُعِفَّهُ اللهُ، وَمَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللهُ)) رواه البخاري.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اوچت لاس دټيټ لاس نه ښه دى، يعني وركوونكى لاس داخستونكي لاس نه بهتر دى او دخيرات شروع دهغه چانه كوه چي پرورش يى ستا په ذمه وي (يعني بال بچ) او بهتر خيرات هغه دى چي دغني نه پس وي او څوك چي دسوال نه بچ كيدل غواړي الله به يى بچ كړي او څوك چي دالله تعالي نه غني كيدل غواړي الله به يي غني كړي (بخاري).

"اليد العليا" يعني پورتنى لاس ددينه مراد دويم لاس دى، په روايت كي د اليد العليا نه مراد اليد المنفقة دي يعني خرچ كونكى لاس دى اوداليد السفلي نه مراد سوال كونكى لاس دى.

"خير الصدقة ماكان عن ظهر غني" يعني بهترينه صدقه هغه ده په كومه كي چي دنفس غني موجوده وي مطلب دادى چي ټول مال مه خرچ كوئ چي بيا پخپله فقيران شئ بلكه دومره خرچ اوكړئ چي دهغي نه پس هم تاسو غنيان پاتي شئ او دټولو نه اول به پخپل اهل او عيال خرچه كوئ او په هغه چا به كوئ دچا نفقه چي په تاسو باندي واجب وي.

سوال: دحديث نه معلوميږي چي سړى به دومره خرچ كوي څومره چي ورسره موجود وي ليكن ابوبكر رضي الله عنه خو په تبوك كي هر څه درسول الله په خدمت كي پيش كړل او هغه ورنه قبول هم كړل ؟

جواب، علماء وائي كه چري خرچ كونكي دالله تعالي په ذات دومره اعتماد وي چي الله تعالي راته نن دا څيزونه راكړي دي سبا به يي هم راكوي نو داسي كس ټول مال خرچ كولى شي او دچا په ايمان او يقين كي چي كمى وي هغه به يو څه ناڅه مال دخان سره پريږدي ددي دپاره چي سبا بيا دخلقو په وړاندي لاس اونه غوړوي.

***************

٦٨١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ. حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِالْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ. عَنْ زَيْدِ بْنِ عُقْبَةَ. عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : "إِنَّ الْمَسْأَلَةَ كَدٌّ يَكُدُّ بِهَا الرَّجُلُ وَجْهَهُ إِلاَّ أَنْ يَسْأَلَ الرَّجُلُ سُلْطَانًا أَوْ فِي أَمْرٍ لاَ بُدَّ مِنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

[1] ـ سنن ابي داود في الزكاة ٢٦ (١٦٣٩). سنن النسائي في الزكاة ٩٢ (٢٦٠٠). (تحفة الأشراف: ٤٦١٢)

**ترجمه**: دسمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي غوښتل او سوال کول يو زخم دي چي انسان ورباندي خپل مخ زخمي کوي مګر علاوه دهغه چانه چي څوك دحاکم نه څه اوغواړي او ياديو داسي کار دپاره سوال اوکړي کوم چي ضروري وي او دهغي نه بغير څه چاره نه وي. امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: لکه څرنګه چي انسان په کار کولو ستړي کيږي دارنګي انسان په سوال کولو هم ستړي کيږي فرق صرف دومره دي چي په کار کولو بدن ستړي کيږي او په سوال کولو مخ ستړي کيږي يعني ددي په ذريعه دانسان عزت کميږي البته په دوه صورتونو کي دسوال کولو اجازت شته کله چي څوك دخپل تنظيم نه څه اوغواړي نو جائز دي خو په دي شرط چي مستحق وي، دويم ديو ضروري څيز دپاره غوښتل دي په دي باندي هم څوك نه بي عزته کيږي مثلا په يو کلي کي مسجد جوړيږي نو دهغي دپاره په غوښتلو کي حرج نشته

*****************

# كتاب الصيام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## د روژو احکام

د روژي تعريف او ددي د فرضيت شان نزول او تاريخ:

په لغت کي د صوم معنىٰ مطلقاً امساك (بنديدل) دي که د څه څيزنه هم بندشي، لکه "صام عن الكلام" د کلام او خبرو اترو نه د بنديدلو نوم صوم دي.

اوپه اصطلاح داهل شرع صوم عبارت دی د اجتناب د مفطرات ثلاثه نه نهارا په نيت د عبادت چي اکل، شرب اوجماع دي.

دروژي دفرضيت تاريخ: روژه د کلمه توحيد نه پس د اسلام دريم رکن دي اود رمضان د روژو فرضيت دهجرت په دويم کال د شعبان په مياشت کي اوشو .يعني د هجرت نه اتلس مياشتي پس د شعبان په مياشت کي د قبلي د تحويل نه پس د رمضان روژي فرض شوی وو ،اوددي نه وړاندي په رسول اکرم صلي الله عليه وسلم اوصحابه کرامو د عاشوري اود ايام بيض(د قمري مياشتي ديارلسم،څوارلسم، پنځلسم تاريخ) روژي نيولي.

د روژي په فضيلت کي متعدد احاديث وارد دي: مونږ ورنه يو څو په طور دنموني د مقام دتقاضا په مناسبت ذکر کوو:

دروژو دفرضيت متعلق دوه اقوال دي چې د عاشوري او ايام بيض روژې هغه وخت فرض وې اوکه نه؟ اول قول دادي حنفيه وائی چی دا روژې هغه وخت فرض وې،خو شوافع ددې قائل دی چی د رمضان روژو نه مخکي هيڅ روژه فرض نه وه،بلکه د عاشوره وغيره روژې مخکي هم سنت وې،او اوس هم سنت دی.

اود سلمان رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ۳۰ شعبان خطبه بيان کړه چي اي خلقو يوه عظيم الشان مياشت راغله دا ډيره مبارکه مياشت ده اوپدي مياشت کي ليلة القدر دي کوم چي دزرو مياشتو نه بهتر دي الله تعالي ددي روژې فرض کړي دي اوپدي کي ئي قيام نفل کړي دي نوڅوك چي پدي مياشت کي دنيکۍ کوم عمل وکړي نوده ته دومره ثواب ملاوېږي لکه څومره چي په نورو مياشتو کي دفرضو ملاوېږي اوڅوك چي پدي مياشت کي کوم فرض ادا کړي نوده ته دومره ثواب ملاويږي لکه څوك چي په نورو مياشتو کي اويا فرائض ادا کړي، دادصبر مياشت ده اودصبر ثواب جنت دي داد همدردۍ مياشت ده او پدي کي رزق زياتېږي نوڅوك چي پدي کي کوم روژه دارته خوراك مهيا کړي نوده ده گناهونه به وبخښلي شي اوديوغلام ازادولو په مقدار اجر به حاصل کړي اووده به دروژه دار داجر هومره اجروي اودهغه داجر نه به هم څه شي نه کميږي ، صحابه کرامو عرض وکړو چي اي دالله رسوله الله تعالي خوهرچاته دومره وس ندي ورکړي چي روژه دار ته خوراك ورکړي ، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څوك چي يوگوټ شوده يا يوه کهجوره يا يوگوټ اوبه چاته ورکړي نو الله تعالي به ده ته هم دومره ثواب ورکړي اوڅوك چي روژه دار ته دمړي خيټې په مقدار خوراك ورکړي نو الله تعالي به زما دحوض کوثر نه ورباندي وڅکوي اوبيابه جنت ته دتلو پوري تږي نشي.

ددي مياشتي په شروع کي رحمت وي اوپه مينځ کي مغفرت وي اوپه اخر کي داور نه نجات دي خو په دي وجه چي دڅلورو خصلتونو پابندي اوکړي شي دوه خصلتونه خو داسي دي چي په هغي باندي تاسو خپل پروردگار راضي کړئ او باقي نور دوه په دي کي داسي دي چي دهغي نه تاسو لاپرواهي نشي کولي دالله تعالي دراضي کولو دپاره دوه خصلتونه دادي اول خو چي ددي خبري گواهي ورکړئ چي دالله تعالي نه علاوه بل څوك حقدار دبندگۍ نشته او دويم دا چي دالله تعالي نه مغفرت اوغواړئ اودوه هغه خصلتونه دکومو نه چي بي پرواهي نشي کولي نو اول په هغوي کي دادي چي دجنت سوال به کوئ اودويم دادي چي داور نه به پناه غواړئ (شرح السنة للبغوي).

اودابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بني ادم ته دهري نيکۍ ثواب دلسو نيکو نه واخله تر اوه سوو پوري ملاوېږي او دا ثواب دروژي نه علاوه دنورو نيکو عملونو دي دروژي متعلق الله تعالي فرمائي چي روژه زما دپاره ده او هم زه

به ددي ثواب ورکوم ځکه چي ده خپل خوراك اوڅښاك اوشهوت زما دپاره پريښودلي دي، او دا يي هم فرمائيلي دي دروژه دار دپاره دوه قسمه خوشحالياني وي يوه خوشحالي خودافطار په وخت کي او بله خوشحالي دخپل پروردګار سره دملاقات په وخت کښي، دروژه دار دخولي بوئ دالله تعالي په نزد باندي دمشکو دخوشبونه بهتر دي ، واوري روژه ډال دي نوپه دي وجه روژه دار لره پکار دي چي کله دده روژه وي چي دعبثو خبرو اوشور شرغب نه ځان اوساتي او که څوك ده ته رد بد اووائي يا درسره جګړه اوکړي نودي دي ورته اووايه وروره زه روژه دار يم (بخاري او مسلم).

اودعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي روژه او قران دواړه به دقيامت په ورځ دبنده شفاعت کوي، روژه به وائي اي پروردګاره ما دده خوراك اوخواهشونه دورځي بند کړي وو اوس دده په باره کي زما شفاعت قبول کړه ، اوقران کريم به وائي چي اي پروردګاره ما دشپي دده خوب ختم کړي وو نوپه دي وجه زما سفارش دده په حق کي قبول کړي نولهذا ددواړو شفاعت به قبول کړي شي (بيهقي شعب الايمان).

اودابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي جناب رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي درمضان په اخري شپه کي زما امت ته مغفرت کيږي، چاتپوس اوکړو اي دالله رسوله ايا دغه شپه دليلة القدر ده رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نه ، ليلة القدر خو نه ده ليکن قاعده داده چي کله کار کونکي دخپل کار نه فارغيږي نوهغه ته مزدوري پوره ورکولي شي(نوپه دي شان سره په دي شپه کي بندګانو دالله فرض ادا کړي وي نو ځکه دوئ ته مغفرت کيږي) (مسند احمد).

## ١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ شَهْرِ رَمَضَانَ

### درمضان دمياشتي فضيلت

٦٨٢ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ بْنِ كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَ أَوَّلُ لَيْلَةٍ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ، صُفِّدَتِ الشَّيَاطِينُ وَمَرَدَةُ الْجِنِّ، وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ النَّارِ فَلَمْ يُفْتَحْ مِنْهَا بَابٌ، وَفُتِّحَتْ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ فَلَمْ يُغْلَقْ مِنْهَا بَابٌ، وَيُنَادِي مُنَادٍ يَا بَاغِيَ الْخَيْرِ أَقْبِلْ، وَيَا بَاغِيَ الشَّرِّ أَقْصِرْ، وَلِلَّهِ

عُتَقَاءُ مِنَ النَّارِ وَذَلِكَ كُلُّ لَيْلَةٍ ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَسَلْمَانَ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي درمضان مياشت راشي نوشيطانان او سركشه جنات وتړلي شي اودجهنم دروازي بندي كړي شي اوهيڅ يوه دروازه ددينه نه كولاو پاتي نشي ، اودجنت دروازي كولاوي كړي شي اوهيڅ يوه دروازه ددي نه بنده پاتي نشي او يو اوازكونكي اواز وكړي چي اي :كاميابئ طلبګارانورامخكي شئ او اي دشر طلبګارانويس كړئ، دالله تعالي دطرف نه نن دجهنم نه ډير خلق نجات موندونكي دي او دا اواز هره شپه كيږي.
امام ترمذي وائي په دي باب كي دعبدالرحمن بن عوف اوابن مسعود او سلمان رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : "صفدت" صفده صفده صفدا وصفودا معني قيد كول صفد معني هتكړئ جمع يې اصفدة راخي معني بد دماغه كيدل الشيء عليه مخفي پاتي كيدل غم عليكم غم عليه الامر معني مشتبه كيدل، غمه غما پټيدل.

**تشريح** : "صفدت الشياطين" مطلب دادي چي ددي مياشتي په شروع كيدو سره دالله درحمت نزول شروع كيږي او په دي مياشت كي بنده ته جنت ته دتلو والا عملونو توفيق وركولي شي، په دي مياشت كي ددوزخ دروازي بندي كړي شي مطلب دادي چي روژه دار به دداسي كارونو نه بند كړي شي كوم چي دوزخ ته دتلو ذريعه ده او څوك چي دګناهونو نه منع شي نو پخپله به دوئ ته معافي اوشي.
شيطانان به اوتړلي شي، ذدي جملي مطلب دادي چي سركشه شيطانان او دشيطانانو سرداران به په زنځيرونو اوتړلي شي.

****************

[1] ـ ابن ماجه في الصوم ٢ (١٦٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٢٣٩) وأخرج الشق الأول صحيح البخاري في الصوم ٥ (١٨٩٨، ١٨٩٩)، وبدء الخلق ١١ (٣٢٧٧)، ومسلم في الصوم ١ (١٠٧٩)، وسنن النسائي في الصوم ٣ (٢٠٩٩، ٢١٠٠)، و٤ (٢١٠١، ٢١٠٢، ٢١٠٣، ٢١٠٤)، و٥ (٢١٠٦، ٢١٠٧)، والموطأ في الصوم ٢٢ (٥٩)، ومسند احمد (٢ في ٢٨١، ٣٥٧، ٣٧٨، ٤٠١)، وسنن الدارمي في الصوم ٥٣ (١٨١٦).

٦٨٣_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، وَالْمُحَارِبِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ صَامَ رَمَضَانَ وَقَامَهُ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ، وَمَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ". هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ الَّذِي رَوَاهُ أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ رِوَايَةِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي بَكْرٍ قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ قَوْلَهُ: إِذَا كَانَ أَوَّلُ لَيْلَةٍ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَهَذَا أَصَحُّ عِنْدِي مِنْ حَدِيثِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دايمان په حالت كي اودثواب په اراده روژي اونيسي نو دده مخكني ګناهونه به اوبخښلي شي اوڅوك چي په ليلة القدر كي په اخلاص سره اودثواب په اراده قيام وكړي نو دده مخكني ګناهونه به هم اوبخښلي شي امام ترمذي وائي دابوهريره مخكني حديث كوم چي دابوبكر بن عياش نه نقل دي غريب دي او موږ ته صرف دابوبكر بن عياش په روايت عن الاعمش عن ابي صالح عن ابي هريرة سند سره معلوم دي. ما دامام بخاري نه ددي حديث متعلق تپوس اوكړو نو هغه راته په سند د حس بن ربيع عن ابي الاحوص عن الاعمش سند سره بيان كړو او دمجاهد قول يي نقل كړو چي كله درمضان اولنۍ شپه راشي .....او بيا يي دپورتني حديث پشان حديث بيان كړو، امام بخاري وائي دا حديث زما په نزد دابوبكر بن عياش دحديث نه زيات صحيح دي.

**تشريح** : په دي حديث كي دروژي دفضيلت بيان دي چي څوك روژي نيسي نو ددي په بركت به دده تمام ګناهونه معاف كيږي او كه دچا واړه ګناهونه نه وي نو روژي به دده دپاره ددرجو دلوړيدو سبب ګرځي.

---

[1] . تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٥٠٢٨ و١٥٠٥١) وأخرجه صحيح البخارى في الإيمان ٢٧ (٣٧) ، و٢٨ (٣٨) ، والصوم ٦ (١٩٠١) ، والتراويح ١ (٢٠٠٨ ، ٢٠٠٩) . صحيح مسلم في المسافرين ٢٥ (٧٥٩) . سنن ابى داود في الصلاة ٣١٨ (١٣٧١) . سنن النسائى في قيام الليل ٣ (١٦٠٣) . والصوم ٣٩ (٢١٩٣) . والإيمان ٢١ (٥٠٢٧ ، ٥٠٢٩) ، و٢٢ (٥٠٣٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٧٣ (١٣٢٦) . موطا امام مالك في رمضان ١ (٢) . مسند احمد (٢ في ٢٣٢ ، ٢٤١ ، ٣٨٥ ، ٤٧٣ ، ٥٠٣) . سنن الدارمى في الصوم ٥٤ (١٨١٧) .

امام نووي وائي چي دلته دګناهونو دمغفرت نه مراد صغيره ګناهونه دي او دکبيره ګناهونو دپاره توبه ويستل او استغفار ونيل ضروري دي او کچرته څوك داسي خوش نصيب انسان وي دچا په عمل نامه کي چي ګناه نه وي نو دا دشپي قيام به دده دپاره په جنت کي ددرجو دلوړيدو ذريعه اوګرځي.

***************

## ٢ـ باب مَا جَاءَ لَا تَقَدَّمُوا الشَّهْرَ بِصَوْمٍ

**درمضان داستقبال په نيت يوه ورځ دوه مخکي دروژو نيولو دمما نعت بيان**

٦٨٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقَدَّمُوا الشَّهْرَ بِيَوْمٍ وَلَا بِيَوْمَيْنِ إِلَّا أَنْ يُوَافِقَ ذَلِكَ صَوْمًا كَانَ يَصُومُهُ أَحَدُكُمْ، صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ وَأَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ، فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فَعُدُّوا ثَلَاثِينَ ثُمَّ أَفْطِرُوا". رَوَى مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم بِنَحْوِ هَذَا. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا أَنْ يَتَعَجَّلَ الرَّجُلُ بِصِيَامٍ قَبْلَ دُخُولِ شَهْرِ رَمَضَانَ لِمَعْنَى رَمَضَانَ، وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ يَصُومُ صَوْمًا فَوَافَقَ صِيَامُهُ ذَلِكَ فَلَا بَأْسَ بِهِ عِنْدَهُمْ. (¹)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درمضان دمياشتي نه يوه ورځ يا دوه ورځي مخکي داستقبال په نيت روژي مه نيسئ علاوه دهغي ورځ نه په کومه ورځ چي روژه راشي او تاسو دمخکي نه دروژي په نيولو کي راروان يئ او دمياشتي په ليدو درمضان روژه اونيسئ او دشوال دمياشتو په ليدو يي ماته کړئ او که په اسمان کي وريځ وي نو دمياشتي ديرش ورځي پوره کړئ او بيا روژي بندي کړئ. امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دبعضي صحابه کرامو نه هم احاديث وارد دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي هغوئ دا مکروه ګڼړي چي يو

---

¹ ـ أخرجه صحيح البخارى في الصوم ١٣ (١٩١٤) . صحيح مسلم في الصيام ٣ (١٠٨٢) . سنن ابى داود في الصيام ١١ (٢٣٣٥) . سنن النسائي في الصيام ٣١ (٢١٧٣) . و٣٨ (٢١٨٩) . سنن ابن ماجه في الصيام ٥ (١٦٥٠) . مسند احمد (٢ في ٢٣٤. ٢٧٤. ٤٠٨. ٤٣٨. ٤٧٧. ٤٩٧. ٥١٣) . سنن الدارمى في الصوم ٤ (١٧٣١) .

انسان درمضان دراتلو نه مخكي درمضان په استقبال كي روژي اونيسي او كه ديو بنده دروژو نيولو معمول جاري راروان وي او هغه معمول درمضان رارسيدو پوري راورسيږي نو دده دپاره په دغه ورځ په روژه نيولو كي څه قباحت نشته.

**تشريح** : "لا تقدموا الشهر بيوم" درمضان دشروع كيدو نه يوه يا دوه ورځي مخكي درمضان په نيت روژه نيول ممنوع دي ليكن كه څوك داسي وي چي دزيارت او دوشنبي په ورځ دروژي نيولو عادت لري يا دصوم داودي عادت لري يوه ورځ روژه نيسي او يوه ورځ افطار كوي دداسي كس درمضان نه يوه يا دوه ورځي مخكي روژه نيولي شي ځكه چي دده دا روژه درمضان داستقبال دپاره نه ده بلكه دا دده دمعمول يوه حصه ده.

درمضان نه يوه يا دوه ورځي مخكي روژه كيدل ممنوع دي ځكه چي ددي په سبب درمضان په روژو كي اضافه راځي.

صوموا الرؤيته وافطروا لرؤيته: دمياشت په ليدو به روژه كيږئ او دمياشت په ليدو به يې ماتوئ مطلب دادي چي ترڅوپوري مو مياشت ليدلي نه وي يا په معتبر شهادت سره دمياشت ليدل ثابت شوي نه وي هغه وخته پوري به روژه نه شروع كوئ او نه به اختر كوئ.

فان غم عليكم : غم نه په لغت كي يوه معني ده يعني دوريځو راخوريدل په دي صورت كي به حكم دا وي چي دشعبان ديرش ورځي به پوره كوي او روژي به پوره كوي همدا رنګي كه په نهه ويشتم رمضان مياشت ښكاره نشي نو ديرش روژي به پوره كوي او اختر به كوي.

***************

٦٨٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقَدَّمُوا شَهْرَ رَمَضَانَ بِصِيَامٍ قَبْلَهُ بِيَوْمٍ أَوْ يَوْمَيْنِ، إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَجُلٌ كَانَ يَصُومُ صَوْمًا فَلْيَصُمْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درمضان نه يوه ورځ يا دوه ورځي مخكي درمضان په استقبال كي روژي مه نيسئ مګر علاوه دهغه چا نه څوك چي دمخكي نه تردغي ورځي روژو نيولو كي راروان وي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

---

[1] ـ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٥٣٠٦)

**تشريح** : شريعت چي هر څومره عبادت مشروع کړي دي هم دومره کول پکار دي نه کمي کول پکار دي او نه زيادت دکمي نقصان خو ظاهر دي مګر په زيادت کولو کي دا خرابي ده چي کله په يو عبادت کي داحتياط په نوم اضافه اوکړي شي نو دا اضافه وخت تيريدو سره لړه لړه زياتيږي او بيا دومره حد ته ورسيږي چي دبرداشت نه بهر شي نو خلق ددي هغه اصل هم پريږدي.

ونيلي شوي دي چي په بني اسرائيلو صرف دري روژي فرض وي هغوئ داحتياط په نوم په دي کي وخت په وخت راضافي کولي تردي پوري چي په دوئ باندي شپږ روژي مقرر شوي او بيا تولي ختمي شوي نن سبا عيسايان روژي نيسي او هندوان هم روژي نيسي مګر يهوديان روژي نه نيسي همدا وجه ده چي شريعت درمضان شروع کيدو نه مخکي روژي نيول منع کړي دي او دارنګي درمضان په اخر کي هم اضافه منع کړي ده بلکه دشوال په اوله ورځ يي روژه حرامه کړي ده څکه چي دروژو په نيولو زړه منور کيږي نو په دي وجه درمضان په اخر کي داضافي کولو زيات احتمال وو نو څکه يي دشوال په اوله ورځ روژه حرامه کړه او درمضان په ابتداء کي دا احتمال کم وو نو په دي وجه يي صرف دممانعت حکم صادر کړو.

***************

## ٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ صَوْمِ يَوْمِ الشَّكِّ

### دشک په ورځ دروژي نيولو دکراهت بيان

٦٨٦ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ الأَشَجُّ. حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ. عَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ الْمُلاَئِيِّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ صِلَةَ بْنِ زُفَرَ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ فَأُتِيَ بِشَاةٍ مَصْلِيَّةٍ. فَقَالَ: كُلُوا. فَتَنَحَّى بَعْضُ الْقَوْمِ. فَقَالَ: إِنِّي صَائِمٌ. فَقَالَ عَمَّارٌ: "مَنْ صَامَ الْيَوْمَ الَّذِي يَشُكُّ فِيهِ النَّاسُ، فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَمَّارٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ

بْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ: كَرِهُوا أَنْ يَصُومَ الرَّجُلُ الْيَوْمَ الَّذِي يُشَكُّ فِيهِ، وَرَأَى أَكْثَرُهُمْ إِنْ صَامَهُ فَكَانَ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ أَنْ يَقْضِيَ يَوْمًا مَكَانَهُ. (١)

**ترجمه**: صله بن زفر وائي چي مونږ د عمار بن ياسر رضي الله عنه سره موجود وو او په دغه وخت کي يوه سره کړي شوي چيلۍ راوړلي شوه عمار اووئيل خورئ ددي خبري په اوريدو سره يو کس وړاندي شو او يو ګوټ کي کيناستو او مونږ ته يي اووئيل زما روژه ده عمار رضي الله عنه اووئيل که چا په داسي ورځ روژه اونيوله په کومه کي چي دخلقو شك وي چه د رمضان مياشت شروع شوي ده يا نه ده، نو هغه دابو القاسم صلي الله عليه وسلم نافرماني اوکړه

امام ترمذي وائي دعمار حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابوهريره، انس رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي، دصحابه کرامو او ددوئ نه پس په تابعينو کي داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري ، مالك بن انس، عبدالله بن مبارك، شافعي، احمد ، او اسحاق بن راهويه قول هم دي دي اهل علمو په دغه ورځ روژه نيول مکروه ګڼړلي دي يعني دشك په ورځ او داکثرو علماؤ خيال دي که څوك دشك په ورځ روژه اونيسي او هغه په حقيقت کي درمضان دمياشتي ورځ وي نو هغه به ددي ورځي په بدل کي يوه ورځ قضاء راوړي.

**تشريح**: عام شارحين د هدايه وايي چي د يوم الشك،نه مراد د شعبان آخره ورځ ده چی ددې باره کي دا احتمال هم دي چی دا د رمضان اوله ورځ وی،اودا هم احتمال دې چی د شعبان آخری ورځ وی، يعنی د شعبان ۳۰ تاريخ وی،ليکن دا خبره دې ښکاره وی چی د شعبان آخری ورځ يعنی ۳۰ شعبان به يوم الشك په دې صورت کي وی چی، په ۲۹ شعبان مطلع صفا نه وی چی ددې په وجه د مياشت په راختلو اوپه نه راختلوکي شك وی.اوکه مطلع صفا وی نو راروانه ورځ به يوم الشك نه شمارلې کيږی.

په دې مسئله کي پنځه صورتونه کيدی شي:

(۱) اول صورت دادی که چا په يوم الشك کي د رمضان د روژې نيت اوکړو نودا صورت مکروه دي.

(۲) دويم صورت دادی چی دواجب آخر نيت اوکری داهم مکروه دی.

(۳)دريم صررت دادی دنفلو نيت اوکری دا مکروه نه دې.

---

١ ـ صحيح البخاري في الصيام ٢٤ (٢١٩٠) ، سنن ابن ماجه في الصيام ٣ (١٦٤٥) ، (تحفة الأشراف : ١٠٣٥٤) ، سنن الدارمي في الصوم ١ (١٤٢٢)

(۴) څلورم صورت دادی اصل نیت کي دې تردید کوی داسې چې نیت اوکړی چې صبا به روژه نیسم که رمضان وو، اوروژه به نه نیسم که شعبان وو، اوپدې صورت کي به دغه روژه دار نه وی څکه چې ده قطعی عزم نه دې کړې نوداسې شو لکه داسې نیت اوکړی چې که صبا مې خوراك اوموندلو نو افطار به اوکړم اوکه اومې نه موندلو روژه به کوم.
(۵) پنځم صورت دادی چې په وصف دنیت کي تردد اوکړی داسې نیت اوکړی چې که صبا رمضان وو نو درمضان روژه به نیسم اوکه شعبان وو نودبل واجب روژه به نیسم نو دا مکروه دی دوجې د تردد د ده نه په دوه کارونو مکروهو کنبې،بیا که ظاهره شوه چې دا رمضان وو نو روا دی دده دپاره دوجې دعدم تردد نه په نیت کښې،اوکه ظاهر شو چې دغه شعبان دې نودبل واجب نه به کافی نه وی څکه چې جهت ثابت نه شو پدې کي د تردد کیدو په وجه سره،او اصل نیت ددې واجبودپاره کافی نه دې لیکن دانفل شو داسې چې دقضا راوړو ذمه واری ئې اغستلې نه ده د وجې د شروع دده په دې کي ساقطونکې اوکه نیت ئې اوکړودرمضان که صبا رمضان وو او دنفلو صبا شعبان نو مکروه دی څکه چې دې نیت کونکې د فرضو دې من وجه،بیاکه ظاهره شوه چې دغه رمضان نو درمضان نه به کافی شی لکه چې تیرشو،اوکه ظاهر شو چې شعبان دې نه نفل به ئې روا شی څکه چې نفلی روژه په اصل نیت سره اداکیږی اوکه فاسد ئې کړه نو لازه ده قضا ئې راو نړی څکه چې دده په نیت کي دفرضو ساقط کیدل من وجه داخل شو.(الهدایه)
ددي تحقیق دلائل او وجوهات د ترجیح د علم فقه په مطولاتو کي مفصل مذکور دي چي دلته یي د طوالت د خوف په وجه نشو نقل کولی.

***************

## ٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي إِحْصَاءِ هِلَالِ شَعْبَانَ لِرَمَضَانَ

### درمضان دداخلیدو دپاره دشعبان دمیاشتې شمیرلو بیان

٦٨٧ـ حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ حَجَّاجٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلي الله عليه وسلم: " أَحْصُوا هِلَالَ شَعْبَانَ لِرَمَضَانَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ هَذَا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي مُعَاوِيَةَ، وَالصَّحِيحُ مَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَقَدَّمُوا شَهْرَ رَمَضَانَ بِيَوْمٍ وَلَا يَوْمَيْنِ". وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو اللَّيْثِيِّ. (1)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درمضان دپاره دشعبان مياشت اوشميرئ.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث غريب دي مونږ يي صرف دابو معاويه په سند پيژنو او صحيح هغه روايت دي كوم چي عبده بن سليمان په سند د محمد بن عمرو عن ابي سلمة عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم نقل كړي دي چي رسول الله فرمائيلي دي درمضان په استقبال كي يوه يا دوه ورځي مخكي روژه مه شروع كوئ دارنګي په سند د يحي بن ابي كثير عن ابي سلمة عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره هم دا روايت دمحمد بن عمرو ليثي د حديث پشان مروي دي.

***************

## ٥_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الصَّوْمَ لِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ وَالإِفْطَارَ لَهُ

### دمياشت په ليدو دروژي شروع كولو او دمياشت په ليدو دروژي ختمولو بيان

٦٨٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَصُومُوا قَبْلَ رَمَضَانَ، صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ، وَأَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ، فَإِنْ حَالَتْ دُونَهُ غَيَايَةٌ فَأَكْمِلُوا ثَلَاثِينَ يَوْمًا". وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي بَكْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. (2)

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درمضان نه مخكي مه روژه كوئ دمياشتي په ليدو سره روژه شروع كړئ او دمياشتي په ليدو يي بنده كړئ او كه وريځ رالوتلي وي نو دمياشتي ديرش ورځي به پوره كوئ.

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥١٢٣)

2 _ سنن ابي داود في الصيام ٧ (٢٣٢٧). سنن النسائي في الصيام ١٢ (٢١٢٦). (تحفة الأشراف: ٦١٠٥). وأخرجه موطا امام مالك في الصيام ١ (٣). ومسند احمد (١/٢٢١). وسنن الدارمي في الصوم ١ (١٦٢٥)

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او په نورو يو څو سندونو هم دا حديث مروي دي او په دي باب کي دابوهريره، ابوبكره، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : ددي روايت تحقيق ما قبل ابوابو کي تير شوی دی.

******************

## ٦ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الشَّهْرَ يَكُونُ تِسْعًا وَعِشْرِينَ

## مياشت كله كله د٢٩ ورځو هم وي

٦٨٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، أَخْبَرَنِي عِيسَى بْنُ دِينَارٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ بْنِ أَبِي ضِرَارٍ، عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "مَا صُمْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِسْعًا وَعِشْرِينَ أَكْثَرُ مِمَّا صُمْنَا ثَلَاثِينَ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ، وَسَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَجَابِرٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَأَبِي بَكْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الشَّهْرُ يَكُونُ تِسْعًا وَعِشْرِينَ".[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره د ٣٠ روژو نه ٢٩ روژې زياتي نيولي دي.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعمر، ابوهريره، عائشه، سعد بن ابي وقاص، ابن عباس، ابن عمر، انس، جابر، ام سلمه، او ابوبكره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مياشت كله كله د ٢٩ ورځو هم وي.

**تشريح** : علامه ابن الهمام په فتح القديرکي ليکلی دی چی په ٢٩ شعبان د رمضان المبارك مياشت(سپوږمی)کتل واجب علی الكفايه دی ځکه چی مياشت كله د ٢٩ ورځو وی،اوکله د ديرشو وی نوکه په ٢٩ شعبان مياشت په نظر راغله نو روژه به نيولې شی،اوکه مياشت په نظر رانغله نود شعبان ٣٠ ديرش ورځې به پوره کولې شی،اوپه راروانه ورځ به روژه نيولې شی.

******************

[1] ـ سنن ابي داود في الصوم ٣ (٢٣٢٢)، (تحفة الأشراف: ٩٢٤٨)، مسند احمد (١/٤٢١)

٦٩٠_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّهُ قَالَ: آلَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نِسَائِهِ شَهْرًا، فَأَقَامَ فِي مَشْرُبَةٍ تِسْعًا وَعِشْرِينَ يَوْمًا، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّكَ آلَيْتَ شَهْرًا، فَقَالَ: " الشَّهْرُ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپلو بيبيانو سره يوه مياشت ايلاء اوكړو (يعني ددوئ سره يي د نه ملاويدو قسم اوكړو) او بيا يي پخپله بالاخانه كي ۲۹ورځي قيام اوكړو (او بيا خپلو بيبيانو ته ورغلو) خلقو ورته اوونيل اي دالله رسوله تاخو ديوي مياشتي ايلاء كړي وه؟ نو ويي فرمائيل مياشت كله كله د ۲۹ورځو هم وي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٧_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّوْمِ بِالشَّهَادَةِ

### دمياشتي دراتلو په ګواهي كيدو باندي دروژي نيولو بيان

٦٩١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ أَبِي ثَوْرٍ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنِّي رَأَيْتُ الْهِلَالَ، قَالَ: " أَتَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَتَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ " قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: يَا بِلَالُ " أَذِّنْ فِي النَّاسِ أَنْ يَصُومُوا غَدًا ". حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ سِمَاكٍ نَحْوَهُ بِهَذَا الْإِسْنَادِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيهِ اخْتِلَافٌ، وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَغَيْرُهُ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَأَكْثَرُ أَصْحَابِ سِمَاكٍ رَوَوْا عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: تُقْبَلُ شَهَادَةُ رَجُلٍ وَاحِدٍ فِي الصِّيَامِ، وَبِهِ يَقُولُ: ابْنُ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٨٢) وأخرجه صحيح البخاري في الصلاة ١٨ (٣٧٨) ، والصوم ١١ (١٩١١) ، والمظالم ٢٥ (٢٤٦٩) ، والنكاح ٩١ (٥٢٠١) ، والأيمان والنذور ٢٠ (٦٦٨٣) ، سنن النسائي في الطلاق ٣٢ (٣٤٨٦) ، مسند احمد (٣/ ٢٠٠) من غير هذا الطريق عنه

الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَأَهْلُ الْكُوفَةِ. قَالَ إِسْحَاق: لَا يُصَامُ إِلَّا بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ وَلَمْ يَخْتَلِفْ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْإِفْطَارِ. أَنَّهُ لَا يُقْبَلُ فِيهِ إِلَّا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چې يو اعرابي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو او عرض يې اوكړو چې ما مياشت ليدلې ده رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ايا ته ګواهي وركوې چې دالله نه علاوه بل معبود برحق نشته او ايا ته دا ګواهي وركوې چې محمد (صلي الله عليه وسلم) دالله رسول دې؟ هغه اوونيل هو، ګواهي وركوم بيا رسول الله اوفرمائيل اي بلال په خلقو كې اعلان اوكړه چې سبا روژه اونيسئ.

امام ترمذي وائي دابن عباس په حديث كې اختلاف دې سفيان ثوري وغيره په سند دسماك عن عكرمه عن النبي صلي الله عليه وسلم مرسل نقل كړې دې او دسماك شاګردانو دا روايت په سند د سماك عن عكرمة عن النبي صلي الله عليه وسلم مرسل نقل كړې دې داكثر اهل علمو عمل هم په دې حديث دې دوئ وائي چې درمضان دمياشتې په سلسله كې ديو كس ګواهي قابل قبول ده، ابن مبارك ، امام شافعي، احمد، او اهل كوفه ددې قول قائلين دې، اسحاق بن راهويه وائي چې روژه د دوه كسانو ګواهئ نه بغير نه ثابتيږي يعني نه نيولې كيږي ليكن دروژې بندولو په سلسله كې په اهل علمو كې اختلاف نشته چې په دې كې به د دوه كسانو ګواهي قابل قبول وي.

**تشريح** : كه چرې په اسمان وريځ وي يا ګرد او غبار وي او بيا لره راخوره شوي وي نو داسې صورت كې ديو كس په شهادت هم رمضان ثابتيږي خو شرط به دا وي چې ګواهي وركونكې به اهل دشهادت وي او دشهادت داهليت دپاره اته شرطونه دي.

(۱) مسلمان كيدل، معلومه شوه چې په روئيت دهلال كې دغير مسلم شهادت مقبول نه دې.

(۲) عاقل كيدل ، يعني دليوني شهادت معتبر نه دې.

(۳) بالغ كيدل ، او دماشوم شهادت مقبول نه دې.

(۴) بناء كيدل، دړوند شهادت قبول نه دې.

(۵) عادل كيدل دغير عادل شهادت مقبول نه دې.

(۶) پخپلو ستركو ليدل، معلومه شوه چې صرف اوريدلو باندې شهادت وركول معتبر نه دې.

---

1 _ سنن ابي داود في الصيام ١٤ (٢٣٤٠) . سنن النسائي في الصوم ٨ (٢١١٥) . سنن ابن ماجه في الصيام ٦ (١٦٥٢) . سنن الدارمي في الصوم ٦ (١٧٢٣)

(۷) شهادت لفظ استعمالول خکه چي په دي کښ دتاکيد او حلف معني موندلي کيږي او مشاهدي او اقرار لره هم مستلزم دي .

(۸) په مجلس دقاضي کي گواهي ورکول ، معلومه شوه چي په بل خاي کي گواهي ورکول معتبر نه دي.

(۹)او که چري وريخ نه وي اسمان صفا وي نو بيا دډيرو کسانو شهادت ضروري دي په داسې صورت کي به ددوه کسانو شهادت هم معتبر نه وي.

***************

## ۸_ باب مَا جَاءَ شَهْرَا عِيدٍ لاَ يَنْقُصَانِ

### داختر دواړه مياشتي کمي نشي کيدي

۶۹۲_ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "شَهْرَا عِيدٍ لَا يَنْقُصَانِ رَمَضَانُ وَذُو الْحِجَّةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي بَكْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. قَالَ أَحْمَدُ: مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ شَهْرَا عِيدٍ لَا يَنْقُصَانِ، يَقُولُ: لَا يَنْقُصَانِ مَعًا فِي سَنَةٍ وَاحِدَةٍ شَهْرُ رَمَضَانَ وَذُو الْحِجَّةِ، إِنْ نَقَصَ أَحَدُهُمَا تَمَّ الْآخَرُ، وقَالَ إِسْحَاق: مَعْنَاهُ لَا يَنْقُصَانِ، يَقُولُ: وَإِنْ كَانَ تِسْعًا وَعِشْرِينَ فَهُوَ تَمَامٌ غَيْرُ نُقْصَانٍ، وَعَلَى مَذْهَبِ إِسْحَاق يَكُونُ يَنْقُصُ الشَّهْرَانِ مَعًا فِي سَنَةٍ وَاحِدَةٍ.
([1])

**ترجمه** : دابوبکره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي داختر دواړه مياشتي يعني رمضان او ذي الحجه کمي نه وي (يعني دواړه د ۲۹ ورځو نه وي)
امام ترمذي وائي دابو بکره حديث حسن دي دا حديث دعبدالرحمن بن ابي بکره نه مروي دي هغوئ دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل کړي دي ، احمد بن حنبل وائي ددي حديث "چه داختر دواړه مياشتي کمي نه وي" مطلب دادي چي درمضان او ذي الحجه دواړه به يو کال کي دننه کمي نه وي که به دي دواړو کي يو کم وي يعني ۲۹ ورځو وي نو دويم به

[1] ـ صحيح البخاری في الصوم ۱۲ (۱۹۱۲) . صحيح مسلم في الصوم ۷ (۱۰۸۹) . سنن ابي داود في الصوم ۴ (۲۳۲۳) سنن ابن ماجه في الصيام ۹ (۱۶۵۹) . (تحفة الأشراف : ۱۱۶۷۷) . مسند احمد (۵ في ۳۸)

دپوره ۳۰ ورځو وي ، اسحاق بن راهويه دا مطلب بيان كړي دي كه چري دا د ۲۹ ورځو وي نو بيا به هم دثواب په اعتبار كمه نه وي يا داسحاق دمذهب په اعتبار دواړه مياشتي په يو كال كي كميدي شي يعني ۲۹ ۲۹ ورځي كيدي شي.

****************

## ۹ـ باب مَا جَاءَ لِكُلِّ أَهْلِ بَلَدٍ رُؤْيَتُهُمْ

### دهر ښار والا دپاره دسپوږمۍ دليدو دخپلي علاقي اعتبار وي

۶۸۳ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي حَرْمَلَةَ، أَخْبَرَنِي كُرَيْبٌ، أَنَّ أُمَّ الفَضْلِ بِنْتَ الحَارِثِ بَعَثَتْهُ إِلَى مُعَاوِيَةَ بِالشَّامِ، قَالَ: فَقَدِمْتُ الشَّامَ فَقَضَيْتُ حَاجَتَهَا وَاسْتُهِلَّ عَلَيَّ هِلَالُ رَمَضَانَ وَأَنَا بِالشَّامِ، فَرَأَيْنَا الهِلَالَ لَيْلَةَ الجُمُعَةِ، ثُمَّ قَدِمْتُ المَدِينَةَ فِي آخِرِ الشَّهْرِ، فَسَأَلَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ ثُمَّ ذَكَرَ الهِلَالَ، فَقَالَ: مَتَى رَأَيْتُمُ الهِلَالَ؟ فَقُلْتُ: رَأَيْنَاهُ لَيْلَةَ الجُمُعَةِ، فَقَالَ: أَأَنْتَ رَأَيْتَهُ لَيْلَةَ الجُمُعَةِ؟ فَقُلْتُ: رَآهُ النَّاسُ وَصَامُوا وَصَامَ مُعَاوِيَةُ، قَالَ: لَكِنْ رَأَيْنَاهُ لَيْلَةَ السَّبْتِ فَلَا نَزَالُ نَصُومُ حَتَّى نُكْمِلَ ثَلَاثِينَ يَوْمًا أَوْ نَرَاهُ، فَقُلْتُ: أَلَا تَكْتَفِي بِرُؤْيَةِ مُعَاوِيَةَ وَصِيَامِهِ؟ قَالَ: لَا، هَكَذَا أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ أَنَّ لِكُلِّ أَهْلِ بَلَدٍ رُؤْيَتَهُمْ.(1)

**ترجمه** : دكريب بيان دي فرمائي چي زه ام فضل بنت حارث معاويه رضي الله عنه ته اوليږلم نو زه شام ته راغلم او ما دهغوئ ضرورت پوره كړو او په دي دوران كي درمضان مياشت اوختله اوزه په شام كي موجود وم چي مونږ دجمعي په شپه سپوږمۍ اوليدله بيا زه مديني ته دمياشتي په اخر كي راغلم ابن عباس زما نه د شام دحالاتو باره كي تپوسونه كول او بيا يي دسپوږمۍ ذكر اوكړو او ويي وئيل تاسو سپوږمۍ په كومه ورځ او كله ليدلي وه؟ ما اووئيل مونږ خو دجمعي په شپه ليدلي وه هغه اووئيل ايا تا هم دجمعي په شپه ليدلي وه؟ ما اووئيل خلقو ليدلي وه او هغوئ روژي اونيولي او معاويه رضي الله عنه هم روژه او نيوله ددي په اوريدو ابن عباس اووئيل مونږ خو دهفتي په ورځ ليدلي وه او مسلسل مو روژي جاري ساتلي

1 . صحيح مسلم في الصوم ۵ (۱۰۸۷) . سنن ابي داود في الصيام ۹ (۲۳۳۲) . سنن النسائي في الصيام ۷ (۲۱۱۳) . (تحفة الأشراف: ۶۳۵۷) . مسند احمد (۱/ ۳۰۶)

وي تردي چي ۳۰روژي مو پوره کړي او يا دا چي مونږ د ۲۹ ورځو سپوږمۍ اووينو ما ورته اووئيل ايا ته دمعاويه رضي الله عنه دمياشت په ليدو او په روژي نيولو اکتفاء نه کوې؟ هغوئ اووئيل نه مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم داسي حکم کړي دي.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن غريب دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي چي دهر ښار والا دپاره به پخپله ددوئ سپوږمۍ ليدل معتبر وي.

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي اختلاف دمطالع معتبر دي او کنه.

دائمه ثلاثه په نزد اختلاف دمطالع معتبر دي يعني هر ښار والابه پخپله سپوږمۍ وينې ديو ښار والاليدل به دبل ښار والادپاره دليل نه وي.

او دمتقدمينو احنافو په نزد اختلاف دمطالع معتبر نه دي ديو ښار ليدل به دبل ښار دپاره کافي کيږي خو شرط به دا وي چي په کوم ښار کي مياشت ليدلي شوي وي دهغي ثبوت به دشرعي طريقي مطابق وي.

***************

## ۱۰_ بَابُ مَا جَاءَ مَا يُسْتَحَبُّ عَلَيْهِ الإِفْطَارُ

### روژه په څه ماتول مستحب دي

٦٩٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَلِيٍّ الْمُقَدَّمِيُّ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ وَجَدَ تَمْرًا فَلْيُفْطِرْ عَلَيْهِ وَمَنْ لَا فَلْيُفْطِرْ عَلَى مَاءٍ، فَإِنَّ الْمَاءَ طَهُورٌ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ لَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَوَاهُ عَنْ شُعْبَةَ مِثْلَ هَذَا غَيْرَ سَعِيدِ بْنِ عَامِرٍ، وَهُوَ حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ وَلَا نَعْلَمُ لَهُ أَصْلًا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَقَدْ رَوَى أَصْحَابُ شُعْبَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ سَعِيدِ بْنِ عَامِرٍ، وَهَكَذَا رَوَوْا عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنْ سَلْمَانَ وَلَمْ يُذْكَرْ فِيهِ شُعْبَةُ عَنِ الرَّبَابِ، وَالصَّحِيحُ مَا رَوَاهُ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ وغير واحد، سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ

حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، وَابْنُ عَوْنٍ، يَقُولُ: عَنْ أُمِّ الرَّائِحِ بِنْتِ صُلَيْعٍ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، وَالرَّبَابُ هِيَ أُمُّ الرَّائِحِ.(1)

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچا سره چي كجوري موجود وي پكار ده چي روژه وربانديي ماته كړي او دچا سره چي موجود نه وي پكار ده چي هغه په اوبو روژه ماته كړي ځكه چي اوبه يو پاك څيز دي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دسلمان بن عامر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي. مونږ ته نه ده معلومه چي دانس حديث د سعيد بن عامر نه علاوه بل چا دشعبه نه نقل كړي وي دا حديث غير محفوظ دي او مونږ ته ددي كوم اصل عبدالعزيز په روايت چي هغوئ دانس نه نقل كړي وي معلوم نه دي ، او دشعبه شاګردانو دا حديث په سند د شعبه عن عاصم الاحول عن حفصة بنت سيرين عن الرباب عن سلمان بن عامر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او په دي سند كي يي درباب نه دشعبه قول نقل كول نه دي ذكر كړي او صحيح هغه سند دي كوم چي سفيان ثوري او ابن عيينه او نورو محدثينو په سند د عاصم الاحول عن حفصة بنت سيرين عن الرباب عن سلمان بن عامر سره نقل كړي دي. ابن عون وائي عن ام الرائح بنت سليم عن سلمان بن عامر او رباب په حقيقت كي ام الرائح دي.

***************

٦٩٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ ح. وَحَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ. وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، قَالَ: أَنْبَأَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ الضَّبِّيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَفْطَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيُفْطِرْ عَلَى تَمْرٍ زَادَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فَإِنَّهُ بَرَكَةٌ، فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيُفْطِرْ عَلَى مَاءٍ فَإِنَّهُ طَهُورٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(2)

**ترجمه**: دسلمان ابن عامر صحابي نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو كي چي څوك روژه ماتوي نو په كجوره يى ماتوئ كه كجوره نه مومئ نو په اوبو يى ماتوئ ځكه چي اوبه پاكونكي دي.

---

1 تفرد به المؤلف (وأخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١٠٢٦)

2 سنن ابي داود في الصوم ٢١ (٢٣٥٥) . سنن ابن ماجه في الصيام ٢٥ (١٦٩٩) . (تحفة الأشراف: ٤٤٨٦) . مسند احمد (٣ في . ١٧ . ١٩ . ٢١٣ . ٢١٥) . سنن الدارمي في الصوم ١٢ (١٧٤٣) .

دا حديث امام ترمذي روايت كړى دى او حديث حسن يې ورته وئيلى دى.

**تشريح** : علماء وائي شريعت په كجورو دروژو ماتولو حكم خكه كړي دي چي كله معده خالي وي او په دغه وخت كي خواږه معدي ته ورسيږي نو ددي په سبب بدن ته فائده رسيږي او قوت زياتيږي او كه كجوري نه وي نو بيا په اوبو روژه ماتول پكار دي خكه چي دا دظاهري او باطني طهارت سبب دي.

**دسلمان بن عامر رضي الله عنه حالات**

نوم سلمان دپلار نوم عامر بن عوس بن جعد چي ضبي قبيلي سره يي تعلق وو او په بصريانو كي شميرلى شي دبعضي اسماء الرجال والاخيال دى چي په ضبي قبيله كي دده نه علاوه بل كوم روايت كونكى صحابي نشته ديارلس روايات ورنه منقول دي چي صرف يو په بخاري كي موجود دى.

****************

٦٩٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْطِرُ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ عَلَى رُطَبَاتٍ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ رُطَبَاتٌ فَتُمَيْرَاتٌ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تُمَيْرَاتٌ حَسَا حَسَوَاتٍ مِنْ مَاءٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرُوِيَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُفْطِرُ فِي الشِّتَاءِ عَلَى تَمَرَاتٍ، وَفِي الصَّيْفِ عَلَى الْمَاءِ".[1]

**ترجمه** . انس رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به د مابنام نه مخكي په يو خو تازه كجورو روژه ماتوله، كه تازه به نه وى په يو خو اوچو كجورو به يى ماته كړه كه دا به هم نه وى نو يو خو گوټه اوبه به يى اوڅكلى.

داحديث امام ترمذي نقل كړى دى او حديث حسن غريب يى ورته وئيلى دى

امام ترمذي وايي د رسول الله متعلق مروي دي چي د ژمي به يي په كهجورو روژه ماتوله او د اوړي به يي په اوبو روژه ماتوله.

****************

١١_ بَاب مَا جَاءَ الصَّوْمُ يَوْمَ تَصُومُونَ وَالْفِطْرُ يَوْمَ تُفْطِرُونَ وَالأَضْحَى يَوْمَ تُضَحُّونَ

---

1 - سنن ابي داود في الصيام ٢١ (٢٣٥٦). (تحفة الأشراف: ٢٦٥)

**دروژي ورځ هغه ده کله چي ډېرولو روژه وي او داختر ورځ هغه ده کله چي ډېرولو اختر وي او دلوي اختر ورځ هغه ده کله چي ټول داختر خوشحالي ښکاره کوي**

٦٩٧ـ أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ مُحَمَّدٍ الأَخْنَسِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الصَّوْمُ يَوْمَ تَصُومُونَ وَالْفِطْرُ يَوْمَ تُفْطِرُونَ وَالأَضْحَى يَوْمَ تُضَحُّونَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَفَسَّرَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ هَذَا الْحَدِيثَ، فَقَالَ: إِنَّمَا مَعْنَى هَذَا أَنَّ الصَّوْمَ وَالْفِطْرَ مَعَ الْجَمَاعَةِ وَعُظْمِ النَّاسِ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دروژي ورځ هغه ده کله چي هر چا روژه نيولي وي او دافطار ورځ هغه ده کله چي ټول خلق د اختر خوشحالي کوي او دلوي اختر ورځ هغه ده کله چي تاسو قرباني کوئ.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي بعضي علماؤ ددي حديث داسي تشريح کړي ده چي صوم او عيدالفطر داجتماعيت او سوادالاعظم ښکاره کول پکار دي.

**تشريح** : مطلب دادي چي کله رمضان په شرعي طريقه ثابت شي نو روژه اونيسئ او چي کله اختر په شرعي طريقه ثابت شي نو روژه ماته کړئ او دا رنګي لوي اختر هم دي چي کله په شرعي طريقه ثابت شي نو اختر اوکړئ او قرباني اوکړئ دشرعي ثبوت نه پس په شکوك او اوهام کي مبتلا کيدل نه دي پکار.

*****************

## ١٢ـ باب مَا جَاءَ إِذَا أَقْبَلَ اللَّيْلُ وَأَدْبَرَ النَّهَارُ فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ

**کله چي شپه راشي او ورځ لاړه شي يعني نمر غائب شي نو روژه دار دي روژه ماته کړي**

٦٩٨ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "

---

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٢٩٩٤) وأخرجه سنن ابي داود في الصوم ٥ (٢٣٢٤) وسنن ابن ماجه في الصيام ٩ (١٦٦٠)

إِذَا أَقْبَلَ اللَّيْلُ وَأَدْبَرَ النَّهَارُ وَغَابَتِ الشَّمْسُ فَقَدْ أَفْطَرْتَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ أَبِي أَوْفَى، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه**: دعمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي شپه راشي او ورځ لاړه شي او نمر ډوب شي نو تاسو افطار اوکړئ.
امام ترمذي وائي دعمر حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن ابي اوفي او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي تَعْجِيلِ الإِفْطَارِ

### په روژه ماتي کي دجلتئ کولو بيان

٦٩٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ ح. قَالَ: وَأَخْبَرَنَا أَبُو مُصْعَبٍ قِرَاءَةً، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ مَا عَجَّلُوا الْفِطْرَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ أَهْلُ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ اسْتَحَبُّوا تَعْجِيلَ الْفِطْرِ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. (2)

**ترجمه**: دسهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خلق به ترهغې پورې هميشه په بهترئ کي وي تر څو چي روژه ماتولو کي تلوار کوي.
امام ترمذي وائي دسهل بن سعد حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کي دابوهريره ، ابن عباس، عائشه، او انس بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او صحابه کرامو او

---

1 صحيح البخاری في الصوم ٤٣ (١٩٥٤) . صحيح مسلم في الصيام ١٠ (١١٠٠) . سنن ابی داود في الصيام ١٩ (٢٣٥١) . ٣٨. ٣٥. (تحفة الأشراف : ١٠٤٧٤) . مسند احمد (١ في ٢٨) . سنن الدارمی في الصوم ١١ (١٧٤٢)

2 _ صحيح البخاری في الصوم ٤٥ (١٩٥٧) . (تحفة الأشراف : ٤٧٤٦) . موطا امام مالک في الصيام ٣ (٦) . مسند احمد (٥ في ٣٣٤، ٣٣٩) وأخرجه ومسلم في الصيام ٩ (١٠٩٨) . وسنن ابن ماجه في الصيام ٢٤ (١٦٩٧) . مسند احمد (٥ في ٣٣١، ٣٣٤، ٣٣٦) . والدارمی في الصوم ١١ (١٧٤١)

ددوی نه پس اهل علمو هم دا قول اختیار کړي دي چي هغوی په روژه ماتي کي جلتي کول مستحب ګڼي. امام شافعي، احمد، اسحاق هم ددي قائل دي.

**لغات**: عجّلوا: عجّل يعجل تعجيلا معني جلتي کول، لايزال: معني هميشه خير اسم تفضيل دي داخير نه مخفف دي.

**تشريح**: مطلب دادي چي دغروب نه فورا پس په افطار کولو کي تاخير نه دي پکار په دي حديث کي دداسي کار کولو په وجه بشارت بيان شوي دي او بل طرف ته په دي کي داهل کتابو مخالفت هم دي خکه چي دوی په افطار کي تاخير کوي تردي چي ستوري راوخيژي رافضيان هم په دي کي تاخير کوي.

**دسهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه حالات**

نوم سهل کنيه ابو العباس، ابو مالك، ابو يحيي. دهجرت نبوي نه پنخه کاله مخکي پيدا شوي وه پلار ورنه حزن نوم ايخودلی وو ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم ورباندي نوم بدل کړو او سهل نوم يي ورباندي کيخودو. دده پلارغزوه بدر ته دتلو اراده کړي وه ليکن دتلو نه مخکي وفات شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دتمامو مجاهدينو پشان دده دپاره هم حصه مقرره کړه سهل داکابر صحابه کرامو دوفات کيدو نه پس دخلقو مرجع اوګرځيدو دلري لري علاقو خلق به دده د درس حلقي ته راتلل سهل يو خل دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دپاره دمديني دمشهور کوهي بير بضاعه نه دځکلو دپاره اوبه هم راويستلي وي (مسند احمد)

وفات: دهجرت په ۹۱کي دشپږ نوي کالو په عمر کي وفات شو او دده دمروایاتو شمیر ۱۸۸دی چي ۲۸متفق عليه دي.

****************

۷۰۰ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا الوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، عَنْ قُرَّةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: "أَحَبُّ عِبَادِي إِلَيَّ أَعْجَلُهُمْ فِطْرًا".[1]

**ترجمه**: ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي فرمائي خما په بنديانو کي ماته ډير محبوب هغه دی چي افطار کي تلوار کوي.

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٢٢٥). وانظر: مسند احمد (٢ في ٢٢٨، ٣٢٩)

**لغات**: عزّ عزّ يعز عزا دضرب نه معني غالب کيدل، اوصفت عزيز راځي

**تشريح**: احب عبادي الي اعجلهم فطرا: يعني زما محبوب بنده هغه دي چي په افطار کي جلتي کوي، په پورتني حديث کي دا بيان شوي دي چي په افطار کي جلتي کونکي دالله په نزد فضيلت والادي او همدا رنګکي په جلتي کولو سره دسنت اتباع هم کيږي او داهل روافض مخالفت هم کيږي

*****************

٧٠١_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَاصِمٍ، وَأَبُو الْمُغِيرَةِ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (١)

**ترجمه**: ابو المغيره هم داوزاعي نه په سابقه سند باندي دماقبل حديث هم معني روايت بيان کړي دي.امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي

*****************

٧٠٢_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي عَطِيَّةَ، قَالَ: دَخَلْتُ أَنَا وَمَسْرُوقٌ عَلَى عَائِشَةَ، فَقُلْنَا: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ رَجُلاَنِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَدُهُمَا يُعَجِّلُ الإِفْطَارَ وَيُعَجِّلُ الصَّلاَةَ، وَالآخَرُ يُؤَخِّرُ الإِفْطَارَ وَيُؤَخِّرُ الصَّلاَةَ. قَالَتْ: أَيُّهُمَا يُعَجِّلُ الإِفْطَارَ وَيُعَجِّلُ الصَّلاَةَ؟ قُلْنَا: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ، قَالَتْ: هَكَذَا صَنَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالآخَرُ أَبُو مُوسَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو عَطِيَّةَ اسْمُهُ مَالِكُ بْنُ أَبِي عَامِرٍ الْهَمْدَانِيُّ وَيُقَالُ ابْنُ عَامِرٍ الْهَمْدَانِيُّ، وَابْنُ عَامِرٍ أَصَحُّ. (٢)

**ترجمه**: د ابو عطيه رضي الله عنه نه روايت دی چي زه او مسروق دواړه ام المومنين عائشی رضي الله عنها ته ورغلو مسروق عرض اوکړو د رسول الله صلي الله عليه وسلم دوه اصحاب دي او دواړه دخير په کار کي کوتاهي نه کوي په دوي کي يو کس مابنام مونځ کولو کي او روژه ماتولو کي تلوار کوي او بل د مابنام مونځ کولو او روژه ماتولو کي تاخير کوي نو

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٢٣٥). وانظر: مسند احمد (٢ في ٢٣٨، ٣٢٩)

2 صحيح مسلم في الصوم ٩ (١٠٩٩). سنن ابي داود في الصوم ٢٠ (٢٣٥٤). سنن النسائي في الصيام ٢٣ (٢١٦٠). (تحفة الأشراف: ١٧٧٤٩). مسند احمد (٦ في ٤٨) و (٦ في ١٧٣)

دى دواړو کي کوم کار بهتر دى ؟ عائشى رضي الله عنها تپوس اوکړو کوم يو تلوار کوي هغه ورته اوونيل عبدالله يعنى عبدالله ابن مسعود عائشى رضي الله عنها ورته اوونيل رسول الله صلي الله عليه وسلم به هم دغه شان کولو يعني تلوار بهتر دى د رسول الله صلي الله عليه وسلم هم دا طريقه وه.

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي او دابوعطيه نوم مالك بن ابي عامر الهمداني دي او ابن عامر همداني او ابن عامر ورته هم ونيلي شي. او دا صحيح تر قول دي.

**لغات**: يالوا الاالوا دنصر نه معني کوتاهي او سستي نه کول.

**تشريح**: په پورتني حديث کي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه په باره کي راغلي دي چي هغه به پيشمني په تاخير سره کولو او په روژه ماتي کي به يي جلتي کوله نو په دي باره کي عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به هم داسي کول او ددي بالمقابل دابوموسي اشعري رضي الله عنه په باره کي راغلي دي چي هغه به په روژه ماتي کي تاخير کولو.

علماء واني چي ابو موسي اشعري هم يو جليل القدر صحابي دي ممکن ده چي دهغه دا عمل دجواز دبيان دپاره وي يا يي د کوم عذر او څه مصلحت په بنا داسي کړي وي يا دا مطلب دي چي يو ځل نيم يي داسي کړي وي او مسروق ورنه نقل کړي وي.

***************

## ١٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي تَأْخِيرِ السُّحُورِ

## په پيشمني کي دتاخير کولو بيان

٧٠٣_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: "تَسَحَّرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قُمْنَا إِلَى الصَّلَاةِ"، قَالَ: قُلْتُ: كَمْ كَانَ قَدْرُ ذَلِكَ؟ قَالَ: "قَدْرُ خَمْسِينَ آيَةً".[1]

**ترجمه**: دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دى چي مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره پيشمنى اوکړو او بيا ورسره سحر مانځه ته اودريدو چا ورته اوونيل د پيشمني او سحر

[1] صحيح البخارى في المواقيت ٢٨ (٥٧٥)، والصوم ١٩ (١٩٢١). صحيح مسلم في الصيام ٩ (١٠٩٧). سنن النسائى في الصيام ٢١ (٢١٥٧). سنن ابن ماجه في الصوم ٢٣ (١٦٩٣). (تحفة الأشراف: ٣٦٩٦). مسند احمد (٥/ ١٨٢، ١٨٥، ١٨٦، ١٨٨، ١٩٢). سنن الدارمى في الصوم ٨ (١٧٠٣)

ترمينځه څومره فاصله وه؟ هغه اوونيل چي پنځوس ايتونه پکي او ونيلی شي.

**لغات**: تسحروا : معني پيشمني كول سحره يعني جادو يي ورباندي وكړو : كم معني څومره كم خبري هم وي او استفهامي هم وي.

**تشريح** : دپورتني روايت نه دسحر دمونځ او دپيشمني وخت معلوم شوي دي چي تقريبا دپنځوس ايتونو دلوستلو په مقدار وقفه به كيدله ددينه معلومه شود چي دپيشمني په بالكل اخري وخت كي خوراك كول پكار دي او پنځوس ايتونه عموما خلق په لسو مينتو كي ونيلي شي نو دصبح صادق نه يولس منته مخكي خوراك كول زيات فضيلت لري.
پنځوس ايتونه عموما سړي په پنځلس منته كي ويلي شي نو دسبا كيدو لس پنځلس منته مخكي دپيشمني خوراك كول فضيلت لري.

***************

٧٠٤ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ هِشَامٍ بِنَحْوِهِ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: قَدْرُ قِرَاءَةِ خَمْسِينَ آيَةً. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ حُذَيْفَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ: اسْتَحَبُّوا تَأْخِيرَ السُّحُورِ. (1)

**ترجمه** : په دي سند دهشام نه هم روايت مروي دي البته په دي روايت كي داسي دي "دپنځوس ايتونو دلوستلو په مقدار".
امام ترمذي وائي دزيد بن ثابت حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دحذيفه رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي ، او همدا دامام شافعي، احمد، او اسحاق قول دي دوی په تاخير سره پيشمني كول خوښوي.

***************

## ١٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي بَيَانِ الْفَجْرِ

## دصبح صادق دواضح كيدو بيان

---

1 ـ صحيح البخاری في المواقيت ٢٨ (٥٧٥) ، والصوم ١٩ (١٩٢١) . صحيح مسلم في الصيام ٩ (١٠٩٧) . سنن النسائي في الصيام ٢١ (٢١٥٧) . سنن ابن ماجه في الصوم ٢٣ (١٦٩٣) . (تحفة الأشراف : ٣٦٩٦) . مسند احمد (٥ في ١٨٢، ١٨٥، ١٨٦، ١٨٨، ١٩٢) . سنن الدارمي في الصوم ٨ (١٧٠٣)

٧٠٥ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللهِ بْنُ النُّعْمَانِ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ، حَدَّثَنِي أَبِي طَلْقُ بْنُ عَلِيٍّ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " كُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا يَهِيدَنَّكُمُ السَّاطِعُ الْمُصْعِدُ، وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَعْتَرِضَ لَكُمُ الْأَحْمَرُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَسَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنَّهُ لَا يَحْرُمُ عَلَى الصَّائِمِ الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ حَتَّى يَكُونَ الْفَجْرُ الْأَحْمَرُ الْمُعْتَرِضُ. وَبِهِ يَقُولُ عَامَّةُ أَهْلِ الْعِلْمِ. (1)

**ترجمه** دقيس بن طلق نه روايت دي فرمائي چي ماته زما پلار طلق بن علي حديث بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي خورئ څکئ او منع دي نکړي تاسو لره صبح کاذب تر څو پوري چي سور نمر ختلي نه وي.

امام ترمذي وائي دطلق بن علي حديث په دي سند حسن غريب دي، او په دي باب کي د عدي بن حاکم ، ابوذر، او سمره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي چي په صائم باندي خوراک څښاک نه حراميږي تر څو پوري چي دسحر سورخي او رڼا ښکاره شوي نه وي او همدا داکثرو اهل علمو قول دي.

## دطلق بن علي رضي الله عنه حالات

نوم طلق دپلار نوم علي کنيه ابو علي حنفي يمامي طلق بن ثمامه ورته وئيلي شي دمسلمانيدو دپاره ديمامي دوفد سره راغلي وو څوارلس روايات ورنه منقول دي چي په دوئ کي يو هم په صحيحينو کي نشته.

*****************

٧٠٦ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. وَيُوسُفُ بْنُ عِيسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ سَوَادَةَ بْنِ حَنْظَلَةَ هُوَ الْقُشَيْرِيُّ، عن سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا يَمْنَعَنَّكُمْ مِنْ سُحُورِكُمْ أَذَانُ بِلَالٍ وَلَا الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيلُ، وَلَكِنِ الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيرُ فِي الْأُفُقِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (2)

---

1 ـ سنن ابي داود في الصيام ١٧ (٢٣٤٨) (تحفة الأشراف : ٥٠٢٥)

2 صحيح مسلم في الصوم ٨ (١٠٩٤) . سنن ابي داود في الصيام ١٧ (٢٣٤٦) . سنن النسائي في الصيام ٣٠ (٢١٧٣) . (تحفة الأشراف : ٤٦٢٤) . مسند احمد (٥ في ٧، ٩، ١٣، ١٨)

**ترجمه** دسمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو لره دي اذان دبلال دپيشمني دخوراك نه منع نكړي او نه دي منع نكړي تاسو لره اوږد سحر مگر هغه سحر دي تاسو لره منع كړي كوم چي داسمان په كنارو كي راخوريږي امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي.

*****************

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي التَّشْدِيدِ فِي الْغِيبَةِ لِلصَّائِمِ

### دروژه دار دپاره دغيبت كولو دوعيد بيان

٧٠٧_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، قَالَ: وَأَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ لَمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّورِ وَالْعَمَلَ بِهِ، فَلَيْسَ لِلَّهِ حَاجَةٌ بِأَنْ يَدَعَ طَعَامَهُ وَشَرَابَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كوم روژه دار چي دروغ وئيل او په دي باندي عمل كول پري نږدي نو الله تعالي ته دده دخوراك او څښاك پريخودلو هيڅ ضرورت نشته.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

## ١٧_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ السُّحُورِ

### دپيشمني كولو دفضيلت بيان

٧٠٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، وَعَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تَسَحَّرُوا فَإِنَّ فِي السَّحُورِ بَرَكَةً". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ

---

[1] صحيح البخاري في الصوم ٨ (١٩٠٣)، والأدب ٥١ (٦٠٥٧)، سنن ابن ماجه في الصيام ٢١ (١٦٨٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٢١)

اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، وَالْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، وَعُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** انس رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي پيشمنى كوئ دى كي بركت دى.

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دابوهريره، عبدالله بن مسعود، جابر بن عبدالله، ابن عباس، عمرو بن العاص ، عرباض بن ساريه، عتبه بن عبدالله، او ابو الدرداء رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي فرمانيل يي زمونږ په روژو او داهل كتابو په روژو كي فرق دپيشمني خوراك كول دي.

**تشريح** : "دپيشمني په خوراك كي بركت دي مطلب دادي چي په پيشمني كي پاڅيدل او خوراك كول پكار دي او كه څوك لږ خوراك هم اوكړي نو هم بهتره ده ځكه چي ددي وخت په خوراك كي بركت دي په خلاف دهغه كس چي د اوده كيدو نه مخكي ځان بنه ډك كړي او پريوځي نو په دي كي څه فائده نشته دي په اسلامي تعليماتو كي دانسان دكمزورئ خيال ساتلي شوي دي. په پيشمني كي بركت په دي وجه دي چي ددي په وجه روژه دار ته طاقت ملاويږي.

***************

۷۰۹ـ وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "فَصْلُ مَا بَيْنَ صِيَامِنَا وَصِيَامِ أَهْلِ الْكِتَابِ أَكْلَةُ السَّحَرِ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ مُوسَى بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي قَيْسٍ مَوْلَى عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ. قَالَ: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَهْلُ مِصْرَ يَقُولُونَ: مُوسَى بْنُ عَلِيٍّ، وَأَهْلُ الْعِرَاقِ يَقُولُونَ: مُوسَى بْنُ عُلَيٍّ وَهُوَ مُوسَى بْنُ عُلَيِّ بْنِ رَبَاحٍ اللَّخْمِيُّ. (2)

---

1 _ صحيح مسلم في الصوم ۹ (۱۰۹۵) . سنن النسائي في الصيام ۱۸ (۲۱۴۸) . (تحفة الأشراف : ۱۰۶۸، و ۱۲۲۲) (صحيح) وأخرجه صحيح البخاري في الصوم ۲۰ (۱۹۲۳) . وسنن ابن ماجه في الصيام ۲۲ (۱۶۹۲) . و مسند احمد (۳ في ۹۹، ۲۱۵، ۲۵۸، ۲۸۱) . وسنن الدارمي في الصوم ۹ (۱۷۳۸) .

2 _ مسلم في الصوم ۹ (۱۰۹۶) ، و ابي داود في الصيام ۱۵ (۲۳۴۳) . و النسائي في الصيام ۲۷ (۲۱۶۸) . (تحفة الأشراف : ۱۰۷۴۹) . مسند احمد (۴ في ۱۹۷) . سنن الدارمي في الصوم ۹ (۱۷۳۸)

**ترجمه** : عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زمونږ او داهل کتابو په مينځ کي فرق پيشمنی دی.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي اهل مصر موسىٰ بن علي وائي عين په فتح سره او اهل عراق موسي بن عليٍ دعين په ضمي سره لولي او دا موسي بن علي بن رباح اللخمي دي.

**لغات** : فصل: فصل يفصل فصلا معني جدا کيدل، فصل الخصومات هم ددي نه اخستلي شوي دي يعني دجګړو فيصلي کول فصل الشيء جدا کول فاصله يافرق کيدل.

**تشريح** : يعني زمونږ دروژو او داهل کتابو روژو په مينځ کي فرق دپيشمني خوراك دي داهل کتابو يعني ديهودو او نصاري په مذهب کي د اوده کيدو پوري خوراك کولي شي او داوده کيدو نه پس خوراك بنديږي د اسلام په ابتداء کي هم دا حکم وو ليکن وروسته په پيشمني کي برکت او فضيلت واچولي شو او ددي پيشمني په وجه داهل کتابو نه مخالفت هم لازم شو.

****************

## ١٨ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّوْمِ فِي السَّفَرِ

### په سفر کي دروژو نيولو دکراهت بيان

٧١٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى مَكَّةَ عَامَ الْفَتْحِ، فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ كُرَاعَ الْغَمِيمِ وَصَامَ النَّاسُ مَعَهُ، فَقِيلَ لَهُ: إِنَّ النَّاسَ قَدْ شَقَّ عَلَيْهِمُ الصِّيَامُ، وَإِنَّ النَّاسَ يَنْظُرُونَ فِيمَا فَعَلْتَ، فَدَعَا بِقَدَحٍ مِنْ مَاءٍ بَعْدَ الْعَصْرِ، فَشَرِبَ وَالنَّاسُ يَنْظُرُونَ إِلَيْهِ، فَأَفْطَرَ بَعْضُهُمْ وَصَامَ بَعْضُهُمْ، فَبَلَغَهُ أَنَّ نَاسًا صَامُوا، فَقَالَ: " أُولَئِكَ الْعُصَاةُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ كَعْبِ بْنِ عَاصِمٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: " لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصِّيَامُ فِي السَّفَرِ " وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الصَّوْمِ فِي السَّفَرِ، فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الْفِطْرَ فِي السَّفَرِ أَفْضَلُ، حَتَّى رَأَى بَعْضُهُمْ عَلَيْهِ الإِعَادَةَ إِذَا صَامَ فِي السَّفَرِ، وَاخْتَارَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ الْفِطْرَ فِي السَّفَرِ. وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: إِنْ وَجَدَ قُوَّةً فَصَامَ فَحَسَنٌ، وَهُوَ أَفْضَلُ، وَإِنْ أَفْطَرَ فَحَسَنٌ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ. وقَالَ الشَّافِعِيُّ: وَإِنَّمَا مَعْنَى قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ

الصِّيَامُ فِي السَّفَرِ "، وَقَوْلِهِ حِينَ بَلَغَهُ أَنَّ نَاسًا صَامُوا، فَقَالَ: "أُولَئِكَ الْعُصَاةُ". فَوَجْهُ هَذَا إِذَا لَمْ يَحْتَمِلْ قَلْبُهُ قَبُولَ رُخْصَةِ اللَّهِ، فَأَمَّا مَنْ رَأَى الْفِطْرَ مُبَاحًا وَصَامَ وَقَوِيَ عَلَى ذَلِكَ فَهُوَ أَعْجَبُ إِلَيَّ. (١)

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دفتح مكه په كال مكي ته روان شو او روژه يي نيولي وه او ورسره خلقو هم روژه نيولي وه تردي چي كراع الغميم مقام ته ورسيدو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوكړي شو چي روژه نيول خلقو ته ډير مشكل شو او تاسو خو دخلقو عمل وينئ (يعني ددي خبري انتظار كوي چي تاسو څه اوكړئ) نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دمازيگر نه پس يوه پياله اوبه راوغوښتلي او خلقو ورته كتل په دوئ كي بعضو روژه ماته كړه او بعضو نيولي وه رسول الله ته معلومه شوه چي څه كسانو اوس هم روژه نيولي ده نو ويي فرمائيل هم دوئ نافرماني كونكي دي.

امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دكعب بن عاصم، ابن عباس، او ابو هريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي فرمائيل يي په سفر كي روژه نيول كوم دنيكئ كار نه دي، كه سفر كي دروژي نيولو په سلسله كي داهل علمو اختلاف دي په صحابه كرامواو ددوئ نه پس په اهل علمو كي دبعضو خيال دي چي په سفر كي روژه نيول افضل دي تردي پوري چي دبعضو خلقو رائي داده چي چا به په سفر كي روژه نيوله نو چي كله به دسفر نه واپس شو واپسئ نه پس به يي دوبارد نيسي احمد او اسحاق هم په سفر كي روژي نه نيولو ته ترجيح وركړي وه په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو قول دادي كه څوك دروژي نيولو طاقت لري او روژه اونيسي نو دا مستحسن او افضل دي سفيان ثوري ، مالك بن انس. او عبدالله بن مبارك هم ددي قول قائل دي . امام شافعي وائي درسول الله صلي الله عليه وسلم قول "په سفر كي روژه نيول كوم دنيكئ كار نه دي" او په كوم وخت كي چي هغوئ ته معلومه شوه چي بعضي كسانو اوس هم روژه نيولي ده نو دهغوئ دا قول چي هم دوئ نافرماني كونكي دي دا دداسي كس دپاره دي دچا زړه چي دالله تعالي نازل كړي رخصت او اجازت نه قبلوي ليكن څوك چي په سفر كي روژه نه نيول مباح گڼړي هغوئ دي روژه اونيسي او هغوئ ددي طاقت هم لري نو دا ماته ډير بهتر ښكاري.

**تشريح** : د مسافر دپاره افطار كول افضل دي او كه روژه نيول؟ په دي سلسله كي د اهل علمو دوه مذاهب دي:

---

١ مسلم في الصوم ١٥ (١١٢١)، والنسائي في الصيام ٣٩ (٢٢٦٥). (تحفة الأشراف: ٢٥٩٨)

(۱) احناف فقهاء وايي كه مسافر په روژه نيولوكي تكليف نه محسوسوى نو دده دپاره روژه نيول افضل دی،خوكه افطار ئې اوكړو نو روا دی
(۲) د امام شافعی (رحمه الله) په نزددمسافر دپاره مطلقاً افطار افضل دې.
د امام شافعی (رحمه الله) په نزدكه مسافر ته روژه مشكله نه معلوميږی نوهم روژه افضله ده، افطار افضل نه دي هم دا د امام مالك (رحمه الله) مذهب دي. ددي مسئلي مفصل او مدلل بحث په راتلونكي باب كي راروان دی.

****************

## ۱۹_ بَابُ مَا جَاءَ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي الصَّوْمِ فِي السَّفَرِ

### په سفر كي دروژو نيولو داجازت بيان

۷۱۱_ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ عَبْدَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ حَمْزَةَ بْنَ عَمْرٍو الأَسْلَمِيَّ، سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّوْمِ فِي السَّفَرِ وَكَانَ يَسْرُدُ الصَّوْمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ شِئْتَ فَصُمْ وَإِنْ شِئْتَ فَأَفْطِرْ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَحَمْزَةَ بْنِ عَمْرٍو الأَسْلَمِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ، أَنَّ حَمْزَةَ بْنَ عَمْرٍو، سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي حمزه بن عمرو اسلمي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه په سفر كي دروژي نيولو متعلق تپوس اوكړو او پخپله به يي مسلسل روژي نيولي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه خوښه دي وي نو نيسه يي اوكه خوښه دي وي نو مه يي نيسه.
امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث دي چي حمزه بن عمرو دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو حسن صحيح دي، په دي باب كي دانس بن مالك، ابوسعيد

[1] _ النسائي في الصوم ٥٨ (٢٣١٠). (تحفة الأشراف: ١٧٠٧١) (صحيح) وأخرجه والبخاري في الصوم ٣٣ (١٩٤٢، ١٩٤٣) و مسلم في الصيام ٧ (١١٢١). و ابي داود في الصوم ٤٢ (٢٤٠٢). والنسائي في الصيام ٥٨ (٢٣٠٨٢٢١٠). و ٧٤ (٢٣٨٦). وسنن ابن ماجه في الصوم ١٠ (١٦٦٢). موطا امام مالك في الصيام ٧ (٢٤) و مسند احمد (٦ في ٤٦، ١٩٣، ٢٠٢، ٢٠٧). وسنن الدارمي في الصوم ١٥ (١٧٣٨).

خدري، عبدالله بن مسعود، عبدالله بن عمرو، ابو الدرداء او حمزه بن عمرو اسلمي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

****************

٧١٢_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ أَبِي مَسْلَمَةَ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "كُنَّا نُسَافِرُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ، فَمَا يَعِيبُ عَلَى الصَّائِمِ صَوْمَهُ وَلَا عَلَى الْمُفْطِرِ إِفْطَارَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: ابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ به درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په رمضان كي سفر كولو نو نه به يي روژه نيونكي بد ګڼړل او نه به يي نه نيونكي بد ګڼړل په وجه دنه نيولو دروژي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

٧١٣_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ ح. قَالَ: وحَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: "كُنَّا نُسَافِرُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَمِنَّا الصَّائِمُ وَمِنَّا الْمُفْطِرُ فَلَا يَجِدُ الْمُفْطِرُ عَلَى الصَّائِمِ، وَلَا الصَّائِمُ عَلَى الْمُفْطِرِ، فَكَانُوا يَرَوْنَ أَنَّهُ مَنْ وَجَدَ قُوَّةً فَصَامَ فَحَسَنٌ، وَمَنْ وَجَدَ ضَعْفًا فَأَفْطَرَ فَحَسَنٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2]

**ترجمه**: ابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ به درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په سفر كي وو او په مونږ كي به بعضي خلقو روژي نيولي او بعضو به نه نيولي نو نه به روژي نيولو والا نه نيونكي بد ګڼړل او نه به نه نيونكو روژه نيونكو د روژي نيولول په وجه بد ګڼړل هغوئ به ديته كتل چي په چا كي به دروژو نيولو طاقت وو هغوئ به نيولي او په چا كي به كمزوري وه هغوئ به نه نيولي.

---

1 _ مسلم في الصوم ١٥ (١١١٦). والنسائي في الصيام ٥٩ (٢٣١٢). (تحفة الأشراف: ٤٣٤٤)

2 صحيح مسلم في الصوم ١٥ (١١١٦). سنن النسائي في الصيام ٥٩ (٢٣١١). (تحفة الأشراف: ٤٣٢٥) (صحيح) وأخرجه مسند احمد (٣ في ٢٥، ٤٣، ٨٤)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح: په سفر کې د روژې حکم**

په سفر کي د روژي نيولو متعلق د فقهاو دوه اقوال دي:

(۱) د احنافو په نزد که مسافر په روژه نيولوکي تکليف نه محسوسوی نو دده دپاره روژه نيول افضل دی،خوکه افطار ئې اوکړو نو روا دی.

(۲)د امام شافعی (رحمه الله) په نزددمسافر دپاره مطلقاً افطار افضل دي.

د امام شافعی (رحمه الله) دليل د جابربن عبدالله(رضي الله عنه) حديث دي:

"قال كان رسول الله صلي الله عليه وسلم فى سفر فرأى زحاماً ورجلاً قد ظلل عليه فقال ما هذا قالوا صائم. فقال ليس من البر الصيام فى السفر"

يعنى رسول الله صلي الله عليه وسلم په يوسفر کي وو،رسول الله صلي الله عليه وسلم يوه گڼه اوکتله،او يوکس ئې اوکتلو چې په هغه باندې سورې شوې وو،نبی کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل،داڅه دی؟ خلقو اووئيل چې دا روژه دار دي نبی کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې په سفر کي روژه نيول د نيکئ خبره نه ده.

زمونږ دليل دا ارشاد الهي دی: ان تصوموا خير لكم، يعنى په رمضان کي روژه نيول.د نه نيولو نه افضل دی،دا دهغه وخت حکم دي کله چې په رمضان کي په فديه ورکولوسره د افطار اجازت وو. عنايه.

****************

## ٢٠_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ لِلْمُحَارِبِ فِي الإِفْطَارِ

**دمجاهد او غازي دپاره د روژو نه نيولو درخصت بيان**

٧١٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مَعْمَرِ بْنِ أَبِي حُيَيَّةَ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، أَنَّهُ سَأَلَهُ عَنِ الصَّوْمِ فِي السَّفَرِ، فَحَدَّثَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، قَالَ: " غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ غَزْوَتَيْنِ يَوْمَ بَدْرٍ، وَالْفَتْحِ، فَأَفْطَرْنَا فِيهِمَا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّهُ أَمَرَ بِالفِطْرِ فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا". وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ نَحْوُ هَذَا، إِلَّا أَنَّهُ رَخَّصَ فِي الإِفْطَارِ عِنْدَ لِقَاءِ العَدُوِّ، وَبِهِ يَقُولُ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ. (١)

**ترجمه**: دمعمر بن ابي حبيبه نه روايت دي فرمائي چي ما دسعيد بن مسيب نه په سفر كي دروژو نيولو باره كي تپوس اوكړو هغه اووئيل عمر بن الخطاب رضي الله عنه فرمائي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ډيري غزاګاني كړي دي په غزوه بدر فتح مكه كي شريك وو مونږ په دي دواړو غزاګانو كي روژې نه وي نيولي.

امام ترمذي وائي دعمر رضي الله عنه حديث مونږ صرف په دي يو سند پيژنو، په دي باب كي دابوسعيد خدري نه هم روايت وارد دي. دابوسعيد خدري نه مروي دي هغوئ درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل كوي چي رسول الله خلقو ته په يو غزا كي دافطار حكم اوكړو. دعمر بن خطاب نه هم داسي مروي دي البته هغوئ دروژې نه نيولو رخصت ددشمن سره دمخامخ كيدو په صورت كي وركړي دي او بعضي اهل علم هم ددي قائل دي.

**************

## ٢١ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي الإِفْطَارِ لِلْحُبْلَى وَالمُرْضِعِ

### په روژو كي دحبلي او مرضعي دپاره درخصت بيان

٧١٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَيُوسُفُ بْنُ عِيسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا أَبُو هِلَالٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَوَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَجُلٌ مِنْ بَنِي عَبْدِ اللهِ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: أَغَارَتْ عَلَيْنَا خَيْلُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدْتُهُ يَتَغَدَّى، فَقَالَ: "ادْنُ فَكُلْ" فَقُلْتُ: إِنِّي صَائِمٌ، فَقَالَ: "ادْنُ أُحَدِّثْكَ عَنِ الصَّوْمِ أَوِ الصِّيَامِ، إِنَّ اللهَ تَعَالَى وَضَعَ عَنِ المُسَافِرِ الصَّوْمَ وَشَطْرَ الصَّلَاةِ، وَعَنِ الحَامِلِ أَوِ المُرْضِعِ الصَّوْمَ أَوِ الصِّيَامَ". وَاللهِ لَقَدْ قَالَهُمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِلْتَيْهِمَا أَوْ إِحْدَاهُمَا، فَيَا لَهْفَ نَفْسِي أَنْ لَا أَكُونَ طَعِمْتُ مِنْ طَعَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي أُمَيَّةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ الكَعْبِيِّ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَلَا نَعْرِفُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ هَذَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ هَذَا الحَدِيثِ الوَاحِدِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: الحَامِلُ وَالمُرْضِعُ تُفْطِرَانِ وَتَقْضِيَانِ وَتُطْعِمَانِ.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٤٥٠)

وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ، وَمَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: تُفْطِرَانِ وَتُطْعِمَانِ وَلَا قَضَاءَ عَلَيْهِمَا وَإِنْ شَاءَتَا قَضَتَا وَلَا إِطْعَامَ عَلَيْهِمَا، وَبِهِ يَقُولُ إِسْحَاق. (1)

**ترجمه** : انس بن مالك رضي الله عنه چي د بني عبد الله بن كعب نه يو كس دى وائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم اس سوارانو په مونږ باندي دشپې حمله اوكړه نو زه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راغلم او ما هغه په داسي حالت كي اوليدو چي دماسپخين ډوډئ يي خوړله ماته يي اوفرمائيل راشه اوخوره ما عرض اوكړو زما خو روژه ده راته يي اوفرمائيل رانږدي شه زه به درته دروژي باره كي اووايم الله تعالي مسافر ته روژه او نيم لمونځ معاف كړي دي حامله او مرضعه ښځو ته يي هم روژه معاف كړي ده، په الله قسم نبي كريم صلي الله عليه وسلم حامله او مرضعه دواړه الفاظ اوونيل او كه په دي دواړو كي يي يو اوونيلو خو زه پخپل خان ډير افسوس كوم چي ما په دغه وخت كي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره خوراك ولي اونكړو امام ترمذي وائي دانس بن مالك كعبي حديث حسن دي او دانس بن مالك ددينه علاوه كوم بل حديث مونږ ته نه دي معلوم كوم چي هغوئ د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي وي، او په دي باب كي داميه نه هم روايت وارد دي او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي، بعضي اهل علم وائي چي حامله او مرضعه ښځه به روژي نه نيسي روسته به قضاء راوړي فقيرانو او مسكينانو ته به خوراك وركوي، سفيان ثوري ، مالك، شافعي، احمد هم ددي قائل دي دبعضو قول دي چي حامله او مرضعه به روژي نه نيسي بلكه فقيرانو او مسكينانو له به خوراك وركوي او په دوئ باندي قضاء نشته او كه چري دوئ قضاء راوړل غواړي نو بيا به په دوئ باندي فقيران او مسكينانو ته خوراك وركول واجب نه وي اسحاق بن راهويه هم ددي قول قائل دي.

**تشريح** : كه حامله او مرضعه افطار وكړي نو ددي دپاره څه حكم دى ايا وروسته به د عذر ختميدو نه پس ددي كفاره ادا كوي او كه قضا به راوړي . په دي سلسله كي د فقهاؤ دوه مذاهب دي:

(۱) احناف علماء وايي كه چري حاملي ښځي يا پئ وركونكي ښځي ته كه د روژي په وجه د خپلوخانونو خطره وى، يا دخپلو بچو ويره وى، يعنى حاملي ته د خيټي د بچى ويره وي، او پئ وركونكي ښځي ته د پئ څكونكى بچى ويره وى نودا دواړه دي افطار اوكړى، او

---

1 ـ ابي داود في الصيام ۴۳ (۲۴۰۸) . سنن النسائي في الصيام ۵۱ (۲۲۷۶) ، و ۶۲ (۲۳۱۷) . ابن ماجه في الصيام ۱۲ (۱۶۶۷) .
(تحفة الأشراف: ۱۷۳۲) . مسند احمد (۴ في ۳۴۷) ، و (۵ في ۲۹)

وروسته دې ددې روژو قضاء راوړي.خوپه دوی به کفاره واجب نه وی.د افطار اجازت خود حرج لرې کولو دپاره ورکړې شوې دي اوكفاره ځکه واجب نه ده چې ددې دواړو افطار کول د عذر په وجه دی.اود عذر په وجه افطار کول جنایت نه دي نو هرکله چې افطار جنایت نشو نو ددې په وجه به کفاره هم واجب نه وی،لیکن زمونږ په نزدبه په دې دواړو باندې فدیه هم واجب نه وی.

(۲) امام شافعی (رحمه الله) فرمائی،که حامله یا مرضعه د خپل بچې ضائع کیدلو په وجه روژه افطار کړی نو په دوی به د قضاء سره فدیه هم واجب وی.

(۱) امام شافعی (رحمه الله) دا په شیخ فانی باندې قیاس کوی.یعنی لکه څنګه چې په شیخ فانی باندې فدیه واجب وی،دغه شان په دوی به هم فدیه واجب وی،

(۲) صاحب د عنایه د امام شافعی (رحمه الله) د طرفه یو دلیل دا بیان کړې دې چې د حامله او مرضعه د روژو په افطارکولو کي پخپله ددوی هم فائده ده،اوددوی د بچو هم فائده ده نو ددوی ذاتی فائدې په لحاظ خو په دوی قضاء واجب کړې شوې ده،او ددوی د بچو د فائدې په لحاظ سره فدیه واجب کړې شوې ده،

زمونږ دلیل دادې چې د شیخ فانی په حق کي فدیه د نص نه خلاف قیاس ثابت ده،په دې وجه به په دې باندې د بل څه صورت قیاس کول درست نه دی،اود بچې په وجه د حامله یا مرضعه افطار کول د شیخ فانی په معنیٰ کي هم نه دی ځکه چې شیخ فانی د روژو د وجوب نه پس عاجز شوې دي اوپه بچې د سره وجوب نشته نو هرکله چې د بچې په وجه افطار کول د شیخ فانی په معنیٰ کي نه دی نود شیخ فانی حکم به د حاملې او مرضعې په حق کي دلالۃ هم ثابت نه وی.(العنایه شرح هدایه)

***************

## ۲۲ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّوْمِ عَنِ الْمَيِّتِ

### دمړي دطرفه دروژو نیولو بیان

۷۱۶ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنْ الأَعْمَشِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، وَمُسْلِمٍ البَطِينِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَعَطَاءٍ، وَمُجَاهِدٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: إِنَّ أُخْتِي مَاتَتْ وَعَلَيْهَا صَوْمُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ، قَالَ: «أَرَأَيْتِ

لَوْ كَانَ عَلَى أُخْتِكِ دَيْنٌ أَكُنْتِ تَقْضِينَهُ ؟ " قَالَتْ: نَعَمْ. قَالَ: " فَحَقُّ اللَّهِ أَحَقُّ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ بُرَيْدَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَائِشَةَ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي يوه ښځه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضره شوه او عرض يي اوكړو زما خور مړه شوي ده او په هغي باندي مسلسل دوه مياشتي روژي وي تاسو راته اووايئ چي زه څه اوكړم رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا راته اووايه كه چري ستا په خور دچا قرض وي نو ايا دا به تا اداء كولو؟ هغي اووئيل هو، ما به اداء كولو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دالله تعالي حق خو ددينه هم ډير زيات لوي دي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د بريده، ابن عمر، عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**تشريح** : وارث دمړي دطرفه نيابتي روژي نيولي شي او كنه په دي باره كي دفقهاو دوه اقوال دي.

(۱) دامام احمد په نزد وارث دمړي دطرفه صرف دنذر روژي نيولي شي.

(۲) او دائمه ثلاثه په نزد وارث دمړي دطرفه نه دنذر روژي نيولي نشي اونه دنذر نه علاوه نوري روژي ځكه چي په عبادات بدنيه كي نيابت جائز نه دي (تحفة الالمعي).

****************

۷۱۷_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنِ الأَعْمَشِ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا، يَقُولُ: جَوَّدَ أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ هَذَا الحَدِيثَ، عَنِ الأَعْمَشِ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَقَدْ رَوَى غَيْرُ أَبِي خَالِدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ مِثْلَ رِوَايَةِ أَبِي خَالِدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى أَبُو مُعَاوِيَةَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُسْلِمٍ البَطِينِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ

---

[1] ـ صحيح البخاري في الصوم ۴۲ (۱۹۵۳) ، صحيح مسلم في الصيام ۲۷ (۱۱۴۸) . . و ابي داود في الأيمان ۲۶ (۳۳۱۰) . .

(تحفة الأشراف : ۵۶۱۲ و۵۹۶۱ و ۶۴۲۲)

يَذْكُرُوا فِيهِ سَلَمَةَ بْنَ كُهَيْلٍ، وَلَا عَنْ عَطَاءٍ، وَلَا عَنْ مُجَاهِدٍ، وَاسْمُ أَبِي خَالِدٍ سُلَيْمَانُ بْنُ حَيَّانَ. ([1])

**ترجمه** : په دي سند هم داعمش حديث هم معني روايت مروي دي
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه اوريدلي دي چي دا حديث ابوخالد احمر داعمش نه په بهتر سند نقل كړي دي، دابو خالد الاخمر نه علاوه نورو محدثينو هم داعمش نه دابو خالد د حديث هم معني روايت نقل كړي دي، ابو معاويه او نورو محدثينو دا حديث په سند د الاعمش عن مسلم البطين عن سعيد بن جبير عن ابن عباس عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او په دي سند كي دوی د سلمه بن كهيل ذكر نه دي كړي او نه يي په دي كي دعطاء او مجاهد واسطي ذكر كړي دي او دابوخالد نوم سليمان بن حيان دي.

***************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِي الْكَفَّارَةِ فِي الصَّوْمِ

### دمړي نه د قضا شوو روژو دكفاري بيان

٧١٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْثَرُ بْنُ الْقَاسِمِ، عَنْ أَشْعَثَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامُ شَهْرٍ فَلْيُطْعَمْ عَنْهُ مَكَانَ كُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَالصَّحِيحُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ مَوْقُوفٌ قَوْلُهُ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي هَذَا الْبَابِ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ. يُصَامُ عَنِ الْمَيِّتِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، قَالَا: إِذَا كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ نَذْرُ صِيَامٍ يَصُومُ عَنْهُ، وَإِذَا كَانَ عَلَيْهِ قَضَاءُ رَمَضَانَ أَطْعَمَ عَنْهُ، وقَالَ مَالِكٌ، وَسُفْيَانُ، وَالشَّافِعِيُّ: لَا يَصُومُ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ، قَالَ: وَأَشْعَثُ هُوَ ابْنُ سَوَّارٍ، وَمُحَمَّدٌ هُوَ عِنْدِي ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى. ([2])

[1] _ صحيح البخاري في الصوم ٤٢ (١٩٥٣) . صحيح مسلم في الصيام ٢٧ (١١٤٨) . . و ابي داود في الأيمان ٢٦ (٣٣١٠) . .

(تحفة الأشراف : ٥٦١٢ و٥٩٦١ و٦٣٢٢)

[2] _ سنن ابن ماجه في الصيام ٥٠ (١٧٥٧) (تحفة الأشراف : ٨٤٢٣)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي په داسي حالت كي مړ شي چي په هغه باندي ديوي مياشتي روژي باقي وي نو دده دطرفه به دهري ورځي په بدل كي يو مسكين ته خوراك وركولي شي.
امام ترمذي وائي دابن عمر حديث مونږ ته صرف په دي يو سند مرفوع معلوم دي صحيح خبره داده چي دا دابن عمر قول دي اوپه هغوئ باندي موقوف دي، په دي باره كي داهل علمو اختلاف دي دبعضو قول دي چي دمړي دطرفه به روژي نيولي شي دا قول دامام احمد او اسحاق بن راهويه دي دوئ وائي كله چي په مړي دنذر روژي وي نو دهغه دطرفه به روژي نيولي كيږي او چي كله ورباندي درمضان قضاء واجب وي نو دهغه دطرفه به مسكينانو او فقيرانو ته خوراك وركولي شي، امام مالك، سفيان، او شافعي وائي چي هيڅوك دهيڅا دطرفه روژي نشي نيولي.

****************

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّائِمِ يَذْرَعُهُ الْقَيْءُ

### كله چي روژه دار پخپله قي اوكري

٧١٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ثَلَاثٌ لَا يُفْطِرْنَ: الصَّائِمَ، الْحِجَامَةُ، وَالْقَيْءُ، وَالِاحْتِلَامُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَقَدْ رَوَى عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ مُرْسَلًا، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، قَالَ: سَمِعْت أَبَا دَاوُدَ السِّجْزِيَّ، يَقُولُ: سَأَلْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، فَقَالَ: أَخُوهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ لَا بَأْسَ بِهِ، قَالَ: وسَمِعْت مُحَمَّدًا يَذْكُرُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمَدِينِيِّ، قَالَ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ ثِقَةٌ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ ضَعِيفٌ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَلَا أَرْوِي عَنْهُ شَيْئًا. (١)

١ _ سنن ابن ماجه في الصيام ٥٠ (١٦٥٤) (تحفة الأشراف : ٨٣٢٣)

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په دري ځيزونو دروژه دار روژه نه ماتيږي يو په ښکر لګولو، او دويم په قې راتللو، او دريم په احتلام کيدو

امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري حديث محفوظ نه دي، عبدالله بن زيد بن اسلم او عبدالعزيز بن محمد او بعضي نورو راويانو دا حديث دزيد بن اسلم نه مرسل نقل کړي دي او په دي روايت کي دوئ دابوسعيد خدري واسطه نه ده ذکر کړي، عبدالرحمن بن زيد بن اسلم په باب دحديث کي ضعيف ګڼلي کيږي، ما دابوداود سجزي نه اوريدلي دي وئيل يې چې ما داحمد بن حنبل نه عبدالرحمن بن زيد بن اسلم باره کي تپوس اوکړو نو هغه اووئيل دهغه په ورور عبدالله بن زيد بن اسلم کي څه قباحت نشته، او ما د محمد بن اسماعيل بخاري نه اوريدلي دي چې علي بن عبدالله المديني وئيلي دي چې عبدالله بن زيد بن اسلم ثقه ي او عبدالرحمن بن زيد بن اسلم ضعيف دي، امام بخاري وائي زه دده نه نقل دروايت نه کوم.

***************

## ٢٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنِ اسْتَقَاءَ عَمْدًا

## قصدا په روژه کي دقې کولو بيان

٧٢٠ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ فَلَيْسَ عَلَيْهِ قَضَاءٌ، وَمَنِ اسْتَقَاءَ عَمْدًا فَلْيَقْضِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، وَثَوْبَانَ، وَفَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ هِشَامٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عِيسَى بْنِ يُونُسَ، وقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا أُرَاهُ مَحْفُوظًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَا يَصِحُّ إِسْنَادُهُ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، وَثَوْبَانَ، وَفَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " قَاءَ فَأَفْطَرَ " وَإِنَّمَا مَعْنَى هَذَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ صَائِمًا مُتَطَوِّعًا، فَقَاءَ فَضَعُفَ فَأَفْطَرَ، لِذَلِكَ هَكَذَا رُوِيَ فِي بَعْضِ الْحَدِيثِ مُفَسَّرًا، وَالْعَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ عَلَى

**حَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ الصَّائِمَ إِذَا ذَرَعَهُ الْقَيْءُ فَلَا قَضَاءَ عَلَيْهِ، وَإِذَا اسْتَقَاءَ عَمْدًا فَلْيَقْضِ" وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ.** (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاله چي قي راشي په هغه دروژي قضاء لازم نه ده او څوك چي قصدا قي اوكړي ده لره دروژي قضاء راوړل پكار دي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن غريب دي موتږ ته دا صرف په سند دهشام عن ابن سيرين عن ابي هريره عن النبي صلي الله عليه وسلم باندي معلوم دي، او صرف دعيسي بن يونس په سند يي پيژنو، محمد بن اسماعيل بخاري وائي زه دا غير محفوظ نه ګنړم. دا حديث په نورو سندونو هم دابوهريره نه مروي دي او هغوئ درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي ليكن سند يي صحيح نه دي، په دي باب كي دابو الدرداء ، ثوبان، او فضاله بن عبيد رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دابو الدرداء ، ثوبان ، او فضاله بن عبيد نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم قي اوكړو او روژه يي ماته كړه، ددي مطلب دادي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دغه وخت كي نفلي روژه نيولي وه، قي كولو سره يي كمزوري محسوس كړه نو خكه يي ماته كړه، په بعضي رواياتو كي ددي تفسير داسي مروي دي، او داهل علمو عمل دابو هريره په حديث دي كوم چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي چي روژه دار ته كله قي راشي نو قضاء ورباندي لازم نه ده او چي كله قصدا قي اوكړي نو قضاء راوړل ورله پكاردي، سفيان ثوري، شافعي، احمد ، او اسحاق هم ددي قول قائلين دي.

**تشريح** : كه چري قئ پخپله اوشو نو روژه به فاسد نه وی،قئ كه قليل وی،اوكه كثير وی.

كوم كس چی قصداً قئ اوكړو،په هغه قضاء واجب ده،د ترمذی الفاظ دی چي "من ذرعه القئ وهو صائم فليس عليه القضاء ومن استقاء عمداً فليقض"

يعنی روژه دار له كه پخپله قئ راغلو نوپه ده باندې قضاء واجب نه ده،او كوم كس چی په قصد سره قئ اوكړو،هغه به قضاء راوړی.

صاحب د هدايه وائی چی هم په دې حكم كي په ډكه خوله قئ ، اود ډكي خولي نه كم دواړه برابردی، يعنی كه قئ بغير د اراده نه پخپله اوشو نوكه دا په ډكه خوله وی،اوكه د ډكي

---

1 ـ سنن ابی داود في الصيام ٣٢ (٢٣٨٠) . سنن ابن ماجه في الصيام ١٦ (١٦٧٦) . (تحفة الأشراف : ١٤٥٤٢) . مسند احمد (٢في ٤٩٨) . سنن الدارمی في الصوم ٢٥ (١٧٧٠)

خولې نه کم وی،په دواړو صورتونوکي به روژه فاسد نه وی ځکه چی حديث مطلق دي په دې کي د قليل اوکثير هيڅ تفصيل نشته.
که په ډکه خوله قئ په خپله راوتلو،او بيا په پخپله دننه واپس لاړلو نوبه دي کي دفقهاو دوه اقوال دي:
(۱) د امام ابويوسف په نزدروژه فاسد شوه.
(۲) اود امام محمد (رحمه الله) په نزدبه فاسد نه وی.
دروژي په فساد اوعدم فساد کي دري صورتونه:
اول: که قئ د ډکه خوله په مقدار په خپله اووتلو،بيا ئې داپه خپله اراده دننه واپس کړلو نو په اتفاق سره به روژه فاسد شی ځکه چی په دې صورت کي د خروج نه پس داخلول اومونډلې شو او په دې صورت کي افطار متحقق شو،اوهرکله چی د افطار صورت متحقق شو نو روژه به هم فاسد وی.
(۲) اوکه په خپله وتلې شوې قئ د ډکه خولې نه کم وی،او هغه بيا په خپله واپس شو نود امام ابويوسف او امام محمد (رحمه الله) دواړو په نزدبه روژه فاسد نه وی ځکه چی دا خونه شرعاً د خارجولو په حکم کې دي اونه د روژه دار څه اختياری فعل ددې په داخلولوکي دي
(۳) اوکه د ډکې خولې نه کم وتلې شوې قئ ئې په خپله اراده دننه واپس کړو نود امام ابويوسف رحمه الله په نزدبه روژه فاسد نه وی، ځکه چی خروج اونه مونډې شو،اود امام محمد (رحمه الله) په نزدبه فاسد وی ځکه چی قئ دننه داخلولوکي د روژه دار اختياری فعل اومونډلې شو. (فتح القدير)

***************

## ٢٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّائِمِ يَأْكُلُ أَوْ يَشْرَبُ نَاسِيًا

### په هيره خوړلو څښلو سره دروژې څه حکم دي

٧٢١ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْأَشَجُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ، عَنْ حَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ نَاسِيًا فَلَا يُفْطِرْ، فَإِنَّمَا هُوَ رِزْقٌ رَزَقَهُ اللَّهُ ".[1]

---

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٢٩٤)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي په روژه كي په هيره خوراك وكړو نو روژه دي جاري وساتي( يعني روژه يي ماته نه ده) او دا خو يو رزق وو چي الله تعالي ده ته نصيب كړو.

******************

٧٢٢ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ. حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ. عَنْ عَوْفٍ، عَنْ ابْنِ سِيرِينَ، وَخَلَّاسٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ أَوْ نَحْوَهُ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأُمِّ إِسْحَاقَ الغَنَوِيَّةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. وقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ: إِذَا أَكَلَ فِي رَمَضَانَ نَاسِيًا فَعَلَيْهِ القَضَاءُ، وَالقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ. (1)

**ترجمه** : په دي سند سره هم دابو هريره نه مروي دي او باقي حديث دسابقه روايت هم معني دي ، امام ترمذي وائي دابو هريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د ابوسعيد خدري، او ام اسحاق غنويه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او داكثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي، سفيان ثوري ، شافعي، احمد ، او اسحاق بن راهويه هم ددي قائل دي، مالك بن انس وائي كله چي څوك په رمضان كي په هيره خوراك اوكړي نو په هغه باندي دروژو قضاء لازم ده مگر اولني قول زيات صحيح دي.

**تشريح** : كه چري روژه دار په هيره خوراك ،ياڅكاك ،يا جماع اوكړى نو په دي كي فقها ؤ دوه مذاهب دي :

(١) د احنافو په نزد دده روژه نه ماتيږى.

(٢) او د امام مالك (رحمه الله) په قول روژه يي ماته شوه.امام مالك ددي دپاره قياسي استدلال كوي:

اود احنافو دلائل دادي:

"عن أبي هريره(رضي الله عنه) عن النبى صلي الله عليه وسلم قال من نسى وهو صائم فأكل او شرب فليتم صومه فإنما أطعمه الله وسقاه"

---

1 ـ صحيح البخارى في الأيمان والنذور ١٥ (٦٦٦٩) . سنن ابن ماجه في الصيام ١٥ (١٦٧٣) . و (تحفة الأشراف : ١٣٣٠٣ و١٣٣٤٠) ) وأخرجه سنن ابى داود في الصيام ٣٩ (٢٣٩٨)

که چا په هیره خوراك وکړو، حالانکه دې روژه داردي بیا ده اوخوړل. یا اوڅکل نو خپله روژه دې پوره کړی څکه چی الله تعالی په ده خوراك کړې دي اوڅکاك کړې دې.
(۲) دارقطنی کي دی:
"أن رجلاً سأل رسول الله صلي الله عليه وسلم فقال إني كنت صائماً فأكلت وشربت ناسياً. فقال أتم صومك فإن الله أطعمك وسقاك"
یعنی یوکس د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو. او وېې وئیل چی زما روژه وه، ماپه هیره خوراك څکاك اوکړو نو رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چی ته خپله روژه پوره کړه څکه چی الله تعالی په تا خوراك څکاك کړې دې.
(۳) "أن من أفطر في شهر رمضان ناسياً فلا قضاء عليه ولا كفارة" (الحديث)

*****************

## ۲۷_ باب مَا جَاءَ فِي الإِفْطَارِ مُتَعَمِّدًا

### قصدا دروژې خوړلو بیان

۷۲۳_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُطَوِّسِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَفْطَرَ يَوْمًا مِنْ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ رُخْصَةٍ وَلَا مَرَضٍ، لَمْ يَقْضِ عَنْهُ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهِ وَإِنْ صَامَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا، يَقُولُ: أَبُو الْمُطَوِّسِ اسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ الْمُطَوِّسِ، وَلَا أَعْرِفُ لَهُ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه**: دابوهریره رضي الله عنه بیان دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي چاچه بغیر دکوم شرعي رخصت نه او بغیر دکومي بیماري نه درمضان روژه اونه نیوله نو که دا کس پوره کال روژې اونیسي دده دا روژه به پوره نکړي اګر که دې ټول کال روژې هم اونیسي، امام ترمذي وائي دابوهریره حدیث مونږ صرف په همدې سند پیژنو، امام بخاري به فرمائیل د ابو المطوس نوم یزید بن مطوس دي او ددې روایت نه علاوه دده کوم بل سند ماته معلوم نه دی.

*****************

[1] _ سنن ابي داود في الصيام ۳۸ (۲۳۹۶، ۲۳۹۷). سنن ابن ماجه في الصيام ۱۵ (۱۶۷۲). مسند احمد (۲ في ۳۵۸، ۴۷۰). سنن الدارمي في الصوم ۱۸ (۱۷۵۶)

## ٢٨_ باب مَا جَاءَ فِي كَفَّارَةِ الْفِطْرِ فِي رَمَضَانَ

### درمضان دروژې خوړلو په صورت کې دکفارې بيان

٧٢٤_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، وَأَبُو عَمَّارٍ، وَالْمَعْنَى وَاحِدٌ وَاللَّفْظُ لَفْظُ أَبِي عَمَّارٍ، قَالَا: أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: أَتَاهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلَكْتُ، قَالَ: "وَمَا أَهْلَكَكَ؟" قَالَ: وَقَعْتُ عَلَى امْرَأَتِي فِي رَمَضَانَ، قَالَ: "هَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تُعْتِقَ رَقَبَةً؟" قَالَ: لَا، قَالَ: "فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تَصُومَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ؟" قَالَ: لَا، قَالَ: "فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تُطْعِمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا؟" قَالَ: لَا، قَالَ: "اجْلِسْ" فَجَلَسَ، فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ وَالْعَرَقُ الْمِكْتَلُ الضَّخْمُ، قَالَ: "تَصَدَّقْ بِهِ" فَقَالَ: مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا أَحَدٌ أَفْقَرَ مِنَّا، قَالَ: فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ أَنْيَابُهُ، قَالَ: "فَخُذْهُ فَأَطْعِمْهُ أَهْلَكَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي مَنْ أَفْطَرَ فِي رَمَضَانَ مُتَعَمِّدًا مِنْ جِمَاعٍ، وَأَمَّا مَنْ أَفْطَرَ مُتَعَمِّدًا مِنْ أَكْلٍ أَوْ شُرْبٍ، فَإِنَّ أَهْلَ الْعِلْمِ قَدِ اخْتَلَفُوا فِي ذَلِكَ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: عَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ، وَشَبَّهُوا الْأَكْلَ وَالشُّرْبَ بِالْجِمَاعِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: عَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ، لِأَنَّهُ إِنَّمَا ذُكِرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَفَّارَةُ فِي الْجِمَاعِ وَلَمْ تُذْكَرْ عَنْهُ فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ، وَقَالُوا: لَا يُشْبِهُ الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ الْجِمَاعَ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: وَقَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلرَّجُلِ الَّذِي أَفْطَرَ فَتَصَدَّقَ عَلَيْهِ خُذْهُ فَأَطْعِمْهُ أَهْلَكَ، يَحْتَمِلُ هَذَا مَعَانِيَ: يَحْتَمِلُ أَنْ تَكُونَ الْكَفَّارَةُ عَلَى مَنْ قَدَرَ عَلَيْهَا، وَهَذَا رَجُلٌ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْكَفَّارَةِ، فَلَمَّا أَعْطَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا وَمَلَكَهُ، فَقَالَ الرَّجُلُ: مَا أَحَدٌ أَفْقَرَ إِلَيْهِ مِنَّا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خُذْهُ

فَأَطْعِمْهُ أَهْلَكَ " لِأَنَّ الْكَفَّارَةَ إِنَّمَا تَكُونُ بَعْدَ الْفَضْلِ عَنْ قُوتِهِ. وَاخْتَارَ الشَّافِعِيُّ لِمَنْ كَانَ عَلَى مِثْلِ هَذَا الْحَالِ أَنْ يَأْكُلَهُ. وَتَكُونَ الْكَفَّارَةُ عَلَيْهِ دَيْنًا فَمَتَى مَا مَلَكَ يَوْمًا مَا كَفَّرَ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يو كس راغلو او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله زه هلاك شوم، رسول الله ورنه تپوس اوكړو څه څيز هلاك كړي؟ ويي فرمائيل په رمضان كي مي صحبت اوكړو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ايا ته يو غلام يا وينځه ازادولي شي؟ هغه اوونيل نه رسول الله تپوس اوكړو ايا مسلسل دوه مياشتي روژي نيولي شي؟ هغه اوونيل نه، بيا يي ورنه تپوس اوكړو ايا شپيته مسكينانو ته خوراك وركولي شي؟ هغه اوونيل نه، ورته يي اوفرمائيل كينه نو دي كيناستو په دي دوران كي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته دكجورو يوه لويه ټكرئ راوړلي شوه او دي كس ته يي اوفرمائيل دا واخله او صدقه يي كړه هغه عرض اوكړو په دي علاقه كي زما نه بل زيات محتاج نشته ، رسول الله صلي الله عليه وسلم دي وخت كي په خندا شو تردي چي مخامخ غابنونه يي ښكاره شول او ويي فرمائيل دا واخله او پخپل بال بچ يي اوخوروه.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عمر. عائشه. او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، داهل علمو په دي باره كي په همدي حديث باندي عمل دي، او څوك چي قصدا په خوړلو څكلو روژه ماته كړي دداسي كس باره كي داهل علمو اختلاف دي دبعضو قول دي په ده باندي دروژو قضاء او كفاره دواړه لازم دي او دوئ خوراك څښاك دجماع سره مشابه ګرځولي دي، دسفيان ثوري ، ابن مبارك او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي بعضي اهل علم وائي په ده باندي صرف دروژي قضاء لازم ده او كفاره ورباندي نشته او دا څكه درسول الله نه چي كومه كفاره مروي ده هغه دجماع متعلق ده او دخوړلو څكلو باره كي دهغوئ نه كفاره مروي نه ده دوئ وائي چي خوړل څكل دجماع سره مشابه نه دي دا قول دامام شافعي او امام احمد دي، امام شافعي ته دا قول هم منسوب دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم قول "حديث الباب" ديو څو خبرو احتمال لري يو احتمال دا هم دي چي كفاره به په هغه چا باندي وي څوك چي په دي باندي قادر وي او دا داسي كس وو چي په كفاره باندي قادر نه وو هر كله چي ورته رسول الله څه وركړل او دي دهغي مالك جوړ

[1] صحيح البخاري في الصوم ٣٠ (١٩٣٦) . صحيح مسلم في الصيام ١٤ (١١١١) . و ابي داود في الصيام ٣٧ (٢٣٩٠) . و ابن ماجه في الصيام ١٤ (١٦٧١) . (تحفة الأشراف : ١٢٢٧٥) . موطا امام مالك في الصيام ٩ (٢٨) . مسند احمد (٢ في ٢٢١) . سنن الدارمي في الصوم ١٩ (١٧٥٧)

شو نو دي وخت كي دي كس عرض اوكړو دي ځيز ته زمونږ نه زيات حاجت مند بل څوك نشته نو رسول الله اوفرمائيل دا واخله او پخپل بال بچ يې اوخوروه ځكه چې دروزانه خوراك نه چې كوم ځيز زياتي شي هغه به كفاره لاړميږي نو دچاچه داسي حال وي هغه دپاره امام شافعي همدا خبره خوښه كړي ده چي همدي دي دا اوخوري او كفاره به ورباندي فرض پرته وي هركله چي دي مالداره شي نو كفاره به اداء كوي.

***************

## ۲۹ـ باب مَا جَاءَ فِي السِّوَاكِ لِلصَّائِمِ

### روژه دار دپاره دمسواك وهلو بيان

۷۲٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ. عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ. عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَا أُحْصِي يَتَسَوَّكُ وَهُوَ صَائِمٌ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا يَرَوْنَ بِالسِّوَاكِ لِلصَّائِمِ بَأْسًا. إِلَّا أَنَّ بَعْضَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا السِّوَاكَ لِلصَّائِمِ بِالْعُودِ وَالرُّطَبِ. وَكَرِهُوا لَهُ السِّوَاكَ آخِرَ النَّهَارِ. وَلَمْ يَرَ الشَّافِعِيُّ بِالسِّوَاكِ بَأْسًا أَوَّلَ النَّهَارِ وَلَا آخِرَهُ. وَكَرِهَ أَحْمَدُ. وَإِسْحَاقُ السِّوَاكَ آخِرَ النَّهَارِ.[1]

**ترجمه** : دعامر بن ربيعه رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دروژي په حالت كي دومره ډير مسواك استعمالولو او ما به په دي باندي ليدلو چي زه يي شميرلي نشم.

امام ترمذي واني دعامر بن ربيعه حديث حسن دي، او په دي باب كي دعائشه رضي الله عنها نه هم روايت مروي دي، او په همدي حديث داهل علمو عمل دي اهل علم واني دروژه دار دمسواك په استعمال كي څه قباحت نشته البته بعضي علماؤ دروژه دار دپاره دتازه لرګي مسواك استعمال مكروه ګنړلي دي او دورځي په اخري حصه كي يي هم مسواك مكروه ګنړلي دي ليكن امام شافعي دورځي په شروع او اخري حصه كي بلكه په هره حصه كي په مسواك وهلو كي حرج نه ګنړي، امام احمد او اسحاق بن راهويه دورځي په اخري حصه كي مسواك وهل مكروه ګنړلي دي.

**تشريح** : **دروژه دار دپاره د مسواك حكم**

---

[1] ـ سنن ابي داود في الصيام ۲٦ (۲۳٦۳). (تحفة الأشراف: ٥٠۳۲)

په دي باره کي دفقهاو دوه مذاهب دي:
(١) د احنافو په نزدد روژه دار دپاره لوند او په اوبوکي خوشت شوې مسواك كول د صبا په وخت کي هم اود مابنام په وخت کي هم بغير د كراهته روا دي.
اود امام شافعی (رحمه الله) په نزد مابنام په وخت روژه دار دپاره مسواك كول مكروه دى.
(٢) د امام شافعی (رحمه الله) دليل حديث د طبرانی او دارقطنی دي:
"أنه(١) قال إذا صمتم فاستاكوا بالغداة ولا تستاكوا بالعشي فإن الصائم إذا يبست شفتاه كانت له نوراً يوم القيامة"
يعنی کله چی تاسو روژه اونيسئ نود صباپه وخت مسواك كوئ،اود مابنام په وخت مسواك مه کوئ ځکه چی کله د روژه دار شونډې اوچې شی نود قيامت په ورځ به دده دپاره يو نور وی،
دويم دليل دادې چی د روژه دار د خولې بدبوئی کومې ته چی په حديث کي د الله تعالی په نزد مشكو دخوشبوئی نه بهتر ونيلی شوی دی،په مسواك كولو سره ددې ختميدل لازميږی ، ددې د باقی ساتلو دپاره د مابنام په وخت د مسواك كولو نه منع شوې ده،اودا بوئی د شهيد د وينې سره مشابه دي لکه څنګه چی د شهيد وينه نشی لرې کولې،بلکه بغير د غسل نه د فن کولې شی،دغه شان به د روژه دار د خولې بدبوئی هم نشی ختمولې.
زمونږ دليل د ابن ماجه حديث دی:
"خير خلال الصائم السواك"يعنی د روژه دار ښه خصلت مسواك كول دی،په دې حديث کي نه د صبا او مابنام تفصيل شته،اونه د لوند او اوچ څه تفصيل شته،په دې وجه د روژې په حالت کي هرقسمه مسواك كول، او هر وخت كول روا دی.
دويم دليل : نبی کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی:
"لولا أن أشق على أمتي لأمرتهم بالسواك عند كل صلاة"يعنی که ما په خپل امت باندې مشکل او ګران نه محسوسولو نودوی ته به مې د هر مانځه په وخت کي د مسواك كولوحكم فرمائيلې وو.
داحديث اګرچی د مسواك په عدم وجوب باندې دلالت كوی، خود هرمانځه په وخت کي د مسواك مسنونيت هم ثابتيږی،او په هرمونځ کي عموم دي ماسپښين، ماذيګر. مابنام ټولوته شامل دي او په وخت کي هم عموم دي يعنی د روژې وختونو اود روژو نه بغير وختونو ټولو ته شامل دي په دې وجه ددې حديث نه د رمضان په موده کي د ماذيګر او مابنام په وخت کي هم مسواك كولو حكم ثابتيږی نو ثابته شوه چی د روژه دار دپاره د مابنام په وخت کي هم مسواك كولوکي هيڅ باك نشته.
دريم دليل د مسند احمد حديث دي رسول اکرم صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی:

."صلاة بسواك افضل عندالله تعالى من سبعين صلاة بغير سواك" يعنى مسواك كولوسره مونځ كول د الله تعالى په نزدبغير دمسواك د اويامونخونو نه افضل دي داحديث د روژه دار د ماذيگر په مونځ باندې هم صادق راځى،په شرط ددې چې ده په مسواك سره ادا كړې وى،ددې نه معلوميږى چې د روژه دار دپاره د مابنام په وخت مسواك كول بغير دكراهته روا دي.

څلورم :د ترمذى او ابوداؤد روايت دي:

"عن عبدالله بن عامر بن ربيعه عن أبيه قال رأيت رسول الله صلي الله عليه وسلم يستاك وهو صائم مالا أعده ولا أحصى"يعنى عبدالله د خپل پلار عامربن ربيعه نه روايت كوى چې ما رسول الله صلي الله عليه وسلم د روژې په حالت كې بې شميره ځل په مسواك كولو باندې ليدلې دې.

پنځم: "عن عبدالرحمن بن غنم قال سألت معاذ بن جبل أتسوك وأناصائم قال نعم قلت أى ألنهار أتسوك قال أى ألنهار شئت غدوة وعشية قلت أن التاس يكرهونه عشية ويقولون أن رسول الله صلي الله عليه وسلم قال لخلوف فم الصائم أطيب عندالله من ريح المسك فقال سبحان الله لقد أمرهم بالسواك وهو يعلم أنه لابد بقى الصائم لخلوف وإن إستاك وماكان بالذى يأمرهم أن ينتهوا أفواههم عمداً مافى ذالك من الخير شئ بل فيه شر إلا من إبتلى ببلاء لايجد منه بداً"

عبدالرحمٰن بن غنم فرمائى چې ماد معاذبن جبل(رضي الله عنه) نه تپوس اوكړو چې آيا زه د روژې په حالت كې مسواك كوم؟ معاذ(رضي الله عنه) اوفرمائيل،هو،ما اوونيل چې د ورځ په كوم وخت كې مسواك كوم؟ وې فرمائيل چې كوم وخت ستازړه غواړى،صبا او مابنام،ما اوونيل چې خلق خود زوال نه پس په روژه كې مسواك وهل مكروه گنړى،او وائى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دى چې د روژه دار د خولې بدبوئى د الله تعالى په نزد مشكو د خوشبوئى نه زياته محبوبه ده،وې فرمائيل، سبحان الله! نبى كريم صلي الله عليه وسلم خلقوته د مسواك كولو حكم فرمائيلې دي حالاتكه هغه ته معلومه وه چې د روژه دار په خوله كې خلوف(بدبوئى)ضرورى ده،اگرچې مسواك اوكړى، اونبى كريم صلي الله عليه وسلم داسې نه وو چې خلقو ته به ئې حكم فرمائيلو چې په قصد سره خپلې خولې بدبويه كړى،په دې كې خوهيڅ بهترى نشته،بلكه بدوالې دي علاوه ددې نه چې څوك په مصيبت كې مبتلاشى،اوخلاصې ترې نه بيامومى.ددې تفصيلى واقعې نه هم معلوميږى چې دروژې په حالت كې صبا او مابنام مسواك كول بغير د كراهته روا دى.

****************

## ٣٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْكُحْلِ لِلصَّائِمِ

### دروژه دار دپاره درانجو داستعمال بيان

٧٢٦_ حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى بْنُ وَاصِلٍ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَطِيَّةَ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاتِكَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: اشْتَكَتْ عَيْنِي، " أَفَأَكْتَحِلُ وَأَنَا صَائِمٌ؟ قَالَ: نَعَمْ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي رَافِعٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، وَلَا يَصِحُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَاب شَيْءٌ، وَأَبُو عَاتِكَةَ يُضَعَّفُ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْكُحْلِ لِلصَّائِمِ فَكَرِهَهُ بَعْضُهُمْ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَرَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي الْكُحْلِ لِلصَّائِمِ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. (١)

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه بيان دي يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او تپوس يي اوكړو زما ستركي خوږ شوي دي ايا زه رانجه استعمالولي شم او زما روژه ده رسول الله اوفرمائيل هو، جائز دي.

امام ترمذي وائي دانس دحديث سند قوي نه دي، او په دي باب كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په مروي څيزونو كي هيڅ يو صحيح څيز نشته، ابو عاتكه راوي ضعيف دي، په دي باب كي دابو رافع نه هم روايت مروي دي، دصائم په رانجو لګولو كي داهل علمو اختلاف دي بعضو مكروه ګڼړلي دي دسفيان ثوري او ابن مبارك او احمد او اسحاق هم دا قول دي او بعضو ورته اجازت وركړي دي او امام شافعي هم په دي باندي قول كړي دي.

*****************

## ٣١_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْقُبْلَةِ لِلصَّائِمِ

### دروژه دار دښكلولو شرعي حكم

٧٢٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَقُتَيْبَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يُقَبِّلُ فِي شَهْرِ الصَّوْمِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، وَحَفْصَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ

---

١ _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٢٢)

فِي الْقُبْلَةِ لِلصَّائِمِ، فَرَخَّصَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْقُبْلَةِ لِلشَّيْخِ، وَلَمْ يُرَخِّصُوا لِلشَّابِّ مَخَافَةَ أَنْ لَا يَسْلَمَ لَهُ صَوْمُهُ وَالْمُبَاشَرَةُ عِنْدَهُمْ أَشَدُّ. وَقَدْ قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: الْقُبْلَةُ تُنْقِصُ الأَجْرَ، وَلَا تُفْطِرُ الصَّائِمَ، وَرَأَوْا أَنَّ لِلصَّائِمِ إِذَا مَلَكَ نَفْسَهُ أَنْ يُقَبِّلَ، وَإِذَا لَمْ يَأْمَنْ عَلَى نَفْسِهِ تَرَكَ الْقُبْلَةَ لِيَسْلَمَ لَهُ صَوْمُهُ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ. ([1])

**ترجمه**: دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په رمضان كي ښكلول كول.

امام ترمذي وايي په دي باب كي د عمر فاروق، حفصه، ابي سعيد، ام سلمه، ابن عباس، انس او ابو هريره رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي، امام ترمذي وايي د عائشه حديث حسن صحيح دي، د صحابه كرامو اوددوئ نه پس په اهل علمو د روژه دار په ښكولو كي اختلاف دى، بعضي صحابه كرامو نه د بوډا دپاره ددي اجازت مروي دي، او د خوانانو دپاره اجازت نشته، ددي ويري په وجه چي د روژي حفاظت به ونكړى شي، او مباشرت ددوى په نزد سخت خطرناك دى، او بعضي علماء وايي چي مباشرت د روژي اجر كموي، او روژه نه ماتوي ، دوئ وايي چي كه روژه دار پخپل ځان باندي اختيار لري د روژي د حفاظت نو ښكول كولى شي، اوكه ځان په قابو كي نشي ساتلى نو ښكلول ورله جائز نه دي، اوداد سفيان ثوري او شافعي قول هم دى.

***************

## ٣٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي مُبَاشَرَةِ الصَّائِمِ

### د روژه دار دپاره دمباشرت كولو څه حكم دي؟

٧٢٨_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي مَيْسَرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَاشِرُنِي وَهُوَ صَائِمٌ، وَكَانَ أَمْلَكَكُمْ لِإِرْبِهِ". ([2])

---

[1] _ صحيح مسلم في الصيام ١٢ (١١١٠) . سنن ابي داود في الصيام ٣٣ (٢٣٨٣) . سنن ابن ماجه في الصيام ١٩ (١٦٨٣) .
(تحفة الأشراف: ١٧٤٢٢)

[2] _ تفرد به المؤلف وانظر ما بعده (تحفة الأشراف: ١٧٤١٨)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به ما سره مباشرت كولو او زما به روژه وه، اوهغه پخپل جنسي خواهش باندي ستاسو نه زيات كنټرول راوستونكى وو.

***************

٧٢٩ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُ وَيُبَاشِرُ وَهُوَ صَائِمٌ، وَكَانَ أَمْلَكَكُمْ لِإِرْبِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو مَيْسَرَةَ اسْمُهُ عَمْرُو بْنُ شُرَحْبِيلَ، وَمَعْنَى لِإِرْبِهِ لِنَفْسِهِ.[1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به ښكلول او مباشرت كولو او دهغه به روژه وه ، اوهغه پخپل جنسي خواهش باندي ستاسو نه زيات كنټرول راوستونكى وو.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى، او "لاربه" د لنفسه په معني دى.

***************

## ٣٣ـ بَاب مَا جَاءَ لاَ صِيَامَ لِمَنْ لَمْ يَعْزِمْ مِنَ اللَّيْلِ

### څوك چي دشپي نه دروژي نيت او نكړي نو دهغه روژه درسته نه ده

٧٣٠ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَفْصَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ لَمْ يُجْمِعِ الصِّيَامَ قَبْلَ الْفَجْرِ فَلاَ صِيَامَ لَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ حَفْصَةَ حَدِيثٌ لاَ نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلاَّ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَوْلُهُ وَهُوَ أَصَحُّ، وَهَكَذَا أَيْضًا رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنِ الزُّهْرِيِّ مَوْقُوفًا، وَلاَ نَعْلَمُ أَحَدًا رَفَعَهُ إِلاَّ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، وَإِنَّمَا مَعْنَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ لاَ صِيَامَ لِمَنْ لَمْ يُجْمِعِ الصِّيَامَ قَبْلَ طُلُوعِ الْفَجْرِ فِي رَمَضَانَ أَوْ فِي قَضَاءِ

---

[1] صحيح مسلم في الصيام ١٢ (١١٠٦) . سنن ابي داود في الصيام ٣٣ (٢٣٨٢) . (تحفة الأشراف : ١٥٩٥ و ١٧٣٠٤) واخرجه صحيح البخارى في الصوم ٢٣ (١٩٢٧) . و مسلم في الصيام . وسنن ابن ماجه في الصيام ١٩ (١٦٨٤) . و الدارمى في الصوم ٢١ (١٧٦٣)

رَمَضَانَ أَوْ فِي صِيَامِ نَذْرٍ، إِذَا لَمْ يَنْوِهِ مِنَ اللَّيْلِ لَمْ يُجْزِهِ، وَأَمَّا صِيَامُ التَّطَوُّعِ فَمُبَاحٌ لَهُ أَنْ يَنْوِيَهُ بَعْدَ مَا أَصْبَحَ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** : دام المؤمنين حفصه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچه دروژي نيت دسحر نه مخکي نه وي کړي نو هغه روژه اونه شوه.

امام ترمذي وائي دحفصه رضي الله عنها حديث مونږ صرف په همدي سند مرفوع پيژنو دارنګي دا روايت نافع هم نقل کړي دي او هغه دابن عمر نه نقل کړي دي او دا يي دابن عمر قول ګرځولي دي، او ددي موقوف کيدل زيات صحيح دي . او دا رنګي دا حديث دزهري نه هم موقوفا مروي دي او مونږ ته نه ده معلومه چي چا دا مرفوع ذکر کړي وي مګر علاوه ديحي بن ايوب نه، ددي معني داهل علمو په نزد صرف داده چي دده روژه نه کيږي، څوك چي په رمضان کي يا درمضان په قضاء کي يا دنذر په روژو کي نيت دطلوع فجرنه مخکي ونکړي او دشپي نه يي هم نيت نه وي کړي نو دده روژه معتبره نه ده البته په نفلي روژه کي دده دپاره دسبا کيدو نه پس هم دروژي نيت کول مباح دي همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق قول هم دي.

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي دشپي نه نيت کول ضروري دي او کنه په دي کي دفقهاو دوه مذاهب دي:

(۱) دامام ابو حنيفه په نزد دقضاء او نذر غير معين دپاره دشپي نه نيت کول واجب دي ځکه چي ددي وخت متعين نه دي پاتي شو فرض او نفل روژي دپاره دشپي نه نيت کول واجب نه دي بلکه دورځي دنيمي نه مخکي مخکي هم نيت کولي شي.

(۲) دامام مالك په نزد دهري روژي دپاره دشپي نه نيت کول ضروري دي فرض وي او که نفل وي اودامام شافعي او امام احمد په نزد هم دفرض او واجب روژو نيت دشپي نه کول ضروري دي البته دنفلي نيت دنصف النهار نه مخکي کولي شي

***************

## ۳٤_ باب مَا جَاءَ فِي إِفْطَارِ الصَّائِمِ الْمُتَطَوِّعِ

[1] . ابي داود في الصيام ۷۱ (۲۴۵۴)، و النسائي في الصيام ٦٨ (۲۳۳۳)، و ابن ماجه في الصيام ۲٦ (۱۷۰۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۰۲)، مسند احمد (٦ في ۲۸۷)، و الدارمي في الصوم ۱۰ (۱۷۴۰)

## د نفلي روژو د ماتولو بيان

۷۳۱_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنِ ابْنِ أُمِّ هَانِئٍ، عَنْ أُمِّ هَانِئٍ، قَالَتْ: كُنْتُ قَاعِدَةً عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُتِيَ بِشَرَابٍ فَشَرِبَ مِنْهُ، ثُمَّ نَاوَلَنِي فَشَرِبْتُ مِنْهُ، فَقُلْتُ: إِنِّي أَذْنَبْتُ فَاسْتَغْفِرْ لِي، فَقَالَ: "وَمَا ذَاكِ؟" قَالَتْ: كُنْتُ صَائِمَةً فَأَفْطَرْتُ، فَقَالَ: "أَمِنْ قَضَاءٍ كُنْتِ تَقْضِينَهُ". قَالَتْ: لَا، قَالَ: "فَلَا يَضُرُّكِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَعَائِشَةَ. (١)

**ترجمه** دام هاني رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خوا كي ناسته وم او په دي دوران كي هغوئ ته دڅكلو كوم څيز راوړلي شو او هغوئ ددينه اوڅكل او باقي يي ماته راكړل ما هم اوڅكل بيا ما عرض اوكړو چي ما خو دګناه كار اوكړو تاسو زما دپاره دمغفرت دعا اوغواړئ رسول الله تپوس اوكړو څه خبره ده ما اوونيل زما روژه وه او ماخو روژه ماته كړه رسول الله تپوس اوكړو ايا كومه قضاء روژه دي نيولي وه كومه چي تا مخكي قضاء كړي وه ما عرض اوكړو نه راته يي اوفرمائيل هيڅ خبره نشته او تا هيڅ دنقصان كار نه دي كړي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابوسعيد خدري او عائشه رضي الله عنها نه هم احاديث مروي دي.

***************

۷۳۲_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: كُنْتُ أَسْمَعُ سِمَاكَ بْنَ حَرْبٍ، يَقُولُ: أَحَدُ ابْنَيْ أُمِّ هَانِئٍ، حَدَّثَنِي فَلَقِيتُ أَنَا أَفْضَلَهُمَا، وكانت أم هانئ جدته، فَحَدَّثَنِي، عَنْ جَدَّتِهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا فَدَعَا بِشَرَابٍ فَشَرِبَ، ثُمَّ نَاوَلَهَا فَشَرِبَتْ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَمَا إِنِّي كُنْتُ صَائِمَةً، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الصَّائِمُ الْمُتَطَوِّعُ أَمِينُ نَفْسِهِ، إِنْ شَاءَ صَامَ وَإِنْ شَاءَ أَفْطَرَ". قَالَ شُعْبَةُ: فَقُلْتُ لَهُ: أَأَنْتَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْ أُمِّ هَانِئٍ، قَالَ: لَا، أَخْبَرَنِي أَبُو صَالِحٍ وَأَهْلُنَا، عَنْ أُمِّ هَانِئٍ. وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، فَقَالَ: عَنْ هَارُونَ بْنِ بِنْتِ أُمِّ هَانِئٍ، عَنْ أُمِّ هَانِئٍ، وَرِوَايَةُ شُعْبَةَ أَحْسَنُ، هَكَذَا حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، عَنْ أَبِي دَاوُدَ، فَقَالَ: أَمِينُ نَفْسِهِ، وحَدَّثَنَا غَيْرُ مَحْمُودٍ، عَنْ أَبِي دَاوُدَ، فَقَالَ: أَمِيرُ نَفْسِهِ أَوْ أَمِينُ نَفْسِهِ عَلَى الشَّكِّ، وَهَكَذَا رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ شُعْبَةَ أَمِينُ أَوْ أَمِيرُ نَفْسِهِ عَلَى الشَّكِّ. قَالَ:

١ _ تفرد به المؤلف (وأخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١٨٠١٥)

وَحَدِيثُ أُمِّ هَانِئٍ فِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ. وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الصَّائِمَ المُتَطَوِّعَ إِذَا أَفْطَرَ فَلَا قَضَاءَ عَلَيْهِ إِلَّا أَنْ يُحِبَّ أَنْ يَقْضِيَهُ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَالشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** : شعبه وائي دسماك بن حرب نه مي اوريدلي دي چي دام هاني په دوه خامنو كي يو ماته حديث بيان كړو نو زه په دوئ دواړو كي چي كوم يو ډير افضل وو دهغه سره ملاؤ شوم او ام هاني دده نيا وه هغه ماته دا بيان كړل چي دده نيا به فرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته تشريف راوړو او د څكلو كوم څيز يې راوغوښتلو اوهغه يې اوڅكلو او بيا يې هغه ماته راكړو او ماهم اوڅكلو بيا ام هاني تپوس اوكړو اي دالله رسوله زما خو روژه وه رسول الله اوفرمائيل نفلي روژي نيونكي دخپل نفس امين وي كه خوښه يې وي روژه دي اونيسي اوكه خوښه يې وي نه دي نيسي شعبه وائي ما دسماك نه تپوس اوكړو ايا تا دا دام هاني نه اوريدلي دي؟ هغه اوونيل نه ماته ابوصالح او زمونږ په كور والا كي چا خبر راكړي دي او هغوئ دام هاني نه اوريدلي دي، حماد بن سلمه هم دا حديث دسماك بن حرب نه نقل كړي دي او په دي كي دام هاني دلور خوي هارون نه روايت دي او هغه دام هاني نه روايت نقل كړي دي.

امام ترمذي وائي دشعبه روايت دټولو نه بهتر دي دا رنګي روايت مونږ ته محمود بن غيلان هم بيان كړي دي او محمود دابوداود نه روايت كړي دي دهغه په روايت كي "امين نفسه" لفظ دي البته دابوداود نه دمحمود نه علاوه نورو خلقو چي روايت نقل كړي دي هغوئ په دي كي د "امين نفسه" په ځاي باندي "امير نفسه او امين نفسه" په شك سره ذكر كړي دي او دا رنګي دشعبه نه په متعدد دو سندونو سره هم امين او امير لفظ په شك سره وارد دي، دام هاني دحديث په سند باندي محدثينو كلام كړي دي، دصحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي چي نفلي روژي والا كه خپله روژه ماته كړي نو هيڅ قسم قضاء ورباندي نه لازميږي مګر دا كه پخپله يې قضاء كول غواړي، همدا دسفيان ثوري، احمد، او اسحاق بن راهويه او شافعي قول هم دي.

**تشريح** : د نفلي روژي د قضا راوړلو او نه راوړلو باره كي د فقهاؤ دري اقوال دي:

(١) احناف وايي كه چري يوكس نفلى روژه شروع كره،بيا ئي دا فاسد كره نو په ده باندي ددي قضاء راوړل واجب دی.

[1] انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٨٠٠١)

(۲) او امام شافعي او امام احمد (رحمه الله) فرمائی چی په ده باندې مطلقاً قضاء واجب نه ده.

(۳) او امام مالك (رحمه الله) فرمائیلی دی،که فساد دځه عذر په وجه شوې دي نو قضاء به ورباندي لازم نه وی،اوکه بغير د عذره وی نوقضاء به ورباندي واجب وی.

زمونږ اود شوافعو په مینځ کي د اختلاف بنياد دا دي چی د روژه شروع کولو نه پس بغير د عذره افطار کول،زمونږ په نزد روا نه دی،اود شوافعو په نزد روا دی

نو هرکله چی زمونږ په نزدافطار مباح نه دي نودې به د افطار کولو په وجه د جنايت مرتكب ګرځولې شی،او په جنايت کونکی باندې قضاء واجب وی،په دې وجه نفلی روژه ماتولو په وجه به زمونږ په نزدقضاء واجب وی،اود شوافعو په نزدچونکه روا دی ځکه به افطار کول جنايت نه وی،اوچی جنايت نشو نو ددوی په نزدبه قضاء هم لازم نه وی.

امام شافعی (رحمه الله) نفل مونځ او نفلی روژه ماتولو باوجود په قضاء نه واجب کولو باندې ددې نه استدلال کوی چی نفلی روژه یا نفل مونځ چی هرکله شروع کړی.اوددې یوه حصه ئې ادا کړه نو ددې حصې په اداکولوكي داكس متبرع اود یونيك كار كونكې شو نود کومې باقی حصې سره چی ده تراوسه پورې تبرع نه ده کړې هغه به په ده باندې لازم نه وی،ګنی نود آيت، ما علي المحسنين من سبيل، خلاف به لازم شی،یعنی محسنين(تبرع كونكی)باندې د ګرفت (نيولو) هيڅ لاره نشته،بهرحال د نفلو باقی حصه چی کله په ده باندې لازم نشوه نوددې په پريخودلو باندې به قضاء هم واجب نه وی ځکه چی قضاء هم دهغه واجبيږی چی دهغې ادا لازم وی،اود کوم چی ادا ضروری نه وی،دهغی قضاء راوړل به هم لازم نه وی ،ددې مثال داسې دې لکه چی يوكس د صدقې په اراده سره دوه درهمه په جيب کي واچولې،بيا ده يو درهم صدقه ورکړه نود بلې صدقه كول به لازم نه وی ځکه که دې یوه هم صدقه نکړی نو په ده هيڅ لازم نه دی

(۲) د امام شافعی (رحمه الله) مستدل د ام هانی رضی الله عنها هغه حديث هم دي کوم چی ابوداؤد او ترمذی نقل کړې دي:

"أن النبي صلي الله عليه وسلم قال الصائم المتطوع أمير نفسه إن شاء صام وإن شاء أفطر"

يعنی نفلی روژه دار د خپل نفس حاکم دي که غواړی روژه دې اونيسی،اوکه غواړی افطار دې اوکړی. ددې حديث نه معلومه شوه چی نفلی روژه بغير د عذره ماتول روا دی.

او هرکله چی ماتول روا دی نو دده د طرفه هيڅ جنايت نشو،اوچی جنايت موجود نشو نو قضاء به هم واجب نه وی.

(۳) او په صحيح مسلم کي دی:

"عن عائشة رضی الله عنها قالت دخل علیٰ النبي صلي الله علیه وسلم یومًا فقال هل عندکم شئ فقلنا لا .قال فإني إذا صائم .ثمّ أتانا یومًا اخر.فقلنا یارسول الله صلي الله علیه وسلم أهدی لنا حیس. قال أرنیه فلقد أصبحت صائمًا فأکل"

عائشه رضی الله عنها فرمائی چی یوه ورځ زما خواله رسول الله صلي الله علیه وسلم تشریف راوړلو، او ویې فرمائیل چی تاسو سره څه شته؟ مونږ اوونیل نه.دوی صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چی بیا نو زه اوس په روژې سره یم.بیا دویمه ورځ نبی کریم صلي الله علیه وسلم مونږ له تشریف راوړلو،مونږ اووئیل،ایٔ د الله تعالی رسوله صلي الله علیه وسلم ! مونږ له د حیس حلوا په هدیه کي راغلې ده.نبی کریم صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل،بیا ده ماله ئې راوړئ،اوماخو د روژې په حالت کي صبا کړې وو.بیا نبی کریم صلي الله علیه وسلم اوخوړله،ددې حدیث نه هم معلومیږی چی د روژې پوره کول واجب نه دی،اود قضاء لزوم، د اتمام په وجوب باندې مرتب وی نوچی د صوم اتمام واجب نشو نوددې قضاء به هم لازم نه وی،

زمونږ دلیل دادې چی نفلی روژه شروع کړې شی،هغه عبادت اوعمل وي او اعمال د باطلیدلو نه بچ کول واجب دی لکه چی د الله تعالی ارشاد دې:

لا تبطلوا اعمالکم. او اعمال د باطلیدلونه بچ کول داسې کیدې شی چی دا پوره کړې شی،بهرحال د شروع کولو نه پس عمل پوره کول واجب دی،او هرکله چی عمل پوره کول واجب دی نود فساد په صورت کي به ددې قضاء راوړل هم واجب وی.

(۲) زمونږ د مذهب تائید ددې حدیث نه هم کیږی،کوم چی په نسائی،ترمذی او مؤطاامام مالك کي بیان شوې دې:

"عن عائشة رضی الله عنها أنها قالت أصبحت أنا وحفصة صائمتین متطوعتین فأهدی إلینا طعام فأفطرنا علیه فدخل علینا رسول الله صلي الله علیه وسلم فبدرتنی حفصة رضی الله عنها وکانت إبنة أبیها فسألته عن ذالك فقال اقضیا یومًا مکانه"

عائشه رضی الله عنها فرمائی چی زه اوحفصه رضی الله عنها په نفلی روژه کي وو چی مونږ له خوراك راغیٔ نو مونږه روژه ماته کړه نو مونږ له رسول الله صلي الله علیه وسلم تشریف راوړلو. حفصه رضی الله عنها زمانه مخکي شوه،اود رسول الله صلي الله علیه وسلم نه ئې ددې واقعی په باره کي تپوس اوکړو،نبی کریم صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چی ددې په ځاې یوه ورځ قضاء راوړئ،دا حدیث صفا دلالت کوی چی دنفلی روژې فاسد کولو په صورت کي ددې قضاء راوړل واجب دی،په دې حدیث کي د "وکانت إبنة أبیها" لفظ

د عائشه رضی الله عنها دي په دې لفظ کې د حفصه رضی الله عنها جرات او زړه ورتيا ذکر شوې ده، عائشه رضی الله عنها د حفصه رضی الله عنها د وړاندې کېدلو په وجه اوفرمائيل چې آخر دا دخپل پلار لور ده،مراد دادې چې حفصه رضی الله عنها د عمر(رضي الله عنه) لور ده،او عمر(رضي الله عنه) ډېر بهادر او زړه ور انسان وو نودده لور هم دغه شان زړه وره ده.

د امام شافعی (رحمه الله) د طرفه د پيش کړې د ام هانی رضی الله عنها د حديث جواب دادې چې په حديث کښې د افطار معنیٰ د روژې ماتولو نه ده،بلکه د روژه نه ساتلو ده،يعنی کوم کس چې د نفلی روژې اراده اوکړی،هغه د خپل خان پخپله حاکم وی،که غواړی روژه اونيسی،اوکه غواړی نونه ئې نيسی.

د امام شافعی (رحمه الله) د طرفه د پيش کړې د عائشه رضی الله عنها د حديث جواب دادې چې په حديث کې صرف دومره ذکر دی چې دحيس حلوا په راتلو باندې نبی کريم صلي الله عليه وسلم روژه ماته کړه،اود ضيافت د عذر په وجه روژه ماتول روا دی،ددې نه زياتی د قضاء وجوب ياد قضاء عدم وجوب ددې روايت نه نه ثابتيږی(اشرف الهدايه، العنايه).

***************

## ٣٥_ باب صِيَامِ الْمُتَطَوِّعِ بِغَيْرِ تَبْيِيتٍ

### دشپې نه د نيت کولو نه بغير د نفلي روژو نيولو بيان

٧٣٣_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ يَحْيَى، عَنْ عَمَّتِهِ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ، عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ، قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا. فَقَالَ: " هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ ". قَالَتْ: قُلْتُ: لاَ. قَالَ: " فَإِنِّي صَائِمٌ ".[1]

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي يوه ورځ نبي کريم صلي الله عليه وسلم ماته راغلو او تپوس يي وکړو ايا تا سره دخوراك دپاره څه شته؟ ما عرض اوکړو نه،نو ويي فرمائيل زه روژه دار يم.

***************

[1] _ مسلم في الصيام ٣٢ (١١٥٤)، و ابي داود في الصيام ٧٢ (٢٤٥٥)، و النسائي في الصيام ٦٧ (٢٣٢٢)، و ابن ماجه في الصيام ٢٦ (١٧٠١)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٧٢)، مسند احمد (٦ في ٢٠٧،٤٩)

٧٣٤_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ يَحْيَى، عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ، عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِينِي، فَيَقُولُ: "أَعِنْدَكِ غَدَاءٌ" فَأَقُولُ: لَا. فَيَقُولُ: "إِنِّي صَائِمٌ". قَالَتْ: فَأَتَانِي يَوْمًا. فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُ قَدْ أُهْدِيَتْ لَنَا هَدِيَّةٌ. قَالَ: "وَمَا هِيَ؟" قَالَتْ: قُلْتُ: حَيْسٌ. قَالَ: "أَمَا إِنِّي قَدْ أَصْبَحْتُ صَائِمًا" قَالَتْ: ثُمَّ أَكَلَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (١)

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي كله به رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته راتلو نو تپوس به يې كولو ايا تاسره خوراك شته ماچه به نه اوونيل نو هغوئ به اوفرمائيل "اني صائم" يوه ورځ يې زمونږ خواته تشريف راوړو نو ما عرض اوكړو اې دالله رسوله مونږ ته يوه هديه راليږلې شوي ده تپوس يې اوكړو څه دي ما عرض اوكړو "حيس" (حلوا) نو ويې فرمائيل زما دسحر نه روژه ده او بيا يې هغه اوخوړله ، امام ترمذي واني دا حديث حسن دي.

****************

## ٣٦_ باب مَا جَاءَ فِي إِيجَابِ الْقَضَاءِ عَلَيْهِ

### د نفلي روژې ماتولو په وجه په ماتونكي باندې قضاء لازم ده

٧٣٥_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ بُرْقَانَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كُنْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ صَائِمَتَيْنِ، فَعُرِضَ لَنَا طَعَامٌ اشْتَهَيْنَاهُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ، فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَدَرَتْنِي إِلَيْهِ حَفْصَةُ، وَكَانَتِ ابْنَةَ أَبِيهَا، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا كُنَّا صَائِمَتَيْنِ، فَعُرِضَ لَنَا طَعَامٌ اشْتَهَيْنَاهُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ، قَالَ: "اقْضِيَا يَوْمًا آخَرَ مَكَانَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى صَالِحُ بْنُ أَبِي الأَخْضَرِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبِي حَفْصَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ مِثْلَ هَذَا، وَرَوَاهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَمَعْمَرٌ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، وَزِيَادُ بْنُ سَعْدٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الْحُفَّاظِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ مُرْسَلًا، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ عُرْوَةَ، وَهَذَا أَصَحُّ لِأَنَّهُ رُوِيَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: سَأَلْتُ الزُّهْرِيَّ، قُلْتُ لَهُ: أَحَدَّثَكَ عُرْوَةُ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَ: لَمْ أَسْمَعْ مِنْ عُرْوَةَ فِي هَذَا شَيْئًا، وَلَكِنِّي سَمِعْتُ فِي خِلَافَةِ سُلَيْمَانَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ مِنْ نَاسٍ،

---

١ _ مسلم في الصيام ٣٢ (١١٥٤) ، و ابي داود في الصيام ٧٤ (٢٤٥٥) ، و النسائي في الصيام ٦٧ (٢٣٢٢) ، و ابن ماجه في الصيام ٢٦ (١٧٠١) ، (تحفة الأشراف : ١٧٨٧٤) ، مسند احمد (٦ في ٤٩، ٢٠٧)

عَنْ بَعْضِ مَنْ سَأَلَ عَائِشَةَ عَنْ هَذَا الحَدِيثِ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ ٩٤ عَلِيُّ بْنُ عِيسَى بْنِ يَزِيدَ البَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ فَذَكَرَ الحَدِيثَ. وَقَدْ ذَهَبَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ إِلَى هَذَا الحَدِيثِ، فَرَأَوْا عَلَيْهِ القَضَاءَ إِذَا أَفْطَرَ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. (١)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي زما او دحفصي دواړو روژه وه او مونږ ته دخوراك كوم څيز راوړلي شو چي زمونږ ورته رغبت پيدا شو نو مونږ ددينه خوراك اوكړو په دي دوران كي رسول الله صلي لله عليه وسلم راغلو نو حفصه ورته په حال وئيلو كي زما نه مخكي شوه څكه چي هغه خو دپلار لور وه تپوس يي اوكړو چي اي دالله رسوله زمونږ روژه وه او مونږ ته خوراك راوړلي شو چي زمونږ ورته خواهش پيدا شو نو مونږ اوخوړلو رسول الله اوفرمائيل تاسو دواړه په كومه بله ورځ ددي قضاء راوړئ.

امام ترمذي وائي صالح بن ابي اخضر او محمد بن ابي حفصه دا حديث په سند د زهري عن عروه عن عائشه نقل كړي دي او دسابقه روايت هم معني روايت يي بيان كړي دي او دا روايت مالك بن انس، معمرو، عبيدالله بن عمر، زياد بن سعد، او بعضي نورو حافظانو په سند د الزهري عن عائشه مرسل نقل كړي دي او دوئ په دي كي دعروه واسطه نه ده ذكر كړي او همدا زيات صحيح روايت دي ، څكه چي دابن جريرج نه مروي دي ما دزهري نه تپوس اوكړو ايا دا روايت تاسو ته عروه بيان كړي دي او عروه دعائشه نه نقل كړي دي ، هغوئ اووئيل ما په دي باره كي دعروه نه هيڅ نه دي اوريدلي ما دسليمان بن عبدالملك دخلافت په زمانه كي دبعضي داسي خلقو نه اوريدلي دي چاچه دداسي شخص نه روايت كړي دي چي دعائشه نه يي ددي حديث باره كي تپوس كړي دي په صحابه كرامو او اهل علموكي يو جماعت دي حديث طرف ته ميلان كړي دي ددوئ قول دي كه څوك نفلي روژه ماته كړي نو قضاء وربادي لازم ده امام مالك بن انس هم په دي باندي قول كړي دي.

**تشريح** : ددي مسئلي مدلل تحقيق په ما قبل باب كي تير شو.

****************

## ٣٧ـ بَاب مَا جَاءَ فِي وِصَالِ شَعْبَانَ بِرَمَضَانَ

**روژي نيولو سره شعبان په رمضان پوري دمتصل كولو بيان**

١ _ تفرد به المؤلف (وأخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ١٦٣١٩)

٧٣٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ إِلَّا شَعْبَانَ وَرَمَضَانَ". وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُمِّ سَلَمَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ أَيْضًا عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي شَهْرٍ أَكْثَرَ صِيَامًا مِنْهُ فِي شَعْبَانَ، كَانَ يَصُومُهُ إِلَّا قَلِيلًا بَلْ كَانَ يَصُومُهُ كُلَّهُ".(١)

**ترجمه** : دام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها فرماني چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم مسلسل په دوه مياشتو روژو نيولو نه دي ليدلي علاوه دشعبان او رمضان نه.

امام ترمذي وائي دام سلمه حديث حسن صحيح دي، په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها نه هم روايت مروي دي او دا حديث دابوسلمه نه په روايت دعائشه هم مروي دي دابوسلمه بيان دي چي ما نبي کريم صلي الله عليه وسلم لره دشعبان دمياشتي نه زيات په بله مياشت کي په روژه نيولو نه دي ليدلي دشعبان تولي روژي به يي نيولي مگر علاوه ديو څو روژو نه.

**تشريح** : ددي باب تشريح په سابقه ابوابو کي تيره شوي ده.

***************

٧٣٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ المُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ: فِي هَذَا الحَدِيثِ، قَالَ: هُوَ جَائِزٌ فِي كَلَامِ العَرَبِ إِذَا صَامَ أَكْثَرَ الشَّهْرِ أَنْ يُقَالَ صَامَ الشَّهْرَ كُلَّهُ، وَيُقَالُ: قَامَ فُلَانٌ لَيْلَهُ أَجْمَعَ وَلَعَلَّهُ تَعَشَّى وَاشْتَغَلَ بِبَعْضِ أَمْرِهِ، كَأَنَّ ابْنَ المُبَارَكِ قَدْ رَأَى كِلَا الحَدِيثَيْنِ مُتَّفِقَيْنِ، يَقُولُ: إِنَّمَا مَعْنَى هَذَا الحَدِيثِ أَنَّهُ كَانَ يَصُومُ أَكْثَرَ الشَّهْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى سَالِمٌ أَبُو النَّضْرِ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَ رِوَايَةِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو.(٢)

---

1 _ سنن النسائي في الصيام ٢٣ (٢١٧٧)، و٧٠ (٢٣٥٣)، سنن ابن ماجه في الصيام ٤ (١٦٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٣٢) (صحيح)، وأخرجه سنن ابي داود في الصيام ١١ (٢٣٣٦)، وسنن النسائي في الصيام ٧٠ (٢٣٥٥)، ومسند احمد (٦ في ٣١١)

2 تفرد المؤلف (تحفة الأشراف: ١٧٧٥٦) (حسن صحيح)، وأخرجه صحيح البخاري في الصوم ٥٢ (١٩٦٩)، وصحيح مسلم في الصيام ٣٤ (١١٥٦)، وسنن النسائي في الصيام ٢٣ (٢١٧٩، ٢١٨٠)، و٣٥ (٢١٨١٢١٨٧)، وسنن ابن ماجه في الصيام ٣٠ (١٧١٠)، والموطأ في الصيام ٢٢ (٥٦)، ومسند احمد (٦ في ٣٩، ٥٨، ٨٤، ١٠٧، ١٢٨، ١٤٣، ١٠٣، ١٦٥، ٢٣٣، ٢٤٢، ٢٤٩، ٢٦٨)

**ترجمه** : په دي سند سره دعائشه رضي الله عنها نه هم دسابقه حديث هم معني روايت مروي دي.

امام ترمذي وائي عبدالله بن مبارك دي حديث باره كي وائي په كلام دعربو كي دا جائز دي چي كله به يي دكومي مياشتي داكثري حصي روژه نيوله نو ونيل به يي چي پوره مياشت مو روژي اونيولي او لكه چي ونيلي شي فلاني پوره شپه مونځ كړي دي او حال دادي هغه به دمابنام خوراك هم كړي وي او په بعضي نورو كارونو كي به هم مشغول پاتي شوي وي ابن مبارك دواړه حديث ديو بل سره موافق گنړل په دي شان سره ددي حديث مفهوم دا شو چي رسول الله په اكثر شعبان كي روژي نيولي، سالم ابوالنضر او بعضي نورو راويانو په سند دابوسلمه عن عائشه دمحمد بن عمرو درروايت په شان روايت بيان كړي دي.

***************

## ٣٨_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّوْمِ فِي النِّصْفِ الثَّانِي مِنْ شَعْبَانَ لِحَالِ رَمَضَانَ

**درمضان په تعظيم كي دشعبان په نصف ثاني كي دروژي نيولو دكراهت بيان**

٧٣٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا بَقِيَ نِصْفٌ مِنْ شَعْبَانَ فَلَا تَصُومُوا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ عَلَى هَذَا اللَّفْظِ. وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يَكُونَ الرَّجُلُ مُفْطِرًا. فَإِذَا بَقِيَ مِنْ شَعْبَانَ شَيْءٌ أَخَذَ فِي الصَّوْمِ لِحَالِ شَهْرِ رَمَضَانَ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يُشْبِهُ قَوْلَهُمْ. حَيْثُ قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقَدَّمُوا شَهْرَ رَمَضَانَ بِصِيَامٍ إِلَّا أَنْ يُوَافِقَ ذَلِكَ صَوْمًا كَانَ يَصُومُهُ أَحَدُكُمْ" وَقَدْ دَلَّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ أَنَّمَا الْكَرَاهِيَةُ عَلَى مَنْ يَتَعَمَّدُ الصِّيَامَ لِحَالِ رَمَضَانَ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي نيم شعبان پاتی شي نو روژی مه نيسی.

---

1 _ سنن ابي داود في الصيام ١٢ (٢٣٣٧) . سنن الدارمي في الصوم ٣٤ (١٧٨٢) . (تحفة الأشراف : ١٤٠٥١) (صحيح) وأخرجه سنن ابن ماجه في الصيام ٥ (١٦٥١) . وسنن الدارمي في الصوم ٣٤ (١٧٨١)

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او دا حديث مونږ ته صرف په دي الفاظو او په همدي سند معلوم دي، او ددي حديث مفهوم دبعضي اهل علمو په نزد دادي كه يو سړي دمخكي نه روژي نه نيسي او بيا دشعبان ختميدو څه ورځي باقي پاتي شي او هغه درمضان په تعظيم كي روژي نيول شروع كړي (نو دا عمل مكروه دي)، دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي هغوئ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه هغه څه نقل كړي دي كوم چي ددي خلقو د قول سره مشابهت لري لكه چي ارشاد نبوي دي "درمضان دمياشتي په استقبال كي دمخكي نه روژي مه نيسي" مگر علاوه دهغه ورځو نه چي تاسو دمخكي نه په روژو نيولو كي معمولا راروان يئ او دغه ورځ هم ستاسو په معمول كي راشي، دا حديث په دي خبره دلالت كوي چي كراهت دهغه چا دپاره دي څوك چي قصدا درمضان په تعظيم كي دشعبان په اخر كي روژي نيسي.

**لغات** : بقي: بقي يبقي بقاء دسمع باب نه معني باقي پاتي كيدل اودضرب نه معني همیشه پاتي كيدل، نصف: معني نيم جمع يي انصاف راځي.

**تشريح** : اذا بقي نصف من شعبان فلا تصوموا. كله چي دشعبان نيمه مياشت باقي پاتي شي نو روژي مه نيسئ، دا ممانعت څكه دي چي دفرض روژو دپاره كمزوري پيدا نشي چي بيابه ورته درمضان روژي گراني شي.

ددي ممانعت وجه دامت سره داساني او شفقت معامله كول هم دي قاضي عياض وائي چي په پورتني روايت كي دممانعت تعلق دهغه كسانو سره دي څوك چي دروژي نيولو نه پس كمزوري شي ليكن كه څوك طاقت لري نو دهغوئ دپاره څه حرج نشته. مگر دا قول دجمهور امت د قول خلاف دی او راجح نه دی.

****************

## ٣٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي لَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ

**دشعبان دپنځلسمي شپي دفضيلت بيان**

٧٣٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: فَقَدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً، فَخَرَجْتُ فَإِذَا هُوَ بِالْبَقِيعِ، فَقَالَ: "أَكُنْتِ تَخَافِينَ أَنْ يَحِيفَ اللَّهُ عَلَيْكِ وَرَسُولُهُ؟" قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي ظَنَنْتُ أَنَّكَ أَتَيْتَ بَعْضَ نِسَائِكَ، فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يَنْزِلُ لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا، فَيَغْفِرُ لِأَكْثَرَ مِنْ عَدَدِ شَعْرِ غَنَمِ كَلْبٍ". وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ

عَائِشَةَ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ الْحَجَّاجِ. وَسَمِعْت مُحَمَّدًا يُضَعِّفُ هَذَا الْحَدِيثَ. وَقَالَ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ: لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عُرْوَةَ. وَالْحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ. لَمْ يَسْمَعْ مِنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. ([1])

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرماني چي ما يوه شپه رسول الله صلي الله عليه وسلم په كور كي غائب اوموندلو نو زه دهغه په تلاش كي بهر اووتم نو څه گورم چي رسول الله په بقيع قبرستان كي دي او وبي فرمائيل چي ايا ته ويريدلي چي الله او دهغه رسول به په تا باندي ظلم اوكړي؟ ما عرض اوكړو اي دالله رسوله زما خو دا خيال وو چي ته به خپلي بنځي خواته ورغلي يي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله تعالي دشعبان په پنځلسمه شپه اسمان ددنيا ته نزول كوي او دكلب قبيلي دچيلو دوړي نه دزيات تعداد خلقو ته مغفرت كوي.

امام ترمذي وائي دعائشه حديث مونږ ته صرف په همدي سند دحجاج په روايت معلوم دي او ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه ددي حديث تضعيف كول اوريدلي وو، همدا رنگي دعروه نه ديحي بن ابي كثير او د يحي بن ابي كثير دحجاج بن ارطات نه سماع ثابت نه ده. او په دي باب كي ابوبكر صديق رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

**تشريح** : علامه سيوطي دعطاء بن يسار قول نقل كړي دي چي كله دشعبان پنځلسمه شپه راشي نو ملك الموت ته يو فهرست وركولي شي او په دي كي دهغه كسانو نومونه دي څوك چي په دي كال كي وفات كيږي او دهغه ټولو كسانو نومونه پكي هم وي څوك چي په نكاح كانو او كورونو جوړولو وغيره ددنيا په كارونوكي مشغول وي، دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي تاسو خو خلق وينئ چي په بازارونو كي گرځي راگرځي خو نومونه به يي ددي كال په مړو كي ليكلي شوي وي.

په يو بل روايت كي دي چي دشعبان په پنځلسمه شپه ټولو مسلمانانو ته مغفرت كيږي ليكن علاوه دهغه خلقو نه څوك چي لنگ ياپرتوگ دگيټو نه اوږدساتي.

د رمضان د روژو فرضيت دهجرت په دويم كال د شعبان په مياشت كښې اوشو. يعنى د هجرت نه اتلس مياشتې پس د شعبان په مياشت كښې د قبلې د تحويل نه پس د رمضان روژې فرض شوى وي، اوددې نه وړاندې به رسول اكرم صلي الله عليه وسلم اوصحابه

[1] سنن ابن ماجه في الاقامة ١٩١ (١٣٨٩). (تحفة الأشراف: ١٧٣٥)

كرامو د عاشوري اود ايام بيض(د قمرى مياشتي ديارلسم،څوارلسم، پنخلسم تاريخ) روژې نيولې.(درمنثور)

***************

## ٤٠_ باب مَا جَاءَ فِي صَوْمِ الْمُحَرَّمِ

### دمحرم دروژې فضيلت

٧٤٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحِمْيَرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْضَلُ الصِّيَامِ بَعْدَ شَهْرِ رَمَضَانَ شَهْرُ اللَّهِ الْمُحَرَّمُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درمضان نه پس بهترينه روژه دالله دبزرگى مياشتى محرم (عاشورى) روژه ده.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي.

**لغات**: المحرم: دقمري كال اولنى مياشتي نوم دى.

**تشريح** : بعضي علماء وائي ددينه مراد دعاشوري دورځي روژه ده او دبعضي علماؤ په نزد مطلقا دمحرم په مياشت كي دروژې نيولو ته اشاره ده.

***************

٧٤١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: سَأَلَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: أَيُّ شَهْرٍ تَأْمُرُنِي أَنْ أَصُومَ بَعْدَ شَهْرِ رَمَضَانَ؟ قَالَ لَهُ: مَا سَمِعْتُ أَحَدًا يَسْأَلُ عَنْ هَذَا إِلَّا رَجُلًا سَمِعْتُهُ يَسْأَلُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا قَاعِدٌ عِنْدَهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّ شَهْرٍ تَأْمُرُنِي أَنْ أَصُومَ بَعْدَ شَهْرِ رَمَضَانَ؟ قَالَ: "إِنْ كُنْتَ صَائِمًا بَعْدَ شَهْرِ رَمَضَانَ فَصُمْ الْمُحَرَّمَ، فَإِنَّهُ شَهْرُ اللَّهِ، فِيهِ يَوْمٌ تَابَ فِيهِ عَلَى قَوْمٍ، وَيَتُوبُ فِيهِ عَلَى قَوْمٍ آخَرِينَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. ([2])

---

1 صحيح مسلم في الصيام ٣٨ (١١٦٣) . سنن ابي داود في الصيام ٥٥ (٢٤٢٩) . سنن النسائي في قيام الليل ٦ (١٦١٣) . سنن ابن ماجه في قيام الصيام ٤٣ (١٧٤٢) . (تحفة الأشراف : ١٢٢٩٢) . مسند احمد (٢ في ٣٠٣، ٣٤٢، ٣٤٤، ٥٣٥)

2 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠٢٩٥)

**ترجمه** : مروي دي چي دعلي رضي الله عنه نه يو کس تپوس اوکړو چي درمضان دمياشتي نه پس دکومي مياشتي په روژي نيولو تاسو ماته حکم کوئ؟ هغوئ ورته اوفرمائيل ما په دي سلسله کي ستا نه علاوه بل څوك په تپوس کولو نه دي ليدلي او ما په دي باره کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ديو سوال دجواب ورکولو په حال کي اوريدلي وو او زه ورسره خوا کي ناست وم چا تپوس اوکړو اي دالله رسوله تاسو ماته درمضان نه پس دکومي مياشتي په روژي نيولو حکم کوئ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که چري درمضان نه پس تاسو روژي نيسئ نو دمحرم روژي اونيسئ ځکه چي دا دالله تعالي مياشت ده او په دي کي يوه ورځ داسي ده په کومه کي چي الله تعالي په بعضي خلقو باندي رحمت کوي او په دي کي په نورو خلقو باندي هم رحمت کوي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي.

**تشريح** : په کوم قوم چي الله تعالي درحمت نظر کړي وو او دظالم دپنجو نه يې خلاص کړي وو هغوئ خو ښکاره معلوم دي چي بني اسرائيل دي مګر په لسم محرم الله تعالي فرعون او دهغه لښکر په سمندر کي تباه کړي وو او په کوم قوم چي به الله تعالي په اينده کي دکرم نظر کوي هغوئ په متعين طور معلوم نه دي.

***************

## ٤١_ باب مَا جَاءَ فِي صَوْمِ يَوْمِ الْجُمُعَةِ

## دجمعي په ورځ دروژي نيولو بيان

٧٤٢_ حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ دِينَارٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، وَطَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ، عَنْ شَيْبَانَ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ مِنْ غُرَّةِ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، وَقَلَّمَا كَانَ يُفْطِرُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدِ اسْتَحَبَّ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ صِيَامَ يَوْمِ الْجُمُعَةِ، وَإِنَّمَا يُكْرَهُ أَنْ يَصُومَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ لَا يَصُومُ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ. قَالَ: وَرَوَى شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمٍ هَذَا الْحَدِيثَ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (١)

---

1 _ سنن ابي داود في الصيام ٦٨ (٢٤٥٠) (تحفة الأشراف: ٩٢٠٦)

**ترجمه** : دابن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دهري مياشتي په شروع كي دري روژي نيولي او ډيز كم به داسي وو چي دجمعي په ورځ به يې روژه اونه نيوله..

امام ترمذي وائي دعبدالله بن مسعود حديث حسن غريب دي شعبه دا حديث دعاصم نه نقل كړي دي او مرفوع يې نه دي ذكر كړي، په دي باب كي دابن عمر او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، داهل علمو يو جماعت دجمعي په ورځ روژه نيول مستحب ګڼرلي دي. او مكروه صورت دادي چي يو بنده صرف دجمعي په ورځ روژه نيسي او نه يې ددينه مخكي نيسي او نه ددينه روسته.

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي صرف دجمعي په ورخ روژه نيول جائز دي او كنه؟ په دي باره كي دفقهاو دوه مذاهب دي.

(١) دامام ابو حنيفه په نزد صرف دجمعي دورځي روژه نيول بغير دكراهت نه جائز دي.

(٢) دامام شافعي او امام احمد په نزد صرف دجمعي په ورځ روژه نيول مكروه دي ددي سره به دجمعي نه مخكي يا دجمعي نه پس يوه بله ورځ يو ځاي كوي، او دجانبينو دلائل په مطولاتو دعلم فقه كي مذكور دي.

****************

## ٤٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ صَوْمِ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَحْدَهُ

### خصوصا دجمعي په ورځ دروژي نيولو دكراهت بيان

٧٤٣ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَصُومُ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِلَّا أَنْ يَصُومَ قَبْلَهُ أَوْ يَصُومَ بَعْدَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَجَابِرٍ، وَجُنَادَةَ الْأَزْدِيِّ، وَجُوَيْرِيَةَ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ يَكْرَهُونَ لِلرَّجُلِ أَنْ يَخْتَصَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِصِيَامٍ لَا يَصُومُ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. [1]

---

[1] ـ مسلم في الصيام ٢٢ (١١٤٤). سنن ابي داود في الصيام ٥٠ (٢٤٢٠). سنن ابن ماجه في الصيام ٣٧ (١٧٢٣). (تحفة الأشراف: ١٢٥٠٢) (صحيح) وأخرجه صحيح البخاري في الصيام ٦٣ (١٩٨٥). ومسند احمد (٢ في ٤٥٨)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عيله وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي دي هيڅوك دجمعي په ورځ روژه نه نيسي مګر دا چي دجمعي نه مخکي يا روسته ورځ هم روژه اونيسي؛
امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعلي، جابر، جناده ازدي، جويريه ، انس، او عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي هغوئ دا مکروه ګڼري چي دجمعي ورځ څوك روژي دپاره خاص کړي چي نه ددينه مخکي روژي نيسي او نه ددينه روسته دامام احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي.

**تشريح** : دجمعي په ورځ دروژي نيولو متعلق دعلماؤ متعدد اقوال دي ، ابراهيم نخعي ، زهري، او مجاهد وايي چي په هرحال کي مکروه دي.
دويم قول د امام مالك او ابوحنيفه وغيره دي چي بلکل مکروه ندي.
محمد بن سيرين وايي که ورځ مخکي او وروسته ورنه روژه ونيولي شي نوڅه باك نشته.
ابن حزم وايي چي صرف دجمعي په ورځ روژه نيول حرام دي طاوس ، امام ابو يوسف، او يوقول دامام شافعي دي.
خلورم : په تيره شوي هفته کي يا دهفتي نه پس يادراتلونکي هفتي دجمعي دورځي نه علاوه که په هره ورځ يي روژه اونيوله نو اوس به دجمعي دورځي روژه نيول مکروه نه وي.
صرف دجمعي په ورځ روژه نيول حرام دي که ددينه مخکي يا وروسته يوه روژه اونيسي نو بيا به جائز وي دا مذهب دابن حزم دي او علامه شامي دجمعي دورځي روژه نيول مستحب ليکلي دي چي په دي کي دعقيدي فساد نشته.
په دي حديث کي ددي خبري بيان دي چي د جمعي دورځي نه که څوك يوه ورځ مخکي يا وروسته ورسره روژه نيسي نو بيا خير دي ، امام نووي وايي چي دجمعي په ورز دعا، ذکر، نفل کول پکار دي نوځکه روژه نيول پکي منع کړي شوي دي، ددي دپاره چي عبادت په ښي طريقي سره وکړي شي، لکه چي دعرفي په ورځ دحاجيانو دپاره روژه نيول درست ندي.
بعضي علماء وايي چي دي ورځي ته يوم العيد ويلي شوي دي نو په دي وجه په دي ورځ کي روژه نيول ندي پکار.
بعضي فقهاء وايي چي دمبالغه في التعظيم دوجي نه پدي ورځ روژه نيول منع کړي شوي دي.
په پورتني حديث کي دجمي دورځي دروژي نيولو او اودجمعي دشپي دقيام کولو نه ممانعت راغلي دي اوپه دي کي داهم دي که چري په کوم خاص تاريخ روژه نيول دچا معمول وي او

هغه تاريخ اتفاقا دجمعې په ورځ راشي نو څه باك نشته اجازت شته دي يعني داسې اتفاقي تخصيص معاف دي.
صرف دجمعې په ورځ دروژې نيولو دممانعت يوه وجه داده چې خلق پدې كې دخاص ثواب عقيده لرې او داسې كول پكار ندي.

****************

## ٤٣_ باب مَا جَاءَ فِي صَوْمِ يَوْمِ السَّبْتِ

### دخالي په ورځ دروژې نيولو بيان

٧٤٤_ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حَبِيبٍ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ، عَنْ أُخْتِهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَصُومُوا يَوْمَ السَّبْتِ إِلَّا فِيمَا افْتَرَضَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ، فَإِنْ لَمْ يَجِدْ أَحَدُكُمْ إِلَّا لِحَاءَ عِنَبَةٍ أَوْ عُودَ شَجَرَةٍ فَلْيَمْضُغْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَمَعْنَى كَرَاهَتِهِ فِي هَذَا أَنْ يَخُصَّ الرَّجُلُ يَوْمَ السَّبْتِ بِصِيَامٍ لِأَنَّ الْيَهُودَ تُعَظِّمُ يَوْمَ السَّبْتِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن بسر دخور "بهيه صماء" رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي صرف دهفتې په ورځ روژه مه نيسئ مګر هغه روژه نيولې شئ كومه چې الله تعالي په تاسو فرض كړې وي او كه په تاسو كې څوك دانګور پوستكې او د ونو دلختې نه علاوه نور څه نه مومې نو همدا دې اوچوې (خو روژه دې نه نيسي).
امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي او ددې دمكروه كيدو مطلب دادې چې څوك دې دروژې نيولو دپاره دخالي ورځ نه خاص كوي ځكه چې يهوديانو به دهفتې دورځې تعظيم كولو.

****************

## ٤٤_ باب مَا جَاءَ فِي صَوْمِ يَوْمِ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ

### د دوشنبې او پنځ شنبې په ورځ دروژې نيولو بيان

٧٤٥_ حَدَّثَنَا أَبُو حَفْصٍ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ الْفَلَّاسُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عن رَبِيعَةَ الْجُرَشِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

[1] _ سنن ابي داود في الصيام ٥١٣ (٢٤٢١). سنن ابن ماجه في الصيام ٣٨ (١٧٢٦). سنن الدارمي في الصوم ٣٠ (١٧٩٠).
(تحفة الأشراف: ١٥٩١٠)

يَتَحَرَّى صَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ حَفْصَةَ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. ([1])

**ترجمه** : عائشى رضي الله عنها نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به د دوشنبي اوزيارت دروژى خاص خيال ساتلو .

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن دي او په دي سند غريب دي.

**لغات** : يتحري: تحري معني قصد كول، فضيلت وركول دباب تفعيل نه اود مجردو نه هم استعماليږي.

**تشريح** : يتحري صوم الاثنين والخميس: يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم به ددوشنبي او زيارت په ورځ دروژي نيولو ډير اهتمام كولو ددي وجه په يو بل حديث كي دا بيان شوي ده چي په دي ورځ زما پيدائش شوي دي او په همدي ورځ دين فطرت دنيا ته نازل شوي دي نو په دي وجه زه دشكر روژه نيسم او په يو بل روايت كي دا هم راغلي دي چي ددوشنبي او زيارت په ورځ دالله په دربار كي اعمال پيش كولي شي نو زما زړه غواړي چي زما دي پدغه ورځ روژه وي .

ددوشنبي په ورځ دروژي نيولو په باره كي دا ارشاد نبوي دي چي دا زما دولادت اوماته دنبوت ملاويدو ورځ ده په يو بل روايت كي ذا هم راغلي دي چي ددوشنبي او زيارت په ورځ دمخلوق اعمال دالله په دربار كي پيش كيږي نو په دي وجه زما زړه غواړي چي په دي ورځ روژه اونيسم.

*****************

٧٤٦ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، وَمُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ خَيْثَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ مِنَ الشَّهْرِ السَّبْتَ وَالْأَحَدَ وَالِاثْنَيْنِ وَمِنَ الشَّهْرِ الْآخَرِ الثُّلَاثَاءَ وَالْأَرْبِعَاءَ وَالْخَمِيسَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَرَوَى عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ سُفْيَانَ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. ([2])

---

[1] ـ النسائي في الصيام ٣٦ (٢١٨٩) . وابن ماجه في الصيام ٤٢ (١٧٣٩) . (تحفة الأشراف : ١٦٠٨١) (صحيح) وأخرجه سنن النسائي في الصيام السابق: ٢١٨٨، وباب ٧٠ (الأرقام: ٢٣٥٨، ٢٣٦٢٢٣٦٥) . ومسند احمد (٦ في ٨٠، ٨٩، ١٠٦)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٦٠٧٠)

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دګل اوزيارت په ورځ عملونه عالم بالاکي پيش کيږي پس زه دا غواړم چي خما عمل په داسی وخت کي پيش کړی شي چي خما روژه وي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي، او عبدالرحمن بن مهدي دا حديث دسفيان په روايت نقل کړي دي او مرفوع يي نه دي ذکر کړي.
**تشريح** : تعرض الاعمال يوم الاثنين والخميس: يعني ددوشنبي او زيارت په ورځ اعمال دالله تعالي په دربار کي پيش کيږي.
سوال: په يو بل روايت کي خو راغلي دي چي هر سحر او ماښام اعمال دالله په دربار کي پيش کيږي.
جواب: روزانه هر عمل په تفصيلي طور سره پيش کيږي او بيا ددوشنبي او زيارت په ورځ مجموعي اعمال په اجمالي طور پيش کيږي په سحر او ماښام والاحديث کي دا تاويل کوو چي فرشتي دسحر اعمال دشپي داعمالو نه مخکي او دشپي اعمال دسحر داعمالو نه مخکي بره اوړي ليکن دالله تعالي په وړاندي يي ددوشنبي او زيارت په ورځ پيش کوي

****************

٧٤٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تُعْرَضُ الأَعْمَالُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالخَمِيسِ، فَأُحِبُّ أَنْ يُعْرَضَ عَمَلِي وَأَنَا صَائِمٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي هَذَا البَابِ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دګل اوزيارت په ورځ عملونه عالم بالاکي پيش کيږي نو زه دا غواړم چي خما عمل په داسی وخت کي پيش کړی شي چي خما روژه وي.
امام ترمذي وائي دابو هريره حديث په دي باب کي حسن غريب دي.
**تشريح**: په مذکوره حديث کي دزيارت په ورځ دروژي نيولو فضيلت بيان شوي دي او وجه يي داده چي په دي ورځو کي دالله تعالي په وړاندي دمخلوق اعمال پيش کيږي

****************

[1] ـ ابن ماجه في الصيام ٢٢ (١٧٤٠). (تحفة الأشراف: ١٢٤٢٦). و: مسند احمد (٢ في ٣٢٩)

## ٤٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي صَوْمِ يَوْمِ الأَرْبِعَاءِ وَالْخَمِيسِ
## دچارشنبي اوزيارت په ورځ دروژې نيولو بيان

٧٤٨ـ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجَرِيرِيُّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَدُّوَيْه، قَالَا: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا هَارُونُ بْنُ سَلْمَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مُسْلِمٍ الْقُرَشِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَأَلْتُ أَوْ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صِيَامِ الدَّهْرِ، فَقَالَ: " إِنَّ لِأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، صُمْ رَمَضَانَ وَالَّذِي يَلِيهِ وَكُلَّ أَرْبِعَاءَ وَخَمِيسٍ، فَإِذَا أَنْتَ قَدْ صُمْتَ الدَّهْرَ وَأَفْطَرْتَ". وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مُسْلِمٍ الْقُرَشِيِّ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ هَارُونَ بْنِ سَلْمَانَ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ. (١)

**ترجمه** : دمسلم قرشي بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دصيام الدهر (دټول کال دروژو باره کي) تپوس اوکړو او يا ورته په دي باره کي تپوس اوکړي شو (دراوي شك دي) نو وېي فرمائيل په تاسو باندي ستاسو دکور والاهم حق دي درمضان روژي نيسئ او دهغي مياشتي روژي اونيسئ کومه چي په دي پسي متصل ده او دچارشنبي او زيارت روژي به نيسئ کله چي تاسو دا روژي اونيولي نو دا داسي ده لکه چي تاسو ټول کال روژي نيولي وي او افطار مونه وي کړي .

امام ترمذي وائي دمسلم قرشي رضي الله عنه حديث غريب دي، بعضي راوياتو دا حديث په روايت د هارون بن سليمان عن مسلم بن عبيدالله عن عبيدالله بن مسلم نقل کړي دي او په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها نه هم روايت وارد دي.

**تشريح** : د بخاري په روايت کي د مزيد نورو حقوقو د حقدارانو ذکر دی.

إِنَّ لِرَبِّكَ عَلَيْكَ حَقّاً ، وَإِنَّ لِنَفْسِكَ عَلَيْكَ حَقّاً ، وَلأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقّاً ، فَأَعْطِ كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ ، فَأَتَى النَّبِيَّ ﷺ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ : ((صَدَقَ سَلْمَانُ)) رواه البخاري .

يعني دستا درب په تا حق دی او ستادنفس په تا حق دی او ستادکور والاپه تا حق دی نوهر حقدار ته خپل حق اورسوه بيا ابوالدرداء رضي الله عنه د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو او دا ټول حال يی ورته اووئيلو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل سلمان رضي الله عنه رښتيا وئيلي دي (بخاري).

---

١ ابي داود في الصيام ٥٤ (٢٤٣٢) (تحفة الأشراف: ٩٨٣)

ولاهلك عليك حقا. يعني ستا دښځي هم په تاباندي حق دي، په يو روايت کي داسي دي چي ولضيفك عليك حقا. په بعضي رواياتو کي دا الفاظ راغلي دي فصم وافطر وصل وات اهلك.
"صدق سلمان" يعني سلمان رښتيا اوونيل او په يو بل روايت کي سلمان افقه منك الفاظ راغلي دي يعني سلمان ستانه زيات فقيه دي او په يو روايت کي داسي دي فقال رسول الله صلي الله عله وسلم مثل ماقال سلمان. دلته په محدث د فقيه فوقيت واضح او ثابت شو.

******************

## ٤٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ صَوْمِ عَرَفَةَ

## دعرفي په ورځ دروژي نيولو دفضيلت بيان

٧٤٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدٍ الزِّمَّانِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صِيَامُ يَوْمِ عَرَفَةَ إِنِّي أَحْتَسِبُ عَلَى اللَّهِ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ وَالسَّنَةَ الَّتِي بَعْدَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدِ اسْتَحَبَّ أَهْلُ الْعِلْمِ صِيَامَ يَوْمِ عَرَفَةَ إِلَّا بِعَرَفَةَ.[1]

**ترجمه** : دابوقتاده رضي الله عنه بيان دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زه دالله تعالي نه اميد لرم چي دعرفي دورځي روژه به ديو کال او ديو کال نه پس مودي ګناهونه محوه کوي.
امام ترمذي واني دابوقتاده رضي الله عنه حديث حسن دي ، او په دي باب کي دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي، اهل علمو دعرفي په ورځ روژه نيول مستحب ګڼلي دي مګر څوك چي په عرفات کي موجود وي دهغوي دپاره مستحب نه ده
**لغات** : يکفر ګناه متاوول ، معاف کول، او کفر په معني دانکار کولو اونه منلو دي.دمجردو او مزيدو دواړو نه استعماليږي.
**تشريح** : عرفه دذي الحجي نهم تاريخ ته ونيلي شي په دي ورځ حجاج کرام په عرفات کي وقوف کوي کوم چي دحج اهم رکن دي او ددينه بغير حج نه کيږي په دي ورځ حاجيانو ته دا

---

[1] مسلم في الصيام ٣٦ (١١٦٢) . و ابي داود في الصيام ٥٢ (٢٤٢٥) . و النسائي في الصيام ٤٣ (٢٣٨٣) . و ابن ماجه في الصيام ٣١ (١٧٣٠) . (التحفه: ١٢١١٧) . مسند احمد (٥ في ٢٩٧)

حکم دي چي دالله ډیر ذکر دي اوکړي او په دعا کي دي مشغول اوشي ددوئ دپاره روژه نیول درست نه دي لیکن غیر حاجیانو لره پکار دي چي ددي ورځي دروژي فضیلت ورنه فوت نشي او که په دي ورځ يي روژه اونیوله نو دټول کال ګناهونه به يي معاف شي او دراتلونکي کال هم او که دچا ګناهونه نه وي نو درجي به يي زياتي شي. (روضة)

***************

## ٤٧ـ بَاب كَرَاهِيَةِ صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ

## دعرفي په ورځ په عرفه کي دروژي نیولو دکراهت بیان

٧٥٠ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل ابْنُ عُلَيَّةَ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَفْطَرَ بِعَرَفَةَ، وَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ أُمُّ الْفَضْلِ بِلَبَنٍ فَشَرِبَ". وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأُمِّ الْفَضْلِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: حَجَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَصُمْهُ يَعْنِي يَوْمَ عَرَفَةَ، وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ فَلَمْ يَصُمْهُ، وَمَعَ عُمَرَ فَلَمْ يَصُمْهُ، وَمَعَ عُثْمَانَ فَلَمْ يَصُمْهُ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ الْإِفْطَارَ بِعَرَفَةَ لِيَتَقَوَّى بِهِ الرَّجُلُ عَلَى الدُّعَاءِ، وَقَدْ صَامَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ يَوْمَ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ. ([1])

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په عرفه کي افطار اوکړو او ام الفضل رضي الله عنها ورته شوده راوليږل او هغه يي اوڅکل.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابوهريره، ابن عمر، او ام الفضل رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي ما دنبي کريم صلي الله عليه وسلم سره حج اوکړو او هغه په دغه ورځ روژه اونه نيوله او دابوبکر رضي الله عنه سره مي هم حج کړي دي هغي هم په دي ورځ روژه اونه نيوله او دعمر رضي الله عنه سره مي هم حج وکړو او هغوئ هم په دي ورځ روژه اونه نيوله او دعثمان رضي الله عنه سره مي حج اوکړو نو هغوئ هم روژه نه وه نيولي، داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي. اهل علم په عرفات کي روژه نه نيول مستحب ګڼړي اګرکه په بنده کي د دعا غوښتلو زيات نه زيات طاقات موجود وي او ډيره دعا اوغوښتلي شي مګر بعضي اهل علمو دعرفي په ورځ په عرفات کي روژي نيولي دي

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (أوأخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٦٠٠٢)

*****************

٧٥١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ، عَنْ صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ، فَقَالَ: حَجَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَصُمْهُ، وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ فَلَمْ يَصُمْهُ، وَمَعَ عُمَرَ فَلَمْ يَصُمْهُ، وَمَعَ عُثْمَانَ فَلَمْ يَصُمْهُ، وَأَنَا لَا أَصُومُهُ وَلَا آمُرُ بِهِ وَلَا أَنْهَى عَنْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ أَيْضًا عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَجُلٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبُو نَجِيحٍ اسْمُهُ يَسَارٌ، وَقَدْ سَمِعَ مِنِ ابْنِ عُمَرَ. (١)

**ترجمه** : ابو نجيح يسار د خپل پلار نه روايت نقل كوي چي فرمائيل يي: دابن عمر رضي الله عنهما نه دعرفي په ورځ په عرفات كي دروژي نيولو باره كي تپوس اوكړي شو نو وېي فرمائيل ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره حج كړي دي او هغوئ په دي ورځ روژه نه وه نيولي. او دابوبكر رضي الله عنه سره مي هم حج كړي دي هغوي هم په دي ورځ روژه اونه نيوله او دعمر رضي الله عنه سره مي هم حج كړي دي او هغوئ هم په دي ورځ روژه اونه نيوله او دعثمان رضي الله عنه سره مي حج اوكړو نو هغوئ هم روژه نه وه نيولي،او زه هم به دي ورځ به عرفات كي روژه نه نيسم مګر زه نه په دي باندي حكم كوم او نه ددينه څوك منع كوم.

امام ترمذي واني دا حديث حسن دي، او دا حديث دابن ابي نجيح نه په سند د عن ابيه عن رجل عن ابن عمر هم مروي دي دابو نجيح نوم يسار دي او دابن عمر نه دهغوئ اوريدل ثابت دي.

*****************

## ٤٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْحَثِّ عَلَى صَوْمِ يَوْمِ عَاشُورَاءَ

### دعاشوري په ورځ روژي نيولو متعلق ترغيب

٧٥٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صِيَامُ يَوْمِ عَاشُورَاءَ إِنِّي أَحْتَسِبُ عَلَى اللَّهِ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ". وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدِ بْنِ صَيْفِيٍّ، وَسَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، وَهِنْدِ بْنِ أَسْمَاءَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَالرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَلَمَةَ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (وأخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٨٥٤١)

الْخُزَاعِيِّ، عَنْ عَمِّهِ وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ ذَكَرُوا، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّهُ حَثَّ عَلَى صِيَامِ يَوْمِ عَاشُورَاءَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: لَا نَعْلَمُ فِي شَيْءٍ مِنَ الرِّوَايَاتِ، أَنَّهُ قَالَ: "صِيَامُ يَوْمِ عَاشُورَاءَ كَفَّارَةُ سَنَةٍ" إِلَّا فِي حَدِيثِ أَبِي قَتَادَةَ، وَبِحَدِيثِ أَبِي قَتَادَةَ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. (1)

**ترجمه** : دابوقتاده بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اميد لرم چي دعاشوري دورځي روژه به ديو كال ګناهونه محوه كوي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعدي، محمد بن صيفي ، سلمه بن الاكوع ، هند بن اسماء، ابن عباس، ربيع بنت معوذ بن عفراء، عبدالرحمن بن سلمه خزاعي. چاچه دخپل تره نه روايت كړي دي او عبدالله بن زبير رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دعاشوري په ورځ دروژي نيولو ترغيب وركړي دي، دابوقتاده دحديث نه علاوه مونږ ته نه ده معلومه چي په كوم بل روايت كي وارد دي چي دعاشوري دورځي روژه ديو كال دګناهونو كفاره ده، دامام احمد او اسحاق قول هم دابو قتاده دحديث مطابق دي.

**تشريح** : په پورتني حديث كي دعاشوري په ورځ دروژي نيولو فضيلت بيان شوي دي چي په دي ورځ دروژه كيدو په سبب دتيركال ګناهونه معاف كيږي علماء وائي چي ددينه مراد صغيره ګناهونه دي دكبيره ګناه دپاره توبه ويستل او استغفار ضروري دي.

په يو بل روايت كي راغلي دي چي كله رسول الله دمكي نه مديني ته هجرت اوكړو نو يهوديان يي ددي ورځي په روژي نيولو اوليدل او تپوس يي ورنه اوكړو چي ددي ورځي څه خصوصيت دي چي تاسو پكي روژه نيسئ؟ هغوئ اووئيل دا يوه عظيم الشان ورځ ده په همدي ورځ زمونږ نبي موسي عليه السلام او دهغه قوم ته الله تعالي نجات وركړي وو او فرعون يي غرق كړي وو او موسي عليه السلام په طور دشكر په دي ورځ روژه نيولي وه نو په دي ورځ يي مونږ هم نيسو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي ستاسو په نسبت خو مونږ موسي عليه السلام ته زيات نزدي يو چنانچه رسول الله هم ددينه پس دعاشوري روژه نيوله او صحابه كرامو ته يي هم حكم اوكړو علماء وائي چي په ابتداء كي دعاشوري روژه واجب وه ليكن كله چي درمضان دروژو فرضيت راغي نو دعاشوري وجوب منسوخ شو

****************

1 مسلم في الصيام ٣٦ (١١٦٢) . و ابي داود في الصيام ٥٣ (٢٤٢٥)، و النسائي في الصيام ٤٢ (٢٣٨٣) . و ابن ماجه في الصيام ٣١ (١٧٣٠) . (التحفه: ١٢١١٧) . مسند احمد (٥ في ٢٩٧)

## ٤٩ـ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي تَرْكِ صَوْمِ يَوْمِ عَاشُورَاءَ

### دعاشورې په ورځ دروژې نه نيولو درخصت بيان

٧٥٣ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ عَاشُورَاءُ يَوْمًا تَصُومُهُ قُرَيْشٌ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُهُ، فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ صَامَهُ، وَأَمَرَ النَّاسَ بِصِيَامِهِ فَلَمَّا افْتُرِضَ رَمَضَانُ كَانَ رَمَضَانُ هُوَ الْفَرِيضَةُ وَتَرَكَ عَاشُورَاءَ، فَمَنْ شَاءَ صَامَهُ وَمَنْ شَاءَ تَرَكَهُ". وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَقَيْسِ بْنِ سَعْدٍ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَمُعَاوِيَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالْعَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ عَلَى حَدِيثِ عَائِشَةَ، وَهُوَ حَدِيثٌ صَحِيحٌ لَا يَرَوْنَ صِيَامَ يَوْمِ عَاشُورَاءَ وَاجِبًا إِلَّا مَنْ رَغِبَ فِي صِيَامِهِ لِمَا ذُكِرَ فِيهِ مِنَ الْفَضْلِ. [1]

**ترجمه**: دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې عاشوره يوه داسې ورځ وه په کومه کې چې به قريشو دجاهليت په زمانه کې روژې نيولې او رسول الله صلى الله عليه وسلم به هم په دې ورځ روژه نيوله کله چې رسول الله مديني ته راغلو نو دعاشورې په ورځ يې روژه اونيوله او خلقو ته يې هم په دې ورځ دروژې نيولو حکم اوکړو مګر کله چې درمضان روژې فرض کړې شوې نو صرف درمضان فرضيت باقي پاتې شو او دعاشورې روژه يې پريخوده نو اوس که څوک غواړي ددې ورځې روژه دې اونيسي او که څوک غواړي نو نه دې نيسي.

امام ترمذي وائي دا حديث صحيح دې، په دې باب کې ابن مسعود، قيس بن سعد، جابر بن سمره، ابن عمر او معاويه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او داهل علمو عمل په حديث دعائشه دې او دا حديث صحيح دې علماء دعاشورې دورځې روژه واجب نه ګڼړي مګر دا چې ددې ورځې دروژې کوم فضيلت ذکر شو ددې په وجه ترغيب ضرور ورکوي.

**تشريح**: دروژې دفرضيت نه مخکې دعاشورې روژه فرض ده مګر کله چې دروژې فرضيت نازل شو نو دعاشورې فرضيت ختم شو او قاعده داده کوم حکم چې دتخفيف په طور منسوخ کيږي دمنسوخ کيدو نه پس دهغه استحباب باقي پاتې کيږي او دعاشورې دورځې فرضيت هم داسانۍ دپاره ختم کړې شوې دې ځکه چې په يو کال کې دوه ځله دروژو فرضيت مشکل دې هر کله چې دا روژې مستحب دې نو نه نيول يې هم جائز دي.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (التحفه: ١٧٠٨٨) وأخرجه صحيح البخاري في الصوم ٦٩ (٢٠٠٢). ومسلم في الصيام ١٩ (١١٢٥). وسنن ابي داود في الصيام ٦٣ (٢٤٤٢). والمؤطاء في الصيام ١١ (٣٣). وسنن الدارمي في الصوم ٣٦ (١٨٠٣)

*****************

## ٥٠- باب مَا جَاءَ عَاشُورَاءُ أَيُّ يَوْمٍ هُوَ

### دعاشوري ورځ كومه يوه ده

٧٥٤- حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَأَبُو كُرَيْبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ حَاجِبِ بْنِ عُمَرَ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ الْأَعْرَجِ، قَالَ: "انْتَهَيْتُ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ رِدَاءَهُ فِي زَمْزَمَ، فَقُلْتُ: أَخْبِرْنِي عَنْ يَوْمِ عَاشُورَاءَ أَيُّ يَوْمٍ هُوَ أَصُومُهُ، قَالَ: "إِذَا رَأَيْتَ هِلَالَ الْمُحَرَّمِ فَاعْدُدْ ثُمَّ أَصْبِحْ مِنَ التَّاسِعِ صَائِمًا". قَالَ: فَقُلْتُ: أَهَكَذَا كَانَ يَصُومُهُ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: "نَعَمْ". ([1])

**ترجمه**: دحكم بن اعرج بيان دي فرمائي چي زه ابن عباس رضي الله عنه ته ورغلم او هغه په زمزم كي پخپل څادر كي ډډه وهلي وه او ناست وو ما ورنه تپوس اوكړو چي دعاشوري باره كي راته معلومات راكړه چي داكومه يوه ورځ ده چي روژه پكي اونيسم هغوئ اوفرمائيل كله چي ته دمحرم مياشت اوګوري نو شمير دورځو شروع كړه او په نهم تاريخ روژه اونيسه او په داسي حال كي صباء كړه، ما ورنه تپوس اوكړو ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم به داسي كول؟ نو ويي فرمائيل هو، همداسي به يي كول.

*****************

٧٥٥- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: "أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَوْمِ عَاشُورَاءَ يَوْمُ الْعَاشِرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي يَوْمِ عَاشُورَاءَ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: يَوْمُ التَّاسِعِ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: يَوْمُ الْعَاشِرِ، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: صُومُوا التَّاسِعَ وَالْعَاشِرَ وَخَالِفُوا الْيَهُودَ، وَبِهَذَا الْحَدِيثِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. ([2])

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په لسم تاريخ دعاشوري دروژي نيولو حكم كولو.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او داهل علمو په مينځ كي دعاشوري په سلسله كي اختلاف دي بعضي وائي چي عاشوره نهمه ورځ ده او بعضي وائي چي لسمه ورځ

---

1 مسلم في الصيام ٢٠ (١١٣٣)، سنن ابي داود في الصيام ٦٥ (٢٤٤٦)، (التحفه: ٥٤١٣)، مسند احمد (١/ ٢٢٤)

2 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٣٩٥)

ده دابن عباس نه مروي دي چي په نهم او لسم روژه اونيسئ او ديهوديانو مخالفت اوكړئ، دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه قول ددي حديث سره مطابق دي.

***************

## ٥١_ باب مَا جَاءَ فِي صِيَامِ الْعَشْرِ

### دذي الحجي داولني عشري د روژو نيولو بيان

٧٥٦_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَائِمًا فِي الْعَشْرِ قَطُّ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَرَوَى الثَّوْرِيُّ وَغَيْرُهُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " لَمْ يُرَ صَائِمًا فِي الْعَشْرِ ". وَرَوَى أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَائِشَةَ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ الأَسْوَدِ، وَقَدِ اخْتَلَفُوا عَلَى مَنْصُورٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، وَرِوَايَةُ الأَعْمَشِ أَصَحُّ وَأَوْصَلُ إِسْنَادًا. قَالَ: وسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ أَبَانَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا، يَقُولُ: الأَعْمَشُ أَحْفَظُ لإِسْنَادِ إِبْرَاهِيمَ مِنْ مَنْصُورٍ. (١)

**ترجمه**: دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم دذي الحجي دلسو ورځو په روژو نيولو نه دي ليدلي.

امام ترمذي واني دا رنګي نورو راويانو دا حديث په سند د الاعمش عن ابراهيم عن الاسود عن عائشه نقل كړي دي، او ثوري وغيره دا حديث په سند د منصور عن ابراهيم النخعي داسي نقل كړي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم مي دذي الحجي په لسو ورځو كي په روژه نيولو نه دي ليدلي، او ابو الاحوص په سند دمنصور عن ابراهيم النخعي عن عائشه روايت نقل كړي دي او په دي كي دهغوئ داسود واسطه نه ده ذكر كړي او بعضي راويانو په دي حديث كي په منصور كي اختلاف كړي دي او داعمش روايت زيات صحيح دي او دسند په اعتبار دټولو نه زيات متصل دي، دوكيع قول دی، اعمش دابراهيم نخعي دسند دمنصور نه زيات زيات ساتونكي دي.

---

١ صحيح مسلم في الاعتكاف ٤ (١١٧٦) . سنن ابي داود في الصيام ٦٢ (٢٤٣٩) . سنن ابن ماجه في الصيام ٣٩ (١٧٢٩) .

(تحفة الأشراف: ١٥٩٣٩)

**تشريح** : دذي الحجې دعشرې روژې بالاجماع مستحب دي او دعشره ذي الحجه نه مراد دذي الحجې ابتدائي نهه ورځې دي، او لسمه ورځ معاف نه ده ځکه چې دا دلوي اختر ورځ ده او په دې کې روژې نيول حرام دي.

***************

## ٥٢ـ باب مَا جَاءَ فِي الْعَمَلِ فِي أَيَّامِ الْعَشْرِ

### دذي الحجې په اولنۍ عشره کې دعمل کولو دثواب بيان

٧٥٧ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُسْلِمٍ هُوَ الْبَطِينُ وَهُوَ ابْنُ أَبِي عِمْرَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا مِنْ أَيَّامٍ الْعَمَلُ الصَّالِحُ فِيهِنَّ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ مِنْ هَذِهِ الأَيَّامِ الْعَشْرِ " فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَلاَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " وَلاَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ إِلاَّ رَجُلٌ خَرَجَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَلَمْ يَرْجِعْ مِنْ ذَلِكَ بِشَيْءٍ ". وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله علي وسلم فرمائيلي دي دذي الحجې دلسو ورځو په مقابله کې نورې داسې ورځې نشته په کومو کې چې نيك عمل الله ته ددې ورځو نه زيات محبوب وي خلقو عرض اوکړو اې دالله رسوله دالله په لاره کې جهاد کول هم په دې ورځو کې دعمل کولو نه بهتر نه دي؟ رسول الله اوفرمائيل دالله په لاره کې جهاد کول هم په دې ورځو کې دعمل کولو نه بهتر نه دي، مګر علاوه دهغه مجاهد نه چاچه خپل مال او جان دالله په لاره کې حاضر کړې وي او وتلې وي او بيا دهيڅ څيز سره واپس نه وي راغلې.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن غريب دي ، او په دې باب کې دابن عمر، ابوهريره، عبدالله بن عمرو بن العاص او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : دروژې په اولنۍ عشره کې رسول الله صلي الله عليه وسلم روژې نيولې دي او که نه دي؟ په دې سلسله کې دروایاتو اختلاف دي مګر په دې ورځو کې چې کوم اعمال صالحه

---

[1] _ البخاری في العيدين ١١ (٩٦٩) . ابي داود في الصيام ٦١ (٢٤٣٨) . ابن ماجه في الصيام ٣٩ (١٧٢٧) . (تحفة الأشراف : ٥٦١٤) . مسند احمد (١/ ٢٢٤) . سنن الدارمي في الصوم ٥٢ (١٨١٤)

اوكړي شي په حديث كي دهغوی فضيلت راغلي دي او روژې نيول هم يو نيك كار دي پس دا فضلت به روژو ته هم شامل وي.

****************

٧٥٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ نَافِعٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مَسْعُودُ بْنُ وَاصِلٍ، عَنْ نَهَّاسِ بْنِ قَهْمٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَا مِنْ أَيَّامٍ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ أَنْ يُتَعَبَّدَ لَهُ فِيهَا مِنْ عَشْرِ ذِي الْحِجَّةِ، يَعْدِلُ صِيَامُ كُلِّ يَوْمٍ مِنْهَا بِصِيَامِ سَنَةٍ، وَقِيَامُ كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْهَا بِقِيَامِ لَيْلَةِ الْقَدْرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مَسْعُودِ بْنِ وَاصِلٍ، عَنِ النَّهَّاسِ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَلَمْ يَعْرِفْهُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ مِثْلَ هَذَا، وقَالَ: قَدْ رُوِيَ عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا شَيْءٌ مِنْ هَذَا، وَقَدْ تَكَلَّمَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ فِي نَهَّاسِ بْنِ قَهْمٍ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. ([1])

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: دذي الحجي دابتدائي دلسو ورځو نه زياته بله كومه ورځ داسي نشته چي دهغي ورځ عبادت الله ته زيات محبوب وي په دي ورځو كي دهري ورځي روژه د ټول كال دروژو سره برابر ده او په دي شپو كي دهري شپي قيام دليلة القدر دقيام سره برابر دي.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي ، دا حديث مونږ ته صرف دمسعود بن واث په سند معلوم دي او مسعود د نهاس نه روايت نقل كړي دي، ما دامام بخاري نه په دي باره كي تپوس اوكړو نو هغه ته دا حديث په كوم بل سند معلوم نه وو او ددي حديث په سندونو كي يو سند كوم چي قتاده نقل كړي دي دادي "قتادة عن سعيد بن المسيب عن النبي صلي الله عليه وسلم" او دا سند مرسل دي، يحي بن سعيد په نهاس بن قهم باندي دهغه دحافظي په اعتبار كلام كړي دي.

****************

## ٥٣ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي صِيَامِ سِتَّةِ أَيَّامٍ مِنْ شَوَّالٍ

### دشوال دشپږو ورځو دروژو دفضيلت بيان

[1] ـ سنن ابن ماجه في الصيام ٣٩ (١٧٢٨) (تحفة الأشراف: ١٣٠٩٨)

٧٥٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ. حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ صَامَ رَمَضَانَ ثُمَّ أَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ فَذَلِكَ صِيَامُ الدَّهْرِ ". وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَثَوْبَانَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي أَيُّوبَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدِ اسْتَحَبَّ قَوْمٌ صِيَامَ سِتَّةِ أَيَّامٍ مِنْ شَوَّالٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ. قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: هُوَ حَسَنٌ هُوَ مِثْلُ صِيَامِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ. قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: وَيُرْوَى فِي بَعْضِ الْحَدِيثِ وَيُلْحَقُ هَذَا الصِّيَامُ بِرَمَضَانَ. وَاخْتَارَ ابْنُ الْمُبَارَكِ أَنْ تَكُونَ سِتَّةَ أَيَّامٍ فِي أَوَّلِ الشَّهْرِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ: إِنْ صَامَ سِتَّةَ أَيَّامٍ مِنْ شَوَّالٍ مُتَفَرِّقًا فَهُوَ جَائِزٌ. قَالَ: وَقَدْ رَوَى عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، وَسَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا. وَرَوَى شُعْبَةُ، عَنْ وَرْقَاءَ بْنِ عُمَرَ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ هَذَا الْحَدِيثَ. وَسَعْدُ بْنُ سَعِيدٍ هُوَ أَخُو يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ فِي سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، قَالَ: أَخْبَرَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ إِسْرَائِيلَ أَبِي مُوسَى، عَنِ الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ، قَالَ: كَانَ إِذَا ذُكِرَ عِنْدَهُ صِيَامُ سِتَّةِ أَيَّامٍ مِنْ شَوَّالٍ، فَيَقُولُ: وَاللَّهِ لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ بِصِيَامِ هَذَا الشَّهْرِ عَنِ السَّنَةِ كُلِّهَا. (١)

**ترجمه** : دابوايوب انصاري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه درمضان روژی اونيولی او وروسی يی شپږ روژی شوال کي ونيولي داسی ده لکه چې ټول عمريی روژی اونيوی .

امام ترمذي وائي دابو ايوب حديث حسن صحيح دي او عبدالعزيز بن محمد دا حديث په سند د صفوان بن سليم بن سعدن عن عمر بن ثابت عن ابي ايوب عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي ، او شعبه دا حديث په سند د ورخاء بن عمر عن سعيد بن سعيد سره نقل کړي دي، سعد بن سعيد ديحي بن سعيد انصاري ورور دي، بعضي محدثينو دسعد بن سعيد دحافظي په اعتبار کلام کړي دي، دحسن بصري نه روايت دي کله به چې دهغه په وړاندي دشوال دشپږو روژو ذکر اوشو نو فرمائيل به يي په الله قسم الله تعالي ددي مياشتي په روژو تمام کال راضي وي، په دي باب کي دجابر ، ابوهريره، اوثوبان رضي الله عنهم نه هم احاديث

[1] .. مسلم في الصيام ٣٩ (١١٦٤) . سنن ابي داود في الصيام ٥٨ (٢٤٣٣) . سنن ابن ماجه في الصيام ٣٣ (١٧١٦) . سنن الدارمي في الصوم ٤٤ (١٧٩٥) . (تحفة الأشراف : ٣٤٨٢)

وارد دي ، او يو جماعت داهل علمو ددي حديث په رنړا کي دشوال شپږ روژي مستحب ګڼرلي دي.

**لغات** : الدهر معني اوږده زمانه دعصر مترادف دي جمع يي دهور راځي.

**تشريح** : درمضان نه پس دشوال په مياشت کي شپږ روژي نيول دتمام کال دروژو نيولو ثواب لري او دامستحب دي لکه چي نووي ويلي دي، د اشرف علي تهانوي قول دي چي چي د ديرش روژی درمضان اونيسي اوشپږ دشوال شپږ ديرش شوی اودهری نيکئ ثواب الله تعالي يو په لس ورکوي نو د دری سوه شپيتو روژو ثواب شو اودکال دومره ورځی وي نو دکال دروژو هومره ثواب يي اوشو او چي هر کال داسی کوي، نو دټول عمر دروژو ثواب شو ددی مطلب دانه دی چي که چا دټول کال روژی اونيوی نو دهغه به ددی نه زيات ثواب نه کيږي دهري نيکئ ثواب يو په لس دی دهغه خو به دلسو کالو هومره ثواب کيږي.علامه عبد الوهاب شعراني وايي دامام ابو حنيفه او شافعي او احمد په نزد دشوال شپږ روژي مستحب دي ليکن دامام مالك په نزد مستحب نه دي.علامه ظفر احمد عثماني دا عنوان قائم کړي دي استحباب صيام ستة من شوال: يعني باب دي په بيان دشوال دشپږو روژو کښي.

علامه ابن نجيم وائي چي دشوال شپږ روژي دامام ابو حنيفه په نزد جائز دي برابره خبره ده چي مسلسل وي او که غير مسلسل وي همدارنګي فتوي د دارالعلوم ديوبند او نورو فتاوو هم ده، دمزيد تحقيق دپاره بذل المجهود، او جز المسالك ، فتح الملهم ، مرقات شرح مشكاة وغيره اوګوری.

***************

## ٥٤_ باب مَا جَاءَ فِي صَوْمِ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ

٧٦٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ أَبِي الرَّبِيعِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "عَهِدَ إِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلاَثَةً: أَنْ لاَ أَنَامَ إِلاَّ عَلَى وِتْرٍ، وَصَوْمَ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ، وَأَنْ أُصَلِّيَ الضُّحَى".([1])

---

[1] _ أخرجه البخاري في التهجد ٣٣ (١١٧٨)، والصيام ٦٠ (١٩٨١)، ومسلم في المسافرين ١٣ (٧٢١)، والنسائي في قيام الليل ٢٨ (١٦٧٨)، والصيام ٨٠ (٢٣٦٨)، و٨١ (٢٤٠٣)، (تحفة ١٣٦١٢)، وحم (٢/٢٢٩، ٢٣٣، ٢٥٤، ٢٥٨، ٢٦٠، ٢٦٥، ٢٧١، ٢٧٧، ٣٢٩)، سنن الدارمي في الصلاة ١٥١ (١٤٩٥)، والصوم ٣٨ (١٧٨٦)

**ترجمه**: ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم ددري څيزونو باره کي وصيت کړی دی اول دا وده کيدو نه مخکي وتر کولو. هره مياشت کي د دري روژو نيولو (يعني ديارلسم، څوارلسم، پنځلسم، ايام بيض چي ورته ونيلی شي) اودڅاښت دوه رکعته هميشه کولو.

**لغات**: النوم: معني خوب، دنائم جمع ده يا اسم جمع ده، دړجل نوم او نوام نه ډير خوبي سړي مراد وي، نام ينام نوما ونياما معني پرکالي، اوده کيدل، مړ کيدل.

**تشريح**: الوتر قبل النوم: يعني دپريوتو نه مخکي وتر کول: ابوهريره رضي الله عنه ته دشپي په اول کي دوترو کولو حکم ځکه شوي دي چي هغه به دشپي دناوخته پوري احاديث يادول ددي په وجه به هغه ته دشپي پاڅيدل مشکل وو نو دا حکم ورته په دي وجه اوشو چي چرته ورنه پاتي نشي.

بصيام ثلاثة ايام من كل شهر: په هره مياشت کي دري ورځي روژي نيول دا د دري ورځو روژي کومي روژي دي؟ دبعضي علماؤ په نزد دايام بيض يعني ديارلسم څوارلسم پنځلم تاريخ روژي دي، ليکن بعضي وائي يوه په ابتدائي تاريخونو کي او دويمه په درمياني کي او دريمه په اخري تاريخونو کي ليکن دمحقيقينو رائي داده چي دا حکم مطلق دي هرچاته دا اختيار حاصل دي چي په پوره مياشت کي کله هم اوغواړي نو دري روژي دي اونيسي.

وركعتي الضحي: دڅاخت دوه رکعاتونه دساخت مونځ کم ازکم دوه رکعاته دي او زيات نه زيات دولس رکعاته دي دلته يي ادني درجه بيان شوي ده.

*****************

٧٦١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ بَسَّامٍ يُحَدِّثُ، عَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا ذَرٍّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ إِذَا صُمْتَ مِنَ الشَّهْرِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، فَصُمْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ وَأَرْبَعَ عَشْرَةَ وَخَمْسَ عَشْرَةَ". وَفِي البَاب عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَقُرَّةَ بْنِ إِيَاسٍ الْمُزَنِيِّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي عَقْرَبٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، وَقَتَادَةَ بْنِ مِلْحَانَ، وَعُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ، وَجَرِيرٍ.

**قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ فِي بَعْضِ الْحَدِيثِ أَنَّ مَنْ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ كَانَ كَمَنْ صَامَ الدَّهْرَ.** [1]

**ترجمه** : دموسي بن طلحه بيان دي چي دابوذر رضي الله عنه نه مي اوريدلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اي ابو ذر كله چي ته دمياشتى درى روژى نيسى نو ديارلسم څوارلسم پنځلسم نيسه.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابوقتاده او عبدالله بن عمرو او قرة بن اياس المزني او عبدالله بن مسعود او ابي عقرب او ابن عباس او عائشه او قتاده بن ملحان او عثمان بن ابي العاص او جرير رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

امام ترمذي وائي دابوذرحديث حسن دي او دبعضي محدثينو نه مروي دي هرچاچه په مياشت كي دري روژي اونيولي دا داسي ده لكه ټول عمر چي روژي نيولي وي.

**تشريح** : په پورتني حديث كي د ديارلسم او څوارلسم او پنځلسم تاريخونو روژو نيولو بيان دي.

## دمياشت په كمو ورځو كي روژي نيول پكار دي

په هره مياشت كي د دري روژو نيولو باره كي چي څومره احاديث وارد دي دا ټول جمع كړي شي نو دولس صورتونه ورنه جوړيږي.

(۱) په غير معين طور سره په ټوله مياشت كي چي كله اوغواړي دري روژي نيول.

(۲) دمياشت په ابتداء كي دري روژي نيول.

(۳) دمياشتي په هره هفته او اتوار او دوشنبي په ورځ روژه نيول.

(۴) په مياشت كي په كوم يو سه شنبه او چارشنبه او زيارت روژه نيول.

(۵) په ايام بيض كي روژي نيول.

(۶) دمياشتي په كوم يو دوشنبي او سه شنبه او چارشنبه روژه نيول.

(۷) دمياشتي په كوم زيارت جمعه او هفته كي روژي نيول.

(۸) اولني روژه په دوشنبه نيول او بيا دوه روژي په زيارتونو كي نيول.

(۹) اولني روژه دمياشت په شروع كي دزيارت په ورځ او دوه روژي ددوشنبي په ورځ.

(۱۰) ددوشنبي او زيارت او هفتي روژه نيول.

---

[1] ـ النسائي في الصيام ۸۳ (۲۴۲۵) . (تحفة الأشراف : ۱۱۹۸۸) وأخرجه: سنن النسائي في الصيام (المصدر المذكور (برقم : ۲۴۲۴،۲۴۲۱) . مسند احمد (۵ في ۱۵، ۵۲، ۱۴۴)

(۱۱) په هره عشره کي يوه روژه نيول.
(۱۲) دمياشت په اخري تاريخونو کي دري روژي نيول
دشريعت مقصد دادي چي په مياشت کي دري روژي نيول دي په کومو کي چي چاته سهولت وي په هغي کي دي شروع اوکړي تولي ورځي يو برابر دي او دايام بيض فضيلت زيات دي.

****************

٧٦٢ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَامَ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَذَلِكَ صِيَامُ الدَّهْرِ". فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ تَصْدِيقَ ذَلِكَ فِي كِتَابِهِ: مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا (الأنعام) الْيَوْمُ بِعَشَرَةِ أَيَّامٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ أَبِي شِمْرٍ، وَأَبِي التَّيَّاحِ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** دابوذر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچه هره مياشت دري روژي اونيولي نودده دا روژي صيام الدهر دي او ددي تصديق الله تعالي پخپل کتاب کي نازل کړي دي "من جاء بالحسنة فله عشر امثالها" (انعام ١٦٠) يعني چاچه يوه نيکي اوکړه هغه ته به کم از کم ددي لس چنده اجر ملاوېږي ګويا کي يوه ورځ کم از کم دلسو ورځو سره برابر ده.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، شعبه دا حديث په سند دابي شمر او ابي التياح عن ابي عثمان عن ابي هريره عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي.

****************

٧٦٣ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ الرِّشْكِ، قَالَ: سَمِعْتُ مُعَاذَةَ، قَالَتْ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ: "أَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، قُلْتُ: مِنْ أَيِّهِ كَانَ يَصُومُ، قَالَتْ: كَانَ لَا يُبَالِي مِنْ أَيِّهِ صَامَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا

1 النسائي في الصيام ٨٢ (٢٤١١)، وابن ماجه في الصيام ٢٩ (١٧٠٨)، (تحفة الأشراف: ١١٩٦٠)

حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَيَزِيدُ الرِّشْكُ هُوَ يَزِيدُ الضُّبَعِيُّ وَهُوَ يَزِيدُ بْنُ الْقَاسِمِ وَهُوَ الْقَسَّامُ، وَالرِّشْكُ هُوَ الْقَسَّامُ بِلُغَةِ أَهْلِ الْبَصْرَةِ. [1]

**ترجمه** دمعاذه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي دعائشه رضي الله عنها نه مي تپوس اوکړو ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم هره مياشت دري روژي نيولي؟ نو هغوئ اوونيل هو نيولي به يي ما اوونيل په کومو کومو تاريخونو يي نيولي؟ ويي فرمائيل هغه به ددي خبري څه پرواه نه ساتله چي دا کوم يو تاريخ دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او يزيد الرشك يزيد ضبعي دي او دده نوم يزيد بن قاسم هم دي او قسام ورته هم وئيلي دي او درشك معني داهل بصره په لغت کي قسام دي.

**تشريح : ددي دريو ورځو نه کمي دري ورځي مراد دي ؟**

د دريو ورځو په تعين کي دعلماؤ متعدد اقوال دي.

(١) دامام مالك په نزد دايام ثلاثه نه مراد مطلقا په مياشت کي دري ورځي دي او تعين يي دخپل طرف نه مکروه دي.

(٢) دحسن بصري په ورځ دايان ثلاثه نه مراد دهري مياشتي ابتدائي ورځي دي.

(٣) دايام ثلاثه نه مراد دهري مياشتي ١٤، ١٣، ١٢ تاريخونه دي

(٤) ددينه مراد ايام بيض دي، يعني ١٥، ١٤، ١٣.

(٥) دعائشه په نزد ددينه مراد دهري مياشتي اولنئ هفته اتوار او دوشنبه ده او په بله مياشت کي سه شنبه چارشنبه، پنج شنبه دي علي هذا القياس به دا طريقه جاري وي.

(٦) ددينه مراد دهري مياشتي اولنئ زيارت او بيا دوشنبه، او په دي پسي راتلونکي زيارت.

(٧) ددينه مراد دهري مياشتي اولنئ دوشنبه او په دي پسي متصل جمعرات او راتلونکي پير دي.

(٨) دابوالدرداء په نزد ددينه مراد دهري مياشتي اول او لسم او شلم تاريخ دي.

(٩) ددينه مراد دهري عشري اولني ورځ ده يعني ١، ١١، ٢١، تاريخونه.

(١٠) دابراهيم نخعي په نزد ددينه مراد دهري مياشتي اخري دري ورځي دي.

**دمعاذه عدويه رضي الله عنها حالات**

نوم معاذه دپلار نوم عبدالله کنيه ام الصهباء دخاوند نوم صله بن اشيم دبصري اوسيدونکي

---

[1] مسلم في الصيام ٣٦ (١١٦٠). سنن ابي داود في الصيام ٤٠ (٢٤٥٣). سنن ابن ماجه في الصيام ٢٩ (١٧٠٩). (تحفة الأشراف: ١٧٩٦٤)

وه دمحدثینو په نزد ثقه ده عائشه رضي الله عنها ته به یي تلل راتلل کول همدا وجه ده چي دهغي احادیث یي نقل کړي دي او ډیره زیاته عبادت گذاره وه.
علامه ابن جوزي دحکیم بن سنان نه نقل کړي دي چي ماته ویوي خادمي خبر رارسیدلي دي کومي چي به معاذه عدویه ته تلل راتلل کول چي معاذه عدویه به ټوله شپه په عبادت کي تیروله او چي کله به ورباندي خوب غالب شو نو خنګیدله به او بیابه یي خپل نفس مخاطب کړو او ونیل به یي. اي نفس خوب خو ستا په وړاندي دي او ستا به دي سره ملاقات وشي بیا به اوده شي دخادمي بیان دي چي معاذه عدویه به دا ونیل او دسترګو نه به یي اوښکي رواني وي تردي چي سبا به شو (صفوة الصفوه)

ددي متعلق ابن جوزي لیکلي دي چي تمامه شپه به یي مونځ کولو اوچه کله به ورباندي خوب غالب شو نو تعالی؛ به یي وهلي او خپل خان ته به یي ونیل اي نفسه خوب خو ستا په وړاندي دي، ددي دخادمي قول دي چي معاذه عدویه به تلاوت کولو او دسترګو نه به یي اوښکي تلي او په دي حال کي به یي شپه تیره کړه او چي کله به ماښام شو نو ونیل به یي چي همدا شپه ده په کومه کي چي زه به ددنیا نه رخصتیږم او بیا به یي په سجدو کولو سره سحر کړم.

******************

## ٥٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الصَّوْمِ

### دروژو دفضیلت بیان

٧٦٤ـ حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مُوسَى الْقَزَّازُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ رَبَّكُمْ يَقُولُ: "كُلُّ حَسَنَةٍ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ، وَالصَّوْمُ لِي وَأَنَا أَجْزِي بِهِ، الصَّوْمُ جُنَّةٌ مِنَ النَّارِ، وَلَخُلُوفُ فَمِ الصَّائِمِ أَطْيَبُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ، وَإِنْ جَهِلَ عَلَى أَحَدِكُمْ جَاهِلٌ وَهُوَ صَائِمٌ فَلْيَقُلْ: إِنِّي صَائِمٌ". وَفِي الْبَاب عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَكَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، وَسَلَامَةَ بْنِ قَيْصَرٍ، وَبَشِيرِ ابْنِ الْخَصَاصِيَةِ وَاسْمُ بَشِيرٍ زَحْمُ بْنُ مَعْبَدٍ، وَالْخَصَاصِيَةُ هِيَ أُمُّهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.[1]

---

[1] ـ أخرجه البخاري في الصوم ٢ (١٨٩٤) ، و٩ (١٩٠٤) . واللباس ٧٨ (٥٩٢٧) . والتوحيد ٣٥ (٧٤٩٢) . و٥٠ (٧٥٣٨) . ومسلم في الصيام ٣٠ (١١٥١) . سنن النسائي في الصيام ٤٢ (٢٢١٦-٢٢١) . وابن ماجه في الصيام ١ (١٦٣٨) . و٢١ (١٦٩١) . موطا

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ستاسو رب فرمائي دهري نيکئ بدله دلس چنده نه واخله تر اوه سوه پوري ده، او روژه زما دپاره ده، او خاص زه به ددي بدله ورکوم، روژه دجهنم دپاره ډال دي. او دروژه دار دخولي بوي الله تعالي ته دمشك دخوشبو نه زياته محبوب اوپاکه ده او که چري په تاسو کي څوك جاهل دچاسره دجهالت رويه کوي او دهغه روژه وي نو ورته دي اووائي چي زما روژه ده (يعني زه درته جواب نشم درکولي).

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث په دي سند حسن غريب دي، او په دي باب کي دمعاذ بن جبل، سهل بن سعد، کعب بن عجره، سلامه بن قيصر، او بشير بن خصاصيه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او دبشير نوم زحم بن معبد دي او خصاصيه دده دمور نوم دي.

**تشريح** : والصوم لي وانا اجزي به. يعني روژه زما دپاره او زه به ددي بدله ورکوم، ددي وجه داده په روژه کي چي څومره اخلاص وي دومره په نورو عبادتونو کي نه وي روژه يو داسي عبادت دي چي ددي علم دالله تعالي نه علاوه دبل چاسره نه وي بله داده چي په روژه نيولو کي څومره مشقت وي دومره په نورو عبادتونو کي نه وي ددي تولو وجوهاتو په بنا فرمائيلي شوي دي چي روژه زما دپاره نيولي شي او هم زه به دقيامت په ورځ ددي بدله ورکوم.

بعضي محدثين وايي چي دا لفظ اجزي به دي يعني زه ددي بدله کي ورکوليي شم.

"دروژه دار دخولي خوشبو دمشکو نه زياته ښکولي ده" مطلب دادي چي الله تعالي دروژه دار دخولي بوي دمشکو نه زيات خوښوي يا دا مطلب دي چي دقيامت په ورځ به دروژه دار دخولي نه دمشکو بوي خي. (نووي في شرح مسلم)

****************

٧٦٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ العَقَدِيُّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ فِي الجَنَّةِ لَبَابًا يُدْعَى الرَّيَّانَ، يُدْعَى لَهُ

---

امام مالک في الصيام ٢٢ (٥٨)، واحمد (٢ في ٢٣٢، ٢٥٧، ٢٦٦، ٢٧٣، ٣٢٣، ٣٧٥، ٢٧٧، ٢٨٠، ٥٠١، ٥١٠، ٥١٦). سنن الدارمي في الصوم ٥٠ (١٧٧٧)

الصَّائِمُونَ فَمَنْ كَانَ مِنَ الصَّائِمِينَ دَخَلَهُ وَمَنْ دَخَلَهُ لَمْ يَظْمَأْ أَبَدًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (١)

**ترجمه** : دسهل بن سعد رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په جنت کي يوه دروازه ده چي ريان ورته وئيلي شي روژه نيونکي به په همدي دروازه جنت ته داخلولي شي ، هر څوك چي په روژه نيونکو کي شامل وي ، دوئ به په همدي به جنت ته داخليږي او هر څوك چي په دي باندي داخل شي هيڅ كله به تږي نشي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح غريب دي.

**تشريح** : "الريان يدعي له الصائمون" سيرابئ ته وئيلي شي يعني روژه دارته به دباب الصوم په ځاي دباب الريان نه دعوت وركولي شي په دي كي ديته اشاره ده چي په دنيا كي روژه دار كومه تنده تيره كړي وه اوس به تاسو هميشه دداسي تندي نه محفوظ يئ.

***************

٧٦٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لِلصَّائِمِ فَرْحَتَانِ فَرْحَةٌ حِينَ يُفْطِرُ، وَفَرْحَةٌ حِينَ يَلْقَى رَبَّهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دروژه دار دپاره دوه خوشحالياني دي يوه خوشحالي دده دروژه ماتي په وخت ده او دويمه ، خوشحالي به يي هغه وخت وي كله چي دي دخپل رب سره مخامخ شي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : په دي حديث كي دروژي فضيلت بيان شوي دي او په دي باب كي چي كوم حديث زير بحث دي دا حديث قدسي دي.

---

[1] ابن ماجه في الصيام ١(١٦٤٠) . (تحفة الأشراف :٤٧٤١)، وأخرجه البخاري في الصوم ٢(١٨٩٦) وبدء الخلق(٣٢٥٤). ومسلم في الصيام ٣٠(١١٥٢) . مسند احمد(٥ في ٣٣٣، ٣٣٥)

[2] ـ تفرد به المؤلف. وانظر حديث رقم: ٧٦٢ (التحفه: ١٢٧١٩)

فرحتان: دروژه دار دپاره دوه خوشحالۍ دي يوه د افطارېه وخت کي خکه چي دا د روژي دتکميل وخت وي يا داچه پدي وخت کي دده په زړه کي يو نورانيت وي کوم چي دخوشحالۍ سبب وي. اود خپل رب سره ملاقات په وخت کي خو به ضرور خوشحاليږي چي د خپلي روژي اجر به حاصل کړي.

***************

## ٥٦_ باب مَا جَاءَ فِي صَوْمِ الدَّهْرِ

### تول عمر دروژو نيولو بيان

٧٦٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ بِمَنْ صَامَ الدَّهْرَ ؟ قَالَ: "لَا صَامَ وَلَا أَفْطَرَ أَوْ لَمْ يَصُمْ وَلَمْ يُفْطِرْ ". وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الشِّخِّيرِ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَأَبِي مُوسَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ صِيَامَ الدَّهْرِ وَأَجَازَهُ قَوْمٌ آخَرُونَ، وَقَالُوا: إِنَّمَا يَكُونُ صِيَامُ الدَّهْرِ إِذَا لَمْ يُفْطِرْ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ الْأَضْحَى وَأَيَّامَ التَّشْرِيقِ، فَمَنْ أَفْطَرَ هَذِهِ الْأَيَّامَ فَقَدْ خَرَجَ مِنْ حَدِّ الْكَرَاهِيَةِ وَلَا يَكُونُ قَدْ صَامَ الدَّهْرَ كُلَّهُ. هَكَذَا رُوِيَ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق نَحْوًا مِنْ هَذَا، وَقَالَا: لَا يَجِبُ أَنْ يُفْطِرَ أَيَّامًا غَيْرَ هَذِهِ الْخَمْسَةِ الْأَيَّامِ الَّتِي نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهَا، يَوْمِ الْفِطْرِ وَيَوْمِ الْأَضْحَى وَأَيَّامِ التَّشْرِيقِ. (١)

**ترجمه**: دابوقتاده رضي الله عنه نه مروي دي چي يو كس عرض اوكړو اي دالله رسوله كه څوك صوم الدهر (پوره كال روژي) نيسي نو څه حكم دي؟ رسول الله اوفرمائيل ده خو نه روژه اونيوله او نه يي افطار اوكړو.

امام ترمذي وائي دابوقتاده حديث حسن دي، او په دي باب كي د عبدالله بن عمر، عبدالله بن شخير، عمران بن حصين، او ابوموسي رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، داهل علمو يو جماعت صوم الدهر مكروه ګڼرلي دي او بعضي نورو اهل علمو جائز ګرخولي دي دوئ وائي چي صيام الدهر خو به هغه وخت كي وي كله چي څوك دوركي اختر او دلوي اختر په

---

١ مسلم في الصيام ٣٦ (١١٦٢). و ابي داود في الصيام ٥٣ (٢٤٢٥). و النسائي في الصيام ٤٣ (٢٣٨٤). و ابن ماجه في الصيام ٣١ (١٧٣٠). (التحفه: ١٢١١٧). مسند احمد (٥ في ٢٩٧)

ورخو او دایام تشریق په ورخو هم روژي نیول پري نړدي چاچه په دي ورخ روژي ترك كړي هغه دكراهت دحد نه اووتلو او دي ټول كال روژه نیونكي نشو دامام مالك بن انس نه هم داسي مروي دي او دا دامام شافعي یو قول هم دي ، امام احمد او اسحاق بن راهویه هم داسي وائي ددوی دواړو قول دي چي په دي پنځو ورخو كي یعني یوم الفطر یوم الاضحي او ایام تشریق كي روژي نیولو نه رسول الله صلي الله علیه وسلم منع فرمائیلي ده او ددینه علاوه په باقي ورخو كي افطار كول واجب نه دي.

**تشریح** : دري ورځي روژي نیول داسي دي لكه ټول عمر روژي نیول ځكه چي دهري نیكئ ثواب لس چنده دي نوپه دي اعتبار د دري ورخو روژو ثواب د دیرشو روژو نیولو سره برابر دي او په دي شان سره به سړي په صائم الدهر كي اوشمیرلي شي دا بشارت دكمزورو خلقو دپاره دي لیكن كه څوك صحت مند او طاقتور وي دهغه دپاره صوم داودي بهتر دي چي یوه ورځ به روژه نیسي او یوه ورځ به یي نه نیسي تردي چي دروژو سره عادت هم نشي ځكه چي دعادت كیدو په صورت كي دروژو مشقت نه محسوس كیږي او كله چي یوه ورځ پریږدي او بله ورځ روژه نیسي نو په دي شان سره انسان* دروژو سره نه عادت كیږي بلكه په هره دویمه ورځ به روژه كیږي او دروژو مشقت به محسوسوي لهذا څومره چي مشقت زیاتیږي دومره به ثواب هم زیاتیږي.

## د تمام كال د روژو د نذر منلو بیان

كه چا د یوكال روژو نذر ومنلو نو د دې دوه صورتونه دي:

(۱) یا خودا متعین كړې شو،په دي طریقه چي وې وئیل. ددې كال روژې به نیسم، یا ئې دا متعین نه كړل.مثلاً وې وئیل چي د یوكال روژې به نیسم،كه د متعین یوكال روژو قضاء كړې وی نو په ده به د یوكال روژې لازم وی،خود .یوم فطر. یوم نحر.اود ایام تشریق.روژو به افطار كوی.او روسته به ددې قضاء راوړی ځكه چي دمتعین یوكال روژو نذر ددې پنځو ورخو روژو هم دي ځكه چي دا پنځه ورځي هم په كال كښي داخل دي.اوكه په دې پنځو ورخو كښي ئې هم روژې اونیولې نو ادا به شی ځكه چي ځنګه ئې لازم كړې وې،هغه شان ئې ادا كړې.خو په دې صورت كښي به په دې كس باندې د رمضان قضاء واجب نه وی ځكه چي په دې نذر سره به په رمضان كښي د نذر روژې لازم نه وی ځكه چي په رمضان كښي د رمضان نه سوا د بلې روژې گنجائش نشته.

(۲) اوكه كال ئې متعین نه كړو،بلكه مطلقاً د یوكال روژو نذر ئې اوكړو نو ددې هم دوه صورتونه دي،یا به د تتابع شرط ذكر وی،یا به ذكر نه وی،یعنی یا به ئې دا وئیلی وی چه، زه به د یوكال روژې پرله پسې نیسم، یا به ئې د پرله پسې والی شرط نه وی ذكركړې.كه د

تتابع شرط ئې ذكر كړې وى نوددې حكم به هم هغه وى.كوم حكم چې د معين كال دې
خكه چې پرله پسې د يوكال د روژو نذركول،ددې پنځو ورځو نه خالي نه دې
خو په دې صورت كښې داخبره ضروري ده چې ددې پنځو روژو قضاء به د نذر روژوسره متصلاً راوړى.يعنى كله چې كال پوره شى نو هم په راروانه ورځ به ددې پنځو روژو قضاء راوړى چې د امكان په اندازه تتابع اوتسلسل موجود شى.ددې پنځو روژو په قضاء كښې د امام زفر او امام شافعي (رحمه الله) اختلاف دې يعنى ددې دواړو په نزدددې پنځو ورځو قضاء واجب نه ده ځكه چې په حديث "ألا لاتصوموا...الحديث" كښې په پنځو ورځوكښې د روژو نيولو نه منع شوې ده نو ددې ورځو نذر هم صحيح نه دې او هركله چې نذر صحيح نه دې نوددې قضاء به هم واجب نه وى،(۲) خو زمونږ په نزدپه دې ورځوكښې د نذر د صحت وجه،اود پيش كړى حديث جواب د فصل په رومبۍ مسئله كښې تير شوې دې هلته كښې ئې اوګورئ، اوكه نه ئې كال متعين كړې دې او نه ئې تابع شرط كړې دې نوپه دې پنځو ورځوكښې به روژې نيولو سره نذر نه اداكيږى،بلكه په ده به د ۳۵ ورځو روژو قضاء راوړل واجب وى،پنځه خو ددې ورځو،او ديرش د رمضان،ددې پنځو روژو قضاء به ځكه واجب وى چې ده په خپل خان كومې روژې لازم كړى دى،په دې كښې اصل دادى چې دا كامل وى نو ګويا په ده باندې كاملې روژې واجب شوى دى،او په دې ورځوكښې ئې چې كومې پنځه روژې نيولى دى،دا دحديث په وجه ناقص دى،او قاعده ده،چه "ما وجب كاملاً لا يتأدى ناقصًا" يعنى كوم شئ چې ،على سبيل الكمال، واجب وى.هغه په ناقص ادا كولوسره نه اداكيږى نو هركله چې په دې پنځو ورځوكښې كامل روژې ادا نكړې شوې نو ددې قضاء به واجب وى، ددې په خلاف كه ده كال متعين كړې وى،اودې كس په دې پنځو ورځوكښې هم روژې اونيولې نو ادا به وى ځكه چې د كال متعين كولو په وجه چې په دې پنځو ورځو كښې كومې روژې لازم شوى دى،هغه ناقص دى،او ده هم ناقص اداكړى دى،او قاعده ده.چه "ما وجب ناقصًا جاز أن يتأدى ناقصًا" يعنى كومې روژې چې ناقص واجب شوى دى نودا ناقص ادا كول روا دى.
بهرحال د رمضان د ديرشو ورځو قضاء په دې وجه واجب ده چې هركله ئې كال متعين نه كړو نو مطلقاً د دولسو مياشتو روژې به لازم وى،اوپه دې دولسومياشتوكښې رمضان داخل نه دې ځكه چې د رمضان په ورځوكښې دغير رمضان روژو هيڅ ګنجائش نشته،په دې وجه د نذر روژو دولس مياشتو تعداد پوره كولو دپاره به د رمضان په عوض كښې يوه مياشت، يعنى د ديرشو ورځو روژو قضاء به لازم وى.

***************

## ٥٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي سَرْدِ الصَّوْمِ

## دمسلسل روژو نيولو بيان

٧٦٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صِيَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "كَانَ يَصُومُ حَتَّى نَقُولَ: قَدْ صَامَ، وَيُفْطِرُ حَتَّى نَقُولَ: قَدْ أَفْطَرَ" قَالَتْ: "وَمَا صَامَ رَسُولُ اللهِ شَهْرًا كَامِلًا إِلَّا رَمَضَانَ". وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن شقيق بيان دي فرمائي چي دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دروژو باره كي تپوس اوكړو نو وېي فرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم به روژي نيولي تردي پوري چي مونږ به دا گمان اوكړو چي اوس خو يي نبي روژي اونيولي او بيا به يي روژي پريخودلي تردي پوري چي مونږ به گمان اوكړو چي ډېرو ورخو نه يي روژي نه دي نيولي او رسول الله صلي الله عليه وسلم درمضان نه علاوه په بله كومه مياشت كي پوره مياشت روژي نه دي نيولي.

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن دي ، او په دي باب كي دانس او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح**: درسول الله صلي الله عليه وسلم په سيرت طيبه كي صوم الدهر نشته او نه به يي دا خوښولي البته مسلسل روژي نيول دهغه طريقه وه، رسول الله صلي الله عليه وسلم به نفلي روژي شروع كولي او مسلسل به يي نيولي تردي چي خلقو به دا گمان اوكړو چي اوس به دي هميشه روژي نيسي بيا چي به يي كله روژي پريخودي نو دومره ورخو پوري به يي نه نيولي چي خلقو به خيال اوكړو چي اوس به كله هم روژي نه نيسي.

*****************

٧٦٩_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ صَوْمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَانَ يَصُومُ مِنَ الشَّهْرِ حَتَّى نَرَى أَنَّهُ لَا يُرِيدُ أَنْ يُفْطِرَ

---

1 مسلم في الصيام ٣٣ (١١٥٦)، سنن النسائي في الصيام ٧٠ (٢٣٥١). (تحفة الأشراف : ١٦٢٠٢). وانظر ماتقدم عند المؤلف برقم: ٧٣٤

مِنْهُ، وَيُفْطِرُ حَتَّى نَرَى أَنَّهُ لَا يُرِيدُ أَنْ يَصُومَ مِنْهُ شَيْئًا، وَكُنْتَ لَا تَشَاءُ أَنْ تَرَاهُ مِنَ اللَّيْلِ مُصَلِّيًا إِلَّا رَأَيْتَهُ مُصَلِّيًا وَلَا نَائِمًا إِلَّا رَأَيْتَهُ نَائِمًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه باره کي مروي دي چي دده نه تپوس اوکړي شو درسول الله دروژو په باره کي نو هغوی اوفرمائيل رسول الله به په مياشت کي دومره روژي نيولي چي مونږ به دا ګمان اوکړو چي اوس دهغه دروژو بندولو اراده نشته او کله به يي بغير روژو نيولو دومره ورځي تيري کړي چي مونږ به ګمان اوکړو چي اوس به هډو بالکل روژي نه نيسي او که دشپي په هره حصه کي تاسو دهغه مونځ ليدل غوښتلي نو تاسو به په مونځ کولو ليدلي وو او چي دشپي په کومه حصه کي تاسو دهغه اوده کيدل ليدل غوښتل نو په اوده کيدو به مو ليدلي وي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

٧٧٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مِسْعَرٍ، وَسُفْيَانَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْضَلُ الصَّوْمِ صَوْمُ أَخِي دَاوُدَ، كَانَ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا وَلَا يَفِرُّ إِذَا لَاقَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو الْعَبَّاسِ هُوَ الشَّاعِرُ الْمَكِّيُّ الْأَعْمَى وَاسْمُهُ السَّائِبُ بْنُ فَرُّوخَ. قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: أَفْضَلُ الصِّيَامِ أَنْ تَصُومَ يَوْمًا وَتُفْطِرَ يَوْمًا، وَيُقَالُ: هَذَا هُوَ أَشَدُّ الصِّيَامِ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دټولو نه افضل روژي زما د ورور داود عليه السلام روژي دي دهغه به يوه ورځ روژه وه او يوه ورځ به يي بغير دروژي وه او چي کله به يي ددوشمن سره مقابله وه نو د دوشمن نه د تختيدو په حال کي به يي ميدان نه پريخودو.

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٨٣)

2 أخرجه البخاري في الصوم ٥٧ (١٩٧٧)، و٥٩ (١٩٧٩)، والانبياء ٣٨ (٣٤٢٠)، وفضائل القرآن ٣٤ (٥٠٥٢)، والنكاح ٨٩ (٥١٩٩)، والأدب ٨٣ (٦١٣٤)، سنن ابي داود في الصيام ٥٣ (٢٤٢٧)، ومسلم في الصيام ٣٥ (١١٥٩)، والنسائي في الصيام ٤١ (٢٣٨٠)، و٧٦ (٢٣٩٠-٢٣٩٥)، و٧٧ (٢٣٩٦-٢٣٩٨)، و٧٨ (٢٣٩٩-٢٤٠١)، وابن ماجه في الصيام ٢٨ (١٧٠٦)، و٣١ (١٧١٣)، واحمد ٢ في ١٦٠، ١٦٤، ١٨٨، ١٨٩، ١٩٠، ١٩٤، ١٩٥، ١٩٨، ١٩٩، ٢٠٠، ٢٠٦، ٢١٦، ٢٢٤، ٢٦٥)، سنن الدارمي في الصوم ٤٣ (١٧٩٣).

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي ، دبعضي اهل علمو قول دي په تولو روژو كي افضل روژي دادي چي تاسو يوه ورځ روژه اونيسئ او يوه ورځ يي پريږدئ، او وئيلي شوي دي چي په تولو كي سختي روژي همدا وي.

**تشريح** : كه څوك صحت مند او طاقتور وي دهغه دپاره صوم داودي بهتر دي چي يوه ورځ به روژه نيسي او يوه ورځ به يي نه نيسي ترڅو چي دروژو سره عادت هم نشي ځكه چي دعادت كيدو په صورت كي دروژو مشقت نه محسوس كيږي او كله چي يوه ورځ پريږدي او بله ورځ روژه نيسي نو په دي شان سره انسان دروژو سره نه عادت كيږي بلكه په هره دويمه ورځ به روژه كيږي او دروژو مشقت به محسوسوي

**************

## ٥٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّوْمِ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ النَّحْرِ

### دوارِه او دلوي اختر په ورځ دروژي نيولو دكراهت بيان

٧٧١ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ. حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: شَهِدْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فِي يَوْمِ النَّحْرِ، بَدَأَ بِالصَّلَاةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَنْهَى عَنْ صَوْمِ هَذَيْنِ الْيَوْمَيْنِ أَمَّا يَوْمُ الْفِطْرِ فَفِطْرُكُمْ مِنْ صَوْمِكُمْ وَعِيدٌ لِلْمُسْلِمِينَ. وَأَمَّا يَوْمُ الْأَضْحَى فَكُلُوا مِنْ لُحُومِ نُسُكِكُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو عُبَيْدٍ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ اسْمُهُ سَعْدٌ وَيُقَالُ لَهُ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَزْهَرَ أَيْضًا. وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَزْهَرَ هُوَ ابْنُ عَمِّ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ. (١)

**ترجمه** : دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دمولي(ازاد كړى غلام) ابوعبيده بيان دي فرمائي چي زه دعمر بن الخطاب رضي الله عنه سره په لسم ذي الحجه موجود وم چي هغوئ دخطبي نه مخكي مونځ شروع كړو او بيايي اوونيل ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي دوو ورځو كي د روژو نيولو نه دممانعت حكم اوريدلي دي. دوړوكي اختر په ورځ خو ځكه

---

1 ـ البخارى في الصوم ٦٦ (١٩٩٠) . والأضاحى ١٦ (٥٥٧١) . مسلم في الصيام ٢٢ (١١٣٧) . سنن ابى داود في الصيام ٤٨ (٢٤١٦) . وابن ماجه في الصيام ٣٦ (١٧٢٢) . (تحفة الأشراف : ١٠٦٦٣) . موطا امام مالک في العيدين ٢ (٥) مسند احمد (١ في ٤٠)

چي دا ستاسو دافطار ورځ ده او دمسلمانانو اختردي او دلوي اختر په ورځ ځکه چي تاسو دخپلو قربانيانو غوښي اوخوري.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.او ابو عبيد د عبد الرحمن بن عوف ازاد کړی غلام دی او دده نوم سعد دی ، دارنګي مولي عبد الرحمن بن ازهر ورته هم ونيلي شي او عبد الرحمن بن ازهر د عبد الرحمن بن عوف دتره خوي دی.
****************
٧٧٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صِيَامَيْنِ يَوْمِ الْأَضْحَى وَيَوْمِ الْفِطْرِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالَ: وَعَمْرُو بْنُ يَحْيَى هُوَ ابْنُ عُمَارَةَ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ الْمَازِنِيُّ الْمَدَنِيُّ وَهُوَ ثِقَةٌ، رَوَى لَهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَشُعْبَةُ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ.(١)
**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د دود روژو نه منع فرمائيلي ده دلوي اختر په ورځ دروژي نيولو نه او دوړوکي اختر په ورځ دروژي نيولو نه.
امام ترمذي وائي دابوسعيد او ددي حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعمر، علي، عائشه، ابوهريره، عقبه بن عامر، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي داهل علمو په همدي باندي عمل دي، عمرو بن يحي دعماره بن الحسن مازني نوم دي او هغه دمديني اوسيدونکي دي او ثقه دي سفيان ثوري، شعبه، او مالك بن انس دده نه اخذ دروايت کړي دي
**تشريح** سوال. که څوك په ځان باندي د اختر دورځي روژه نذر کړي نو ددي څه حکم دی. صورت د مسئلي دا دي که چري يو کس د اختر په ورځ د روژي نيولو نذر ومنلو نو نذر به پوره کوي او کنه ؟
جواب: په دي مسئله کي د فقهاؤ دوه اقوال دي.

---

١ البخاری في الصوم ٦٦ (١٩٩١) مسلم في الصيام ٢٢ (٨٢٧) . و ابی داود في الصيام ٣٨ (٢٤١٧) . (تحفة الأشراف : ٤٤٠٣) (صحيح) ، وأخرجه صحيح البخاری في جزاء الصيد ٢٦ (١٨٦٤) . ابن ماجه في الصيام ٣٦ (١٧٢١) . مسند احمد (٣ في ٣٤) . و الدارمی في الصوم ٤٣ (١٧٩٣)

(١) احناف علماء وايي ده له پكاردى چى په دې ورځ روژه اونه نيسى،بلكه ددې په ځاى دي قضاء راوړى.
،حاصل داچى د ،يوم نحر،د روژې نذركول، زمونږ په نزدصحيح دى.
(٢)مګر د امام زفر او امام شافعى (رحمه الله) په نزدصحيح نه دى،او هم دا قول د امام مالك او امام احمد (رحمه الله) هم دې.
دامام شافعي او امام زفر دليل دادې چى ،يوم فطر،يوم نحر،او درې ورځې د ايام تشريق،په دې پنځو ورځوكښې روژه نيول،په شريعت كښې منع دى ،د رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد دې:
"ألا لاتصوموا فى هذه الايام فإنها أيام أكل وشرب وبعال"
خبرشئ،په دې ورځوكښې روژه مه نيسئ،ځكه چى دا ورځې د خوراك څكاك اود مباشرت دى،بهرحال د رسول الله صلي الله عليه وسلم د منع كولو په وجه په دې ورځوكښې د روژې نيولو نذركول،د معصيت نذر دي اود معصيت نذركول،صحيح نه دى ځكه چى د رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد دې:
"لانذر فى معصية الله"
په كوم كاركښې چى د الله تعالى معصيت كيږى،دهغې نذر صحيح نه دي نو ثابته شوه چى په دې ورځوكښې د روژې نيولو نذركول،صحيح نه دى،
زمونږ دليل دادې چى د يوم نحر روژه د خپل ذات په اعتبارسره مشروع ده،خو، منهى عنه لغيره،ده،يعنى د يو داسې څيز په وجه په دې دواړو كښې دننه د روژې نيولو نه منع شوې ده چى ددې په ذات كښې داخل نه دي هغه څيز د الله تعالى د دعوت نه مخ اړول دى،يعنى په دې دواړو كښې الله تعالى د خپلو بندګانو ضيافت كوى،اوس كه چرې يو كس په دې ورځوكښې روژه نيسى، نو ګويا ده د الله تعالى د دعوت نه اعراض اوكړو،اود الله تعالى د دعوت نه اعراض كول،ډيره بده خبره ده،بهرحال په دې پنځو ورځوكښې روژه نيول،د خپل ذات په اعتبار سره مشروع دى،اګرچى د وصف په اعتبارسره معصيت او غيرمشروع دى،خو ددې باوجود چى نذر صحيح دي په دې ورځ به روژه نه نيسى چى ددې معصيت اوګناه نه بچ شى،كومه د الله تعالى د دعوت نه د اعراض كولو په وجه روژې سره متصل شوې ده،خود نذر په وجه چى كومه روژه واجب شوې ده،دهغې د اداكولودپاره قضاء واجب ده،اوكه د ممنوع كيدلو باوجود ئې په ،يوم نحر،كښې روژه اونيوله نو نذر به پوره شى ځكه چى د څنګه روژې التزام ئې كړې وو،هم هغه شان روژه ده ادا كړه،يعنى په ،يوم نحر،كښې د روژې نيولو د نذر په وجه چى كومه روژه په ده باندې واجب شوې ده،هغه ناقصه ده،او ده هم ناقص اداكړه نو څنګه چى واجب وه،هم هغه شان ئې ادا كړه،په دې وجه نذر پوره شو.

*****************

## ٥٩_باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّوْمِ فِي أَيَّامِ التَّشْرِيقِ

### په ايام تشريق كي دروژو نيولو دكراهيت بيان

٧٧٣_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مُوسَى بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَوْمُ عَرَفَةَ وَيَوْمُ النَّحْرِ وَأَيَّامُ التَّشْرِيقِ عِيدُنَا أَهْلَ الإِسْلَامِ، وَهِيَ أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَسَعْدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ، وَنُبَيْشَةَ، وَبِشْرِ بْنِ سُحَيْمٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُذَافَةَ، وَأَنَسٍ، وَحَمْزَةَ بْنِ عَمْرٍو الأَسْلَمِيِّ، وَكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، وَعَائِشَةَ، وَعَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ يَكْرَهُونَ الصِّيَامَ أَيَّامَ التَّشْرِيقِ، إِلَّا أَنَّ قَوْمًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ رَخَّصُوا لِلْمُتَمَتِّعِ إِذَا لَمْ يَجِدْ هَدْيًا وَلَمْ يَصُمْ فِي الْعَشْرِ أَنْ يَصُومَ أَيَّامَ التَّشْرِيقِ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَهْلُ الْعِرَاقِ يَقُولُونَ: مُوسَى بْنُ عَلِيِّ بْنِ رَبَاحٍ، وَأَهْلُ مِصْرَ يَقُولُونَ: مُوسَى بْنُ عُلَيٍّ، وقَالَ: سَمِعْت قُتَيْبَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ اللَّيْثَ بْنَ سَعْدٍ، يَقُولُ: قَالَ مُوسَى بْنُ عَلِيٍّ: لَا أَجْعَلُ أَحَدًا فِي حِلٍّ صَغَّرَ اسْمَ أَبِي. ([1])

**ترجمه**: دعقبه بن عامر رضي الله عنه بيان دي رسول الله سلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دعرفي ورځ او دلوي اختر ورځ او ايام تشريق زمونږ يعني دمسلمانانو داختر ورځ او دا دخوراك څښاك ورځي دي.

امام ترمذي وائي دعقبه بن عامر حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دعلي، سعد ، ابوهريره، جابر، نبيشه ، بشر بن سهيم، عبدالله بن حذافه ، انس، حمزه بن عمرو اسلمي، كعب بن مالك، عائشه، عمروبن العاص او عبدالله بن عمررضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي دوئ په ايام تشريق كي روژي نيول ممنوع ګنړي البته دصحابه كرامو يو جماعت حج تمتع كونكي لره ددي اجازت وركړي دي چي كله هغه هديه بيانه مومي او دذي الحجي په ابتدائي لسو ورځو كي يي روژي نه وي نيولي او بيا دا په

---

[1] ـ ابي داود / الصيام ٤٩ (٢٤١٩) . سنن النسائي في المناسك ١٩٥ (٣٠٠٤) . (تحفة الأشراف : ٩٩٣١) . سنن الدارمي / الصوم ٤٧ (١٨٠٥)

ايام تشريق كي اونيسي. مالك بن انس، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه هم ددي قائل دي

***************

## ٦٠_ بَاب كَرَاهِيَةِ الْحِجَامَةِ لِلصَّائِمِ

### دروژه دار دپاره دښکر لګولو دکراهت بیان

٧٧٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، وَمُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ النَّيْسَابُورِيُّ، ومحمود بن غيلان، ويحيى بن موسى، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَارِظٍ، عَنْ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُومُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَسَعْدٍ، وَشَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، وَثَوْبَانَ، وَأُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، وَعَائِشَةَ، وَمَعْقِلِ بْنِ سِنَانٍ وَيُقَالُ ابْنُ يَسَارٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي مُوسَى، وَبِلَالٍ، وَسَعْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَذُكِرَ عَنْ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ، أَنَّهُ قَالَ: أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَاب حَدِيثُ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، وَذُكِرَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ قَالَ: أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَاب حَدِيثُ ثَوْبَانَ، وَشَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، لِأَنَّ يَحْيَى بْنَ أَبِي كَثِيرٍ رَوَى عَنْ أَبِي قِلَابَةَ الْحَدِيثَيْنِ جَمِيعًا، حَدِيثَ ثَوْبَانَ، وَحَدِيثَ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ. وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمُ الْحِجَامَةَ لِلصَّائِمِ، حَتَّى أَنَّ بَعْضَ أَصْحَابِ النَّبِيِّ احْتَجَمَ بِاللَّيْلِ، مِنْهُمْ أَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ، وَابْنُ عُمَرَ، وَبِهَذَا يَقُولُ ابْنُ الْمُبَارَكِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْت إِسْحَاق بْنَ مَنْصُورٍ، يَقُولُ: قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ: مَنِ احْتَجَمَ وَهُوَ صَائِمٌ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ، قَالَ إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ: وَهَكَذَا قَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. حَدَّثَنَا الزَّعْفَرَانِيُّ. قَالَ: وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: قَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَنَّهُ احْتَجَمَ وَهُوَ صَائِمٌ " وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: " أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُومُ " وَلَا أَعْلَمُ وَاحِدًا مِنْ هَذَيْنِ الْحَدِيثَيْنِ ثَابِتًا، وَلَوْ تَوَقَّى رَجُلٌ الْحِجَامَةَ وَهُوَ صَائِمٌ كَانَ أَحَبَّ إِلَيَّ، وَلَوِ احْتَجَمَ صَائِمٌ لَمْ أَرَ ذَلِكَ أَنْ يُفْطِرَهُ.

قَالَ أَبُو عِيسَى: هٰكَذَا كَانَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ بِبَغْدَادَ، وَأَمَّا بِمِصْرَ فَمَالَ إِلَى الرُّخْصَةِ وَلَمْ يَرَ بِالحِجَامَةِ لِلصَّائِمِ بَأْسًا، وَاحْتَجَّ بِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ فِي حَجَّةِ الوَدَاعِ وَهُوَ مُحْرِمٌ صَائِمٌ. (1)

**ترجمه** . درافع بن خديج رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دښكر لګونكي او چاته چي ښكر لګولي شي د دواړو روژه باقي نه پاتي كيږي يعني روژه يي ماته شوه.

امام ترمذي وائي درافع بن خديج حديث حسن صحيح دي . امام احمد بن حنبل وائي چي په دي باب كي دټولو نه صحيح روايت درافع بن خديج دي ، علي بن عبدالله ابن المديني وائي چي په دي باب كي دټولو نه زيات صحيح دثوبان او شداد بن اوس حديثونه دي ځكه چي يحي بن ابي كثير دابو قلابه نه د ثوبان اوشداد بن اوس داحاديثو يو جماعت روايت كړي دي. په دي باب كي د علي ، سعد . شداد بن اوس، ثوبان، اسامه بن زيد، عائشه، معقل بن سنان. ابوهريره . ابن عباس، ابوموسي . بلال، او سعد رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. په صحابه كرامو وغيره كي بعضي اهل علمو دروژه دار دپاره ښكرلګول مكروه ګڼړلي دي تردي پوري چي بعضي صحابه كرامو به دشپي ښكر لګولو په دوئ كي ابو موسي اشعري او ابن عمر هم دي. امام ابن مبارك هم دا وائي . عبدالرحمن بن مهدي وائي چاچه دروژي په حالت كي ښكر اولګولو په هغه باندي ددي روژي قضاء لازم ده. اسحاق بن منثور وائي دا زنګي احمد او اسحاق بن راهويه هم وائي، مګر دامام شافعي قول دادي چي درسول الله نه دا هم مروي دي چي دروژي په حالت كي يي ښكر لګولي وو او دا هم مروي دي چي رسول الله به دروژي په حالت كي دښكر لګولو نه اجتناب كولو او كه څوك ددينه خان اوساتي دا به بهتر وي زه دا ګمان نه كوم چي څوك ښكر اولګوي او دهغه روژه دي ماته شي. په بغداد كي دشافعي هم دا قول دي چي په دي باندي روژه ماتيږي مګر په مصر كي رخصت طرف ته مائل شو بيا به يي دروژه دار په ښكر لګولو كي څه حرج نه ليدلو ددي دليل دادي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په حجة الوداع كي داحرام په حالت كي ښكر لګولي دي.

***************

## ٦١ _ بَابُ مَا جَاءَ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي ذٰلِكَ

**دروژه دار دپاره دښكر لګولو درخصت بيان**

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٥٥٦)

٧٧٥_ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ هِلَالٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " احْتَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ صَائِمٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. هَكَذَا رَوَى وُهَيْبٌ نَحْوَ رِوَايَةِ عَبْدِ الْوَارِثِ، وَرَوَى إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ مُرْسَلًا وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. [1]

**ترجمه** . دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ښکر اولګولو او هغه محرم وو او روژه يي نيولي وه.

امام ترمذي وائي دا حديث صحيح دي، دارنګي وهيب هم دعبدالوارث پشان روايت نقل کړي دي، اسماعيل بن ابراهيم بن عليه هم دايوب نه او ايوب دعکرمه نه مرسل نقل کړي دي او عکرمه په دي کي دابن عباس ذکر نه دي کړي.

***************

٧٧٦_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ مِهْرَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " احْتَجَمَ وَهُوَ صَائِمٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. [2]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ښکر اولګولو او هغه محرم وو او روژه يي نيولي وه.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي ددي سند په اعتبار.

**تخريج** : البخاری في الصوم ٣٢ (١٩٣٨) ، والطب ١٢ (٥٦٩٥) ، ابی داود في الصيام ٢٩

***************

٧٧٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " احْتَجَمَ فِيمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ وَهُوَ مُحْرِمٌ صَائِمٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ

---

1 _ البخاری في الصوم ٣٢ (١٩٣٨) ، والطب ١٢ (٥٦٩٥) ، ابی داود في الصيام ٢٩

2 _ البخاری في الصوم ٣٢ (١٩٣٨) ، والطب ١٢ (٥٦٩٥) ، ابی داود في الصيام ٢٩

حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ، وَلَمْ يَرَوْا بِالْحِجَامَةِ لِلصَّائِمِ بَأْسًا، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيِّ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ښكر اولګولو او دي وخت كي رسول الله دمكي مديني په مينځ كي وو چي احرام يي تړلي وو او روژه يي نيولي وه.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابوسعيد خدري، جابر او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. په صحابه كرامو او اهل علمو كي يو جماعت د طرف ته مائل شوي دي او هغوئ دروژه دار په ښكر لګولو كي څه قباحت نه ګڼړي، دسفيان ثوري مالك بن انس او امام شافعي هم دا قول دي.

**تشريح** : كه چري يوكس په حالت د روژې كښې ښكر اولګولو،نو دده روژه ماته شوه او كنه؟ په دي مسئله كي د فقهاؤ دوه مذاهب دي:

د احنافو په نزد د ښكر په لګولو روژه نه ماتيږي او د امام شافعي او امام اوزاعي په نزد ماتيږي فقهاؤ ددي ډير صورتونه بيان كړي دي مثلا:

كه چري يوكس په حالت د روژې كښې ښكر اولګولو،او بيا ئې دا ګمان اوكړو چې ښكر لګول روژه فاسده وی،په دې وجه ښكر لګولوسره روژه فاسد شوه،او هركله چې روژه فاسد شوه نو ده په قصد سره خوراك څكاك اوكړو نو په دې صورت كښې به په ده باندې قضاء اوكفاره دواړه واجب وی، ځكه دده دا ګمان چې ښكر لګول د روژې مفسد دی،هيڅ شرعی دليل طرف ته منسوب نه دي بلكه دليل شرعی خو عدم فساد دي ځكه چې احتجام (ښكرلګول) د رګونو نه د وينو په وتلوكښې د ،فصد، (رګ نه وينه اخستل) په شان دي او ،فصد،مفسد د صوم نه دي نو ښكر لګول به هم مفسد د صوم نه وی،بهرحال هركله چې دده په ګمان باندې هيڅ شرعی دليل موجود نه دي نو د صوم د فساد شبه هم نه پيدا كيږی،او هركله چې شبه پيدا نشوه نوكفاره به نه ساقطيږی ځكه چې كفاره په شبهاتو نه پس ساقطيږی.

---

[1] ـ البخاری في الصوم ۳۲ (۱۹۳۸)، والطب ۱۲ (۵۶۹۵)، ابي داود في الصيام ۲۹

خوکه دې ښکر لګونکی ته د روژې فاسدولو فتویٰ یو داسې فقیه ورکړې وی چې دده په فتویٰ باندې خلق اعتماد کوی،بیا ده په قصدسره څه خوراك څكاك اوکړو نو په ده به کفاره واجب نه وی ځکه چې فتویٰ دده په حق کښې دلیل شرعی دي نو ددې فتوی په وجه په ښکر لګولوسره دده روژه فاسد شوه.ددې نه پس چې کله ده په قصد خوراك څكاك اوکړو نودې روژه دار نه وو،بلکه بې روژې وو.اود روژې دنه کیدلوپه حالت کښې په رمضان کښې قصداً په خوراك څكاك سره کفاره نه واجبیږی.بلکه صرف قضاء واجبیږی.

اوکه ښکر لګونکی روژه دار ته دا حدیث اورسیدلو چې "افطر الحاجم والمحجوم" یعنی ښکر لګونکی.او لګولو والا د دواړو روژه ماته شوه. او بیا ئې په دې حدیث باندې اعتماد هم اوکړو نو د امام محمد (رحمه الله) په نزدپه دې صورت کښې هم دا حکم دې چې په ده باندې کفاره واجب نه ده ځکه چې د رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمان د مفتی د قول نه په کمه درجه کښې نه دي حالانکه د مفتی په قول باندې اعتماد کولو په حال کې کفاره واجب نه وه نو په حدیث شریف باندې په اعتماد سره به په درجه اولی کفارد واجب نه وی.

او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی چې په دې صورت کښې به کفاره نه ساقطیږی ځکه چې په عوام الناس باندې صرف د فقهاؤ تابعداری لازم ده ځکه چې دوی له د احادیثو پیژندګلو حاصلول ناممکن دی،په دې طریقه چې یوحدیث په خپل ظاهر باندې نه وی،یا منسوخ شوې وی نودا خبرې یوعام کس څنګه پیژندلې شی نود عام کس په حق کښې د یومفتی فتویٰ ورکول،خوشرعی حجت دي خو حدیث به ددوی په حق کښې حجت نه وی نو هرکله چې د عام کس په حق کښې حدیث شرعی دلیل نه دې نوښکر لګول به هم د صوم د فساد شبه نه پیداکوی،او هرکله چې د صوم د فساد شبه پاتې نشوه نو کفاره به هم نه ساقطیږی.

صاحب د هدایه فرمائی،که ښکر لګونکې ته دا حدیث اورسیدلو،اوده ته ددې حدیث تاویل هم معلوم شو.اوهغه دادې چې ښکرلګونکې.او لګولو والا دواړو به د یوبل غیبت کولویوځل نبی کریم صلي الله عليه وسلم دې دواړو سره تیر شو نو ویې فرمائیل "أفطرالحاجم والمحجوم" یعنی د غیبت کولو په وجه ددې دواړو د روژې ثواب ختم شو.راوی اوګنړل چې نبی کریم صلي الله عليه وسلم د ښکرلګولو په وجه داسې فرمائیلی دی نو ده د خپل سوچ موافق روایت اوکړو.او وې ونیل چې په ښکرلګولوسره روژه فاسدیږی، دویم تاویل دادې چې یوځل ښکر لګولو والابې هوشه شو نو ښکر لګونکی دده په حلق کښې اوبه واچولې،حالانکه دده روژه وه نونبی کریم صلي الله عليه وسلم اوفرمائیل: "أفطر الحاجم والمحجوم" یعنی ښکرلګونکی،د ښکر لګولو والا په حلق کښې اوبه واچولې نودده روژه ئې فاسد کره،راوی اوګنړل چې نبی کریم صلي الله عليه وسلم

"أفطر الحاجم والمحجوم" -یعنی په حدیث کښې : الحاجم . فاعل او . : والمحجوم" مفعول دي راوی اوګنړل چی دواړه د عطف په طریقه فاعل دی. دریم تاویل دادې چی دا حدیث منسوخ دي بهرحال ښکر لګونکی ته که ددې حدیث تاویل معلوم وی نود ښکرلګولو نه پس قصداً په خوراك څکاك سره به یقیناً کفاره واجب وی ځکه چی د حدیث تاویل معلومیدلو نه پس به په دې حدیث سره دروژې فاسد کیدلو شبه نه وی.او هرکله چی په ښکر لګولوسره د روژه فاسد کیدلو شبه نه وی نوکفارد به هم ساقط نه وی.

لیکن شوافع اعتراض کوي چي د اهل علمو اختلاف هم شبه پیدا کوی.اود امام اوزاعی قول هم دادی چی په ښکر لګولوسره روژه فاسدیږی نو ددې شبه په وجه کفاره ساقط کیدل پکار دی.ددې جواب دادې چی د امام اوزاعی قول شبه نه پیدا کوی ځکه چی د امام اوزاعی قول د قیاس مخالف دي ځکه چی قیاس خو دادې "أن الفطر مما یدخل لامما یخرج" یعنی کوم څیز چی په خیټه کښې داخلیږی.په هغې سره روژه فاسدیږی.او کوم څیزچی بهر راوځی.په هغې سره روژه نه فاسدیږی،او په ښکر لګولوسره وینه د رګونو نه بهر راوځی.دننه څه څیز نه داخلیږی نو قیاس هم دا تقاضا کوی چی په ښکر لګولوسره روژه فاسد نشی،او امام اوزاعی د فاسد کیدلو قائل دي نو ددوی قول د قیاس مخالف شو.او شبه به هغه وخت وې چی کله ددوی قول د قیاس موافق وې نو هرکله چی د امام اوزاعی په قول د صوم د فساد شبه نه پیداکیږی نو کفاره به نه ساقطیږی.

زمونږ دلیل دادې: "أنه صلي الله علیه وسلم إحتجم وهو صائم"

دویم روایت دادي: "أنه صلي الله علیه وسلم إحتجم وهو محرم وصائم بین مکة والمدینة"

په دې روایاتو کښې به تعارض په وجه هیڅ نه ثابتیږی.اوس به قیاس طرف ته رجوع کوو.او قیاس دادې چی په ښکر لګولوسره روژه فاسد نشی ځکه چی روژه په «دخول شئ ف البطن» سره فاسدیږی،په خروج د شئ سره نه فاسدیږی. (العنایه علي الهدایه)

***************

## ۶۲_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الوِصَالِ لِلصَّائِمِ

### دمسلمان دپاره مسلسل روژې نیول مکروه دي

۷۷۸_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ المُفَضَّلِ، وَخَالِدُ بْنُ الحَارِثِ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُوَاصِلُوا"، قَالُوا: فَإِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "إِنِّي لَسْتُ كَأَحَدِكُمْ، إِنَّ رَبِّي يُطْعِمُنِي وَيَسْقِينِي". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي

هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَبَشِيرِ ابْنِ الخَصَاصِيَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ كَرِهُوا الوِصَالَ فِي الصِّيَامِ. وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ كَانَ يُوَاصِلُ الأَيَّامَ وَلَا يُفْطِرُ. (1)

**ترجمه** : د انس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مسلسل روژي مه نيسئ هغوئ عرض اوکړو تاسو خو خپله مسلسل روژی نيسئ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زه ستاسو په شان نه يم په ما باندي خپل رب راباندي خورروي او څکوي.

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعلي، ابوهريره، عائشه، ابن عمر، جابر ، ابو سعيد خدري، بشر بن خصاصيه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او په همدي داهل علمو عمل دي او هغوئ بغير دافطار کولو نه مسلسل روژي نيول مکروه گنړي، دعبدالله بن زبير رضي الله عنهما نه مروي دي چي هغه به يو څو ورځي يوځاي کولي او افطار به يي نه کولو يعني تسلسل به يي اختيارولو.

**لغات**: الوصال : دوصل وصلا ضرب نه په معني دپيوند او متصل کولودي.

**تشريح** : يعني رسول الله دمسلسل روژو تيولو نه منع کړي ده داسي چي نه په مينځ کي ناغه کوي او نه پيشمني کوي او نه افطار يعني شپه او ورځ مسلسل روژي دي اونه نيولي شي ځکه چي رسول الله اسان دين راوړي دي او په دي کي خو مشقت زياتيږي، دامام شافعي او مالك او ابو حنيفه په نزد داسي روژي نيول مکروه دي.

" يطعمني ربي ويسقيني" يعني ماته زما رب خوراك څښاك راکوي په دي کي متعدد اقوال دي مثلا الله تعالي حقيقتا خوراك څښاك ورکري مگر دبعضو په نزد ددينه مراد دقوت پيدا کول دي چي الله تعالي يي بغير دخوراك نه په دي کي پيدا کوي ، دابن قيم خيال دادي چي الله تعالي مالره په انوارو مشاهده کي مشغول ساتي په کوم کي چي زه دخوراك او څښاك نه بي پرواه يم او روحاني غذا راته ملاويږي په داسي وخت کي جسماني غذا ته ضرورت نه پاتي کيږي.

***************

## ٦٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْجُنُبِ يُدْرِكُهُ الْفَجْرُ وَهُوَ يُرِيدُ الصَّوْمَ

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢١٥)

## که په جنب باندي سحر شي او روژه نيول غواړي نو دده باره کي به حکم دي

٧٧٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، قَالَ: أَخْبَرَتْنِي عَائِشَةُ، وَأُمُّ سَلَمَةَ زَوْجَا النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يُدْرِكُهُ الْفَجْرُ وَهُوَ جُنُبٌ مِنْ أَهْلِهِ، ثُمَّ يَغْتَسِلُ فَيَصُومُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ قَالَ قَوْمٌ مِنَ التَّابِعِينَ: إِذَا أَصْبَحَ جُنُبًا يَقْضِي ذَلِكَ الْيَوْمَ، وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ. (١)

**ترجمه**: عائشی رضي الله عنها نه روايت د ی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم باندي به صبا شو په داسی حال کي چي هغوئ باندی به غسل فرض وو دکور والي په وجه بيابه يی دصباکيدو نه پس غسل اوکړو او روژه به يی اونيوله

امام ترمذي واني دعائشه او دام سلمه حديث حسن صحيح دي دصحابه کرامو او دهغوئ نه پس په اهل علمو کي داکثرو هم دا قول دي، سفيان ثوري، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه هم په دي باندي قول کړي دي، او دتابعينو يو جماعت واني کله چي په چا باندي دجنابت په حالت کي سبا شي نو دي به ددي ورخي قضاء راوړي ليکن اولني قول زيات صحيح دي

**لغات** يدركه: ادرك الشيء ، پخپل وخت رسيدل ادرك يدرك ادراك دباب افعال نه معني دکوم څيز موندل.

**تشريح** : وهو جنب من اهله : يعني هغه جنب وو ، علماء واني که چاته جنابت لاحق شي نو ضروري نه ده چي دسبا کيدو نه مخکي دي غسل اوکړي په همدي حالت کي دي دروژي نيت اوکړي او بيا دي ورروسته غسل اوکړي په دي باندي دځلورو واړو مذهبونو اتفاق دي ليکن دابراهيم نخعي او بعضي علماؤ رايه داده چي جنب په جنابت کي روژه نشي نيولي اول به خان پاکوي بيابه دروژي نيت کوي

***************

١ _ البخاری في الصوم ٢٢ (١٩٢٦) . صحيح مسلم في الصيام ١٣ (١١٠٩) . سنن ابی داود في الصيام ٣٦ (٢٣٨٨) . رتحفة الأشراف : ١٤٦٩٦) . موطا امام مالک في الصيام ٤ (١٢) . مسند احمد (٦ في ٣٨ . وسنن الدارمی في الصوم ٢٢ (١٤٦٦)

## ٦٤_ باب مَا جَاءَ فِي إِجَابَةِ الصَّائِمِ الدَّعْوَةَ

### دروژه دار دپاره د دعوت قبلولو بيان

٧٨٠_ حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ مَرْوَانَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَوَاءٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ فَلْيُجِبْ، فَإِنْ كَانَ صَائِمًا فَلْيُصَلِّ". يَعْنِي الدُّعَاءَ. (1)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي په تاسو کي چاته دخوراك دعوت ورکړي شي نو دا دي قبول کړي او که روژه يي وي نو که زړه يي غواړي کوربه ته دي دعا اوکړي.

**تشريح**: ددعوت قبلولو فضائل اونه قبلولو باندي وعيد:

څوك چي ددعوت قبلولو نه انكار كوي هغه دالله او رسول نافرمانه دى (مسلم)

مروي دي چي څوك دوليمي دعوت نه قبلوي هغه گنهگاريږي ليکن صرف دهغي وليمي مذمت راغلي دي په کومه کي چي صرف مالدارانو ته دعوت ورکولي شي او غريبان پريخودي شي.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که زه چا دبيزي يوي خپئ (سوئ) ته اوبللم نو دعوت به يي قبول کړم (بخاري).

علماء وائي په دي روايت کي درسول الله دتواضع او سادگئ او انکسارئ بيان دي ځکه چي خپي او سر په غوښه کي ډير کم قيمت څيز وي مطلب دادي چي دمعمولي څيز دعوت راته راکړي شي نو هم ورته ورځم . په دي کي ديته هم اشاره اوشوه چي يو کس دي دبل دتاليف قلب خيال اوساتي يو سړي غريب وي ډير څه نه شي کولي نو که دهغه سره هر څه وي دهغي قبلول پکار دي ددي دپاره چي دده تاليف قلب اوشي او په احساس کم ترئ کي مبتلا نشي

****************

---

1 أخرجه. مسلم في الصيام ٢٨ (١١٥٠). سنن ابي داود في الصيام ٧٥ (٢٤٦٠). سنن ابن ماجه في الصيام ـ ٢ (١٧٥٠). مسند احمد (٢ في ٢٤٢). سنن الدارمي في الصيام ٣١ (١٧٧٨)

٧٨١_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ صَائِمٌ فَلْيَقُلْ: إِنِّي صَائِمٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَكِلَا الحَدِيثَيْنِ فِي هَذَا البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل كوي چي فرمائيلي يي وو كله چي په تاسو كي يو كس ته دعوت وركړي شي او دهغه روژه وي نو دعوت وركونكي ته دي داسي اووائي "زه روژه دار يم" امام ترمذي وائي دا دواړه حديثونه په دي باب كي دابوهريره نه په حسن صحيح سند مروي دي

***************

## ٦٥_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ صَوْمِ الْمَرْأَةِ إِلاَّ بِإِذْنِ زَوْجِهَا

### دخاوند داجازت نه بغير دښځو دپاره د نفلي روژو نيولو دكراهت بيان

٧٨٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَنَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالاَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَصُومُ الْمَرْأَةُ وَزَوْجُهَا شَاهِدٌ يَوْمًا مِنْ غَيْرِ شَهْرِ رَمَضَانَ إِلَّا بِإِذْنِهِ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (٢)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي د يوي ښځي دپاره جائز نه دي چي خاوند يی په كور وي او بی دهغه داجازت نه نفلي روژه اونيسي مگر علاوه د رمضان د روژو نه.

امام ترمذي وائي دابو هريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عباس او دابوسعيد خدري رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي

1 أخرجه: صحيح مسلم في الصيام ٢٨ (١١٥٠)، سنن ابي داود في الصيام د_ (٢٤٦٠)، سنن ابن ماجه في الصيام ٤٠ (١٧٥٠)، مسند احمد (٢ في ٢٤٢)، سنن الدارمي في الصيام ٣١ (١٧٠٨)

2 ابن ماجه في الصيام ٥٣ (١٧٦١)، (بدون ذكر رمضان)، سنن الدارمي في الصوم ٢٠ (١٧٦١)، (تحفة الأشراف: ١٣٦٨٠)، مسند احمد (٢ في ٢٤٥، ٣٦٣)

**لغات**: اذن اذنا دسمع نه معني غوږ ايښودلو او اجازت ورکولو ته ونيلي شي.

**تشريح** :

**د نفلي روژي نه نيولو وجه**

يعني دښځي دپاره دخاوند داجازت نه بغير روژي نيول جائز ندي، علماؤ ددينه نفلي روژي مراد کړي دي.

په بل روايت کي راځي "ومن حق الزوج علي زوجته ان لاتصوم تطوعا الا باذنه وان فعلت لم يقبل".

امام نووي وايي چي خاوند هر وخت دښځي دفائدي اخستلو حق هر وخت لري نو که ښځه دخاوند داجازت نه بغير روجي نيسي نودخاوند د حق فوت کولو په وجه به دا روژه قبوله نوي شاهد ،شاهد په معني دحاضر دي نووي وايي چي که خاوند غائب وي نو بيا باك نشته دلته معلومه شوه چي دښځي دپاره پداسي نوافلو کي مشغوليدل درست ندي کوم چي خاوند لره دخپل حق نه منع کوي ، اوکه دخاوند داجازت نه بغير وي نو خاوند يي ورباندي ماتولي هم شي، دا هم معلومه شوه چي د نفلو نه دخاوند حق مقدم دي ، نزهة المتقين والا ددي دا وجه بيان کړي ده چي دخاوند په حق کي دعزت او عظمت او عصمت حفاظت دي ځکه په نفلو مقدم دي

****************

## ٦٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي تَأْخِيرِ قَضَاءِ رَمَضَانَ

**دتاخير سره د رمضان دقضاء راوړلو بيان**

**٧٨٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ السُّدِّيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ الْبَهِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " مَا كُنْتُ أَقْضِي مَا يَكُونُ عَلَيَّ مِنْ رَمَضَانَ إِلَّا فِي شَعْبَانَ حَتَّى تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَقَدْ رَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَ هَذَا. (١)**

---

[1] ـ مسند احمد (٦ في ١٢٤، ١٣١، ١٧٠) . وأخرجه صحيح البخاري في في الصوم ٤٠ (١٩٥٠) . صحيح مسلم في الصوم ٢٦ (١١٣٦) . سنن ابي داود في الصيام ٤٠ (٢٣٩٩) . سنن النسائي في الصيام ٦٣ (٢٣٢١) . سنن ابن ماجه في الصيام ١٣ (١٦٦٩)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي زما نه چي به درمضان په مياشت كي كومي روژي قضاء كيدلي نو چي څو پوري رسول الله صلي الله عليه وسلم ژوندي وو ما به په شعبان كي دهغي قضاء راوړله ، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : **درمضان قضاء دويم رمضان پورې روسته كول**

كه چري په كوم كس باندي د رمضان قضاء واجب وي،او قضاء مؤخره كړي،تردې چي دويم رمضان راشي نود دويم رمضان روژې دې اونيسي ځكه چي هغه روژې په خپل وخت كي دى،او ددې دويم رمضان روژې په ده باندې متعين دى،په دې وجه په دې كي د نورو روژو گنجائش نشته،اود تير رمضان روژو قضاء به ددې دويم رمضان نه پس ادا كوى ځكه چي دا زمانه هم د قضاء ده، تردې مقام پوري مسئله اتفاقي ده خو اختلاف په دي كي دى كله دا روژې د كال نه پس قضا راوړي نو څه به كوي صرف قضاء كافي ده او كه فديه به هم وركوي په دي كي د علماؤ اختلاف دى:

(١) احناف فقهاء وايي ددې تاخير په وجه به په ده باندې فديه واجب نه وى.

(٢) او د امام شافعى امام مالك اود امام احمد (رحمه الله) په نزدئې كه بغير د عذر نه تاخير اوكړو نوقضاء به هم راوړى،او د هرې روژې په بدله كي به فديه هم وركوى،

دمذكوره اهل علمو دليل دادې چي قضاء د دوه رمضانونو په مينځ كي موقت دم لكه چي دعائشه رضى الله عنها نه نقل دى چي په رمضان كي راپيښيدونكې د حيض د ورځو د روژو قضاء به ئې د شعبان پورې مؤخر كوله،ددې نه معلومه شوه چي د قضاء آخر وخت ترشعبان پورې دي يعنى د رمضان د فوت شوو روژو قضاء زيات نه زيات شعبان پورې مؤخر كيدلې شى،خوكه د شعبان پورې ئې قضاء اونكړه،بلكه دويم رمضان شروع شو نو گويا چي ده قضاء د خپل وخت نه مؤخر كړې ده نو قضاء د خپل وخت نه د مؤخر كولو په وجه به فديه واجب وى.

زمونږ دليل دادې چي الله تعالى د قضاء امر مطلق فرمائيلې دي اود امر مطلق موجب،على الفور،نه وى،بلكي ،على التراخى، وى،هم دا وجه ده، كه چري يو كس د رمضان تيريدلو نه پس د رمضان د قضاء نه مخكي نفلى روژې اونيولې نو په اتفاق سره روا دى،كه د رمضان قضاء ،على الفور، واجب وې نود رمضان د قضاء نه بغير به نفلى روژې روا نه وې نوهر چي د رمضان قضاء ،على التراخى ، واجب ده نوپه ژوند كي د مرگ نه وړاندې كله چي اوغواړى،قضاء دې پوره كړى،پوره ژوند د قضاء وخت دې.(العنايه علي الهدايه).

*****************

٧٨٤_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ مَوْلَاةً لَنَا يُقَالُ لَهَا لَيْلَى تُحَدِّثُ، عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ عُمَارَةَ بِنْتِ كَعْبٍ الْأَنْصَارِيَّةِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا فَقَدَّمَتْ إِلَيْهِ طَعَامًا، فَقَالَ: "كُلِي". فَقَالَتْ: إِنِّي صَائِمَةٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الصَّائِمَ تُصَلِّي عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ إِذَا أُكِلَ عِنْدَهُ حَتَّى يَفْرُغُوا". وَرُبَّمَا قَالَ: "حَتَّى يَشْبَعُوا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ شَرِيكٍ. (١)

**ترجمه** : د ام عماره انصاريه رضي الله عنها نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم هغوى كره تشريف راوړو، او هغى ورته څه خوراك پيش كړو. رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ته هم خوره هغى عرض اوكړو خما روژه ده رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دروژه دار مخكي چي خوراك خوړى شي، فرشتى هغه ته درحمت دعا كوي. ترهغى چي خلق خوراك نه اوزګار شي، يايى اوفرمائيل چي خلق ماړه شي.

امام ترمذي روايت كړى دى او حديث حسن يى ورته وئيلى دى او دا روايت د شريك د روايت نه زيات صحيح دى.

**لغات** : يفرغوا. فرغ يفرغ فراغا معني فارغيدل ديو كار نه.

**تشريح** : په دي حديث كي دروژه دار دفضيلت بيان دى دچا په وړاندي چي خوراك اوكړي شي دهغي په وجه فرشتي ده ته دعا كوي.

****************

## ٦٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الصَّائِمِ إِذَا أُكِلَ عِنْدَهُ

### فضيلت دهغه روژه دارچي بل روژه دار ورسره افطاري وكړي

٧٨٥_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ لَيْلَى، عَنْ مَوْلَاتِهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الصَّائِمُ إِذَا أَكَلَ عِنْدَهُ الْمَفَاطِيرُ صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ حَبِيبِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ لَيْلَى، عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ عُمَارَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ(٢)

---

1 ابن ماجه في الصيام ٣٦ (١٧٤٨). (تحفة الأشراف: ١٨٣٣٥)

2 ابن ماجه في الصيام ٣٦ (١٧٤٨). (تحفة الأشراف: ١٨٣٣٥)

**ترجمه** ليلي دخپل ازاد كړي غلام نه اوهغه درسول الله صلي عليه وسلم نه روايت نقل كړى دى چي رسول الله صلي الله عليه سلم فرمائيلي دي د كوم روژه دار سره چي نو رو خلقو روژه ماته كړه فرشتي دهغه دپاره دعا غواړي.

امام ترمذي وايي چي دا حديث شعبه هم د حبيب بن زيد نه او هغه د ليلي نه او هغي دخپلي نيا ام عماره او هغي د رسول الله ددي حديث هم معني روايت نقل كړى دى

**شريح** : روژه دارو دپاره د افطاري انتظام كونكي دپاره د اجر بارد كي لاتعداد احاديث وارد دي يعني چي روژه دار ته داسي ځيز وركړي چي هغه وربانديي روژه ماته كړي برابره خبره ده چي كجوري وي او كه داوبو گوټ وي او كه بل څه وي.

په يو بل روايت كي دسلمان فارسي رضي الله عنه نه مروي دي او په هغه روايت كي درمضان قيد هم لګولي شوي دي چي چاپه رمضان كي روژه دار ته افطاري وركړو نو ده ته به دده دګناهونو بخشش اوشي او داور نه به ورته ازادي ملاؤ شي او هم دومره اجر به دافطاري وركونكي ته هم ملاوېږي او ددي روژه دار په اجر كي به هيڅ كمي نه راځي صحابه كرامو عرض اوكړو اي دالله رسوله په مونږ كي خو هر كس دومره څه نه بيامومو چي هغه يي چاته دروژه ماتي دپاره وركړي رسول الله اوفرمائيل چي الله تعالي دا اجر ديوي كجوري يا داوبو ياد شودو دګوټ په وركولو هم وركوي.

علماء وايي پدي حديث كي دافطاري وركولو ترغيب دي خكه چي ددي په سبب په مسلمانانو كي محبت خورېږي.

****************

٧٨٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ مَوْلَاةٍ لَهُمْ يُقَالُ لَهَا لَيْلَى، عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ عُمَارَةَ بِنْتِ كَعْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ حَتَّى يَفْرُغُوا أَوْ يَشْبَعُوا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأُمُّ عُمَارَةَ هِيَ جَدَّةُ حَبِيبِ بْنِ زَيْدٍ الأَنْصَارِيِّ. (١)

**ترجمه** : د ام عماره بنت كعب رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اود سابقه حديث هم معني روايت يي بيان كړو، مګر هغي پخپل روايت

١ ابن ماجه في الصيام ٣٦ (١٧٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٣٥)

کي يفرغوا او يشبعوا الفاظ ذکر نکړل، امام ترمذي وايي ام عماره د حبيب بن زيد انصاري رضي الله عنه نیاده.

*****************

## ٦٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي قَضَاءِ الْحَائِضِ الصِّيَامَ دُونَ الصَّلَاةِ

### حائضه به دروژو قضاء راوري او دمونځ قضاء به نه راوړو

٧٨٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ عُبَيْدَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كُنَّا نَحِيضُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ نَطْهُرُ " فَيَأْمُرُنَا بِقَضَاءِ الصِّيَامِ وَلَا يَأْمُرُنَا بِقَضَاءِ الصَّلَاةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مُعَاذَةَ، عَنْ عَائِشَةَ أَيْضًا، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا نَعْلَمُ بَيْنَهُمُ اخْتِلَافًا، إِنَّ الْحَائِضَ تَقْضِي الصِّيَامَ وَلَا تَقْضِي الصَّلَاةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَعُبَيْدَةُ هُوَ ابْنُ مُعَتِّبٍ الضَّبِّيُّ الْكُوفِيُّ يُكْنَى أَبَا عَبْدِ الْكَرِيمِ.[1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په زمانه کي به په مونږ بيماري راتله او بيا چي به پاکي راغله نو مونږ ته به يې دروژې دقضاء راوړلو حکم کولو او دمونځ دقضاء راوړلو حکم به يې نه کولو.

امام ترمذي واني دا حديث حسن دي ، دا حديث دمعاذه نه هم مروي دي هغوئ دعائشه رضي الله عنها نه نقل کړي دي، او په همدي داهل علمو عمل دي مونږ ته ددوئ په مينځ کي هيڅ اختلاف معلوم نه دي چي حائضه به دروژې قضاء راوري او دمونځ به نه راوړي.

**تشريح** : **په رمضان کي د حيض نه پاکيدلو مسئله:**

که په رمضان کي د ورځي حائضه پاکه شوه نو په باقي ورځ کي به څه کوي امساك به کوي اوکه خوراك کولي شي په دي کي د اهل علمو او فقهاو دوه مسلکونه دي:

(١)زمونږ د احنافو په نزدپه پدې باندې د ورځ په باقي حصه کي د مفطرات نه امساك واجب دي يعنی دددي د مخکي نه روژه نه وه.خوددې باوجود به د مابنامه پورې د روژه دارو پشان وخت تیروی،

---

[1] ـ ابن ماجه في الصيام ١٣ (١٦٧٠) . سنن الدارمي في الطهارة ١٠١ (١٠١٩) . (تحفة الأشراف : ١٥٩٤٢) (صحيح) وأخرجه صحيح مسلم في الحيض ١٥ (٣٣٥) . سنن ابي داود في الطهارة ١٠٥ (٢٦٣) . سنن النسائي في الصيام ٦٣ (٢٣٢٠) . سنن ابن ماجه في الطهارة ١١٩ (٦٣١) . مسند احمد (٦ في ٢٣، ٢٣١، ٢٣٢) . سنن الدارمي في الطهارة ١٠١ (١٠٢٠)

(۲) امام شافعی (رحمه الله) فرمائی چی په دوی د باقی ورځي امساك واجب نه دي. يعني خوراك كول ورته جائز دي. (شروح هدايه)

***************

## ٦٩_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ مُبَالَغَةِ الاِسْتِنْشَاقِ لِلصَّائِمِ

### دروژه دار دپاره په پوزه کي په اوبو رابنکلو کي دمبالغي کولو دکراهت بيان

٧٨٨_ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الْحَكَمِ الْبَغْدَادِيُّ الْوَرَّاقُ، وَأَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَاصِمَ بْنَ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخْبِرْنِي عَنِ الْوُضُوءِ، قَالَ: "أَسْبِغِ الْوُضُوءَ، وَخَلِّلْ بَيْنَ الأَصَابِعِ، وَبَالِغْ فِي الاِسْتِنْشَاقِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ صَائِمًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَرِهَ أَهْلُ الْعِلْمِ السُّعُوطَ لِلصَّائِمِ، وَرَأَوْا أَنَّ ذَلِكَ يُفَطِّرُهُ، وَفِي الْبَابِ مَا يُقَوِّي قَوْلَهُمْ. (¹)

**ترجمه** : دلقيط بن صبره رضي الله عنه نه روايت دی چي ما عرض وكړو يا رسول الله د اودس صحيح طريقه راته اوښايی؛ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل د اودس اندامونه ښه وينځه (چه يو ويښته هومره ځای پکي اوچ پاتی نشي ) دګوتو خلال كوه اوپوزی ته اوبو اچولو كي پوره كوشش كوه (چه دننه پوزه ښه صفا شي) مګر كه روژه دار وي (نوبيا پوزی ته اوبو اچولو كي احتياط كوه ساه ډيره په بره رابنكلو كي دروژی ماتيدو خطره ده دپوزی نه اوبه نيغی حلق ته كوزيږي واپس كيدی نه شي).

داحديث امام ابو داود او امام ترمذي روايت كړی دی اوحديث حسن صحيح يی ورته وئيلی دی او اهل علمو د روژه دار دپاره په پوزه كي اوبه په زور سره رابنكل مكروه ګڼلي دي. په دي باب كي نور داسي روايات هم شته چي ددوی قول ته تقويت وركوي.

**لغات** : الاستنشاق: معني په پوزه كي اوبه اچول

**تشريح** : په دي باب كي دا مسئله بيان شوي دي چي دروژي په حالت كي په مضمضه او استنشاق كي مبالغه كول جائز نه دي ځكه چي په دي كي دحلق نه داوبو كوزيدو امكان دي . او په استنشاق كي دمبالغي كولو په صورت كي دماغو ته داوبو رسيدو امكان دي .

په كامل اودس كي دا هم داخل دي چي دګوتو په مينځ كي دبندونو خلال اوكړي او همدا رنګي په پوزه كي اوبه واچوي او همدا رنګي غرغره كول دي مګر په روژه كي احتياط

---

¹ _ انظر حديث رقم: ٣٨ (تحفة الأشراف: ١١١٧٢)

ضروري دي خکه چي په پوزه ياخوله چي اوبه تيري شي نو بيا روژه ماتيږي.

******************

## ٧٠ـ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ نَزَلَ بِقَوْمٍ فَلاَ يَصُومُ إِلاَّ بِإِذْنِهِمْ

## څوک چي ديو جماعت ځاي ته ورشي دهغوي داجازت نه بغير دي نفلي روژي نه نيسي

٧٨٩ـ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُعَاذٍ الْعَقَدِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ وَاقِدٍ الْكُوفِيُّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ نَزَلَ عَلَى قَوْمٍ فَلاَ يَصُومَنَّ تَطَوُّعًا إِلاَّ بِإِذْنِهِمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ لاَ نَعْرِفُ أَحَدًا مِنَ الثِّقَاتِ، رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. وَقَدْ رَوَى مُوسَى بْنُ دَاوُدَ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الْمَدَنِيِّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوًا مِنْ هَذَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ ضَعِيفٌ أَيْضًا، وَأَبُو بَكْرٍ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، وَأَبُو بَكْرٍ الْمَدَنِيُّ الَّذِي رَوَى عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ اسْمُهُ: الْفَضْلُ بْنُ مُبَشِّرٍ وَهُوَ أَوْثَقُ مِنْ هَذَا وَأَقْدَمُ. [1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چي ديو قوم سره قيام اوکړي يعني دهغوئ ميلمه شي نو دهغوئ داجازت نه بغير دي نفلي روژي نه نيسي.

امام ترمذي وائي دا حديث منكر دي مونږ ته په ثقاتو كي هيڅوك نه دي معلوم چي دا يي دهشام بن عروه نه نقل كړي وي . موسي بن داود دا روايت په سند د ابي بكر المدني عن هشام بن عروه عن ابيه عن عائشه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره دا رنګي نقل كړي دي. او دا حديث ضعيف هم دي ابوبكر راوي دمحدثينو په نزد ضعيف دي او كوم ابوبكر مدني چي دجابر نه روايت نقل كوي دهغه نوم فضل بن مبشر دي هغه دده نه زيات ثقه دي او دده نه د مخكني زماني دي.

******************

## ٧١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الِاعْتِكَافِ

## داعتكاف بيان

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦٤٦٤)

٧٩٠_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ "كَانَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَأَبِي لَيْلَى، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** د عائشی رضي الله عنها نه روایت د ی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به هميشه درمضان اخرو لسو ورخو کي اعتکاف کولو تردی چي الله تعالي واخستو.

امام ترمذي واني دابو هريره او عائشه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابی بن کعب، ابوليلي، ابو سعيد، انس، او ابن عمررضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**لغات** : توفاه: توفي توفيا معني پوره کيدل لکه توفاه الله يعني الله ده لره وفات کړو.

العاکف فاعل دي معني يي مقيم ده جمع يي عاکفون او عکف او عکوف ده.

**تشريح** : اعتکاف د .باب افتعال.مصدر دي د .عکف. نه ماخوذ دي او.عکف. متعدی دي او .عکوف. لازم دي د شريعت په اصطلاح کي اعتکاف اوسيدل دروژي په حالت کي داعتکاف په نيت په مسجد کي .

حتي توفاه: تردي چي رسول الله ددنيا نه رخصت شو يعني هميشه يي په مدينه منوره کي اعتکاف کړي دي همدا وجه ده چي درمختار والا ليکلي دي چي دا سنت مؤکده علي الکفايه دي ددي مطلب دادي که يو کس هم اعتکاف اوکړو نو دټولو ذمه به فارغه شي او که نه نو ټول به ګنهګار وي .

## داعتکاف شرعي حکم

د رمضان د آخری عشري اعتکاف سنت مؤکده دي.

مګر بعضي فقهاؤ ددي په وجوب قول کړی دی ددي دسنتيت دليل دادی چي نبی کريمﷺ په دي باندي مواظبت کړي دي لکه چي د ام المومنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي:

"قالت عائشه رضی الله عنها أن رسول اللهﷺ كان يعتكف فی العشر الأخير من رمضان حين قدم المدينة إلى أن توفاه الله تعالى"

عائشه رضی الله عنها فرمائی چی کله نبی کريمﷺ مدينې ته تشريف راوړلو نود وفاته پورې ئې د رمضان په آخری عشره کښې اعتکاف کولو.اود نبی کريمﷺ په يوځيز باندې

[1] _ وأخرجه النسائی فی الكبری (تحفة الأشراف: ١٣٢٨٥ و ١٦٦٢٤)

مداومت کول،ددې د مسنون کېدلو دلیل دي په دې وجه د رمضان په آخری عشره کښې اعتکاف سنت مؤکده دي.
لیکن دلته دا اعتراض کیدې شي چې د رسول الله ﷺ مواظبت کول د وجوب علامت دي نود رمضان د آخري عشرې اعتکاف واجبېدل پکار دی. ددې جواب دادې چې رسول الله ﷺ به کوم څیز واجب گرځول غوښتل نو په هغې به ئې مواظبت کولو،اود مواظبت نه پس به ئې د هغې د کولوحکم فرمائیلو،او په پریخودونکی به ئې نکیر فرمائیلو،حالانکه نبی کریمﷺ خو نه ددې حکم فرمائیلې دي اونه ئې ددې په پریخودلو باندې نکیر فرمائیلې دي پس که د رمضان د آخری عشرې اعتکاف واجب وې نو نبی کریمﷺ به خلقو ته ددې حکم فرمائیلې وو، او په پریخودونکی به ئې نکیر فرمائیلې وې نو ثابته شوه چې دا واجب نه دې.
د اعتکاف د عدم وجوب دلیل دا هم دې چې یو ځل نبی کریمﷺ د اعتکاف کولو دپاره په مسجد کښې خیمې لګولویعنی د پرده اچولو حکم اوکړلو،بیا مسجدته داخل شو، نو دوه خیمې ئې نورې هم اولیدلې،ددې باره کښې ئې تپوس اوکړو نو معلومه شوه چې یوه خیمه د عائشه رضی الله عنها وه،او یوه د حفصه رضی الله عنها وه چې دا ئې اولیدلې نو نبی کریمﷺ په غصه شو نود خپلې خیمې لرې کولو حکم ئې اوکړو،اودې کال ئې اعتکاف پریخودلو،ددې نه هم معلومیږی چې اعتکاف واجب نه دې ځکه چې د وجوب دلیل بغیر د پریخودلو مواظبت کول دی.

***************

۷۹۱ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَعْتَكِفَ صَلَّى الفَجْرَ، ثُمَّ دَخَلَ فِي مُعْتَكَفِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. رَوَاهُ مَالِكٌ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ مُرْسَلًا، وَرَوَاهُ الأَوْزَاعِيُّ، وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ يَقُولُونَ: إِذَا أَرَادَ الرَّجُلُ أَنْ يَعْتَكِفَ صَلَّى الفَجْرَ ثُمَّ دَخَلَ فِي مُعْتَكَفِهِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا أَرَادَ أَنْ يَعْتَكِفَ فَلْتَغِبْ لَهُ الشَّمْسُ مِنَ اللَّيْلَةِ الَّتِي

يُرِيدُ أَنْ يَعْتَكِفَ فِيهَا مِنَ الْغَدِ، وَقَدْ قَعَدَ فِي مُعْتَكَفِهِ. وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ.
(¹)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم داعتكاف اراده اوكړه نو دسحر مونځ به يي شروع كړو او بيا به پخپل معتكف كي داخل شو.

امام ترمذي وائي دا حديث ديحي بن سعيد په واسطه دعمره نه مرسلا هم مروي دي (اوپه دي كي دعائشي دواسطي ذكر نشته) او دي لره امام مالك او بعضي نورو محدثينو ديحي بن سعيد نه او يحي دعمره نه مرسلا نقل كړي دي، اوضاعي، سفيان ثوري، او بعضي نورو محدثينو په سند ديحي بن سعيد عن عروة عن عائشه نقل كړي دي، دبعضي اهل علمو په نزد عمل په همدي حديث دي دوئ وائي كله چي څوك داعتكاف اراده اوكړي نو دسحر مونځ دي اوكړي او بيا دي پخپل معتكف كي داخل شي، امام احمد او داسحاق بن راهويه هم دا قول دي، دبعضي علماؤ قول دي كله چي څوك داعتكاف اراده اوكړي نو په راتلونكي ورځ په كومه كي چي دي اعتكاف كول غواړي په دغه ورځ چي نمر پريوځي پكار داده چي دي داعتكاف په ځاي كي ناست وي دا دسفيان ثوري او مالك بن انس قول دي.

**تشريح** : معتكف لـه پكـار دى چى غلطې خبرې نـه كوى، بلكـه نـيكې اوښـې خبرې دي كوى، اود عبادت په خيال باندې بالكل خاموش اوسيدل، هم مكروه دى،

ددې يو مطلب خو دادې چى بالكل د خبرو نه كولونذر اوكړى لكه څنګه چى مخكينو شريعتونو كښې وو، او يومطلب دادې چى بغير د نذر نه خاموش اوسيږى، او خبرې بالكل نه كوى، او يومطلب دادې چى د روژې نيت اوكړى، يعنى د ،مفطرات ثلاثه، نه د بنديدلو نيت اوكړى، اودې سره سره د كلام نه كولوهم نيت اوكړى، دلته كښې هم دا دريم صورت مناسب دي خكه چى صاحب د هدايه دليل بيان كړې دې چى د خاموش اوسيدلو روژه زمونږ په شريعت كښې عبادت نه دي بلكه د مجوسيانو فعل دي نود مجوسيانو دمشابهت نه د بچ كيدلو دپاره بالكل خاموش اوسيدل مكروه دى، خود ګناه خبرونه جدا اوسيږئ.

---

¹ _ البخارى في الاعتكاف ٦ (٢٠٣٣)، و٧ (٢٠٣٤)، و١٤ (٢٠٤١)، و١٨ (٢٠٤٥). صحيح مسلم في الاعتكاف ٢ (١١٧٣). سنن ابي داود في الصيام ٧٧ (٢٤٦٤). سنن النسائي في المساجد ١٨ (٧١٠). سنن ابن ماجه في الصوم ٥٩ (١٧٧١). موطا امام مالك في الاعتكاف ٣ (٧). (تحفة الأشراف: ١٧٩٣٠) مسند احمد (٦ في ٢٢٦)

مسئله: معتکف که د انسانی حاجت دپاره د مسجدنه بهر اووتلو. اودانسانی حاجت پوره کولونه پس ئې د ښځې سره جماع هم اوکړه نو دده دا فعل حرام دي يعنی د اعتکاف په حالت کښې جماع کول حرام دی ځکه چې د رسول الله ﷺ په زمانه کښې دخلقو عادت دا وو چې دوی به د اعتکاف په حالت کښې د مسجد نه وتل،اود خپلو ښځو سره به ئې جماع کوله،بيا به ئې غسل اوکړو،او خپل معتکف ته به راتلل نود الله تعالی دا قول: ولا تباشروهن وانتم عاكفون في المساجد. نازل شو،په دې کښې د اعتکاف په حالت کښې دجماع کولو نه منع کړې شوې ده.

اود معتکف دپاره ښځې سره لاس لګول،او ښکلول هم حرام دی ځکه چې دا دواړه خبرې د جماع دواعی (مقدمات يا اسباب) دی،او جماع چونکه د اعتکاف د ممنوعاتو نه ده،په دې وجه به ددې دواعی هم د اعتکاف په ممنوعاتو کښې شامل وی،اوکوم څيز چې ممنوع وی،هغه حرام وی،په دې وجه به دا دواړه خبرې په معتکف باندې حرامې وی لکه څنګه چې د احرام په حالت کښې مباشرت حرام دي دغه شان د مباشرت دواعی هم حرام دی.

مسئله:د معتکف دپاره په مسجدکښې دننه په اخستلو خرڅولو کښې هيڅ باك نشته،په دې شرط چې سامان مسجدته رانه وړی ځکه چې ډير کرته معتکف دپاره د اخستلو خرڅولو ضرورت پيښيږی،اوهيڅ څوك داسې کس دده سره موجود نه وی چې دده بندوبست اوکړی نو د دې ضرورت په لحاظ سره معتکف ته ددې اجازت ورکړې شوې دې فقهاؤ د اخستلو خرڅولو دپاره په مسجدکښې دننه سامان راوړل مکروه ګرځولی دی ځکه چې مسجد خالص د الله ﷻ دپاره وی،اود بنده ګانو دحقونو نه ئې دا محفوظ ساتلې دي نوچونکه مسجد ته دننه په سامان راوړلوکښې دا د بندګانو د حقونو اوسامان سره مشغولول لازميږی،په دې وجه به مسجد ته دننه د اخستلوخرڅولو سامان راوړلو.او ايخودلو اجازت نه وی.

د اعتکاف دپاره څلور څيزونه ضروری دی:

اول ايساريدل دويم مسجد دريم د اعتکاف نيت څلورم روژه.

صاحب د هدايه وائی چې ايساريدل خود اعتکاف رکن دي ځکه چې د اعتکاف لفظ په لغت کښې د ايساريدلو په معنیٰ باندې دلالت کوی،په دې وجه د ايساريدلو موجوديدل ضروری دی،او نيت چونکه د عادت اوعبادت په مينځ کښې د فرق پيدا کولو په ټولو مقصودی عبادتونوکښې شرط دي خود امام شافعی او امام احمد (رحمه الله) په نزدشرط نه دي په دې مسئله کښې امام مالك (رحمه الله) هم زمونږ هم خيال دې.

امام شافعی اود امام احمد (رحمه الله) دلیل دادې چې روژه یو عبادت دي او په خپله اصل دي او کوم څیز چې په خپله اصل وی،هغه د نورو دپاره شرط نه وی څکه به روژه د اعتکاف دپاره شرط نه وی.

****************

## ۷۲_ بَابُ مَا جَاءَ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ

### دليلة القدر بيان

قاضي ثناء الله پاني پتي داسي وضاحت پيش کړی دی: ترمذي، حاکم او ابن جرير د حسن رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په خوب کي اوليدل چي بني اميه زما په منبر رواختل رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي خوب په ليدو څه پريشاني محسوس کړه نوبدي باره کي انا اعطيناك الكوثر . او. إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ . وَمَا أَدْرَاكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ . لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ نازل شو يعني دبني اميه دزرو مياشتو دحکومت نه دليلة القدر يوه شپه بهتره ده، دقاسم بن الفضل همداني قول دي مونږ چي دبني اميه دحکومت زمانه اوشميرله نو بغير دکمي او زياتي نه زر مياشتي پوره شوي. دترمذي قول دي دا حديث غريب دي مزني او ابن کثير سخت منکر ګڼلي دي.

ابن ابي حاتم او واحدي دمجاهد قول نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دبني اسرائيلو ديو کس ذکر وکړو چي دالله تعالي په لار کي يي دزرو مياشتو پوري اسلحه اوچته کړي وه (يعني زر مياشتي جهاد يي کړي وو) مسلمانانو ددي په اوريدو سره تعجب اوکړو او پدي باره کي سورة القدر د من الف شهر پوري نازل شو، يعني دليلة القدر يوه شپه هغه زرو مياشتو نه بهتره ده په کومو کي چي بني اسرائيلو جهاد کړي وو

ابن جرير دمجاهد نه هم داسي قول نقل کړي دي چي په بني اسرائيلو کي يو کس وو چي دمابنام نه به يي دسحره پوري مونځ کولو او دسحر نه به يي دمابنام پوري جهاد کولو او دده دا عمل دزرو مياشتو پوري جاري وو نو پدي باره کي الله تعالي إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ . وَمَا أَدْرَاكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ . لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ نازل کړو

امام مالك په مؤطا کي ليکلي دي چي ديو معتمد عالم نه مي اوريدلي دي فرمائيل يي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم دامت عمرونه چونکه لنډ دي نو پدي وجه دنورو امتونو داعمالو دتعداد برابر خو ددوئ اعمال نشي کيدي څکه چي دهغوئ عمرونه زيات وو نو پدي وجه الله تعالي خپل رسول ته ليلة القدر ورکړو کوم چي دزرو مياشتو نه بهتره دي.

دزهري قول دي دليلة القدر نوم ددي شپې دعظمت ظاهرولو په وجه پدي باندي ایخودلي شوي دي لکه چي الله تعالي فرمائيلي دي "وما قدروا الله حق قدره" یعني په واقع کي چي دالله تعالي څنګه عظمت دي هغه شان هغوئ اونکړو، ابو الضحي دابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړي دي چي دنصف شعبان په شپه الله تعالي دتمامو کارونو فیصلي کوي او دلیلة القدر په شپه کارنده کارانو ته ددي کارونو تفویض کوي (بغوي).

دليلة القدر وجه دتسميه دا هم بيان کړي شوي ده چي ددي شپې اعمال دالله تعالي په نزد ډير قدرمند دي او ډير لوي ثواب لري په ليلة القدر کي دقران دنزول دا معني ده او دابن عباس رضي الله عنهما دکلام نه هم دا معلوميږي چي په ليلة القدر کي پوره قران دلوح محفوظ نه په دنيوي اسمان کي بيت العزت ته نازل شوي دي او بيا د بيت العزت نه په شلو کالو کي جبرئيل عليه السلام لږ لږ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته رارسولي دي او دايت کريمه "بمواقع النجوم" (سورة النجم) هم دا مطلب دي.

دابو ذر رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دابراهيم عليه السلام صحيفي په دريم رمضان او په بل روايت کي راغلي دي چي په اول درمضان کي نازل شوي وي او تورات په موسي عليه السلام په شپږم درمضان نازل شوي وو او انجيل په عيسي عليه السلام په ديارلسم رمضان نازل شوي وو او زبور په اتلسم رمضان نازل شوي وو او قران په رسول الله صلي الله عليه وسلم په څليريشتم رمضان درمضان شپږ ورځي لا باقي وي چي نازل شو.

امام احمد او طبراني دواثله بن الاسقع رضي الله عنه حديث نقل کړي دي چي دابراهيم عليه السلام صحيفي درمضان په اوله شپه نازلي شوي وي او تورات په شپږم درمضان او انجيل په ديارلسم درمضان نازل شوي وو او قران په څليريشتم درمضان ددي احاديثو په بنا بعضو علماؤ ليکلي دي چي ليلة القدر درمضان په څلريشتمه شپه نازل شوي دي، ابن مسعود رضي الله عنه، شعبي، حسن بصري، او قتاده ته ددي قول نسبت شوي دي ددي تائيد دبلال رضي الله عنه په هغه مرفوع حديث سره کيږي کوم چي امام احمد نقل کړي دي چي ليلة القدر لره په څلريشتم رمضان اولټوئ، ددي حديث په سند کي ابن ابي لهيعه راوي دي، ابن حجر ليکلي دي چي ابن لهيعه ددي حديث په مرفوع ګرځولو کي غلطي کړي ده.

الغرض: دا احاديث که صحيح هم وي خو بيا هم ددينه دا نه ثابتيږي چي هر يو کال ليلة القدر په څليريشتم رمضان وي بلکه دومره ورنه معلوميږي چي په کوم کال قران نازل شوي وو او دکوم کال متعلق چي دبلال رضي الله عنه قول مروي دي په هغه کلونو کي ليلة القدر په څلريشتم رمضان راغلي دي.

**فائده**: دليلة القدر دتعين متعلق دعلماؤ اقوال مختلف دي چې تعداد يې تقريبا څلويښتو ته رسيږي ، صحيح خبره دا ده چې ليلة القدر هر كال درمضان په اخري عشره كې وي مګر تاريخونه بدليږي رابدليږي (يعني دهر كال دپاره يوخاص تاريخ مقرر نه دي) په تمامو صحيح احاديثو كې دتعارض ختمولو دپاره همدا طريقه ده .

دسلمان فارسي رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلى الله عليه وسلم دشعبان په اخري ورځ خطبه وركړه او وېې فرمائيل اي خلقو يوه عزت والامياشت تاسو ته رانزدي شوه دا دبركت والامياشت ده او پدي كې يوه شپه ده چې دزرو مياشتو نه بهتره ده. په دي حديث دهغه قول ترديد كيږي كوم كې چې ونيلي شوي دي چې ليلة القدر په رمضان كې هم وي او په غير رمضان كې هم وي او قاضي خان ددي قول نسبت امام صاحب ته هم كړي دي.

شبهه: شايد چې دا واقعه به دهغه كال وي په كوم كې چې قران نازل شوي وو او يابه شايد دهغه كال متعلق وي په كوم كې چې سلمان فارسي رضي الله عنه بيان كړي دي، ځوك چې په رمضان او غير رمضان كې دليلة القدر دراتلو قائل دي دهغوئ دمسلك ترديد پدي حديث او ايت سره نه كيږي.

****************

٧٩٢_ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجَاوِرُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ، وَيَقُولُ: "تَحَرَّوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ". وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَابْنِ عُمَرَ، وَالْفَلَتَانِ بْنِ عَاصِمٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُنَيْسٍ، وَأَبِي بَكْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَبِلَالٍ، وَعُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَوْلُهَا يُجَاوِرُ يَعْنِي يَعْتَكِفُ، وَأَكْثَرُ الرِّوَايَاتِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "الْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ فِي كُلِّ وِتْرٍ". وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ: "أَنَّهَا لَيْلَةُ إِحْدَى وَعِشْرِينَ وَلَيْلَةُ ثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ وَخَمْسٍ وَعِشْرِينَ وَسَبْعٍ وَعِشْرِينَ وَتِسْعٍ وَعِشْرِينَ وَآخِرُ لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ الشَّافِعِيُّ: كَأَنَّ هَذَا عِنْدِي وَاللَّهُ أَعْلَمُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُجِيبُ عَلَى نَحْوِ مَا يُسْأَلُ عَنْهُ، يُقَالُ لَهُ: نَلْتَمِسُهَا فِي لَيْلَةِ كَذَا، فَيَقُولُ: الْتَمِسُوهَا فِي لَيْلَةِ كَذَا. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَأَقْوَى الرِّوَايَاتِ عِنْدِي فِيهَا لَيْلَةُ إِحْدَى وَعِشْرِينَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ أَنَّهُ كَانَ يَحْلِفُ أَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ، وَيَقُولُ: أَخْبَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَلَامَتِهَا فَعَدَدْنَا وَحَفِظْنَا. وَرُوِيَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، أَنَّهُ

قَالَ: لَيْلَةُ الْقَدْرِ تَنْتَقِلُ فِي الْعَشْرِ الأَوَاخِرِ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ بِهَذَا. (1)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به درمضان په اخري عشره کي اعتکاف کولو او فرمائيل به يي ليلة القدر لره درمضان په اخري عشره کي اولټوئ.

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي د عمر. ابي بن کعب. جابر بن سمره، جابر بن عبدالله، ابن عمر. فلتان بن عاصم . انس، ابوسعيد خدري. عبدالله بن انيس. ابوبکره، ابن عباس، بلال، او عباده بن صامت رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، او د "يجاوز" معني يعتکف ده يعني اعتکاف به يي کولو، دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه اکثر مروي روايات همدا دي چي فرمائيل به يي ليلة القدر لره درمضان داخري عشري په تاق شپو کي اولټوئ او دليلة القدر په سلسله کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ۲۱، ۲۳، ۲۵،۲۷،۲۹ درمضان داخري شپي اقوال مروي دي امام شافعي وائي زما په نزد ددي مفهوم دادي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم هر سائل ته دهغه دسوال مطابق جواب ورکولو هغوئ ته به اوونيلي شول مونږ به دا په فلانئ شپه کي اولټوو؟ نو ورته به يي اوفرمائيل هو په فلانئ شپه کي يي اولټوئ، امام شافعي وائي زما په نزد دټولو نه قوي روايت ديوشتمي شپي دي او دابئ بن کعب نه مروي دي هغه به په قسم سره ونيل چي دا اوويشتمه شپه ده فرمائيل به يي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته ددي علامات خودلي دي او دا مونږ په شمير شميرلي شوي ياد ساتلي ده، دابو قلابه نه مروي دي ليلة القدر اکثر اخري عشري ته منتقل کيږي.

**تشريح** : امام نووي د ليلة القدر متعلق اعلي ترين تحقيق ذکر کړی دی:

### دليلة القدر معني

دقدر معني عظمت ، تقدير او حکم او تنگي وغيره چونکه دا شپه هم عظمت والاده او انسان هم په توبي سره او استغفار سره عظمت والاجوړيږي دتقدير او حکم والاځکه ده چي ديو کال تمام معاملات په دي شپه کي فرشتو ته سپارلي شي او دتنگئ والاځکه ده چي دفرشتو دکثرت په وجه په دي شپه زمکه تنگه شوي وي.

### دليلة القدر فضائل

---

1 البخاری في ليلة القدر ۳ (۲۰۲۰). (تحفة الأشراف: ۱۷۰۶۱)

په دي شپه قران هم نازل شوي دي او باقي اسماني كتابونه هم نازل شوي دي دابراهيم عليه السلام صحيفي په رمضان كي نازل شوي دي او تورات په شپږم رمضان نازل شوي دي او انجيل په ديارلسم رمضان نازل شوي دي او زبور په اتلسم رمضان نازل شوي دي او قران كريم په ليلة القدر كي نازل شوي دي.

دا شپه ډيره فضيلت والاده ددي يوي شپي عبادت د دري اتيا كالو او څلور مياشتي دعبادت نه بهتردي په دي شپه كي دعبادت كونكو تمام مخكني ګناهونه معاف كيږي په يو بل روايت كي راځي څوك چي ددي شپي دخير او بركت نه محروم شي دي حقيقتا محروم دي يو ځل عائشه رضي الله عنها دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو چي زه په دي شپه كي څه دعا اوغواړم رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل دا دعا وايه "اللهم انك عفو تحب العفو فاعف عني".

## ليلة القدر كله وي

په دي باره كي دعلماو څلويښت اقوال دي داكثرو خلقو قول دادي چي دا درمضان په اخري عشره كي وي دامام مالك شافعي احمد سفيان ثوري او ابو قلابه وغيره هم دا قول دي او دا په طاق شپو كي راځي ، ۲۱، ۲۳، ۲۵، ۲۷ ، ۲۹ په حديث كي راځي تحرو ليلة القدر في العشر الاواخر من رمضان.

په يو متفق عليه روايت كي دي: ((مَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيمَاناً وَاحْتِسَاباً غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ)) يعني څوك چي په شب قدر كي قيام اوكړي دشپي دقيام نه مرا د دادي چي درمضان په شپو كي دتراويح داهتمام سره دقران كريم تلاوت او دالله ذكر اوكړي او دسحر جماعت هم پري نږدي نو دداسي كس دپاره خوشخبري ده چي مخكني تمام صغيره ګناهونه به يي معاف شي.

في السبع الاواخر: په اخري اوه شپو كي علماء وائي داخري اوه شپو نه مراد هغه شپي دي كومي چي دشلم رمضان نه پس داوه ويشتم پوري دي يا دا چي اخري اوه شپي مراد دي يعني د درويشتم نه دنهه ويشتم پوري.

فمن كان متحريها فليتحرها في السبع الاواخر: څوك چي شبي قدر لټول غواړي نو په اخري اوه شپو كي دي دي لره اولټوي په دي كي دوه احتمالونه دي يعني دشلم نه داوه ويشتم پوري يا د درويشتم نه نهه ويشتم پوري ليكن دويم احتمال زيات راجح دي.

***************

٧٩٣_ حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ زِرٍّ، قَالَ: قُلْتُ لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ: أَنَّى عَلِمْتَ أَبَا المُنْذِرِ أَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ. قَالَ: بَلَى، أَخْبَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهَا لَيْلَةٌ صَبِيحَتُهَا تَطْلُعُ الشَّمْسُ لَيْسَ لَهَا شُعَاعٌ" فَعَدَدْنَا وَحَفِظْنَا، وَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمَ ابْنُ مَسْعُودٍ أَنَّهَا فِي رَمَضَانَ وَأَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ وَلَكِنْ كَرِهَ أَنْ يُخْبِرَكُمْ فَتَتَّكِلُوا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه**: دزر بن حبيش بيان دي فرمائي چي دابئ بن كعب رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو اي ابو المنذر تاته څنګه معلومه شوه چي دا اوويشتمه شپه ده نو وېي فرمائيل ولي نه مونږ ته رسول الله خبر راكړي دي چي دا يوه داسي شپه ده كله چي په سحر كي ددي نمر راوخيژي نو په دي كي دنمر شعاع او سړيكي نه وي نو مونږ شمير اوكړو او ياد مو اوساتلو (زر وائي) په الله قسم ابن مسعود ته هم معلومه ده چي دا په رمضان كي اوويشتمه شپه ده ليكن هغه دا نه خوښوي چي دا شپه كه تاسو ته اوخودلي شي نو خلق به په همدي اعتماد اوكړي او عمل كول به پريږدي.

امام ترمذي واي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

٧٩٤_ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ. حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ. حَدَّثَنَا عُيَيْنَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: ذُكِرَتْ لَيْلَةُ القَدْرِ عِنْدَ أَبِي بَكْرَةَ. فَقَالَ: مَا أَنَا مُلْتَمِسُهَا لِشَيْءٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا فِي العَشْرِ الأَوَاخِرِ. فَإِنِّي سَمِعْتُهُ يَقُولُ: "التَمِسُوهَا فِي تِسْعٍ يَبْقَيْنَ أَوْ فِي سَبْعٍ يَبْقَيْنَ أَوْ فِي خَمْسٍ يَبْقَيْنَ أَوْ فِي ثَلَاثِ أَوَاخِرِ لَيْلَةٍ". قَالَ: وَكَانَ أَبُو بَكْرَةَ يُصَلِّي فِي العِشْرِينَ مِنْ رَمَضَانَ كَصَلَاتِهِ فِي سَائِرِ السَّنَةِ. فَإِذَا دَخَلَ العَشْرُ اجْتَهَدَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

---

[1] _ مسلم في المسافرين ٢٥ (٧٦٢). سنن ابي داود في الصلاة ٣١٩ (١٣٧٨) (تحفة الأشراف: ١٨). مسند احمد (٥ في ١٣٠، ١٣١)

[2] _ أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١١٦٩٦)

**ترجمه**: عيينه بن عبدالرحمن واني ماته زما پلار روايت بيان كړي دي چي دابو بكره رضي الله عنه په وړاندي دليلة القدر ذكر اوكړي شو نو هغه اوفرمانيل دكوم څيز په وجه چي زه دا صرف په اخري عشره كي تلاش كوم هغه داده چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يوه خبره اوريدلي ده ما ورنه دا اوريدلي وو ليلة القدر هغه وخت كي اولټوئ كله چي دمياشتي پوره كيدو ته نهه ورځي پاتي شي، يا چي كله اوه ورځي باقي پاتي شي، يا چي كله پنځه ورځي باقي پاتي شي، يا چي كله دري ورځي باقي پاتي شي، ابوبكره رضي الله عنه به درمضان په شلو ورځو كي داسي مونځ كولو څنګه چي به يي په پوره كال كي كولو ليكن كله چي به اخري عشره راغله نو په عبادت كي به يي محنت او كوشش زيات كړو.

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ۷۳_ باب مِنْهُ

### داعتكاف متعلق يوبل باب

۷۹۵_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ هُبَيْرَةَ بْنِ يَرِيمَ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُوقِظُ أَهْلَهُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (۱)

**ترجمه**: دعلي رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به درمضان په اخري عشره كي خپل كور والا راويخول.

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي.

***************

۷۹۶_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْتَهِدُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مَا لَا يَجْتَهِدُ فِي غَيْرِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (۲)

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۱۰۳۰۷)

[2] _ مسلم في الاعتكاف ۳ (۱۱۷۵). ابن ماجه في الصيام ۵۷ (۱۷٦۷). (تحفة الأشراف: ۱۵۹۲۳)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به درمضان په اخري عشره کي په عبادت کولو کي دومره کوشش کولو څومره چي به يې په نورو ورځو کي نه کولو.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح غريب دي.

*****************

## ٧٤_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّوْمِ فِي الشِّتَاءِ

### دژمي په موسم کي دروژو نيولو بيان

٧٩٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ نُمَيْرِ بْنِ عُرَيْبٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْغَنِيمَةُ الْبَارِدَةُ الصَّوْمُ فِي الشِّتَاءِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُرْسَلٌ، عَامِرُ بْنُ مَسْعُودٍ لَمْ يُدْرِكِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ وَالِدُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَامِرٍ الْقُرَشِيِّ، الَّذِي رَوَى عَنْهُ شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ. [1]

**ترجمه** دعامر بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په ژمي کي روژي نيول يخ (مفت) غنيمت دي.
امام ترمذي وائي دا حديث مرسل دي عامر بن مسعود دنبي کريم صلي الله عليه وسلم زمانه مبارکه نه ده موندلي، دي د ابراهيم بن عامر قرشي پلار دي چي شعبه او سفيان ثوري ورنه نقل دروايت کوي.

****************

## ٧٥_ باب مَا جَاءَ فِي (وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ)

### باب دي په بيان د تفسير د دي کلام الهي "وعلي الذين يطيقونه"

٧٩٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ (البقرة)، كان من أراد منا أن يفطر ويفتدي حتى نزلت الآية التي

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٠٢٩)

بعدها فنسختها". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. وَيَزِيدُ هُوَ ابْنُ أَبِي عُبَيْدٍ مَوْلَى سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ. (1)

**ترجمه**: سلمه بن اكوع رضي الله عنه فرمائي كله چي ايت كريمه "وعلي الذين يطيقونه فدية طعام مسكين" نازل شو نو په مونږ كي كه به چا غوښتل كه روژي اونه نيسي هغوئ به فديه وركوله تردي چي په دي پسي متصل راتلونكي ايت نازل شو او هغه دا ايت منسوخ كړو.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح غريب دي. اود يزيد د پلار نوم ابو عبيد دي اود سلمه بن الاكوع ازاد كړى غلام دى.

**تشريح**: وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ... (اوپه هغه خلقوباندي چي دفديه طاقت لري)
علامه بغوي فرمائي چي ددي ايت په تاويل اوحكم كي دعلماؤ اختلاف دي اكثر علماء فرمائي چي دا ايت منسوخ دي.
دابن عمر او سلمه بن اكوع رضي الله عنهما او نوروصحابه كرامو هم دامذهب دي. شان نزول ددي داسي وو چي په ابتداء داسلام كي الله تعالي دي خلقو ته اختيار وركړي وو يعني كه چري طاقت مو وي نو روژي ونيسئ ورنه افطار وكړئ او فديه وركړئ اوددي وجه داوه چي خلق دروژو نيولو سره عادت نه وو كه چري ابتداءً ورته دروژو نيولوحكم لازمي شوي وي نودوي ته به گرانه شوي وه، بيا ددينه پس اختيار منسوخ شو او فمن شهد منكم الشهر الاية سره دروژي حكم قطعي شو.
بنا پدي تقدير مسافر اومريض ته په دري خبرو كي اختيار دي: اول: روژي نيول. دويم: افطار كول په نيت دقضا. دريم: روژه نه نيول او فديه وركول،
بياچه كله فديه وركول منسوخ شول نوپه روژو نيولو اوقضا راوړلو كي اختيار باقي پاتي شو.
قتاده فرمائي څوك چي ډير بوډا وي دروژو نيولو طاقت لري ليكن دډير بوډا والي په وجه روژي نيول ورته گران وي نو ده ته مخكي ددي ايت په بناء دافطار كولو اوفديه وركولو اجازت وواوبيا دا اجازت منسوخ. حسن فرمائي چي دا ايت كريمه دهغه مريض په باره كي دي كوم چي دروژي نيولو طاقت لري نو ده په روژونيولو او افطار كولو كي اختيار دي دفديه وركولو په صورت كي خوبيا دا اختيار هم منسوخ شو.
ددي تمامو اقوالو موافق دقران كريم نه دداسي بوډا حال معلوم نشوكوم چي په سبب دضعف روژي نشي نيولي، په همدي وجه امام مالك او امام شافعي په يو قول كي فرمائي: چي دشيخ فاني دپاره افطار كول جائز دي ځكه چي دا عاجز دي او الله تعالي دطاقت نه په زيات حكم باندي څوك نه

---

1 _ البخاري في تفسير سورة البقرة ٢٦ (٤٥٠٦). صحيح مسلم في الصوم ٢٥ (١١٣٥). سنن ابي داود في الصيام ٢ (٢٣١٥). سنن النسائي في الصيام ٦٣ (٢٣١٨). سنن الدارمي في الصوم ٢٩ (١٧٤٥). (تحفة الأشراف: ٤٥٣٤)

مکلف کوي اوفديه ورکول وربانديي واجب نديي خکه ددي دپاره دليل پکار وي خکه چي فديه دروژي غير معقول مثل دي اودمثل غير معقول په ثبوت کي راني لره دخل نه وي
اوديوجماعت مسلك دادي چي دا ايت ددي معني په اعتبار سره منسوخ نديي چي کوم خلق په خواني کي دروژو نيولو طاقت لري اوبيا دبوډا والي نه پس عاجز شي پدوي بانديي دروژو نيولو په ځاي فديه ورکول واجب دي ليکن نظم دکلام ددي تاويل نه انکار کوي
علامه جلال الدين سيوطي ددي ايت په تفسير کي فرماني چي يطيقون په تقدير دلام سره دي او معني داده چي کوم خلق دروژو نيول طاقت نه لري دهغوي په ذمه بانديي فديه ورکول دي لکه په ايت يبين الله لكم ان تضلوا ، په ان تضلوا کي لام مقدر دي.
طَعَامُ مِسْكِينٍ .. (په يو محتاج بانديي خوراك کول)
دفديه مقدار په نزد دامام صاحب بانديي دصدقة الفطر موافق دي چي دغنمو نيم صاع اودوربشو پوره صاع دي
او امام شافعي فرماني چي کومه غله اکثرپه دغه ښار کي خوړلي شي دهغي يو مد دهري ورځي په بدل کي مسکين ته ورکول دي.
او امام احمد فرمائي دوربشو نيم صاع اودغنمو يو مد واجب دي.
بعضي فقهاؤ ونيلي دي چي دکومي غذا خوراك پدغه وخت کي مروج وي هغه دي ورکړي
ابن عباس فرماني چي هر مسکين ته دي دمابنام او پيشمي خوراك ورکړي
د "فمن تطوع خيرا" مراد دادي چي څوك فديه دواجب مقدار نه زياته ورکړي نو دا به دده دپاره ډير غوره وي او په ان تصوموا کي هغه خلق مخاطب دي څوك چي دروژي نيولو طاقت لري.
مطلب دادي چي اي دروژي طاقت لرونکو روژه نيول دفديي ورکولو نه بهتر دي په دي کلام سره صراحتا معلوم شو چي په وعلي الذين يطيقونه ، کي دروژي طاقت لرونکي مراد دي اوڅوك چي طاقت نه لري لکه بوډاګان اوبيماران هغوئ مراد نه دي اوداخکه دچاچه طاقت نشته نودهغوئ دپاره روژه نيول بهتر نه دي بلکه دروژي نه نيول بهتر دي ، اوددي ايت نه دا هم معلومه شوه که چري مسافر ته دروژي په نيولو زيات تکليف نه وي نودهغه دپاره روژه نيول افضل دي . دجمهورو اهل علمو هم دا مسلك دي.
ليکن امام احمد او اوزاعي اوسعيد بن مسيب رحمه الله وائي چي روژه نيول ورله افضل نه دي.
اوهغوئ په دي مسئله کي د يو څو احاديثو نه استدلال کړی دی مثلا:
دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي چي يوخل رسول الله صلي الله عليه وسلم په سفر تلي وو اوديره ګنړه يي وليدله نوچه هلته ورغي نوډير خلق په يو سړي بانديي راټول شوي وو نودهغوئ نه يي تپوس اوکړو چي څه قصه ده؟ خلقو عرض اوکړو دا کس روژه دار دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په سفر کي روژه نيول څه دنيکۍ خبره نه ده (بخاري مسلم)
جابر رضي الله عنه فرماني دفتح مکي په کال رسول الله صلي الله عليه وسلم مکي ته تشريف يوړو اوروژه يي نيولي وه اونورو خلقو هم روژه نيولي وه کله چي "کراع غميم" مقام ته ورسيدو نويوجام

اوبه يي راوغوښتلي او هغه يي پورته كړي او ټولوته يي اوښودلي اوبيا يي دهغوئ په وړاندي اوڅكلي خلقو چي دا اوليدل نو عرض يي اوكړو چي اي دالله رسوله بعضو خلقو روژه نيولي ده ، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا خلق نافرمانان دي (رواه مسلم)

دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي په سفر كي درمضان روژي نيونكي داسي دي لكه څوك چي مقيم وي او افطار كوي (ابن ماجه)

زمونږ دطرف نه ددي احاديثو جواب دادي چي دا احاديث دهغه چاپه حق كي دي چاته چي دروژي په نيولو ډير تكليف رسيږي اودهغه په حق كي افطار كول افضل دي . برابره خبره ده چي مسافر وي اوكه مريض وي همدارنگي كه چري په جهاد كي افطار اوكړي شي نو افضل دي .

دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي خلقو ددشمن طرف ته ورمخكي شئ او اوس ستاسو دپاره افطار كول موجب د طاقت دي. ابوسعيد خدري رضي الله عنه فرمائي چي د افطار كولو اجازت رخصت وو نوځكه په مونږ كي بعضي كسانو خو روژه اونيوله او بعضو افطار اوكړو بياچه كله مونږ يو بل مقام ته ورسيدو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي خلقو سحر ددشمن سره مخامخ كيدل دي او افطار كول ستاسو دپاره موجب دقوت دي نو مونږ ټولو افطار وكړو او دا افطار كول عظيمت وو (مسلم)

او همدا رنگي امام مالك دبعضي صحابه كرامو نه په موطا كي داحديث نقل كړي دي او امام شافعي هم دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه په مسند الشافعي كي نقل كړي دي او ابو داود او حاكم او ابن عبدالبر هم داحديث نقل كړي دي.

اوكه چري دروژي په نيولو سره روژه دار ته تكليف نه وي نو ددي ايت په بنا باندي دهغه دپاره روژه نيول افضل دي چنانچه ابوالدرداء رضي الله عنه فرمائي چي زه په يو سفر كي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملگري وم او گرمي دومره شديده وه چي دتاؤ نه دبچ كيدودپاره مونږ به په سرونوباندي لاس اېښودلو اوپه مونږ كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه او عبدالله بن رواحه نه علاوه بل څوك روژه دار نه وو.

داتمام تفصيل دمسافر په حق كي ده خكه چي ددي مسافر دپاره درخصت مدار په سفر دي برابره خبره ده چي ده ته دروژي په نيولو تكليف وي اوكه نه وي باقي پاتي شو بوډا اومريض اوضعيف او حامله او مرضعه نوددوئ په حق كي درخصت مبني پخپله مشقت او دروژي په وجه تكليف رسيدل دي كه چري روژه دوئ ته تكليف نه رسوي نورخصت نشته اوكه چري تكليف ورته رسوي اوهغه تكليف دا وي چي يا خو دمرض دزياتوالي خطره وي اويا دنوي مرض پيداكيدو خطره وي نوپه دي وخت كي هم د افطار جازت دي (مظهري، زاد المسير)

*****************

## ٧٦_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ أَكَلَ ثُمَّ خَرَجَ يُرِيدُ سَفَرًا

**په رمضان كي د خوراك كولو نه پس دسفر اراده كول**

٧٩٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ، أَنَّهُ قَالَ: أَتَيْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ فِي رَمَضَانَ وَهُوَ يُرِيدُ سَفَرًا، وَقَدْ رُحِلَتْ لَهُ رَاحِلَتُهُ وَلَبِسَ ثِيَابَ السَّفَرِ فَدَعَا بِطَعَامٍ فَأَكَلَ، فَقُلْتُ لَهُ: سُنَّةٌ، قَالَ: سُنَّةٌ، ثُمَّ رَكِبَ. ([1])

**ترجمه** : دمحمد بن كعب بيان دي فرماني چي زه په رمضان كي انس بن مالك ته ورغلم او هغه په سفر دتلو اراده كوله او په سورلۍ يې كجاوه تړلې شوي وه او دسفر جامي يې اغوستلي وي نو خوراك يې راوغوښتلو او ويې خوړلو ما ورته تپوس اوكړو ايا دا سنت دي؟ ويې فرمائيل هو، سنت دي او بيا هغه پخپله سورلۍ سورشو.

***************

٨٠٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: أَتَيْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ فِي رَمَضَانَ فَذَكَرَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ هُوَ ابْنُ أَبِي كَثِيرٍ هُوَ مَدِينِيٌّ ثِقَةٌ، وَهُوَ أَخُو إِسْمَاعِيل بْنِ جَعْفَرٍ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ جَعْفَرٍ هُوَ ابْنُ نَجِيحٍ وَالِدُ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْمَدِينِيِّ، وَكَانَ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ يُضَعِّفُهُ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ، وَقَالُوا: لِلْمُسَافِرِ أَنْ يُفْطِرَ فِي بَيْتِهِ قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ، وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَقْصُرَ الصَّلَاةَ حَتَّى يَخْرُجَ مِنْ جِدَارِ الْمَدِينَةِ أَوِ الْقَرْيَةِ، وَهُوَ قَوْلُ: إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِيِّ. ([2])

**ترجمه** : په دي سند سره هم دمحمد بن كعب نه روايت دي چي په رمضان كي انس بن مالك ته ورغلم او بيا يې دسابقه حديث پشان روايت بيان كړو.

امام ترمذي واني دا حديث حسن دي او محمد بن جعفر ابن ابي كثير مديني دي او ثقه دي او دي د اسماعيل بن جعفر ورور دي او دعبدالله بن جعفر علي بن عبدالله مديني پلار ابن نجيح دي، يحي بن معين په ضعفاوو كي شميرلي دي، دبعضي اهل علمو په دي حديث باندي عمل دي دوئ واني چي دمسافر دپاره جائز دي چي په سفر دتلو نه مخكي افطار اوكړي ليكن په مونځ كي ورته دقصر كولو اجازت نشته ترڅو پوري چي دخپل ښار يا كلي نه جدا شوي نه وي او همدا داسحاق بن ابراهيم بن راهويه حنظلي قول هم دي.

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٧٣)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٧٣)

****************

## ٧٧_ باب مَا جَاءَ فِي تُحْفَةِ الصَّائِمِ

### دروژه دپار دتحفې بيان

٨٠١_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ سَعْدِ بْنِ طَرِيفٍ، عَنْ عُمَيْرِ بْنِ مَأْمُونٍ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " تُحْفَةُ الصَّائِمِ الدُّهْنُ وَالْمِجْمَرُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سَعْدِ بْنِ طَرِيفٍ. وَسَعْدُ بْنُ طَرِيفٍ يُضَعَّفُ، وَيُقَالُ: عُمَيْرُ بْنُ مَأْمُومٍ أَيْضًا. (١)

**ترجمه** : دحسن بن علي رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دروژه دار دپاره بنه تحفه خوشبو او تيل دي او د عود لرگي انگيټۍ ده.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي، ددي سند قوي نه دي دا حديث مونږ ته صرف دسعد بن طريف په سند معلوم دي، او سعد بن طريف يو ضعيف راوي دي. دده متعلق دا هم ونيلي شوي دي چې دده نوم عمير بن ماموم وو.

****************

## ٧٨_ باب مَا جَاءَ فِي الْفِطْرِ وَالأَضْحَى مَتَى يَكُونُ

### وروکي او لوي اختر به کله نمانځلي شي

٨٠٢_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْيَمَانِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْفِطْرُ يَوْمَ يُفْطِرُ النَّاسُ، وَالأَضْحَى يَوْمَ يُضَحِّي النَّاسُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: سَأَلْتُ مُحَمَّدًا، قُلْتُ لَهُ: مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ مِنْ عَائِشَةَ، قَالَ: نَعَمْ، يَقُولُ فِي حَدِيثِهِ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (٢)

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٤٠٦)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٧٦٠٠)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دوړوکي اختر ورځ هغه ده په کومه کي چي خلق اختر کوي او دلوي اختر ورځ هغه ده په کومه ورځ چي خلق قرباني کوي.
امام ترمذي وائي ا حديث په دي سند حسن غريب صحيح دي. ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه تپوس اوکړو ايا محمد بن منکدر دعائشه نه اوريدل کړي دي؟ هغه اووئيل هو. خکه چي دي پخپل روايت کي وائي ما دعائشه نه اوزيدلي دي

***************

## ٧٩_ باب مَا جَاءَ فِي الِاعْتِكَافِ إِذَا خَرَجَ مِنْهُ

## داعتکاف پوره کيدو نه مخکي دبهروتلو حکم

٨٠٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، قَالَ: أَنْبَأَنَا حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ فِي الْعَشْرِ الأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ فَلَمْ يَعْتَكِفْ عَامًا. فَلَمَّا كَانَ فِي الْعَامِ الْمُقْبِلِ اعْتَكَفَ عِشْرِينَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. مِنْ حَدِيثِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْمُعْتَكِفِ إِذَا قَطَعَ اعْتِكَافَهُ قَبْلَ أَنْ يُتِمَّهُ عَلَى مَا نَوَى. فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا نَقَضَ اعْتِكَافَهُ وَجَبَ عَلَيْهِ الْقَضَاءُ. وَاحْتَجُّوا بِالْحَدِيثِ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " خَرَجَ مِنَ اعْتِكَافِهِ فَاعْتَكَفَ عَشْرًا مِنْ شَوَّالٍ " وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنْ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ نَذْرُ اعْتِكَافٍ أَوْ شَيْءٌ أَوْجَبَهُ عَلَى نَفْسِهِ. وَكَانَ مُتَطَوِّعًا فَخَرَجَ فَلَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يَقْضِيَ إِلَّا أَنْ يُحِبَّ ذَلِكَ اخْتِيَارًا مِنْهُ. وَلَا يَجِبُ ذَلِكَ عَلَيْهِ. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: فَكُلُّ عَمَلٍ لَكَ أَنْ لَا تَدْخُلَ فِيهِ. فَإِذَا دَخَلْتَ فِيهِ فَخَرَجْتَ مِنْهُ فَلَيْسَ عَلَيْكَ أَنْ تَقْضِيَ إِلَّا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ. وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. (١)

**ترجمه** انس بن مالك رضي الله عنه فرماني نبي کريم صلي الله عليه وسلم به درمضان په اخري عشره کي اعتکاف کولو خو يو کال داسي راغي چي اعتکاف يي اونکړي شو کله چي وربسي راتلونکي کال راغي نو دشلو ورځو اعتکاف يي اوکړو.

---

١ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٢)

امام ترمذي وائي دانس بن مالك دا حديث حسن صحيح غريب دي اعتكاف كونكي چي كله خپل اعتكاف دهغي مودي نه مخكي ختم كړي دكومي چي هغه نيت كړي وي نو دده باره كي داهل علمو اختلاف دي بعضي اهل علم وائي كله چي څوك اعتكاف مات كړي په دده باندي به ددي قضاء واجب وي او هغوئ دهغه حدث نه استدلال كړي دي په كوم كي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دخپل اعتكاف نه راوتلي وو نو په شوال كي يي لس ورځي اعتكاف اوكړو او دا دامام مالك قول دي ليكن بعضي اهل علم وائي كه چري يو كس باندي داعتكاف نذر يا داسي كوم څيز نه وي كوم چي ده پخپله په ځان باندي واجب كړي وي او نفلي اعتكاف يي شروع كړي وي او بيا ددينه بهر راوځي نو په ده باندي ددي قضاء نشته مگر دا كه چري دي پخپله خوښه ددي قضاء راوړي نو درسته ده خو قضاء به ورباندي واجب نه وي دا دامام شافعي قول دي، شوافع وائي هر هغه عمل دكوم په كولو او په نه كولو كي چي تاسو ته اختيار دركړي شوي وي كله چي تاسو دا شروع كړئ او بيا يي دپوره كيدو نه مخكي پريږدئ نو په تاسو به ددي قضاء لازمه نه وي مگر علاوه دحج او عمري نه، او په دي باب كي د ابو هريره رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي.

**لغات**: اعتكاف د ،باب افتعال،مصدر دي د ،عكف، نه ماخوذ دي او،عكف. متعدی دي او ،عكوف، لازم دي د شريعت په اصطلاح كښې اعتكاف اوسيدل دي دروژي په حالت كښې داعتكاف په نيت په مسجد كښې .

**تشريح** : د رمضان د آخری عشرې اعتكاف مستحب دي خوصحيح خبره داده چی د رمضان د آخری عشرې اعتكاف سنت مؤكده دي.

ددي قول دليل دادی چی نبی كريمﷺ په دې باندې مواظبت كړې دې لكه چي د ام المومنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي:

"قالت عائشه رضى الله عنها أن رسول اللهﷺ كان يعتكف فى العشر الأخير من رمضان حين قدم المدينة إلى أن توفاه الله تعالى"

عائشه رضى الله عنها فرمائى چی كله نبی كريمﷺ مدينې ته تشريف راوړلو نود وفات كيدو پورې نې د رمضان په آخرى عشره كښې اعتكاف كولو.اود نبی كريمﷺ په يوڅيز باندې مداومت كول.ددې د مسنون كيدلو دليل دې په دې وجه د رمضان په آخرى عشره كښې اعتكاف سنت مؤكده دې.

دلته دا سوال كول نه دي پكار : كيدې شی چی د رسول اللهﷺ مواظبت كول د وجوب علامه وي نود رمضان د آخري عشرې اعتكاف واجبيدل پكار دی. ددې جواب دادې چی رسول اللهﷺ به كوم څيز واجب گرځول غوښتل نو په هغې به نې مواظبت كولو.اود مواظبت نه پس به نې د هغې د كولوحكم فرمانيلو.او په پريخودونكی به نې نكير فرمانيلو. حالانكه نبی كريمﷺ خو نه ددې حكم فرمانيلې دي اونه نې ددې په پريخودلو باندې نكير فرمانيلې دي پس كه د رمضان د آخرى

عشرې اعتكاف واجب وې نو نبی كريمﷺ به خلقو تهددې حكم فرمائيلې وې، او په پريخودونكی به ئې نكير فرمائيلې وې نو ثابته شوه چی دا واجب نه دې.
د اعتكاف د عدم وجوب دليل دا هم دې چی يو خل نبی كريمﷺ د اعتكاف كولو دپاره په مسجد كښې خيمې لګولويعنی د پرده اچولو حكم اوكړلو،بيا مسجدته داخل شو، نو دوه خيمې ئې نورې هم اوليدلې،ددې باره كښې ئې تپوس اوكړو نو معلومه شوه چی يوه خيمه د عائشه رضی الله عنها ده،او يوه د حفصه رضی الله عنها ده چی دا ئې اوليدلې نو نبی كريمﷺ غصه شو اود خپلې خيمې لرې كولو حكم ئې اوكړو،او پدې كال ئې اعتكاف پريخودلو.ددې نه هم معلوميږی چی اعتكاف واجب نه دې ځكه چی د وجوب دليل بغير د پريخودلو مواظبت كول دی.
د اعتكاف دپاره څلور څيزونه ضروری دی:
اول ايساريدل. دويم مسجد. دريم د اعتكاف نيت. څلورم روژه.
صاحب د هدايه وائی چی ايساريدل خود اعتكاف ركن دې ځكه چی د اعتكاف لفظ په لغت كښې د ايساريدلو په معنیٰ باندې دلالت كوی،په دې وجه د ايساريدلو موجوديدل ضروری دی.
(۱) او نيت د احنافو او مالكيانو په نزد د عادت اوعبادت په مينځ كښې د فرق پيدا كولو په تولو مقصودی عبادتونوكښې شرط دې.
(۲) اود امام شافعی او امام احمد (رحمه الله) په نزدشرط نه دې.
امام شافعی اود امام احمد (رحمه الله) دليل دادې چی روژه يو عبادت دې او په خپله اصل دې او كوم څيز چی په خپله اصل وی،هغه د نورو دپاره شرط نه وی ځكه به روژه د اعتكاف دپاره شرط نه وی.

***************

## ۸۰_ باب الْمُعْتَكِفُ يَخْرُجُ لِحَاجَتِهِ أَمْ لاَ

### معتكف دخپل كوم ضرورت دپاره داعتكاف نه بهر وتلې شي او كنه

۸۰٤_ حَدَّثَنَا أَبُو مُصْعَبٍ الْمَدَنِيُّ قِرَاءَةً، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، وَعَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: " كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اعْتَكَفَ أَدْنَى إِلَيَّ رَأْسَهُ فَأُرَجِّلُهُ، وَكَانَ لَا يَدْخُلُ الْبَيْتَ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. هَكَذَا رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، وَعَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ. وَالصَّحِيحُ عَنْ عُرْوَةَ، وَعَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ. (۱)

---

[1] النسائي في الطهارة ٤٦ (۱٤۹). (۲٤۹). (تحفة الأشراف: ١٦٦٠٢ و١٧٩٢١)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي كله به رسول الله صلي الله عليه وسلم په اعتكاف كي ناست وو نو خپل سر به يي ماته رانزدي كړو او ما به ورله ويختـه ګمنزول او هغه به دكوم انساني ضرورت نه بغير داعتكاف دوران كي كور ته نه داخليدو.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، دارنګي دا حديث بعضي نورو راويانو هم په سند د مالك عن ابن شهاب عن عروه وعمرة عن عائشه نقل كړي دي ، او صحيح داده چي ابن شهاب زهري دا روايت دعروه او عمره دواړو نه او هغوئ دعائشي نه نقل كړي دي.

***************

٨٠٥ـ حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، وَعَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ إِذَا اعْتَكَفَ الرَّجُلُ أَنْ لَا يَخْرُجَ مِنَ اعْتِكَافِهِ إِلَّا لِحَاجَةِ الإِنْسَانِ. وَاجْتَمَعُوا عَلَى هَذَا أَنَّهُ يَخْرُجُ لِقَضَاءِ حَاجَتِهِ لِلْغَائِطِ وَالبَوْلِ. ثُمَّ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي عِيَادَةِ المَرِيضِ وَشُهُودِ الجُمُعَةِ وَالجَنَازَةِ لِلْمُعْتَكِفِ. فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَنْ يَعُودَ المَرِيضَ وَيُشَيِّعَ الجَنَازَةَ وَيَشْهَدَ الجُمُعَةَ إِذَا اشْتَرَطَ ذَلِكَ. وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ المُبَارَكِ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: لَيْسَ لَهُ أَنْ يَفْعَلَ شَيْئًا مِنْ هَذَا. وَرَأَوْا لِلْمُعْتَكِفِ إِذَا كَانَ فِي مِصْرٍ يُجَمَّعُ فِيهِ أَنْ لَا يَعْتَكِفَ إِلَّا فِي مَسْجِدِ الجَامِعِ. لِأَنَّهُمْ كَرِهُوا الخُرُوجَ لَهُ مِنْ مُعْتَكَفِهِ إِلَى الجُمُعَةِ، وَلَمْ يَرَوْا لَهُ أَنْ يَتْرُكَ الجُمُعَةَ. فَقَالُوا: لَا يَعْتَكِفُ إِلَّا فِي مَسْجِدِ الجَامِعِ حَتَّى لَا يَحْتَاجَ أَنْ يَخْرُجَ مِنْ مُعْتَكَفِهِ لِغَيْرِ قَضَاءِ حَاجَةِ الإِنْسَانِ. لِأَنَّ خُرُوجَهُ لِغَيْرِ حَاجَةِ الإِنْسَانِ قَطْعٌ عِنْدَهُمْ لِلِاعْتِكَافِ. وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ. وقَالَ أَحْمَدُ: لَا يَعُودُ المَرِيضَ وَلَا يَتْبَعُ الجَنَازَةَ عَلَى حَدِيثِ عَائِشَةَ. وقَالَ إِسْحَاقُ: إِنِ اشْتَرَطَ ذَلِكَ فَلَهُ أَنْ يَتْبَعَ الجَنَازَةَ وَيَعُودَ المَرِيضَ. (١)

**ترجمه** : مونږ ته قتيبه په سند د ليث بن سعد عن ابن شهاب عن عروة وعمرة عن عائشه روايت بيان كړي دي.

[1] ـ البخاري في الاعتكاف ٣ (٢٠٢٩). صحيح مسلم في الحيض ٣ (٢٩٧). سنن ابي داود في الصيام ٧٩ (٢٤٦٨). سنن ابن ماجه في الصوم ٦٤ (١٧٧٨). (تحفة الأشراف: ١٦٥٧٩) (صحيح) وأخرجه خ في الحيض ٢ (٢٩٥). والاعتكاف ٢ (٢٠٢٨). و١٩ (٢٠٤٦). واللباس ٧٦ (٥٩٢٥). وسنن ابي داود في الصيام ٧٩ (٢٤٦٧). والموطأ في الطهارة ٢٨ (١٠٢). والاعتكاف ١ (١). ومسند احمد (٦ في ١٠٤). ٢٠٤، ٢٣١، ٢٤٧، ٢٦٢). وسنن الدارمي في الطهارة ١٠٧ (١٠٨٥)

امام ترمذي وائي داهل علمو په دي باندي عمل دي چي كله يو سړي اعتكاف كوي نو دانساني ضرورت نه بغير د دخپل اعتكاف دځاي نه بهر نه اوځي او دعلماؤ په دي خبره اتفاق دي چي د لوي او وړوكي اودس ماتي پشان ضرورتونو دپاره داعتكاف نه بهر وتل جائز دي. او د معتكف دپاره دمريض په عيادت كولو كي او دجمعي او جنازي په مونځ كي په شريكيدلو كي داهل علمو اختلاف دي، په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو دا قول دي چي اعتكاف والا دمريض عيادت له تلي شي، او دجنازي سره هم تلي شي او په جمعه كي هم شريك كيدي شي او دا هغه وخت كي چي كله ده داعتكاف وخت كي ددي څيزونو دپاره د وتلو شرط مقرر كړي وي او دا دسفيان ثوري او ابن مبارك قول دي ، او بعضي اهل علم وائي چي په دي څيزونو كي ورته ديو څيز دپاره دوتلو اجازت نشته ، ددوئ خيال دادي دمعتكف دپاره دا ضروري ده چي كله دي په يو داسي ښار كي موجود وي چرته چي دجمعي مونځ كيږي نو په داسي جامع مسجد كي دي اعتكاف اوكړي تردي چي دجمعي دتلو دپاره ده ته دوتلو ضرورت پيښ نشي او وتل يي دده دپاره مكروه ګرځولي دي او دده دپاره د جمعي پريخودل يي هم جائز نه دي ګنړلي. نو په دي وجه ددوئ قول دادي چي اعتكاف والابه صرف په جامع مسجد كي اعتكاف كوي تردي چي ده ته دانساني حاجتونو نه علاوه دكوم بل حاجت دپاره دوتلو ضرورت رانشي نو په دي وجه بغير دكوم انساني ضرورت نه دمسجد نه په وتلو سره به اعتكاف ماتيږي او دا دامام مالك او امام شافعي قول دي امام احمد بن حنبل وائي دعائشه رضي الله عنها دحديث په بنا اعتكاف والا نه دمريض عيادت كولي شي او نه دجنازي سره تلي شي. اسحاق بن راهويه وائي كه چري دي ددي څيزونو شرط اولګوي نو بيا ده ته دمريض عيادت دپاره او جنازي سره دتلو دپاره اجازت شته.

**تشريح**:

## داعتكاف موانع او ممنوعات

د معتكف دپاره د اعتكاف د مسجد نه وتل روا نه دي،سوا د دوه ضرورتو نه چي يو طبعي ضرورت دې لكه د تش او ډك اودس ماتي ضرورت،دويم ديني ضرورت لكه د جمعې اود جنابت د غسل ضرورت.

بهرحال د طبعي او انساني ضرورت دپاره د وتلو په جواز باندې دليل د عائشه رضى الله عنها حديث دي يعني

"كان النبيﷺ لايخرج من معتكفه إلا لحاجة الإنسان"

يعني رسول اللهﷺ به د خپل معتكف نه بهرتشريف نه اوړلو،سوا د انساني او طبعي ضرورت پوره كولو دپاره يعني د وړوكي او غټ اودس ماتي دپاره.

دويم دليل دادې چي د انساني ضروریاتو واقع كيدل د مخكښې نه معلوم دي،اودا هم معلومه ده چي ددې د پوره كولو دپاره وتل ضروري دي،ددې نه بغير خلاصي نشته نو

ددې ضرورتونو دپاره به وتل پخپله مستثنیٰ وی ځکه چی دغیر اختیاری أمورو انسان مکلف نه وی،خو دومره خبره ضرور ده چی د انسانی ضرورت پوره کیدلو نه پس.د طهارت نه د فارغیدلو نه فوراً پس خپل معتکف ته لاړشی.د طهارت نه د فارغیدلو نه پس دې په خپل کورکښې نه ایساریږی ځکه چی د انسانی حاجتونو دپاره وتل ضرورة ثابت دی،او کوم څیز چی ضرورةً ثابت وی نو هغه د ضرورت په اندازه ثابت وی.په دې وجه د ضرورت په اندازه د اعتکاف د مسجد نه د بهر پاتې کیدلو اجازت دي ددې نه زیات اجازت نشته.

(۱) د جُمعې د مانځه دپاره وتل زمونږ مذهب جائز دي.

(۲) اود امام شافعی او امام مالك (رحمه الله) په نزد جُمعې دپاره وتل روا نه دی.تردې که د جمعې د مانځه دپاره او وتلو نو اعتکاف به فاسد وی،

ددوی دواړو دلیل دادې چی خروج د اعتکاف یعنی په یوځائې کښې د وخت تیرولوضد دي او شئ د خپل ضد په راتلوسره فاسدیږی،په دې وجه اعتکاف په ،خروج من المسجد ،سره فاسدیږی،خو په دې صورتونوکښې به نه فاسدیږی،په کومو صورتونوکښې چی خروج متحقق دي لکه واړه اوغټ بول(اودس ماتی) دپاره وتل.اود جمعې د مانځه دپاره د وتلو هیڅ ضرورت نشته ځکه که ده د اوه ورځو نه کم اعتکاف کړې دي نو په کوم مسجد کښې چی غواړی،اعتکاف دې اوکړی،اوکه د اوه ورځو نه زیات اعتکاف ئې کړې دي نوپه جامع مسجد کښې دې اعتکاف اوکړی نو په دې دواړوصورتونوکښې څه داسې ضرورت موجود نشو چی د جمعې د مانځه دپاره خروج روا اوګرځوی. او هرکله چی داسې ضرورت متحقق نشو نود جمعې د مانځه دپاره به د وتلو هم اجازت نه وی.

زمونږ دلیل دادې چی په دلیل سره داخبره ثابته شوې ده چی اعتکاف په هر مسجد کښې مشروع دې لکه چی د الله تعالی ارشاد دې: ولا تباشروهن وانتم عاكفون في المساجد. نو هرکله چی په هر مسجد کښې اعتکاف مشروع دي نود جمعې دپاره وتل به دده د نذر اعتکاف دپاره داسې مستثنی وی لکه څنګه چی د انسانی ضرورت دپاره وتل مستثنی دی ځکه چی د اعتکاف د حفاظت دپاره د جمعې مونځ پریخودل قطعًا روا نه دی ځکه چی د نذر په وجه د اعتکاف وجوب د جمعې د مانځه د وجوب نه کمتر دي اود جمعې د مانځه د وجوب نه کمتر ځکه دې چی د جمعې مونځ د الله تعالی په واجبولوسره واجب شوې دي او اعتکاف د بنده په واجبولوسره واجبیږی.په دې طریقه چی ده د اعتکاف نذر کړې دي اود بنده دپاره د الله تعالی واجب کړې وظیفه ساقطولو اجازت نشته نو ثابته شوه چی د اعتکاف په وجه د جمعې مونځ نشی پریخودلې.اوهرکله چی د جمعې مونځ نشی پریخودلې نود جمعې د مانځه دپاره به د وتلو هم اجازت وی.

که چري معتکف بغير د عذره د مسجدنه اووتلو،اګرچې د يوي لمحي دپاره وتلې وی نود امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نزدده اعتکاف فاسد شو.

،او قياس هم دا دي او صاحبين وائی چی اعتکاف به فاسد نه وی،خوکه د نيمې ورځې نه ئې زياته بغير د عذره د مسجد نه بهر تيره کړه نو اعتکاف به فاسد وی،او استحسان هم دا دي

## دکوموضرورتونودپاره په اعتکاف کې وتل جائز ندي

**مسئله**:د معتکف دپاره په مسجدکښې خوراك څكاك او اوده کيدل روا دی،دليل دادې چی د رسول الله ﷺ د اعتکاف په حالت کښې سوا د مسجد نه هيڅ ځائې نه وو،او هرکله چی د مسجدنه علاوه ئې هيڅ ځائې نه وو نو ښکاره خبره ده چی خوراك څكاك او اوده کيدل به ئې هم هلته کښې وو،دويم دليل دادې چی ددې خوراك څكاك اود اوده کيدلو ضرورت په مسجدکښې پوره کيدل ممکن هم دی نو دده دپاره د وتلوهيڅ ضرورت نشته،

مسئله: معتکف که د انسانی حاجت دپاره د مسجدنه بهر اووتلو، اودانسانی حاجت پوره کولونه پس ئې د ښځې سره جماع هم اوکړه نو دده دا فعل حرام دي يعنی د اعتکاف په حالت کښې جماع کول حرام دی ځکه چی د رسول الله ﷺ په زمانه کښې دخلقو عادت دا وو چی دوی به د اعتکاف په حالت کښې د مسجد نه وتل.اود خپلو ښځو سره به ئې جماع کوله،بيا به ئې غسل اوکړو،او خپل معتکف ته به راتلل نود الله تعالی دا قول:

ولا تباشروهن وانتم عاكفون في المساجد . نازل شو،په دې کښې د اعتکاف په حالت کښې دجماع کولو نه منع کړې شوې ده.

اود معتکف دپاره ښځې سره لاس لګول،او ښکلول هم حرام دی ځکه چی دا دواړه خبرې د جماع دواعی (مقدمات يا اسباب) دی،او جماع چونکه د اعتکاف د ممنوعاتو نه ده،په دې وجه به ددې دواعی هم د اعتکاف په ممنوعاتو کښې شامل وی،اوکوم څيز چی ممنوع وی،هغه حرام وی،په دې وجه به دا دواړه خبرې په معتکف باندې حرامې وی لکه څنګه چی د احرام په حالت کښې مباشرت حرام دي دغه شان د مباشرت دواعی هم حرام دی.

په خلاف د روژې چی د روژې په حالت کښې مباشرت حرام اومفسد د صوم دي خو لاس لګول،او ښکلول د صوم مفسد نه دی ځکه چی جماع د روژې د ممنوعاتو نه نه ده.بلکه د جماع نه ځان ساتل د روژې رکن دي او رکن د شئ غير طرف ته نه متعدی کيږی،په دې وجه به جماع په روژه کښې،د روژې دواعی طرف ته نه متعدی کيږی

***************

## ٨١_ بَاب مَا جَاءَ فِي قِيَامِ شَهْرِ رَمَضَانَ

## په رمضان کي د قيام الليل کولو بيان

٨٠٦ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفُضَيْلِ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ الْوَلِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجُرَشِيِّ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: صُمْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُصَلِّ بِنَا حَتَّى بَقِيَ سَبْعٌ مِنَ الشَّهْرِ، فَقَامَ بِنَا حَتَّى ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ، ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا فِي السَّادِسَةِ وَقَامَ بِنَا فِي الْخَامِسَةِ حَتَّى ذَهَبَ شَطْرُ اللَّيْلِ، فَقُلْنَا لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَوْ نَفَّلْتَنَا بَقِيَّةَ لَيْلَتِنَا هَذِهِ؟ فَقَالَ: "إِنَّهُ مَنْ قَامَ مَعَ الْإِمَامِ حَتَّى يَنْصَرِفَ كُتِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ". ثُمَّ لَمْ يُصَلِّ بِنَا حَتَّى بَقِيَ ثَلَاثٌ مِنَ الشَّهْرِ، وَصَلَّى بِنَا فِي الثَّالِثَةِ وَدَعَا أَهْلَهُ وَنِسَاءَهُ، فَقَامَ بِنَا حَتَّى تَخَوَّفْنَا الْفَلَاحَ. قُلْتُ لَهُ: وَمَا الْفَلَاحُ؟ قَالَ: "السُّحُورُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي قِيَامِ رَمَضَانَ، فَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنْ يُصَلِّيَ إِحْدَى وَأَرْبَعِينَ رَكْعَةً مَعَ الْوِتْرِ، وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَهُمْ بِالْمَدِينَةِ، وَأَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ عَلَى مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ وَغَيْرِهِمَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِشْرِينَ رَكْعَةً، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: وَهَكَذَا أَدْرَكْتُ بِبَلَدِنَا بِمَكَّةَ يُصَلُّونَ عِشْرِينَ رَكْعَةً، وقَالَ أَحْمَدُ: رُوِيَ فِي هَذَا أَلْوَانٌ وَلَمْ يُقْضَ فِيهِ بِشَيْءٍ، وقَالَ إِسْحَاق: بَلْ نَخْتَارُ إِحْدَى وَأَرْبَعِينَ رَكْعَةً عَلَى مَا رُوِيَ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَاخْتَارَ ابْنُ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق الصَّلَاةَ مَعَ الْإِمَامِ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ، وَاخْتَارَ الشَّافِعِيُّ أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ وَحْدَهُ إِذَا كَانَ قَارِئًا، وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَالنُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. (١)

**ترجمه**: دابوذر رضي الله عنه بيان دي فرماني چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره درمضان روژي اونيولي او هغه مونږ ته مونځ رانکړو تردي چي کله صرف اوه شپي پاتي شوي نو رسول الله زمونږ سره قيام اوکړو (يعني تراويح) تردي چي دشپي دريمه حصه تيره شوه بيا چي کله شپږ شپي تيري شوي نوزمونږ سره يي قيام اونکړو (يعني تراويح يي اونکړي) او چي کله پنځه شپي پاتي شوي نو زمونږ سره يي قيام اوکړو (يعني تهجد يي اوکړو) تردي چي شپه نيمي ته ورسيده مونږ ورته عرض اوکړو اي دالله رسوله که چري تاسو دشپي په دي باقي پاتي حصه کي هم نفل مونځ په جماعت سره راکړئ نو بهتره به وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څوک چي دامام سره قيام اوکړي تردي چي امام فارغ شي نو دده دپاره به دتمامي

---

١ ـ ابي داود في الصلاة ٣١٨ (١٣٧٥) . سنن النسائي في السهو ١٠٣ (١٣٦٥) . الإقامة ١٧٣ (١٣٢٧) . (تحفة الأشراف: ١١٩٠٣).

مسند احمد (٥ في ١٥٩) . سنن الدارمي في الصوم (١٨١٨)

شپې قيام ليکلي کيږي او بيا يي بله شپه مونږ ته مونځ رانکړو تردي پوري چي په مياشت کي صرف دري ورځي باقي پاتي شوي نو بيا يي مونږ ته په اوويشتمه شپه مونځ راکړواو دخپل کوز افراد او ښځي يي هم راوغوښتلي او رسول الله زمونږ سره قيام اوکړو تردي چي زمونږ سره دپيشمني دوخت تيريدو ويره او خطره پيدا شوه راوي وائي ما ورنه تپوس اوکړو چي فلاح څه څيز دي راته يي اوفرمائيل پيشمني کول

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي. او په دي باب کي دعائشه . نعمان بن بشير . او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. په رمضان کي دقيام په سلسله کي داهل علمو اختلاف دي دبعضي علماؤ خيال دادي چي دوترو سره به يو څلويښت رکعاتونه کوي او دا داهل مدينه قول دي ددوئ په نزد په مدينه کي په همدي باندي عمل وو، او اکثر اهل علم په هغه احاديثو عمل کوي کوم چي دعمر او علي او بعضي نورو صحابه کرامو نه مروي دي او هغوئ دشلو رکعاتونو قائل دي، دا دسفيان ثوري، ابن مبارك، او شافعي قول دي ، امام شافعي وائي دا رنګي معمول ما پخپل ښار مکه کي ليدلي وو هلته به شل رکعاتونه کيدل، امام احمد وائي په دي سلسله کي مختلف قسم خبري مروي دي او په دي باره کي يي کومه مضبوطه خبره او قول فيصل نه دي کړي، داسحاق بن راهويه قول دي مونږ ته دابئ بن كعب دمطابق ۴۱ رکعاتونه کول بهتر ښکاري ،ابن مبارك ،اسحاق بن راهويه په رمضان کي په امام سره په دي طريقه مونځ کول خوښولو او امام شافعي يواځي تراويح کول خوښ کړي دي خو چي مونځ کونکي قاري وي .

**تشريح: د تراويح حکم او ددي د رکعتونو تعداد**

احناف علماء فرمائي چي د ماسخوتن د فرضو نه پس د رمضان په مياشت کښې د تراويحو په غرض د خلقو راجمع کيدل مستحب دي.امام به خلقو ته پنځه ترويحې کوي.هره ترويحه به په دوو سلامونو ادا کوي.او د هر دوو ترويحو په مينځ کښې به د يو ترويحې په مقدار د آرام په غرض کيني.بيا به امام دوی ته وتر مونځ ورکوي.

صاحب د عنايه وجه دتسميه دتراويح ليکلی ده چي ترويحه دڅلور رکعتو نوم دې.څکه چي څلور رکعتونه راحت او آرام ته رسول کوي.يعنی د څلور رکعتونو نه پس د راحت او آرام اجازت ورکړې شوې دې. د سړو دپاره هم او د ښځو دپاره هم.

د امام ابو حنيفه رحمه الله نه هم دا مروی دی چي تراويح سنت موکده دی.

د تراويح متعلق د رسول الله صلي الله عليه وسلم عمل داسي مروي دي:

. (انه خرج ليلة من ليال رمضان وصلى عشرين ركعة فلما كانت الليلة الثانية اجتمع الناس فخرج وصلى بهم عشرين ركعة فلما كانت الليلة الثالثة كثر الناس فلم يخرج وقال عرفت اجتماعكم لكني خشيت ان تكتب عليكم فكانوا يصلونها فرادى الى زمن عمر (رضي الله عنه)

يعنى د رمضان په شپو کښې يوه شپه د الله نبي کريم صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو.او خلقو ته ئې شل رکعته اوکړل چې کله دويمه شپه شوه.او خلق راجمع شو.نو حضورﷺ تشريف راوړلو.او خلقو ته ئې شل رکعته اوکړل.کله چې دريمه شپه شوه.او خلق ډير شول.نو نبى کريم ﷺ تشريف راونړلو.او دائې اوفرمائيل چې ماته ستاسو جمع کيدل معلوم وو.خوماسره ويره وه.چې دا په تاسو باندې فرض نشى.نو خلقو د عمر د خلافت زمانې پورې خانله خانله مونځ کولو.

د ابن عباس (رضي الله عنه) د حديث نه د شلو رکعتو ثبوت ملاويږى :

(انه ﷺ كان يصلى فى رمضان عشرين ركعة سوى الوتر)

ابن عباس(رضي الله عنه) وائى چې نبى کريم ﷺ به په رمضان المبارك کښې د وترو نه علاوه شل رکعته کول (فتح القدير)

## د تراويح جماعت او ترويحو بيان

صاحب د هدايه فرمائى چې داکثرو مشائخو په نزد د تراويحو جماعت سنت على الکفايه دې. که د يو جومات ټولو خلقو د تراويحو مونځ پريخودلو.نو ټول به تارکين دسنت وى.او که بعضو جماعت قائم کړو.او بعضو پريخودلو.نو په جماعت کښې نه شريکيدونکى خلق به د فضيلت پريخودونکى وى.

دليل دادې چې بعضې صحابه داسى دى چې دوى نه د تراويح په جماعت کښې شرکت مروى ندى.يعنى دا حضرات صحابه په جماعت کښې نه دى شريك شوى.بلکه خانله ئې کړى دى ، لکه څنګه چې امام طحاوى د ابن عمر(رضي الله عنه) او عروه نه يو روايت نقل کړې دې.

دامام ابويوسف نه مروى دى.که د سنت قرات رعايت کولو سره په کور کښې تراويح کول ممکن وى.نو جائز دى چې دى په کور کښې خانله د تراويح مونځ اوکړى. خوکه څوك فقيه کبير وى چې دده د عمل خلق اقتداء کوى.نو داسې کس دې په کور کښې تراويح نه اداکوى.

د امام ابويوسف دليل د نبى کريم ﷺ دا قول دې

(عليكم بالصلاة فى بيوتكم فإن خير صلاة المرء فى بيته الا المكتوبة)

يعنى نبى کريم ﷺ اوفرمايل چې په تاسو په خپل کور کښې مونځ کول لازم دى.خکه چې د سرى بهترين مونځ دده په خپل کور کښې دې.بغير د فرض نه.

د امام ابو حنيفه د طرفه جواب دادې چې قيام رمضان ددى نه مستثنى دې.خکه چې مخکښې معلومه شوه چې نبى کريم ﷺ په جومات کښې د تراويح مونځ ادا کړې وو او چې کله ئې تشريف راونه وړلو.نو ددى عذر ئې بيان کړو.اوخلفاء راشدينو عمل هم دا پاتې شوې دې چې د تروايح مونځ ئې په جماعت سره په مسجد کښې ادا کړې دې. ددى وجې بغير د عذر نه د تراويح جماعت پريخودلو اجازت نشته.

علامه ابن الهمام صاحب د فتح القدير. او صاحب د عنايه ليکلى دى چې د هر دوه ترويحو په مينځ کښې په خاموشئ سره انتظار کول مستحب دى .خکه چې تراويح او ترويحه د راحت نه

ماخوذ دی.نوداسی کار دی اوکړی چی په هغی کښې راحت وی.اودا خبره ښکاره ده چی راحت په چپ کیناستو کښې دې ، بنا په دې خکه چپ کیناستل غوره او مستحب دی.

## د تراویحو وخت او د قرات مقدار

دتراویح دوخت متعلق دوه مذاهب دي:

د اکثرو فقهاو قول دادی چې د تراویحو وخت د ماسخوتن نه پس او د وترو نه مخکښې دې.عام مشائخ ددی قائلین دی.تردی که د ماسخوتن نه مخکښې یا د وترو نه پس نې د تراویحو مونځ اوکړو.نو دا به تراویح نه وی.خکه چی د تراویح علم د صحابو د فعل نه ثابت شوې دې. نو صحابه کرامو چی په کوم وخت کښې د تراویحو مونځ کړې دې.هم هغه به د تراویحو وخت وی.او دا خبره منلی شوې ده چی صحابو د ماسخوتن نه پس د تراویحو مونځ کړې دې.نود تراویحو به هم دا وخت وی

(۲)او د بلخ د متاخرینو مشائخو مذهب دادې چی توله شپه د سحر صادق پورې د تراویحو وخت دې.د ماسخوتن نه مخکښې هم او د ماسخوتن نه پس هم.خکه چی د تراویحو نوم قیام اللیل دې. ددی وخت به هم لیل یعنی شپه وی.اصح قول دادې چی د تراویحو وخت د ماسخوتن نه پس د آخری شپی پورې دې.د وترو نه مخکښې هم او د وترو نه پس هم.خکه چی تراویح نفل دی چی د ماسخوتن نه پس مقرر شوی دی.نو د تراویحو مونځ به د ماسخوتن د مانځه تابع وی.او تابع د متبوع نه پس وی. نود تراویح مونځ به د ماسخوتن نه پس وی مخکښې به نه وی.

### دتراویح په موخر کولو کښی دوه اقوال دي:

(۱) تراویح د شپی آخره پورې موخر کول مستحب دی.بعضي عالمان فرمانی چی د نیمی شپی پورې موخر کول مستحب دی

(۲)خوکه د نیمی شپی نه پس نې ترایح اوکړل.نود بعضو په نزد مکروه دی.خکه چی تراویح د ماسخوتن د مونځ تابع دی.او ماسخوتن د نیمی شپی نه پس ادا کول مکروه دی.نوتراویح به هم د نیمی شپی نه پس مکروه وی.

اصح قول دادې چی د نیمی شپی نه پس مکروه نه دی.خکه چی تراویح صلوة اللیل دی.او په صلوة اللیل کښې د شپی آخر افضل دې.نوپه تراویح کښې هم د شپی د آخره پورې تاخیر افضل دی مکروه نه دې.

### په مقدار دقراءت کښی مذاهب ثلاثه:

(۱)بعضي خلق وائی چی د تراویحو په هره شفع کښې به دومره مقدار تلاوت کوی.خومره قرات چی د مابنام په مونځ کښې وی. خکه چی د ترایحو مونځ نفل دې. او نفل په نسبت د فرض آسان وی.نود قراءت په مقدار کښې تراویح په آسانو فرائضو باندې قیاس کولی شی .او آسان په فرائضو کښې د ما بنام مونځ دې.خو دا قول صحیح نه دې.خکه چی په دی مقدار سره په پوره میاشت کي په تراویح کښې یو ختم نه شی کیدلې.حالانکه په تراویح کښې یو خل کلام پاك ختمول مستحب دی

(۲)بعضي فرمائي چې د تراويحو په هره شفع كښې به دومره قرات كوی . څومره اندازه چې د ماسخوتن په مانځه كښې كوی.ځكه چې تراويح د ماسخوتن تابع دی
(۳)حسن بن زياد د امام اعظم نه روايت كړې دې چې په هر ركعت كښې د لسو آياتونو په مقدار قرات كوی.هم دا صحيح قول دې.ځكه چې په دی صورت كښې په خلقو باندې آساني هم ده.او د ختم قران سنت هم ادا كيدی شی .ځكه چې په ديرشو شپو كښې د تراويح شپږ سوه ركعته وی.او د قران پاك ټول آياتونه د شپږو زرو نه څه دپاسه دی چې په هر ركعت كښې لس آياته تلاوت كوی.نو په تراويحو كښې به پوره قران يو ځل ختم شی.
په كفايه كښې ليكلی شوی دی چې دوه ځلی قرآن ختمول افضل دی.او مجتهدين د امت به په يوه عشره كښې يو ختم كولو.او امام ابو حنيفه رحمه الله به د رمضان په مياشت كښې يوشپيته (۶۱) ختمونه كول. ديرش د رمضان په شپو كښې او ديرش د ورځو په رڼاكښې او يو په تراويح كښې(فتاوی قاضی خان)
.تراويح د عامو نوافلو نه په څو خبرو كښې مختلف دې. (۱)اوله دا چې په عامو نفلونو كښې جماعت نشته او په تراويح كښې جماعت دې(۲)دويم دا چې نفلو كښې د ركعتونو تحديد نشته دې.او په تراويحو كښې د ركعتونو حد شته(۳)دريم دا چې نوافل د هيڅ وخت سره خاص نه دی.او تراويح د رمضان د شپو سره مخصوص دی.(۴)څلورم دا چې په تراويحو كښې يو قرآن ختمول مسنون دی.په نورو نفلونو كښې دا سنت نه دې(عنايه فتح القدير لابن همام)

****************

## ۸۲_ بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا

### روژه دارته د افطاري وركولو فضيلت

۸۰۷_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ، عَنْ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الجُهَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ غَيْرَ أَنَّهُ لَا يَنْقُصُ مِنْ أَجْرِ الصَّائِمِ شَيْئًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دزيد بن خالد جهني رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، څوك چي روژه دار باندي خوراك اوخوروي دهغه هم دروژه دار هومره ثواب كيږي، ليكن دروژه دار دثواب نه څه شی نه كميږي (الله تعالي يی دخپل طرفه وركوي).
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی.

**تشريح** : ابوداد هم په دي سلسله كي د انس رضي الله عنه يو مرفوع روايت نقل كړی دی:

---

[1] ابن ماجه في الصيام ۴۵ (۱۷۴۶) (تحفة الأشراف: ۳۷۶۰) . مسند احمد (۴ في ۱۱۴،۱۱۵، ۱۱۶)

عن أنس ﷺ: أنَّ النبيَّ ﷺ جاءَ إلى سعد بن عبادة ﷺ فَجاءَ بِخُبْزٍ وَزَيْتٍ، فَأَكَلَ، ثُمَّ قالَ النبي ﷺ: ((أَفْطَرَ عِنْدَكُمُ الصَّائِمُونَ؛ وَأَكَلَ طَعَامَكُمُ الأَبْرَارُ، وَصَلَّتْ عَلَيْكُمُ المَلائِكَةُ)) رواه أبو داود بإسناد صحيح.

انس رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم سعد بن عباده كره تشريف يوړو نو هغه ورته ډوډۍ اودزيتون تيل پيش كړل رسول الله صلي الله عليه وسلم روټۍ اوخوړله او ويې فرمائيل تاكره روژه دار روژه ماته كړه. اوستاسو خوراك نيكانو اوخوړو اوتاسو ته فرشتو درحمت دعا اوغوښتله. امام ابو داود په صحيح سند روايت كړى دى

علماء وائي دا جمله خبريه ده ليكن ددعا په معني ده يعني الله تعالي دي تاسو ته دهغي كس بدله دركړي څوك چي دخلقو دپاره دافطاري انتظام كوي په پورتني حديث كي دي خبري ته هم ترغيب دي چي دطاقت مناسب ميلمستيا پكار ده او دا هم مستحب دي چي روژه دار به دافطاري انتظام كونكي ته دعا كوي.

***************

## ٨٣ـ باب التَّرْغِيبِ فِي قِيَامِ رَمَضَانَ وَمَا جَاءَ فِيهِ مِنَ الْفَضْلِ

### دقيام رمضان دپاره ترغيب او ددي فضائل

٨٠٨ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرَغِّبُ فِي قِيَامِ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَأْمُرَهُمْ بِعَزِيمَةٍ، وَيَقُولُ: "مَنْ قَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ". فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ. ثُمَّ كَانَ الأَمْرُ كَذَلِكَ فِي خِلَافَةِ أَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ عَلَى ذَلِكَ. وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ أَيْضًا عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به اصحابو ته په رمضان كي دتراويح كولو ترغيب وركولو، اوپه سختۍ سره به يې حكم نه وركولو.

---

[1] مسلم في المسافرين ٢٥ (٧٥٩)، سنن ابي داود في الصلاة ٣١٨ (١٣٧١)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٧٠)، وأخرجه البخاري في الإيمان ٢٧ (٣٧)، والصوم ٦ (١٨٩٨)، والتراويح ١ (٢٠٠٩)، وسنن ابي داود في الصلاة ٣١٨ (١٣٧١)، وسنن النسائي في قيام الليل ٣ (١٦٠٣)، والصيام ٣٩ (٢١٩٨، ٢٢٠١، ٢٢٠٢، ٢٢٠٣، ٢٢١٣)، والإيمان ٢١ (٥٠٢٧، ٥٠٢٩)، و٢٢ (٥٠٣٠)

فرمائيل به يې څوك چې دايمان په حالت كې دثواب په نيت رمضان كې قيام الليل وكړي، مخكني گناهونه به ورته ټول معاف شي پس رسول الله صلى الله عليه وسلم وفات شو او همدا طريقه جاري وه او بيا دابوبكر رضي الله عنه په خلافت كې او دعمر دخلافت په ابتداء كې هم معامله همداسې جاري وه.

امام ترمذي وائي په دې باب كې دعائشه نه هم روايت مروي دی. او دارنګې داروايت زهري دعروه نه عن عائشه عن النبي صلى الله عليه وسلم سند هم نقل كړى دى. امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دى.

**لغات**: بعزيمة: العزيمة معنى موكده اراده جمع يې عزائم راځي.

**تشريح**: دقيام نه مراد تراويح دي ددينه علماء استدلال كوي چې تراويح كول سنت مؤكده دي خكه چې رسول الله ديته ترغيب وركړى دى او درمضان دشپې قيام پخپله درسول الله نه ثابت دى بلكه درې شپې يې اجتماعي تراويح پخپله وركړي دي بيا يې اوفرمائيل زما سره دا خطره ده چې دا چرته فرض نشي نو په دې وجه يې دخواهش توجه صحابه كرامو ته اجتماعي تراويح ورنكړي ليكن وروسته ددې دفرض كيدو خطره نه وه نو په دې وجه عمر رضي الله عنه داجتماعي تراويح اهتمام شروع كړو. (روضة الصالحين)

امام نووي وائي چې دلته دګناهونو دمغفرت نه مراد صغيره ګناهونه دي او دكبيره ګناهونو دپاره توبه ويستل او استغفار ونيل ضروري دي او كچرته څوك داسې خوش نصيب انسان وي دچا په عمل نامه كې چې ګناه نه وي نو دا دشپې قيام به دده دپاره په جنت كې ددرجو دلوړيدو ذريعه اوګرځي. (دليل الفالحين)

****************

ويليه انشاء الله كتاب الحج في المجلد الثالث.